Language & literature Faculty
د ژبو او ادبیاتو پوهنځی

Verein Deutsche Sprache
Das weltweite Netz der deutschen Sprache

Afghanic

# د جرمني ژبې اسانه زده کړه

## له اساساتو نه تر ادبیاتو پورې

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ich | arbeit | + e + | te | = | arbeitete | ما کار وکړو |
| du | atm | + e + | test | = | atmetest | تا ساه راښکله |
| es | regn | + e + | te | = | regnete | باران وورېدوو |
| wir | zeichn | + e + | ten | = | zeichneten | مونږ رسم وکړو |
| ihr | kitt | + e + | tet | = | kittetet | تاسو سرېښ کړو |
| sie | weid | + e + | ten | = | weideten | هغوی وخرېدل |

داکتر اکرم ملکزی




د جرمني ژبې اسانه زده کړه

داکتر اکرم ملکزی

Dr. Akram Malakzay

# Lehrbuch der deutschen Grammatik für Afghanen




Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**




ISBN 978-9936-633-71-1

۱۴۰۱ پلورل منع دی

Not for Sale 2022

# د جرمني ژبې اسانه زده کړه

## له اساساتو نه تر ادبیاتو پورې

داکتر اکرم ملکزی

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | arbeit + e + te | = | arbeitete | ما کار وکړو |
| du | atm + e + test | = | atmetest | تا ساه راښکله |
| es | regn + e + te | = | regnete | باران وورېدوو |
| wir | zeichn + e + ten | = | zeichneten | مونږ رسم وکړو |
| ihr | kitt + e + tet | = | kittetet | تاسو سرېښ کړو |
| sie | weid + e + ten | = | weideten | هغوی وڅرېدل |

Pashto PDF
2022

NANGARHAR·UNIVERSITY

Language & literature Faculty

د ژبو او ادبیاتو پوهنځی

Funded by
**Kinderhilfe-Afghanistan**

افغانیک
Afghanic

# Lehrbuch der deutschen Grammatik für Afghanen

Dr. Akram Malakzay

Download:

www.ecampus-afghanistan.org

اقرأ باسم ربك الذي خلق

# د جرمني ژبې اسانه زده کړه
# له اساساتو نه تر ادبیاتو پورې


**ډاکتر اکرم ملکزی**



دوهم چاپ


دغه کتاب په پي ډي ايف فارمټ کې په مله سي ډي کې هم لوستلی شئ:




Verein Deutsche Sprache


نوټ: دا کتاب په ۲۰۲۱ ز کال په جرمني کې د جرمني ژبې ټولنې لخوا چاپ شوی
او اوس بیا په افغانستان کې له کوم تغییر پرته چاپ شو.

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | د جرمني ژبې اسانه زده‌کړه له اساساتو نه تر ادبیاتو پورې |
| لیکوال | ډاکتر اکرم ملکزی |
| خپرندوی | ننگرهار پوهنتون، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی |
| وېب پاڼه | www.nu.edu.af |
| د چاپ کال | ۱۴۰۱، دوهم چاپ |
| چاپ شمېر | ۱۰۰۰ |
| مسلسل نمبر | ۳۶۵ |
| ډاونلوډ | www.ecampus-afghanistan.org |

دا کتاب د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې، په جرمني کې د Eroes کورنۍ یوې خیریه ټولنې لخوا تمویل شوی دی.
اداري او تخنیکي چارې يې د افغانیک لخوا ترسره شوي دي.
د کتاب د محتوا او لیکنې مسوولیت د کتاب په لیکوال او اړوند پوهنځي پورې اړه لري. مرسته کوونکي او تطبیق کوونکي ټولنې په دې اړه مسؤلیت نه لري.



د تدریسي کتابونو د چاپولو لپاره له موږ سره اړیکه ونیسئ:
ډاکتر یحیی وردک، د لوړو زده کړو وزارت، کارته ۴، کابل
موبایل ۰۷۰۶۳۲۰۸۴۴، ۰۷۸۰۲۳۲۳۱۰
ایمېل info@ecampus-afghanistan.org





ای اس بي ان ۹۷۸-۹۹۳۶-۶۳۳-۷۱-۱

# د درسي کتابونو چاپول

قدرمنو استادانو او ګرانو محصلینو!

د افغانستان په پوهنتونونو کې د درسي کتابونو کموالی او نشتوالی له لویو ستونزو څخه ګڼل کېږي. یو زیات شمېر استادان او محصلین نویو معلوماتو ته لاسرسی نه لري، په زاړه میتود تدریس کوي او له هغو کتابونو او چپترونو نه ګټه اخلي چې زاړه دي او په بازار کې په ټیټ کیفیت فوتوکاپي کېږي.

موږ تر اوسه پورې د ننګرهار، خوست، کندهار، هرات، بلخ، البیروني، کابل پوهنتون، د کابل طبي پوهنتون او د کابل پولي تخنیک پوهنتون لپاره ۳٦٥ عنوانه مختلف درسي کتابونه د طب، ساینس، انجنیري، اقتصاد، ژورنالېزم او کرهنې پوهنځیو لپاره چاپ کړي دي.

د یادونې وړ ده، چې نوموړي چاپ شوي کتابونه د هېواد ټولو اړوندو پوهنتونونو او یو زیات شمېر ادارو او موسساتو ته په وړیا توګه وېشل شوي دي. ټول چاپ شوي کتابونه له www.ecampus-afghanistan.org ویب پاڼې څخه ډانلوډولی شئ.

دا کړنې په داسې حال کې ترسره کېږي چې د افغانستان د لوړو زده کړو وزارت د (۲۰۱۰ - ۲۰۱۴) کلونو په ملي ستراتیژیک پلان کې راغلي دي چې:

*"د لوړو زده کړو او د ښوونې د ښه کیفیت او زده کوونکو ته د نویو، کره او علمي معلوماتو د برابرولو لپاره اړینه ده، چې په دري او پښتو ژبو د درسي کتابونو د لیکلو فرصت برابر شي، د تعلیمي نصاب د ریفورم لپاره له انګریزي ژبې نه دري او پښتو ژبو ته د کتابونو او درسي موادو ژباړل اړین دي، له دغو امکاناتو پرته د پوهنتونونو محصلین او استادان عصري، نویو، تازه او کره معلوماتو ته لاسرسی نه شي پیدا کولای."*

موږ غواړو چې د درسي کتابونو په برابرولو سره د هېواد له پوهنتونونو سره مرسته وکړو او د چپټر او لکچرنوټ دوران ته د پای ټکی کېږدو. د دې لپاره اړینه ده چې د افغانستان پوهنتونونو لپاره هر کال لږ تر لږه ۱۰۰ عنوانه درسي کتابونه چاپ شي.

**له ټولو درنو استادانو نه هيله کوو، چې په خپلو مسلکي برخو کې نوي کتابونه وليکي، ويې ژباړي او يا هم خپل پخواني ليکل شوي کتابونه، لکچرنوټونه او چپټرونه ايډېټ او د چاپ لپاره تيار کړي، زموږ په واک کې يې راکړي چې په ښه کيفيت چاپ او وروسته يې د اړوند پوهنځيو، استادانو او محصلينو ته په واک کې ورکړو. همدارنګه د يادو ټکو په اړه خپل وړانديزونه او نظريات له موږ سره شريک کړي، چې په ګډه په دې برخه کې اغېزمن ګامونه پورته کړو.**

د ليکوالانو او خپروونکو له خوا پوره زيار ايستل شوی، چې د کتابونو محتويات د نړيوالو علمي معيارونو پر اساس برابر شي، خو بيا هم کېدای شي د کتاب په محتوا کې ځينې تېروتنې او ستونزې وليدل شي، نو له درنو لوستونکو نه هيله لرو چې خپل نظريات او نيوکې ليکوال او يا موږ ته په ليکلې بڼه راولېږي، چې په راتلونکي چاپ کې اصلاح شي.

د افغان ماشومانو لپاره د جرمني کمېټې او د هغې له مشر ډاکتر ايروس نه ډېره مننه کوو چې د دغه کتاب د چاپ لګښت يې ورکړی دی. دوی تر دې مهاله د ننګرهار پوهنتون د ۲۳۰ عنوانه طبي او غير طبي کتابونو د چاپ لګښت پر غاړه اخيستی دی.

د پوهنتونونو رييسانو، د پوهنځيو رييسانو او استادانو نه مننه کوم چې د کتابونو د چاپ لړۍ يې هڅولې او مرسته يې ورسره کړې ده. د دغه کتاب له ليکوال نه ډېر منندوی يم او ستاينه يې کوم، چې خپل د کلونو - کلونو زيار يې په وړيا توګه ګرانو محصلينو ته وړاندې کړ.

همدارنګه د دفتر له همکارانو هر يو؛ ښاغلي حکمت الله عزيز او ښاغلي فهيم حبيبي نه هم مننه کوم چې د کتابونو د چاپ په برخه کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي.

ډاکتر يحيی وردک

د لوړو زده کړو وزارت، کابل، مې، ۲۰۲۲

د دفتر ټيليفون: ۰۷۸۰۲۳۲۳۱۰، ۰۷۰۶۳۲۰۸۴۴

ايميل: info@ecampus-afghanistan.org



Dr. Akram Malakzay,
vom Bundespräsidenten mit dem Bundesverdienstkreuz der Bundesrepublik Deutschland ausgezeichnet.

ډاکټر اکرم ملکزی، د جرمني د جمهور رئیس له خوا د جرمني په ستر نښان ویاړل شوي

# Inhaltsverzeichnis

**Bibliographie**


Deryer, Schmidt.
Lehr- und Übungsbuch der deutschen Grammatik
Hueber-Verlag, 1. Auflage, 2009

Wörterbuch Deutsche Grammatik
Garant Verlag GmbH, Leonberg 2007

Friedrich Clammer/Ehrhard G. Heilmann
Deutsch als Fremdsprache
Verlag Liebaug-Dartmann, 2007

Johannes Zühlsdorff
Deutsch als Fremdsprache
Verlag Liebaug-Dartmann, 2007

PONS die deutsche Grammatik
Die umfassende Grammatik für Beruf, Schule und Allgemeinbildung
2. Auflage, 2017

Udo Klinger
Deutsche Grammatik, Version 2009/2010
www.Deutschonline.de

# Vorwort

Nach der überwältigenden Resonanz auf mein „Großes Wörterbuch Deutsch – Paschto“, das 2009 im H. Buske Verlag in Hamburg erschien, wurde ich von Afghanen angesprochen, ob ich in vergleichbarer Qualität ein Grammatikbuch herausgeben könne. Für meine Verdienste als Autor des Wörterbuches wurde ich vom Bundespräsidenten im Jahr 2011 mit dem Bundesverdienstkreuz am Bande und 2014 vom afghanischen Präsidenten Hamid Karzai mit einer Kulturmedaille Afghanistans ausgezeichnet. Diese Medaille ist mir allerdings aus unerklärlichen Gründen bis zum heutigen Tag nicht übergeben worden.

In der Annahme, den Wunsch der Afghanen erfüllt zu haben, schrieb ich in Windeseile ein ca. 200-seitiges Grammatikbuch und versandte Auszüge davon an interessierte Deutschlerner. Die Resonanz ließ eher zu wünschen übrig. Die Grammatik sei nicht für jedermann gut verständlich. Zur Vereinfachung der deutschen Grammatik war eine Innovation vonnöten. Kein leichtes Unterfangen.

Für jeden grammatikalischen Begriff musste zunächst ein äquivalenter Paschtobegriff gefunden werden, was nicht immer möglich war. Bei Nichtvorhandensein von entsprechenden Paschtobegriffen musste ein Umweg gesucht werden. Der beste Umweg war, einen allgemein verständlichen Begriff, ein Sprichwort, ein bekanntes Lied oder ein Gedicht auszuwählen. Bei der Begriffserklärung wurden der Sprachstil und die Wortzusammensetzung analysiert, um eine Brücke zur deutschen Grammatik zu schlagen. Als der Übergang zur deutschen Grammatik gefunden wurde, wurde zunächst mit der Grundstufe begonnen. Sukzessive wurde das Niveau angehoben. Für Interessierte am gehobenen Deutsch wurden entsprechende grammatikalische Abschnitte hinzugefügt. Hier wurden namhafte deutsche Schriftsteller zitiert.

Das Buch ist in Form eines Kurs- und Arbeitsbuches aufgebaut. Nach jedem grammatikalischen Abschnitt steht zur Erfolgskontrolle eine Übung, deren Lösungen im darauffolgenden Abschnitt stehen.

Im Schlussteil des Buches wird ausführlich auf Schwierigkeiten der Afghanen beim Erlernen der deutschen Sprache eingegangen. Die oft falsch angewandten Sätze werden kenntlich gemacht. Links in den Tabellen stehen die korrekten, rechts die falschen Sätze, die durchgestrichen sind.

Da auch deutschen Muttersprachlern gravierende Sprachfehler unterlaufen können, wird auch diesem Sachverhalt Rechnung getragen. Auch hier stehen in den Tabellen die korrekten Ausdrücke links, die unkorrekten rechts mit durchgestrichenen Linien.

Bebra-Weiterode, im Herbst 2021

# سریزه

کله چې په (2009) کال کې زما د (جرمني - پښتو ډکشنري) په جرمني کې له چاپه راووتله، نو په افغانستان او په جرمني کې يې بې سارې هرکلی او ستاینه وشوه چې د جرمني جمهور رئیس لیکوال ته د جرمني دولت ستر نښان ورډالۍ کړو. د افغانستان جمهور رئیس حامد کرزي هم ورته یو مډال منظور کړو. سره له دې چې له افغان دولتي مقاماتو سره د لیکوال له خوا اړیکې ونیول شوې، خو بیا هم دا مډال تر نن ورځې پورې ورته ندی ورکړل شوی. په دغه مهال ګڼ شمېر افغانانو له ما نه هیله وکړه چې که چېرته زه په همغه سټنډرډ چې ډکشنري لیکل شوې، د جرمني ژبې یو ګرامر کتاب ولیکم، نو افغانانو ته د جرمني ژبې زده کړه ډېره اسانه شي. نو د دې هیلې په اساس ما په منده یو د ګرامر (200) مخیزه د ګرامر کتاب ولیکو او هېوادوالو ته مې یو څو برخې په اختیار کې کېښودلې. د هغوی غبرګون دا و چې زده کړه ورنه ستونځمنه ده، ځکه د ګرامر تشریحات په ډېر لنډ ډول شوېدي. نو له دې امله د ګرامر تشریحات مې لاپسې اوږده او په اسانه ژبه ولیکل چې کتاب (400) مخو ته ورسېد. خو بیا هم احوال راکړل شو چې زده کړه ترینه اوس هم لا ستونځمنه ده. په دې اساس زه مجبور شوم چې تشریحات لاپسې په ساده ژبه ولیکم چې کتاب څه ناڅه (800) مخو ته ورسېد. دا ځلې راته احوال راکړل شو چې اوس نو کتاب په ریښتیا په ډېره ساده ژبه لیکل شوېدی. که څوك په دې ساده ژبه بیا هم نېوهېږي، نو له هغوی سره دې خدای مرسته وکړي. نو هیله مې ده چې په دې وجه د هېوادوالو هیله مې ترسره کړې وي او کتاب اوس ټولو هېوادوالو ته اسان وي.

په دې کتاب کې له یو نوښت نه کار اخیستل شوېدی او هغه دا دی چې مخکې له دې چې د جرمني ژبې ګرامر تشریح شي، د دې برخې اړوند پښتو ګرامر راسپړل او په اسانه تشریح کیږي. کله چې د پښتو برخه لوستونکو ته ښه واضح شوه، بیا د جرمني ژبې ګرامر ته لار لټول کیږي. لومړی د جرمني ژبې د ګرامر اساسات په ډېر ساده ډول تشریح کیږي. په کراره کراره ګرامري سویه مخ په پورته کېدو ځي. کله چې هر مبحث پای ته رسیږي، سمدلاسه د هر مبحث لاندې تمرینونه راځي چې د تمرینونو حل بیا هم ورسره لیکل شوېدی. نو په دې اساس هر لوستونکی ځان پخپله کنټرولولی شي چې یو مبحث یې په صحیح ډول زده شوېدی او که نه.

په پای کې د ګرامر هغه برخه تشریح کیږي چې د ډېرې لوړې سویې ژبې لپاره پکاره ده چې هغه ادبي برخه ده. د کتاب په وروستۍ برخه کې هغه څه لیدل کیږي چې لیکوال په تېرو شپږ څلوېښت کلو کې پخپلو سترګو لیدلي او پخپلو غوږو اورېدلي دي. هغه د جرمني ژبې په زده کړه کې د افغانانو ستونځې او پخپله د جرمنیانو تېروتنې دي. دا هم پکې راغلي دي چې ولې دا شان تېروتنې کیږي او صحیح بڼه یې کومه ده.

د ګرامر د ځینو جرمني اصطلاحاتو لپاره مې له بده مرغه په پښتو کې هېڅ اړوند ونه موند. له دې کبله ما له نورو ژبو نه د کار اخیستنې په اساس پخپله ورته یو پښتو نوم غوره کړو. د بېلګې په توګه د (Plusquamperfekt) لپاره (ډېر لیرې پخوانی وخت یا بعیده ماضي)، د (Perfekt) لپاره (نږدې تېر وخت) او د (Imperfekt) لپاره (مطلق تېر وخت) غوره شو.

د دې کتاب خپرندوی له نېکه مرغه په جرمني کې د جرمني ژبې ټولنه ده چې د جرمني ژبې پالنه کوي. دې ټولنې چې نوم یې (Verein Deutsche Sprache) دی، په (2021) کال کې (3600)غړي درلودل. د دې کتاب لپاره د دې ټولنې له خوا د پښتو او جرمني ژبې ژبپوهان ګمارل شوي وو چې د چاپ نه دمخه ورته ډېر په ځیر کره کتنه وشوه. په دې ډول دې کتاب ته د یو علمي کتاب په نظر کتل کېدی شي.

# Grammatische Wortarten گرامري اصطلاحات

| Lateinische Bezeichnung لاتيني لغت | Deutsche Bezeichnung جرمنی لغت | Beispiele متالونه |
| --- | --- | --- |
| Nomen اسم یا نوم (= Substantiv) | Hauptwort اصلي لغت | Himmel اسمان<br>Erde مځکه |
| konkrete Nomen څرګند نوم | Gegenstandshauptwort د جسم لرونکو شيانو لپاره اصلي لغت | Haus کور Stein تيږه هرڅه چې مادي دي، لکه کور، تيږه |
| abstrakte Nomen خيالي نوم | Gedankenhauptwort خيالي يا فکري لغت | (Liebe مينه) هرڅه چې غير مادي شيان دي، لکه مينه |
| Artikel جنسيت ښودونکی | Geschlechtswort جنسيت ښودونکی لغت | der نارينه جنسيت ښودونکی<br>die ښځينه جنسيت ښودونکی<br>das مخنث جنسيت ښودونکی |
| bestimmter Artikel څرګند جنسيت ښودونکی | bestimmtes Geschlechtswort | |
| Maskulinum نارينه يا مذکر | männlich نارينه ، نرګړی | der |
| Femininum ښځينه، مؤنث | weiblich ښځينه، ښځګړی | die |
| Neutrum مخنث | sächlich مخنث، بي جنتيته | das |
| unbestimmter Artikel ناڅرګند جنسيت ښودونکی | unbestimmtes Geschlechtswort | ein يو<br>eine يوه<br>ein يو |
| Adjektiv صفت، ستاينوم | Eigenschaftswort د څرنګوالي ښودونکی لغت | gut ښه، schön ښايسته |
| Partizip مينځنی لغت | Mittelwort د صفت او فعل تر مينځ لغت | spielend لوبيدونکی<br>gespielt لوبيدل شوی |
| Partizip Präsens اوسنی حال څرګندونکی لغت | Mittelwort der Gegenwart د اوسني وخت مينځنی لغت | lachend په خندا<br>tanzend په ګډا |
| Partizip Perfekt پخوانی مينځنی لغت | Mittelwort der Vergangenheit پخواني وخت څرګندونکی لغت | gelesen لوستل شوی<br>geschrieben ليکل شوی |
| Verb فعل، چاره، کړنه، کړ | Tätigkeitswort, Zeitwort د يوې چارې د کولو لغت | geht, kommt ځي، راځي |
| Vollverb بشپړ فعل، پوره فعل | | lesen لوستل<br>schreiben ليکل |
| Hilfsverb مرستندوی فعل | | sein اوسيدل<br>haben درلودل |

| | | |
|---|---|---|
| Modalverb تناسبي فعل | د جملي د فاعل او فعل تناسب ښودونکی فعل | wollen غوښتل<br>dürfen اجازه لرل |
| Adverb قید ، کړول | Umstandswort<br>حالت څرګندونکی لغت | oben, unten پورته، ښکته |
| lokal د ځای | des Ortes د یو ځای | hier دلته , dort هلته |
| temporal د وخت | der Zeit د یو وخت | heute نن morgen سبا |
| modal نسبتي | der Art und Weise<br>د یو حالت او بول ښودونکی | vielleicht کېدی شي چې<br>ebenso همدا شان |
| kausal علتي، سببي | des Grundes<br>د علت ښودونکی | darum ځکه<br>deshalb ځکه |
| Präposition د اړیکو لغت | Verhältniswort<br>د اړیکو لغت، د مناسباتو لغت | in یکې , auf باندي<br>unter لاندي |
| Numerale عددي لغت | Zahlwort عدد ښودونکي لغت | hundert سل |
| bestimmtes Numerale<br>څرګند عددي لغت | bestimmtes Zahlwort<br>څرګند عددي لغت | ein یو zwei دوه |
| unbestimmtes Numerale | unbestimmtes Zahlwort<br>ناڅرګند عددي لغت | alles ټول wenig لږ |
| sonstige Numerale<br>پاتي نور عددي لغت | sonstige Zahlwörter<br>نور شان عددي لغتونه | einmal یو ځل<br>zweimal دوه ځلي |
| Pronomen ضمیر، نومځری | Fürwort<br>د بل په ځای لغت، نومځری | wir, ihr مومږ، تاسو |
| Personalpronomen<br>شخصي ضمیر | persönliches Fürwort<br>شخصي نومځری | ich زه du ته<br>er هغه sie هغه |
| Reflexivpronomen<br>منعکسه ضمیر | Rückbezügliches Fürwort<br>په خپ اړیکي نیونکی نومځری | mich ما، زه<br>dich تا، ته |
| Demonstrativpronomen<br>د اشاري ضمیر | hinweisendes Fürwort<br>یو چا ته ګوته نیوونکی نومځری | dieser, diese, dieses دا |
| Possessivpronomen<br>ملکي ضمیر | besitzanzeigendes Fürwort<br>خاوندتوب ښکاره کونکی | mein زما dein ستا<br>sein د هغه unser زمونږ |
| Relativpronomen<br>نسبتي ضمیر | bezügliches Fürwort<br>نسبتي نومځری | welcher<br>کوم یو نارینه سړي یا شی<br>welche<br>کوم یو ښځینه کس یا شی |
| Interrogativpronomen<br>سوالیه ضمیر | fragendes Fürwort<br>پوښتنه کونکی نومځری | wer? څوك؟<br>was? څه شی؟ |
| Konjunktion د تړاو لغت | Bindewort<br>د نښلولو لغت، د وصلولو لغت | und او<br>(entweder … oder …<br>یا دا ......یا دا |

| | | |
|---|---|---|
| nebenordnende Konjunktionen د اصلی او فرعي جملو د ربط لغت | یو بل سره د دوه اصلي یا د دوه فرعي جملو د نښلولو لغت | als کله چي<br>weil ځکه چي |
| unterordnende Konjunktionen د اصلي او د فرعي جملي د ربط لغت | یو بل سره د یوي اصلي جملي او د فرعي جملي د تړلو حرف | denn په دي چي<br>jedoch خو |
| Interjektion د غږ لغت | Ausrufewort<br>د غږ کولو لغت، د ناري لغت | ach! اخ hallo! هه لو |
| Präfix له اصلي لغت نه دمخه حروف چي د لغت مانا بدلوي | Vorsilbe مختاړی | be- ent- ver- zer |
| Suffix له اصلي لغت نه وروسته حروف چي د لغت مانا بدلوي | Nachsilbe وروستاړی | -ung, -heit, - keit |
| Singular مفرد، یو کس یا یو شی | Einzahl یو یو، یوګړی | Kind ماشوم |
| Plural جمع، ډیر کسان یا شیان | Mehrzahl ډیر، ډیرګړی | Kinder ماشومان |
| Infinitiv مصدر، کړنوم | Grundform د فعل بنیادي ډول | gehen تلل |
| Partikel ادات (عربي)، وییکی | Redeteilchen د خبري بځرکی | bloß, nur خو |

# د پښتو مختلفې (ی) ګانې

د جرمني ژبې الفتوري یا الفبا مونږ. هغه وخت زده کوی شو، چې د خپلې ژبې د الفتورو په لیکلو او لوستلو پوه شو. له بده مرغه ډېر کسان د پښتو د (ی) ګانو په لوستلو کې ستونځې لري. نو له دې کبله مونږ به لومړی د پښتو (ی) ګانو ته نظر وکړو.

| | |
|---|---|
| ی | دا هغه (ی) ده چې د لغت په پای کې لیکل کیږي، لکه سړی، وری، غویی، زمری، پټی، غمی. دا توری په دغه تلفظ هېڅکله د لغت په سر او یا په مینځ کې نه راځي. په پښتونخوا کې دا توری په دې ډول (ے) لیکل شوی دی چې دې ته اوږده یا پرته (ے) وایي. |
| ې | دا هغه (ې) ده چې ټکي یې لاندې باندې لیکل کیږي او دا سې لوستل کیږي: مستې، خوږې، پنېر، هېر، ژېړ، ببرته، پېر، ببل، بې دبه، بېلتون، بېوزله، بې وفا، پېغله. دا توری د لغت په مینځ او هم د لغت په پای کې لیکل کیږي. د لغت په مینځ کې په دې ډول لیکل کیږي (ېـ). |
| ي | دا هغه (ي) ده چې ټکي یې خوا په خوا لیکل کیږي او د یو لغت په سر، په مینځ او په پای کې لیکل کیږي او داسې لوستل کیږي: خپلواکي، ځواني، خاني، نېکي، شین، وینه او داسې نور. |
| ۍ | دا هغه (ۍ) ده چې د لغت په پای کې لیکل کیږي او داسې لوستل کیږي: ځوکۍ، هیلۍ، لکۍ، خولۍ، ببړۍ، سیلۍ، اونۍ، بوړبوړکۍ، لولکۍ، پیشوګۍ. دا توری هېڅکله د یو لغت په سر او په مینځ کې نه لیکل کیږي او تل د لغت په پای کې په بشپړ ډول لیکل کیږي. |
| ئ | دا هغه (ئ) ده چې هېڅکله د لغت په سر او مینځ کې نه، بلکې تل د لغت په پای کې راځي او داسې لوستل کیږي لکه د (ۍ) په شان. خو توپیر یې په دې کې دی چې دا (ئ) د اسم په پای کې نه بلکې د فعل په پای کې لیکل کیږي. لکه: تاسو راشئ، تاسو ځئ، تاسو خورئ. |

## د پښتو (ی) ګانو سره معادل جرمني توري

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ei = ۍ ، ئ | I = ي | E = ې | Ä = ی |

**د لیکوال شخصي نظر**: د جرمني ژبې په ډول د (Ei) د تلفظ لپاره د پښتو په لیکدود کې تش همدغه یوه (ۍ) بس وه، که اسم وي او که فعل ، د دواړو تلفظ په همدې یوې (ۍ) کېدی شو. د فعل لپاره د (ۍ) کارول زما په نظر د یوې (ی) خوشې مصرفول دي. دغه (ۍ) د جرمني د (Ä) په تلفظ کارول کېدی شوه. له بلې خوا د دوه مختلفو غږونو لپاره د پښتو په لیکدود کې تش یوه (ی) کارول شوېده. د بېلګې په توګه (سړی، زمری، پټی) په همغه (ی) لیکل کیږي لکه (خدای، ځای،چای، وای). نو په دې وجه پښتنو ماشومانو ته به د (سړی) او د (ځای) د صحیح تلفظ معلومول ستونځمن وی، ځکه چې د دواړو لغاتو لپاره همدغه یوه (ی) کارول شوېده.

# د جرمني ژبې الفتوري يا الفبا Das deutsche Alphabet

د جرمني ژبې توري په دوه شان دي. لوی توري او وړوکي توري . لوی توري د نومونو يا د اسمونو په سر کې او يا د يوې نوې جملې په پيل کې ليکل کيږي. ادامه يې بيا په وړو تورو کيږي.

د تورو ليکدود هم دوه شان دی:

### ① چاپي ليکدود يا (Druckschrift) :

دا هغه ليکدود دی چې په چاپي وسايلو باندې ليکل کيږي لکه په کمپيوټر او يا د ټايپ په ماشين، او په رسمياتو کې ورته کار اخيستل کيږي، يعني دفتري ليکونه، کتابونه او ورځپاڼې په دې ليك ليکل کيږي. د دې ليکدود ځانګړتيا دا ده چې توري د يو بل سره نه نښلي، يعني توري له يو بل نه بېل بېل ليکل کيږي، نو له دې کبله د دوه تورو د ليکلو په وخت لږ څه دمه پکې راځي، نو ځکه په دې ليك ليکل لږ څه په ځنډ يا په سست ډول کيږي.

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| A a<br>*a* آ | B b<br>*bee* بې | C c<br>*zee* څې | D d<br>*dee* دې | E e<br>*e* اې | F f<br>*eff* ايف | G g<br>*gee* ګې | H h<br>*ha* ها |
| I i<br>*i* اي | J j<br>*jott* يوټ | K k<br>*ka* کا | L l<br>*ell* ايل | M m<br>*em* ايم | N n<br>*en* اين | O o<br>*o* او | P p<br>*pee* پې |
| Q q<br>*ku* کو | R r<br>*er* ايغ | S s<br>*es* ايس | T t<br>*tee* تې | U u<br>*u* اوو | V v<br>*fau* فه و | W w<br>*wee* وې | X x<br>*iks* ايکس |
| Y y<br>üpsilon<br>ايپسي لون | Z z<br>*zett*<br>څېټ | ß = SS<br>*ess-zett*<br>ايس<br>څېټ | Ä ä اې<br>A-<br>Umlaut | Öö =<br>O-<br>Umlaut | Üü =<br>U-<br>Umlaut | | |

د پورتني جدول په هر پټي کې کيڼ لاس ته ليکل شوي توری لوی توري او ښي لاس ته ليکل شوي تـوري واړه تـوري دي. د (W) توري لپاره په پښتو کې کوم معادل توری او تلفظ نشته نو ځکه ناچار د (وې) او د (فې) تر مينځ لوستل کېدی شي. همدا شان د (Ö) او (Ü) لپاره په پښتو کې معادل توري او تلفظ نشته. د (Umlaut) سره ليکل شوي توري هغه توري دي چې د (A, O, U) په سر دوه ټکي ايښودل کيږي. په سره رنګ نښه شوي توري غږ لرونکي توري دي

### ② قلمي ليکدود يا (Schreibschrift) :

دا هغه ليکدود دی چې سړی يې په قلم پخپل لاس ليکي، لکه کله چې سړی يو ډېر نږدې دوست ته يو شخصي ليك استوي او يا کله چې په ښوونځي کې زده کوونکي د تختې له مخې يو څه په قلم باندې پخپله کتابچه کې ليکي. د دې ليکدود ځانګړتيا دا ده چې توري له يو بل سره نښلول کيږي، نو له دې کبله په ليکلو کې دمه نه راځي او ليك ډېر ژر ليکل کېدی شي. د دې ليکدود موخه دا ده چې سړی يو څه ډېر ژر وليکلی شي، لکه د پوهنتون محصلين چې د لکچر په وخت د پروفيسر تشريحات په ډېرې چټکۍ په کتابچه کې ليکي.

### د جرمني تورو ليکل:

جرمني توري په دې ډول ليکل کيږي چې لومړی څلور کرښې راښکل کيږي چې ورته درې پټۍ جوړيږي. په دې پټيو کې هر توری ځان له ځای لري. لومړی به دا پټۍ وګورو:

| | |
|---|---|
| 1. Feld | لومړی پټی |
| 2. Feld | دوهمه پټی |
| 3. Feld | دریمه پټی |



په جرمني کي واړه ماشومان په دې درې پټو کې لومړی يو کور رسموي، په لومړي پټي کې د کور بام، په دوهم پټي کي د کور مېنځنی برخه او په دريم پټي کي د کور تاکاو رسميږي چې په يوه زينه باندې سرې ورته ښکته کيږي.

د چاپي ليکدود غټ توري دومره غټ ليکل کيږي چي لومړی او دوهمه پټی يا د کور په منځنی برخه او بام پرې ډکيږي، په لاندې ډول

## 1. Druckschrift, Großbuchstaben: چاپي ستر توري

ABCDEFGHIJKLMNOP

QRSTUVWXYZ ß ÄÖÜ

## 2. Druckschrift, Kleinbuchstaben: چاپي واړه توري

a b c d e f g h i j k l m n o

p q r s t u v w x y z ß ä ö ü

د وړو تورو زياتره برخه په دوهمې پټی يا د کور په منځنی برخه کې ليکل کيږي، په لاندې ډول:

a c e i m n o r s u v w x z

b f h k l t

g j p q y

هغه توري چې په لومړي او دوهم پټي کې ليکل کيږي، او هغه دا دي (b, f, h, k, l, t) ، په دې دول:
ځينې توري دي چې په دوهم او دريم پټي يا د کور په مينځنی برخه او په تاکاو کې ليکل کيږي، او هغه دا دي: (g, j, p, q, y)، په دې دول:

## 2. Schreibschrift قلمي ليکدود

A B C D E F G H I J K L

M N O P Q R S T U V W

X Y Z Ä Ö Ü

a b c d e f g h i j k l n o p

q r s t u v w x y z ß ä ö ü

څنګه چې پورته ليدل کيږي، قلمي غټ توري زياتره په لومړي او دوهم پټي يا د کور په منځنی برخه او په بام کې ليکل کيږي، غېر له (G, J, Y) نه چې دربواړو پټو يا د کور په ټولو برخو کې ليکل کيږي.

b d h k l t

واړه قلمي توري زياتره په دوهم پټي يا د کور په مينځنی برخه کې ليکل کيږي، غېر له ځينو تورو نه چې هغه دا دي: (b, d, h, k, l, t) . دا توري په لومړي او دوهم پټي يا د کور په مينځنی برخه او د کور په بام کې ليکل کيږي.

دوه واړه قلمي توري شته چي په دربواړو پټو يا د
کور په دربواړو برخو کي ليکل کيږي، هغه دا
دي: (f + ß)




کله چي قلمي ليکدود ليکل کيږي، هغه په دې دول
کيږي چي د لومړي توري وروستی برخه د دوهم
توري د لومړی برخي سره نښلول کيږي، په دې
ډول:




دا توري (g, j, p, q, y) په دوهم او دريم پټي يا
د کور په مينځنی برخه او د کور په تاکاو کي
ليکل کيږي.




د وضاحت لپاره يو ځل بيا يادېږي، چي قلمي ليکدود د دې لپاره دی چي سړی يو څه ډېر په چټکی سره وليکل شي، لکه د پوهنتون محصلين چي د لکچر په وخت د پروفيسر تشريحات په ډېر چټك ډول د ځانه سره په کتابچه کې ليکي.

**Übung:**

Schreiben Sie folgende Wörter in Schreiblinien, sowohl in Druck- als auch in Schreibschrift! تاسو لاندیني لغات په راښکل شوو پټو کې په چاپي او قلمي لیکدود ولیکئ

| | | | |
|---|---|---|---|
| Aal ماركب | Baum ونه | China چين | Dach بام |
| Esel خر | Fuß پښه | Gans قاز | Haus کور |
| Ingwer سوند | Jagd ښکار | Koch اشپز | Laus سپږه |
| Maus موږك | Nase پوزه | Obst ميوه | Qualm لوگی |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Reise سفر | Sand شگه | Tafel تخته | Ufer د سیند غاړه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Vater پلار | Waffe وسله | Xylose د لرگو | Yak غژغویی |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Zug اورگاډی | Ähre وږی | Öl تیل | Übung تمرین |

**Lösungen:**

| | | | |
|---|---|---|---|
| Aal مارکب<br>*Aal* | Baum ونه<br>*Baum* | China چین<br>*China* | Dach بام<br>*Dach* |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Esel خر<br>*Esel* | Fuß پښه<br>*Fuß* | Gans قاز<br>*Gans* | Haus کور<br>*Haus* |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ingwer سوند<br>*Ingwer* | Jagd ښکار<br>*Jagd* | Koch اشپز<br>*Koch* | Laus سپږه<br>*Laus* |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Maus موږك<br>*Maus* | Nase پوزه<br>*Nase* | Obst میوه<br>*Obst* | Qualm لوگی<br>*Qualm* |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Reise سفر<br>*Reise* | Sand شگه<br>*Sand* | Tafel تخته<br>*Tafel* | Ufer د سیند غاړه<br>*Ufer* |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Vater پلار<br>*Vater* | Waffe وسله<br>*Waffe* | Xylose د لرگو بوره<br>*Xylose* | Yak غژغویی<br>*Yak* |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Zug اورگاډی<br>*Zug* | Ähre وږی<br>*Ähre* | Öl تیل<br>*Öl* | Übung تمرین<br>*Übung* |

# Die Aussprache د جرمني ژبې د تورو تلفظ

| | |
|---|---|
| A | معادل دی د پښتو له (الف) سره لکه انګور، انځور، او (ه) سره چې د لغت په پای کې راشي، لکه پوزه، سترګه . مثال: (Affe) یعني بیزو (تلفظ: اه في)، (Apfel) یعني مڼه (تلفظ: اپ فېل) |
| Ä | معادل دی د پښتو له (ې) سره، لکه سرې ، زمرې. مثال : (Ähre) یعني وږی، لکه غنمو وږی (تلفظ : ای غې)، (Dämon) یعني دېو یا دېپ (تلفظ : دې مون) |
| Äu | د (اوی) په توګه لوستل کیږي. لکه: (Läuse) یعني سپږې (تلفظ: لوی زې)، (Mäuse) یعني موږکان (تلفظ: موی زې)، (Bäume) یعني ونې (تلفظ : بوی مې) |
| B | دا توری د پښتو او عربي له (ب) سره معادل دی، لکه (Baum) یعني ونه (تلفظ : به وم) |
| C | دا توری په جرمني ژبه کې پخپله هیڅ شان غږ نلري. په ځینو له انګلیسي نه اخیستل شوو لغاتو کې د (K) په ډول لوستل کیږي. مثال: (Creme) یعني کریم (تلفظ: کغې مې). |
| Ch | دا توري د پښتو د (ښ) ، (خ) ، (ك) (ش) او هم (چ) په ډول لوستل کیږي.<br><br>① د پښتو د (ښ) په ډول<br>هغه (ښ) چې په پکتیا، غزني او په لغمان ك ي تلفظیږي او نه د کندهار او نه د کنړ، ننګرهار او یا د پېښور په ډول. یعني دا توري نه د (خ) په شان او نه د (ش) په شان تلفظیږي، بلکې د (خ) او د (ش) تر مینځ ، لکه: پښه، ښه، ښایست، ښکلا او داسې نور. جرمني مثال:<br>(ich) یعني زه (تلفظ : ایښ)، (nicht) یعني بې نه (تلفظ : نیښت)<br><br>② د (خ) په ډول<br>که چېرته له (Ch) نه مخکې (A, O, U) راشي نو بیا (CH) د (خ) په ډول لوستل کیږي، مثال: (Bach) یعني وله (تلفظ : به خ)، (Buch) یعني کتاب (تلفظ : بوخ)، (Koch) یعني آشپز (تلفظ : کوخ)، (Tuch) یعني دستمال (تلفظ : توخ) .<br><br>③ د (ك) په ډول<br>که چېرته (Ch) د یوناني لغاتو په سر کې راشي نو د (K) په ډول لوستل کیږي. مثال : (Christentum) یعني عیسوي مذهب (تلفظ : کغیس تېن توم)، (Charakter) یعني کرکټر (تلفظ : که غه ك ته)، (Chamäleon) یعني کربوړی (تلفظ : که مې لې ون)<br><br>④ د (ش) په ډول<br>که چېرته (Ch) د فرانسوي لغاتو په سر کې راشي نو د (ش) په ډول لوستل کیږي، مثال: (Charme) یعني جذابیت، ښکلا (تلفظ : شه غ م)، (Chauffeur) یعني دریور یا موټروان (تلفظ : شو فې یه). (Chance) یعني چانس (تلفظ: شانس).<br><br>⑤ د (چ) په ډول<br>که چېرته (Ch) د انګلیسي لغاتو په سر کې وي، نو د (چ) په ډول لوستل کیږي. مثال : (Chat) یعني په کمپیوټر کې له چا سره د معلوماتو لیږ رالیږد (تلفظ: چېټ). (Check) یعني کنټرول (تلفظ: چېك) |

| | |
|---|---|
| **-ch-** | دا توري د (خ) او د (ك) په ډول لوستل کیږي.<br><br>**① د (ك) په توګه**<br>کله چې د یو لغت په مینځ کې له (-ch-) نه وروسته (s) راشي نو په دې وخت کې (ch) د (k) په ډول لوستل کیږي. مثال: (sechs) یعني شپږ (تلفظ : زېکس)، (Achse) یعني محور (تلفظ : اك سې) (Achselhöhle) یعني تخرګی (تلفظ : اکسېل هوهلې)، (Buchs) یعني پېرختونی چې یو شان ونه ده (تلفظ: بوکس)، (wachsen) یعني وده کول (تلفظ : وکسېن)، (Dachs) یعني تورلمی یا ګورګبش چې یو ځاروی دی (تلفظ : ده کس).<br><br>**② د (خ) په ډول**<br>که چېرته له (Ch) نه وروسته (sp) او یا (st) راشي، نو دلته بیا (Ch) د (خ) په تلفظ لوستل کیږي. مثال: (Bachstelze) یعني دېقی چې یوه مرغی ده (تلفظ: به خ شتېل څې). (Schachspiel) یعني د سطرنج لوبه (تلفظ: شه خ شپیل). |
| **ck** | معادل دي له (KK) سره. مثال: (Zucker) یعني بوره یا شکره (تلفظ: څوکه)<br>دا توري هېڅکله د لغت په سر کې نه راځي. تل د لغت په مینځ او یا په پای کې راځي. |
| **D** | معادل دی د پښتو له (د) سره، لکه (du) یعني ته (تلفظ: دو) ، (Danke) یعني مننه (تلفظ : دن کې). ځینې پښتانه دا توری د پښتو د (ډ) په شان لولي چې دا بالکل غلط دی. د (ډ) توری په جرمني ژبه کې هېڅ نشته |
| **-dt** | کله چې دا توري د لغت په پای کې راشي، نو بیا (d) ورسره نه لوستل کیږي او تش (t) يې لوستل کیږي، یعني د (ت) په ډول. مثال: (Stadt) یعني ښار (تلفظ: شته ت) ، (Abgesandter) یعني استازی (تلفظ: اب ګې زن ته) |
| **E** | معادل دی د پښتو له (ې) سره لکه شیدې، مستې،، شړومبې، وریجې، اوربشې . مثال: (Esel) یعني خر (تلفظ : اې زېل)، (Ente) یعني ایلی (تلفظ : اېن تې) |
| **Ei** | معادل دی د پښتو له (ئ) سره لکه ځوکئ، هګئ، وړئ، نجلئ. مثال: (Ei) یعني هګئ (تلفظ: ائ)، (Eid) یعني قسم یا لوړه (تلفظ: ائ د) ، (Eile) یعني بیړه (تلفظ: ائ لې) |
| **Eu** | د (اوئ) په ډول لوستل کیږي، لکه : (neu) یعني نوئ (تلفظ: نو - ئ)، (Eule) یعني بوم (تلفظ : اوئ لې)، (Teufel) یعني شیطان (تلفظ : توئ فېل) |
| **F** | معادل دی د پښتو له (ف) سره، لکه (Fuß) یعني پښه (تلفظ : فوس) |
| **G** | معادل دی د پښتو له (ګ) سره، لکه (gut) یعني ښه (تلفظ : ګوت)، (Gast) یعني مېلمه (تلفظ: ګه ست)، (Gaul) یعني ټټو یا یابو (تلفظ : ګه ول) |
| | د پښتو له (ه، هه) سره معادل دی، لکه هر ، هېر. مثال: (Hund) یعني سپی (تلفظ: هوند).<br>خو په ځینو حالاتو کې د (h) غږ نه لوستل کیږي. هغه حالات دا دي:<br><br>① که له (h) نه مخکې یعني کین اړخ ته يې (A, Ä, E, I, O, Ö, U, Ü) او ښي اړخ ته يې یو بې غږه توری راشي نو په دې وخت کې (h) نه لوستل کیږي او په ځای يې د لومړنیو تورو یعني د کین اړخ د تورو غږ اوږدیږي، لکه (Hahn) یعني چرګ (تلفظ : هان)، (Zahl) یعني عدد (تلفظ : څال)، (Zahn) یعني غاښ (تلفظ: څان) |

| | |
|---|---|
| **H** | ② که له (h) کین اړخ ته پورتني توري او ښي اړخ ته يې هېڅ توری رانشي، نو بیا هم د (h) غږ نه لوستل کیږي، مثال: (Schuh) یعنې بوټ (تلفظ : شـو)، (Kuh) یعنې غوا (تلفظ : کو)، (nah) یعنې نږدې (تلفظ: نا) .<br><br>په دې چې (h)  پخپله نه لوستل کیږي او هغه توری چې ورنه مخکې راغلی، د هغه غږ اوږدوي، نو له دې امله ورته (Dehnungs- H) ویل کیږي. یعنې غږ غځوونکی یا غږ اوږدوونکی (H) |
| **I** | د پښتو له (ي) سره معادل دی، لکه سري، زمري، وحشي، ګټي. مثال: (Ingwer) یعنې سونډ (تلفظ: اینګ وه)، (Igel) یعنې شیشکی (تلفظ: اي ګېل) |
| **-ie** | په اوږد ډول د (I) یعنې (اي) په تلفظ لوستل کیږي. مثال: (viel) یعنې ډېر (تلفظ: فیل) (n<u>ie</u>) یعنې هېڅکله نه (تلفظ : ني)، (Knie) یعنې ځنګون (تلفظ:  کني) .<br>دا توري هېڅکله د لغت په سر کې نه راځي، تل د لغت په مینځ او یا په پای کې راځي |
| **-ig** | که چېرته د یو لغت په پای کې راشي نو د (ښ) په ډول لوستل کیږي. مثال: (Honig) یعنې ګبین یا شات (تلفظ: هونیښ)،  (billig) یعنې ارزان (تلفظ: بي لیښ)<br><br>پاملرنه : که چېرته د لغت په پای کې (-ieg) راشي نو بیا د (g) د (ګ) په ډول لوستل کیږي. مثال: (Sieg) یعنې بری (تلفظ: زیګ) ، (Krieg) یعنې جګړه (تلفظ: کغیګ) |
| **J** | د پښتو له (ې، ی) سره معادل دی، لکه  (ja) یعنې هو (تلفظ : یا) ، (Jacke) یعنې کرتی (تلفظ : یه کې) ، (Jagd) یعنې ښکار (تلفظ : یاګډ) ، (Jahr) یعنې کال (تلفظ. یا) |
| **K** | معادل دی د پښتو له (ك) سره، لکه ((Kind) یعنې ماشوم (تلفظ: کینډ)، (Koch) یعنې اشپز (تلفظ: کوخ)، (Kuchen) یعنې کېك (تلفظ: کوخېن) |
| **L** | معادل دی د پښتو له (ل) سره، لکه (Liebe) یعنې مینه (تلفظ : لي بې)، (Luft) یعنې هوا (تلفظ: لوفت)، (Lust) یعنې شوق (تلفظ: لوست)، (Lied) یعنې سندره (تلفظ: لید) |
| **M** | معادل دی د پښتو له (م) سره، لکه (Maus) یعنې موږك (تلفظ : مه وس)، (Mispel) یعنې لوکاټ (تلفظ : میس پېل)، (Mensch) یعنې انسان (تلفظ: مېن ش) |
| **N** | معادل دی د پښتو له (ن) سره، لکه (Nase) یعنې پوزه (تلفظ : نازې)، (Nuss) یعنې غوز یا چارمغز (تلفظ: نوس)، (Niere) یعنې پښتورګی یا بډودی (تلفظ: ني غې). |
| **O** | دا توری د پښتو له (او) او د (و) په ډول لوستل کیږي.<br><br>① د (او) په ډول: کله چې (o) د لغت په سر کې راشي، نو په (او) لوستل کیږي، لکه (Ofen) یعنې بخاری (تلفظ : او فېن). (oben) یعنې پورته (تلفظ: اوبېن) ، (Obst) یعنې مېوه (تلفظ: اوبست)<br>② د (و) په ډول: کله چې (o) د لغت په مینځ او په پای کې راشي، نو د (و) په توګه لوستل کیږي، لکه (Boden) یعنې مځکه (تلفظ : بو ډې ن)، (Kino) یعنې سینما (تلفظ: کي نو) |

| | |
|---|---|
| **P** | معادل دی د پښتو له (پ) سره، لکه (Plan) يعني پلان (تلفظ : پلان)، (Politik) يعني سياست (تلفظ: پولي تيك)، (Pinie) يعني د ځنغوزي يا جلغوزي ونه (تلفظ: پي ني يی) |
| **Ph** | په هغه لغاتو کې چې له لاتيني نه اخيستل شويدي، دا توري د (F) په توګه لوستل کيږي، لکه (Physik) يعني فزيك (تلفظ : في زيك)، (Philosoph) يعني فيلسوف (تلفظ : في لو سوف). ځيني لغات شته چې پخوا په (Ph) ليکل کېدل، خو اوس په (F) ليکل کيږي، لکه (Telefon, Telegraf, Foto). دا شان لغات په انګليسي کې اوس هم په (Ph) ليکل کيږي، لکه (Photo, Telegraph, Photo) |
| **Q** | دا توری په جرمني ژبه کي هېڅکله يوازې نه ليکل کيږي او تل له (u) سره ګډ ليکل کيږي، يعني د (Qu) په توګه. تلفظ يې د (Kw) په ډول کيږي. مثال: (Quitte) يعني بيهي (تلفظ: کوي تې). (Quatsch) يعني خوشي خبرې (تلفظ: کوه چ)، (Qualm) يعني لوګی (تلفظ: کوه لم) (Quelle) يعني چينه (تلفظ: کوې لي) |
| **R** | په جرمني ژبه کي په سلو کي (70) کسان (R) د (غ) په ډول لولي او (30) په سلو کي د (ر) په ډول. د (غ) په ډول چې په جرمني ژبه به کي ورته *(Zäpfchen-R)* يعني د کومي يا د تالو (R) وايي زياتره د جرمني په شمال او منځنی برخه کي مروج دی. د (ر) په تلفظ چې په جرمني کي ورته *(„gerollter“ Zungenspitzlaut- R)* يعني د ژبې په څوکه کي ويل شوی (R)) د جرمني په جنوبي برخه او په اتريش کي مروج دی. په عمومي توګه ويل کېدی شي چې ځوانان زياتره (R) په (غ) تلفظوي او ډېر لږ زاړه خلك د (ر) په ډول. د (ر) په ډول تلفظ ورځ په ورځ له مينځه ځي. مثال (Rabe) يعني کارغه (تلفظ :غابې). (Rose) يعني ګلاب (تلفظ: غوزې). (Radio) يعني راډيو (تلفظ: غاديو) |
| **-ar** | کله چې د يو لغت په پای کې راشي، نو (r) يا هېڅ نه لوستل کيږي، لکه (Haar) يعني وېښته (تلفظ : ها) ، (klar) يعني څرګند، روڼ، شفاف (تلفظ : ك لا)، (Agrar) يعني زراعت (تلفظ : اګ غا) |
| **-arr** | کله چې د يو لغت په پای کې (arr -) راشي، نو دلته تش يو (r) يې لوستل کيږي د (غ) په توګه، لکه (Narr) يعني لېونی (تلفظ : نه غ)، (starr) يعني ټيک (تلفظ : شته غ)، (bizarr) يعني عجيب و غريب (تلفظ: بي څه غ) |
| **-er** | دا توري د يو لغت په پای کي د (ه) په توګه لوستل کيږي، لکه: (Vater) يعني پلار (تلفظ: فاته) ، (Mutter) يعني مور (تلفظ: موته) ، (Schwester) يعني خور (تلفظ: شوېسته). د ځينو لغاتو په مينځ کي هم د (ه) په تلفظ لوستل کيږي (gern) يعني په مينه (تلفظ : ګې يه ن) (fern) يعني ليرې (تلفظ : في يه ن)، (Kern) يعني زړی (تلفظ: کی يه ن) |
| **-err-** | د لغت په پای کي دواړه (rr) داسي لوستل کيږي، لکه چې يو (r) واوسي او هغه د (ه) په توګه لوستل کيږي، لکه (Herr) يعني ښاغلی (تلفظ : هې يه)،<br><br>خو د لغت په سر او مېنځ کي لومړنی (r) د (ه) په توګه او دوهم (r) د (غ) په توګه لوستل کيږي، مثال:(Verrat) يعني خيانت (تلفظ: فيه غات) ، (Erregung) يعني غصه (تلفظ: اې يه غي ګونګ)، (Verruf) يعني بدنامي (تلفظ: في يه غوف) |
| **-ir** | د لغت په پای کي د (ه) په توګه لوستل کيږي، لکه (wir) يعني مونږ (تلفظ : وي يه)، (mir) يعني ماته (تلفظ : مي يه)، (dir) يعني تاته (تلفظ: دي يه) |

| | |
|---|---|
| -irr | کله چي د يو لغت په پای کي (irr-) راشي، نو لومړنی (r) کله کله د (ه) په توګه او دوهم (r) يې د (غ) په ډول لوستل کيږي، لکه (Geschirr) يعني چيني باب (تلفظ : ګي شي يه غ). کله کله بيا دواړه (r) لکه د يو (r) په شان په (ه) لوستل کيږي، لکه (wirr) يعني ګډوډ (تلفظ: ويغ) |
| -or | د لغت په پای کي د (وه) په توګه لوستل کيږي، لکه (Direktor) يعني مدير(تلفظ : دي رېك توه)، (Diktator) يعني ديكتاتور (تلفظ : ديكتاتوه) |
| -orr | د لغت په پای کي دواړه (r) د يو (غ) په توګه لوستل کيږي، لکه (Torr) چي د هوا د فشار د معلومولو واحد دی (تلفظ : توه)<br>د لغت په مينځ کي لومړنی (r) د (ه) په توګه او دوهم (r) د (غ) په توګه لوستل کيږي، لکه (Vorrat) يعني زېرمه يا ذخيره (تلفظ: فوه غات) |
| -oir | کله چي د يو لغت په پای کي (oir-) راشي، دا زياتره هغه لغات دي چي له فرانسوي نه جرمني ژبې ته راغلي دي او د (وا) په توګه لوستل کيږي، لکه (Reservoir) يعني ذخيره (تلفظ : غي زېه فوا) ، (Pissoir) يعني د نارينو لپاره د تشو متيازو تشناب (تلفظ : پيس وا) . دا لغت په ښار کي دننه او د اورګاډو په سټېشنونو کي ډېر وخت ليدل کېدی شي |
| -ür | کله چي د يو لغت په پای کي راشي، نو (r) د (ه) په توګه لوستل کيږي، لکه (Tür) يعني دروازه (تلفظ : تيوه) ، (für) يعني لپاره (تلفظ: فيوه) |
| -ürr | کله چي د يو لغت په پای کي راشي، نو (r) دواړه (r) د يو (غ) په توګه لوستل کيږي، لکه (dürr) يعني ډنګر (تلفظ : ديوغ) |
| S | دا توری د (ز) او د (س) په ډول لوستل کيږي<br>① د (ز) په تلفظ:<br>(S) د (ز) په تلفظ هغه وخت لوستل کيږي چي دا توری د لغت په سر کي راشي او ورپسې يو غږ لرونکی توری يعني (A, E, I, O, U) راشي. مثال: (Saft) يعني شربت (تلفظ: زه فت)، (Sorge) يعني غم (تلفظ: زوغ ګې). (See) يعني بحيره (تلفظ: زې).<br>که چېرته (S) د لغت په مينځ کي راشي نو د (ز) او د (س) په ډول لوستل کېدی شي. د (ز) په ډول هغه وخت لوستل کيږي چي له (S) نه مخکي توری په اوږد غږ ولوستل شي.<br>مثال: (Masern) يعني شېری (تلفظ: مازه ن). دلته له (s) نه مخکي توری يعني (a) په اوږد غږ لوستل کيږي. (Hase) يعني سويه (تلفظ: هازې)<br>د (س) په ډول د لوستلو مثال: (Ast) يعني ښاخ (تلفظ: است). دلته (A) لنډ لوستل کيږي).<br>(Bastard) يعني هرمونی (تلفظ: بس تاغد)، (Fest) يعني جشن (تلفظ: فيست).<br>که چېرته د لغت په سر کي له (S) نه وروسته يو بې غږه توری لکه (k, l, m, n) راشي نو بيا (S) د (س) په ډول لوستل کيږي.<br>مثال: (Smaragd) يعني زمرد يا زرغون غمی (تلفظ: سمه غ ګاد)، (Sklave) يعني غلام (تلفظ: سکلافي). |

| | | |
|---|---|---|
| | | (s) د لغت په پای کي د (س) په تلفظ: (Eis) يعني اېسکريم (تلفظ: ای س)، (Reis) يعني وريجې (تلفظ: غی س)، (Mais) يعني جوار (تلفظ: مه ی س) |
| | ② د (س) په تلفظ | ځيني لغات شته چې په مفرد کي (s) د (س) په تلفظ او په جمع کي د (ز) په تلفظ لوستل کيږي. مثال:(Gras) يعني واښه (تلفظ: ګغاس). د دي لغت جمع يعني (Gräser) د (ز) په تلفظ لوستل کيږي، يعني (ګغی زه). (Kreis) يعني دايره (تلفظ: کغی س). د دي لغت جمع (Kreise) يعني دايرې په (ز) لوستل کيږي يعني (کغی زې). |
| | بله قاعده | کله چې د يو لغت په پای کي (is–) راشي، نو (s) د (س) په ډول لوستل کيږي. مثال: (Ergebnis) نتيجه (تلفظ: ابه ګېب نيس). (Zeugnis) يعني برى ليك يا شهادتنامه (تلفظ؛ څوی ګنيس)، (Ersparnis) يعني سپما (تلفظ: ابه شپا نيس) |
| **Sch** | | د (ش) په ډول لوستل کيږي. مثال: (Schule) يعني ښوونځی (تلفظ: شولې)، (Schnee) يعني واوره (تلفظ: شنې)، (Schmuck) يعني ګاڼه (تلفظ: شموك) |
| **Sp** | | که چېرته د يو لغت په سر کي راشي، نو د (ش + پ) په تلفظ لوستل کيږي، لکه: (Spiel) يعني لوبه (تلفظ : شپيل)، (Spaß) يعني ټوکه (تلفظ : شپاس) |
| **St** | | که چېرته د يو لغت په سر کي راشي، نو د (ش + ت) په تلفظ لوستل کيږي، لکه: (Staat) يعني دولت (تلفظ : شتات)، (Stein) يعني تيږه (تلفظ : شته ين |
| **T** | | دا توری معادل دی د پښتو له (ت) سره، لکه (Tag) يعني ورځ (تلفظ : تاګ)، (Tee) يعني چای (تلفظ: تې). ځيني پښتانه دا توری د پښتو د (ټ) په شان لولي، چې دا مطلق غلط تلفظ دی. په جرمني ژبه کي (ټ) هيڅ نشته. |
| **Th** | | دا دوه توري د انګليسي ژبې په پرتله په جرمني ژبه کي ډېر لږ کارول کيږي، زياتره وخت په نومونو کي استعماليږي او(h) يې نه لوستل کيږي. مثال: (Apotheke) يعني درملتون (تلفظ: اپوتې کې)، (Thron) يعني د باچاهی تخت (تلفظ: تغون)، (Thema) يعني موضوع (تلفظ: تې ما)، (Theorie) يعني تيوري (تلفظ: تېوري). |
| **-tsch** | | د (چ) په تلفظ لوستل کيږي، لکه (deutsch) يعني جرمنی (تلفظ : دويچ)، (Putsch) يعني کودتا (تلفظ: پوچ)، (Quatsch) يعني چټيات (تلفظ: کوه چ). (Klatsch) يعني خوشې د خلکو خبرې (تلفظ : ك له چ). (Tschüs) يعني خدای په امان (تلفظ: چيوس) |
| **-tz** | | دا توري هېڅکله د لغت په سر کي نه راځي او معادل دي له د وه (z) سره يعني له (zz) سره. مثال: (Platz) يعني ځای (تلفظ : پله څ)، (Satz) يعني جمله (تلفظ: زه څ). |
| **U** | | دا توری د پښتو د (وو) او (اوو) په ډول لوستل کيدی شي. |
| | ① د (اوو) په ډول | کله چې (U) د لغت په سر کي راشي، نو د پښتو د (اوو) په ډول لوستل کيږي ، مثال: (Ufer) يعني د سيند غاړه (تلفظ: اوو- فه) (umsonst) يعني وړيا يا بې ځايه (تلفظ. اوو- م زونست)، (Uran) يعني يورانيوم (تلفظ: اوو-غان) |

| | | |
|---|---|---|
| | ② د (وو) په ډول | کله چي (u) د یو لغت په مینځ او یا د لغت په پای کي راشي، نو بیا د (وو) په ډول لوستل کیږي، مثال: (Mund) یعني خوله (تلفظ: موند). (Grund) یعني علت (تلفظ: گغوند)، (du) یعني ته (تلفظ؛ دوو) ، (Ablehnung) یعني ردي (تلفظ: اب لې نونګ) |
| V | | دا توری هم د (F) او هم د (w) په شان لوستل کېدی شي. |
| | ① د (w) په تلفظ | د (w) په ډول زیاتره وخت په لاتیني او بهرنیو لغاتو کي د لغت په سر کي لوستل کیږي، مثال: (Vagabund) یعني ایله ګرد یا لونډړ (تلفظ: وه ګه بوند) ، (Vase) یعني ګلدانی (تلفظ: وازې)، (Vakzine) یعني واکسین (تلفظ: وه کسي نې) |
| | ② د (F) په تلفظ | پاتي نور لغات د (F) په توګه لوستل کیږي، په تېره بیا کله چي (v) د لغت په مینځ او په پای کي راشي، همدا شان د سوچه جرمني لغاتو په سر کي (v) د (F) په ډول لوستل کیږي، مثال: (Vater) یعني پلار (تلفظ: فاته)، (vier) یعني څلور، (vor) یعني وړاندي، (aktiv) یعني فعال (تلفظ: اکتیف)، (passiv) یعني غیرفعال (تلفظ: په سیف)، (Archiv) یعني زېرمتون یا آرشیف (تلفظ: اغ ښیف) |
| W | | دا توری په پښتو کي نشته او تلفظ یي د (و) او (ف) تر مینځ دی. مثال: (wer) یعني څوک (تلفظ: وېه). (wann) یعني کله (تلفظ: وه ن)، (Wind) یعني باد (تلفظ: ویند). |
| X | | دا توری د (ks) په ډول لوستل کیږي. مثال: (Axt) یعني تبرګی (تلفظ: اکست)، (Hexe) یعني شیشکه (تلفظ: هېك سي). (Explosion) چاودنه (تلفظ: ابکس پلوزیون) |
| Y | | ①(y) د لغت په سر کي د (j) په ډول، یعني د پښتو د (ی) په ډول لوستل کیږي، لکه: (Yacht) یعني وړه بادي بېړی (تلفظ: یخت)، (Yak) یعني غرنی غوا (تلفظ: یك) |
| | | ② د لغت په مینځ کي د دې توري لپاره په پښتو کي کوم معادل توری نشته. (Y) او (Ü) یو شان تلفظیږي. د تورو د نښتوالي له امله په پښتو کي د (و) او (ي) تر مینځ لوستل کېدی شي. لکه (Asyl) یعني پناه (تلفظ: ازول یا ازیل او یا ازیول) |
| Z | | دا توری د پښتو له (څ) سره معادل دی. مثال: (Zahn) یعني غاښ (تلفظ: څان)، (Zug) یعني اورګاډی (تلفظ : څوک). (Ziege) یعني وزه (تلفظ: څیګې) |
| ß | | دې توري ته په جرمني ژبه کي (Eszett) او هم (scharfes S) یعني تېره (S) وايي. دا توری معادل دی له (ss) سره، مثال: (Fleiß) یعني زیار (تلفظ: فلی س). (heiß) یعني تود (تلفظ: هی س)، (Fuß) یعني پښه، (Straße) یعني سړك (تلفظ: شتغاسې) |
| | | **د (ß) او د (SS) تر مینځ توپیر**<br>(ß) هغه وخت لیکل کیږي چي له (ß) نه مخکي توری اوږد ولوستل شي او یا له (ß) نه مخکي دوه غږیزه توري یا (Diphthong) لکه (au, ei,eu, äu) راشي. مثال: (groß) یعني ستر یا لوی (تلفظ: ګغوس). (Gruß) یعني سلام (تلفظ: ګغووس). (draußen) یعني بهر (تلفظ: دغه وسېن). (Strauß) یعني ډینګ یا لګ لګ (تلفظ: شتغه وس). |

| | |
|---|---|
| | **(ss)** هغه وخت د (ß) په ځای لیکل کیږي چې له (ss) نه مخکې توری لنډ ولوستل شي. مثال: ( Rịss) یعني درز (تلفظ: غیس). (Bịss) یعني داړنه (تلفظ: بیس). (ß) او (ss) هیڅکله د لغت په سر کې نه لیکل کیږي |
| **Ö** | دې توري ته په پښتو کې کوم معادل توری او یا معادل تلفظ نشته، لږ څه د (O) په شان لوستل کېدی شي. مثال: (Öl)، یعني تیل (تلفظ: اویل) |
| **Ü** | دې توري ته هم په پښتو کې کوم معادل توری یا معادل تلفظ نشته. (Ü) او (Y) په عین تلفظ لوستل کیږي، تلفظ یې (U) ته لږ څه ورته دی. مثال: (Übung) یعني تمرین (تلفظ: ایوبونګ)، (üblich) یعني مروج (تلفظ: ایوبلیش) |
| **-ung** | کله چې د یو لغت په پای کې (ung) راشي، نو دلته نه (n) او نه (g) په بشپړ ډول لوستل کیږي، بلکې دواړه له یو بل سره په نښتي ډول تلفظیږي، لکه (Sprung) یعني (توپ) (تلفظ: شپغونګ)، (Dung) یعني سره (تلفظ: دونګ) |
| **-ment** | کله چې له فرانسوي نه اخیستل شوو لغاتو په پای کې (ment) راشي، نو (ent) نه لوستل کیږي او دا دربواړه توري د (a) په توګه لوستل کیږي، لکه (Appartement) یعني (اپارتمان یا استوګنځی) (تلفظ: اپاغتما) |

## غږ لرونکي توري = Vokale

غږ لرونکي توري هغه توري دي چې د ویلو په وخت د انسان خوله پرانیستي وي او شونډې یا ګرد شکل غوره کوي او یا پخپل حال پاتې کیږي. خو په دواړو صورتو کې د انسان له خولې نه هوا بهر خواته راوځي. غږ لرونکي توري په دوه ډوله دي. یو غږیزه توري او دوه غږیزه توري. یو غږیزه توري هغه توري دي چې تش یو توری لري او دوه غږیزه توري هغه توري دي چې له دوه تورو نه جوړ شویدي.

① یو غږیزه توري :

| a | e | i | 0 | u | ä | ö | ü |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (ä, ö, ü) ته (Umlaute) وایي، یعني د (a, o, u) په سر دوه ټکي ایښودل شویدي | | | | | | | |

یو غږیزه توري بیا په دوه ډولو دي، لنډغږیزه او اوږدغږیزه توري:

| | | | |
|---|---|---|---|
| kurze Vokale | لنډغږیزه توري | lange Vokale | اوږدغږیزه توري |

| | |
|---|---|
| kurze Vokale | یا لنډ غیزه توري هغه توري دي چې غږ یې ډېر لنډ لوستل لیږي، لکه (Affe) یعني بیزو، دلته د (A) غږ ډېر لنډ لوستل کیږي. |
| lange Vokale | یا اوږد غږیزه توري هغه توري دي چې غږ یې اوږد ولوستل شي، لکه (Abend) یعني ماښام، دلته د (A) غږ اوږد لوستل کیږي. |

ځنګه چې مونږ وینو، پورتني لغات دواړه په (A) پیل شوي، نو پوښتنه دا ده چې سړی له څه شي پوه شي چې د (A) غږ لنډ ولوستل شي او که اوږد. ځواب دا دی چې په اوریدو کې خو سړی پوهېدی شي چې دا توری په اوږد غږ او یا په لنډ غږ وویل شو. د لوستلو لپاره بیا یو څه مرستې شته چې هغه په دې لاندې برخه یادې شویدي. بل دا چې د لوړې سویې په ډکشنریو کې د لنډ غږ لپاره د توري لاندې یو ټکی ایښودل کیږي، او د اوږد غږ لپاره د توري لاندې یوه وړه کرښه راښکل کیږي. دا به په لاندې جدول کې وګورو.

| | |
|---|---|
| Ạ | دلته د (A) لاندې يو ټکی اېښودل شوېدی، په لنډ غږ لوستل کيږي، لکه (Ạffe) = بيزو |
| A | دلته د (A)لاندې يوه کرښه راښکل شوېده، په اوږد غږ لوستل کيږي، لکه (Abend) = ماښام |
| Ẹ | دلته د (E) لاندې يو ټکی اېښودل شويدی، په لنډ غږ لوستل کيږي، لکه (Ẹnde) = پای |
| E | دلته د (E) لاندې يوه کرښه راښکل شوېده، په اوږد غږ اوستل کيږي لکه (Esel) = خر |
| ị | دلته د (i) لاندې يو ټکی دی، نو لنډ لوستل کيږي، لکه (dịr) = تا ته |
| I | دلته د (I) لاندې يوه کرښه ده، نو اوږد لوستل کيږي، لکه (Igel) يعني شيشکی |
| ọ | دلته د (o) لاندې يو ټکی دی، لنډ لوستل کيږي، لکه (ọffen) يعني خلاص يا پرانيستی |
| O | دلته د (O) لاندې يوه کرښه ده، اوږد لوستل کيږي، لکه (Ofen) يعني بخارۍ |
| Ụ | دلته د (U) لاندې يو ټکی دی، اوږد لوستل کيږي، لکه (Ụmfang) يعني مساحه |
| U | دلته د (U) لاندې يوه کرښه ده، نو اوږد لوستل کيږي، لکه (Ufer) يعني د سيند غاړه |

② (Zwielaute, Diphthonge) دوه غږيزه توري

کله چې دوه غږ لرونکي توري له يو بل سره يو ځای شي نو د هغوی غږونه ګډوله او يا دوه غږيزه شي چې ورته (Zwielaute = Diphthonge) وايي چې هغه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ei (ای) | eu (او-ی) | äu (او-ی) | au (او ا) |

مثالونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ei هګی<br>(تلفظ: ای) | Eule بوم، کونګ<br>(تلفظ: اوی لې) | Äuglein سترګه کوچنۍ<br>(تلفظ: اوی ګله ین) | Bauch نس<br>(تلفظ: به و- خ) |

دوه غږه توري تل په اوږد غږ لوستل کيږي، مثال : (Eule) يعني بوم.

**د يو توري د غږ د اوږدولو لار**

د دې لپاره چې يو توری اوږد ولوستل شي، د دې موخې لپاره څو لارې موجودې دي.

۱ـ د يو غږلرونکي توري د غږ د اوږدولو لپاره بايد دا توری دوه ځلې شا په شا وليکل شي، مثال :

| | | |
|---|---|---|
| Boot = بېړی، کشتی | Schnee = واوره | Aal = مار ماهی |

په پورتنيو مثالونو کې (a, e, o) دوه ځلې ليکل شويدي، نو ځکه په اوږد دول لوستل کيږي.

۲ـ که له يو غږ لرونکي توري نه وروسته (ß = Eszett) راشي، نو بيا غږ يې اوږديږي، مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Fuß پښه<br>(تلفظ : فوس) | Floß جاله<br>(تلفظ : فلوس) | Maß مقياس<br>(تلفظ : ماس) | Spaß توکه<br>(تلفظ : شپاس) |

۳ـ که چېرته د يو غږلرونکي توري شاته يو(h) راشي، نو بيا د دې توري غږ اوږديږي او پخپله د (h) توری بيا ورسره نه لوستل کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| صحيح تلفظ = غـــې Reh | غلط تلفظ = غېح Reh |

په لغوي مانا (Reh) هوسۍ ته وايي، دلته له (e) نه ورسته (h) ليکل شوی. په دغه ځای کې پخپله (h) نه لوستل کيږي بلکې دغه (h) د (e) غږ اوږدوي. په دې چې دا (h) نه لوستل کيږي، بلکې له هغې نه مخکې توري غږ اوږدوي، دې ته غږ اوږدونکي (h) يا (Dehnungs-h) وايي. نور مثالونه:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Bahn = اورګاډی<br>(تلفظ : بان) | Lahm = ګوډ<br>(تلفظ : لام) | Lehm = ختېه<br>(تلفظ : لیم) | Lohn = معاش<br>(تلفظ : لون) | Mohn = کوکنار<br>(تلفظ : مون) |

پورتني لغات داسې لوستل کیږي فقط لکه چې (h) پکې نه وي. د ځینو لغاتو په پای کې (h) راځي، خو بیا هم (h) نه لوستل کیږي، بلکې مخکینی توری یې اوږد لوستل کیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| zäh = (تلفظ: څی) شخ | froh = (تلفظ : فغو) خوښ | Stroh = (تلفظ : شتغو) پروړه |

په ځینو لغاتو کې له (h) نه مخکې او وروسته یو غږ لرونکی توری راځي، خو دلته هم (h) نه لوستل کیږي، مثال:

| | | |
|---|---|---|
| stehen ودرېدل<br>(تلفظ : شتې - ین) | Zehe د پښې ګوته<br>(تلفظ : څې - یې) | fähig توان لرونکی<br>(تلفظ : ففی - ییش) |

په ځینو فعلونو کې چې (h) نه لوستل کیږي، که دا فعلونه ګردان شي، نو د ګردان په وخت یې هم (h) نه لوستل کیږي، دا مهمه نده چې له (h) نه وروسته یو غږ لرونکی یا بې غږه توری دی، مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| drehen = تاوول<br>(تلفظ: دغې ین) | ich drehe = زه تاووم<br>(تلفظ: ایښ دغې یې) | du drehst = ته تاووې<br>(تلفظ: دو دغېست) | er dreht = هغه تاووي<br>(تلفظ: اېه دغېت) |

**د یو توري د غږ د لنډولو لار**

که چیرته د یو غږلرونکي توري شاته دوه بې غږه توري شا په شا ولیکل شي، فقط لکه چې په یوې کوټه کې دوه دېوالونه شا په شا جوړ شي چې غږ یې بهر ونه وځي. د دې تکې د وضاحت لپاره به یو څو غږلرونکي توري وګورو:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| که چېرته د (a) شا ته دوه بې غږه توري شا په شا راشي، نو د (a) غږ لنډیږي، او که یو توری راشي، نو غږ یې اوږدیږي | | | | A a |
| Kran = جرثقیل<br>(تلفظ: کغان) | Dame =ښځه<br>(تلفظ: دا ـ مې) | kam = هغه راغی<br>(تلفظ: کام) | د (a) غږ اوږد لوستل کیږي | A |
| Kạnne = چاینك<br>(تلفظ: که ـ نې) | Dạmm = بند<br>(تلفظ: ده ـ م) | Kạmm = ږمنځ<br>(تلفظ: که ـ م) | د (a) غږ لنډ لوستل کیږي | a |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| که چېرته د (e) شا ته دوه بې غږه توري شا په شا راشي، نو د (e) غږ لنډیږي، او که یو توری راشي، نو غږ یې اوږدیږي | | | | E |
| wen = څوك<br>(تلفظ: فې ـن) | Weg = لار<br>(تلفظ: فې ـ ګ) | eben = هوار<br>(تلفظ: اې بې ن) | د (e) غږ اوږد لوستل کیږي | e |
| wẹnn = که چېرته<br>(تلفظ: فېن) | Ẹgge = غابښور<br>(تلفظ: اېګې) | Ẹbbe = جزر<br>(تلفظ: اېبې) | د (e) غږ لنډ لوستل کیږي | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| که چېرته د (i) شا ته دوه بې غږه توري شا په شا راشي، نو د (i) غږ لنډیږي، او که یو توری راشي، نو غږ یې اوږدیږي | | | | I |
| Fibel = قاموس<br>(تلفظ: فې ـ بېل) | Klima = اقلیم<br>(تلفظ: کلي ـ ما) | wir = مونږ<br>(تلفظ: في ـ یه) | د (i) غږ اوږد لوستل کیږي | i |
| Fịsch = کب<br>(تلفظ: فېش) | klịmmen = لوړ ختل (تلفظ: کلیمېن) | wịrr = ګډوډ<br>(تلفظ: فیغ) | د (i) غږ لنډ لوستل کیږي | |

| | | |
|---|---|---|
| Genitiv | Berliner Museen sind schön. | د برلين موزيمونه ښايسته دي |
| mit Präposition | Die Museen von Berlin sind schön. | د برلين موزيمونه ښايسته دي |

**IV - د هېوادونو نومونه Ländernamen**

د هېوادونو نومونه کېدی شي چې د (Genitiv) په حالت کې له (-s) سره راشي او هم کېدی شي چې (- s) پرېښودل شي، مثالونه به لاندې په جدول کې وګورو:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Nominativ | Afghanistan افغانستان | Irak عراق | Iran ایران |
| Genitiv | des Afghanistan د افغانستان<br>des Afghanistans د افغانستان | des Irak د عراق<br>des Iraks د عراق | des Iran د ایران<br>des Irans د ایران |

| | |
|---|---|
| falsch غلط | ~~Afghanistan Regierung, Irak Regierung, Iran Regierung~~ |
| richtig صحيح | Afghanistans Regierung, Iraks Regierung, Irans Regierung<br>د افغانستان حکومت، د عراق حکومت، د ایران حکومت |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Das führte zur Anerkennung Afghanistans. | دا د افغانستان د په رسميت پېژندلو باعث شو |
| Das war ein Rückschritt für Afghanistans Demokratie. | دا د افغانستان د ديموکراسی لپاره په شا تګ و |
| Der Norden des Afghanistan ist fruchtbar. | د افغانستان شمال حاصلخېز دی |
| Der Norden des Iraks ist gebirgig. | د عراق شمال غرنيز دی |
| Iraks Wirtschaft liegt am Boden. | د عراق اقتصاد په مځکه پروت دی |
| Der Ministerpräsident verkündete die Neutralität des Irak. | لومړي وزير د عراق ناپیلتوب (بې طرفي) اعلان کړو |

**Übungen zu Genitiv**: Setzen Sie die Wörter in den Genitiv!

Beispiel: Wir dachten, dass der Film ein schönes Ende hatte.

مونږ فکر وکړو چې د فلم پايله به ډېره ښکلې وي

*Wir sprachen über das Ende des Filmes.* مونږ د فلم د پايلې په برخه کې خبرې وکړې

1. Sie meinten, dass die Sekretärin eine schöne Schrift hat.

تاسو فکر وکړو چې د سکرترۍ ليك ښکلی دی

*Sie sprachen über die Schrift* ………………

تاسو د سکرترۍ د ليك په برخه کې خبرې وکړې

2. Sie sagte, dass ihr Vater eine lange Reise gemacht hat.

هغې وويل چې د هغې پلار يو اوږد سفر کړی دی

*Sie sprach über die Reise*……………… هغې د خپل پلار د سفر په برخه کې خبرې وکړې

3. Du dachtest, dass die Bäume wunderschöne Farben haben.

تا فکر وکړو چې ونې ډېر ښایسته رنګ لري

*Du sprachst über die Farben*……………… تا د ونو د رنګ په برخه کې خبرې وکړې

4. Die Kinder sagten, dass ihre Mutter krank ist.

ماشومانو وويل چې د هغوی مور ناروغه ده

*Die Kinder sprachen über die Krankheit*………………

ماشومانو د خپلې مور د ناروغی په برخه کې خبرې وکړې

5. Wir glaubten, dass der Bus bequeme Sitze hatte.

مونږ فکر وکړو چي د بس چوکۍ به ارامي او اسوده وي

*Wir sprachen über die Sitze ..................* مونږ د بس د چوکیو په برخه کي خبري وکړي

6. Er behauptete, dass seine Schwester ein altes Auto hat.

هغه ادعا وکړه چي د هغه خور یو زوړ موټر لري

*Er sprach über ein Auto ..................* هغه د خپلي خور د موټر په برخه کي خبري وکړي

7. Der Journalist schrieb, dass das Klassenzimmer alte Stühle hatte.

ژورنالست ولیکل چي په ټولګي کي زړي چوکۍ وي

*Der Journalist schrieb über die alten Stühle ..................*

ژورنالست د ټولګي د زړو چوکیو په برخه کي لیکنه وکړه

8. Ich dachte, dass meine Freunde zu viele Bücher hatten.

ما فکر وکړو چي زما ملګرو ډیر کتابونه درلودل

*Ich sprach über die Bücher ..................*

ما زما د ملګرو د کتابونو په برخه کي خبري وکړي

9. Der Autor meinte, dass sein Buch einen guten Titel hatte.

لیکوال فکر وکړو چي د هغه کتاب به یو ښه نوم ولري

*Der Autor sprach über einen Titel..................*

لیکوال د خپل د کتاب د نوم په برخه کي خبري وکړي

**Lösungen:**

1. der Sekretärin 2. ihres Vaters 3. der Bäume 4. ihrer Mutter
5. des Busses 6. seiner Schwester 7. des Klassenzimmers 8. meiner Freunde
9. seines Buches

## Der Dativ = Wem Fall 3

د (Dativ) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چي یو چا ته یو څه وړاندي شي. په پښتو کي د (Dativ) علامه یا نښه دا ده :

| تــه |
|---|

مثال : ما ته، تا ته ، هغه ته، مو نږ ته ، اسمان ته، مځکي ته او داسي نور. اوس به یو څو مثالونه په جملو کي وګورو :

| | |
|---|---|
| Ich gebe dem Kind ein Buch. | زه ماشوم ته یو کتاب ورکوم |
| Er gab dem Lehrer eine Antwort. | هغه ښوونکي ته ځواب ورکړو |

په پورتنو جملو کي (dem Kind) او (dem Lehrer) د (Dativ) په حالت کي دي. دا چي (Daiv) څنګه جوړیږي او څنګه ګردانیږي، دا به په لاندي برخه کي وګورو.

**Deklination mit dem bestimmten Artikel, Singular** **د (Dativ) ګردان**

| Geschlecht جنسیت | bestimmter Artikel, Singular جنسیت ښودونکی | Dativ des bestimmten Artikels | Dativ des Nomens |
|---|---|---|---|
| Maskulinum نارینه | der | dem ته | Mann سړي (ته) |
| Femininum ښځینه | die | der ته | Frau ښځي (ته) |
| Neutrum مخنث | das | dem ته | Kind ماشوم (ته) |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich gebe dem Mann ein Bild. | زه سړي ته یو انځور ورکوم |
| Ich gebe der Frau ein Buch. | زه ښځي ته یو کتاب ورکوم |
| Ich gebe dem Kind ein Glas Wasser. | زه ماشوم ته یو ګیلاس اوبه ورکوم |

**Deklination mit dem bestimmten Artikel, Plural**

| Geschlecht جنسیت | bestimmter Artikel, Singular جنسیت ښودونکی | Dativ des bestimmten Artikels, Plural | Dativ des Nomens, Plural |
|---|---|---|---|
| Maskulinum نارینه | der | den ته | Männern سړو (ته) |
| Femininum ښځینه | die | den ته | Frauen ښځو (ته) |
| Neutrum مخنث | das | den ته | Kindern ماشومانو (ته) |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich gebe den Männern ein Bild. | زه سړو ته یو انځور ورکوم |
| Ich gebe den Frauen ein Buch. | زه ښځو ته یو کتاب ورکوم |
| Ich gebe den Kindern ein Glas Wasser. | زه ماشومانو ته یو ګیلاس اوبه ورکوم |

ځنګه چي په پورتني جدول کي لیدل کیږي، د (Dativ) په جمع کې تل (den) راځي او د هر اسم په پای کې (n) لیکل کیږي. دا مهمه نده چي د دې اسم په (Nominativ) جمع کې (n) راځي او که نه. د پورته یاد شوو لغاتو جمع داسې ده: (der Mann, die Männer), (die Frau, die Frauen)

(das Kind, die Kinder) . خو په جمع کې د هر لغت په پای کې (n) او د Artikel په حیث (den) راځي، یعني (den Männern, den Frauen, den Kindern) .

| | |
|---|---|
| پوښتنه | دا خو څرګنده ده چي په (Dativ Plural) کې د هر اسم په پای کې (-n) ورزیاتیږي، لکه (mit den Frau**en**) , (auf den Bäume**n**) . خو هغه نومونه چي د هغوی په جمع کې (-s) راځي، لکه (Kinos) , (Büros) , (Autos) ، نو د هغوی په پای کې هم (-n) ورزیاتیږي او که نه؟ |
| ځواب | نه، د دې نومونو په پای کې (-s) پخپل حال پاتې کیږي، په لاندې ډول |

| Geschlecht جنسیت | bestimmter Artikel, Singular جنسیت ښودونکی | Dativ des bestimmten Artikels, Plural | Dativ des Nomens, Plural |
|---|---|---|---|
| Neutrum مخنث | das | den ته | Autos موټرونو (ته) |
| Neutrum مخنث | das | den ته | Büros دفترونو (ته) |
| Neutrum مخنث | das | den ته | Kinos سینما ګانو (ته) |

**Deklination mit dem unbestimmten Artikel, Singular**

| | Geschlecht جنسيت | bestimmter Artikel, Singular جنسيت بنودونکی | Dativ des bestimmten Artikels | Dativ des Nomens |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارينه | der | einem يو ته | Mann يو سړي (ته) |
| | Femininum ښځينه | die | einer يوې ته | Frau يوې ښځې (ته) |
| | Neutrum مخنث | das | einem يو ته | Kind يو ماشوم (ته) |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich gebe einem Mann ein Bild. | زه يو سړي ته يو انځور ورکوم |
| Ich gebe einer Frau ein Buch. | زه يوې ښځې ته يو کتاب ورکوم |
| Ich gebe einem Kind ein Glas Wasser. | زه يو ماشوم ته يو ګيلاس اوبه ورکوم |

د (Dativ) حالت هغه وخت پېژندل کېدی شي چې لاندينۍ پوښتنه وشي :

| | |
|---|---|
| wem? | چا ته ؟ |

| Frage (**wem**) | Antwort (**Dativ**) |
|---|---|
| Wem hast du geantwortet?<br>تا چا ته ځواب ورکړو؟ | Ich habe dem Lehrer geantwortet.<br>ما ښوونکي ته ځواب ورکړو |
| Wem hast du das gesagt?<br>دا خبره تا چا ته وکړه؟ | Das habe ich der Sekretärin gesagt.<br>دا خبره مې سکرترې ته وکړه |
| Wem hat er gedroht?<br>هغه چا ته ګواښ وکړو؟ | Er hat dem Kind gedroht.<br>هغه ماشوم ته ګواښ وکړو |

پورتنۍ جملې د (Dativ) د زده کولو لپاره ډېرې ساده جملې دي. له بده مرغه د (Dativ) په حالت پوهېدل دومره اسان ندي. د دې سختي په دې کې ده چې ډېر فعلونه شته چې په جرمني کې له (Dativ) سره کارول کيږي، خو په پښتو کې له (Dativ) سره نه کارول کېږي، يعني په پښتو کې (ته) پکې نه راځي. نو زده کوونکي بايد په دې وپوهيږي چې کوم فعل د (Dativ) په حالت کې استعماليږي، سره له دې چې په پښتو کې له (Dativ) سره نه استعماليږي، يعني ورته (ته) نه کارول کيږي. مثال:

| Frage پوښتنه | Antwort ځواب |
|---|---|
| Wem gehört dieses Auto?<br>دا موټر د چا دی؟ | Das Auto gehört dem Nachbarn.<br>دا موټر د ګاونډي دی |

داسې مثالونه ډېر دي، د بېلګې په توګه په پښتو کې ويل کيږي چې:

| Paschto پښتو | Deutsch جرمني |
|---|---|
| زه له تا نه مننه کوم | زه تا ته مننه کوم |
| زه له تا سره مرسته کوم | زه تا ته مرسته کوم |
| دا جامې زما په ځان کې جوړې دي | دا جامې ما ته جوړې دي |

پورتنی جملې به اوس په راتلونکي جدول کې په جرمني ژبه د پښتو د ژباړې سره وګورو:

| Frage پوښتنه | Antwort ځواب |
|---|---|
| Wem dankte die Frau?<br>ښځې له چا نه مننه وکړه ؟ | Die Frau dankte dem Mann für die Hilfe.<br>ښځې له سړي نه د مرستې په بدل کې مننه وکړه |
| Wem helfen Sie heute?<br>تاسو نن له چا سره مرسته کوئ؟ | Ich helfe heute meinem Bruder.<br>زه نن له خپل ورور سره مرسته کوم |
| Passt dir die Jacke?<br>دا کرتی ستا په ځان کې جوخته ده؟ | Ja, die Jacke passt mir sehr gut.<br>هو، دا کرتی زما په ځان کې ښه جوخته ده |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | سرې څه پوه شي چې په يوې جملې کې کله له (Dativ) نه کار اخيستل کيږي؟ |
| ځواب | نه يوازې (Dativ) بلکې ټول فعلونه هريو ځانته حالت لري، دا په دې مانا چې هر فعل يا (Nominativ) يا (Genitiv) يا (Dativ) او يا (Akkusativ) ته اړتيا لري. بل دا چې که چېرته يو فعل د يو (Präposition) سره راشي، نو په دې حالت کې پخپله (Präposition) فيصله کوي چې کوم حالت بايد راشي، يعنې فعل د (Nominativ) يا (Genitiv) يا (Dativ) او يا (Akkusativ) سره استعمال شي. |

که تاسو اوس په دې موضوع ښه پوه شوي نه ياست، نو نهيلي کيږئ مه. د دې ګرامر په راتلونکو پاڼو کې داسې فعلونه او (Präposition) بيابيا تشريح شوي دي.

**Übungen mit dem Dativ تمرينونه**

1. Die Sekretärin antwortet d______ Direktor. سکرتره مدير ته ځواب ورکوي
2. Die Bücher gehören d_______ Kind. دا کتابونه د ماشوم دي
3. Der Schuldirektor dankte d_______ Lehrer und d________ Lehrerin.
د ښوونځي مدير له ښونکي او له ښوونکې نه مننه وکړه
4. Wem gehören die Sachen hier? دلته دا شيان د چا دي؟
   Der Bleistift gehört d___ Sohn, und das Heft gehört d____ Tochter.
پنسل د زوی دی او کتابچه د لور ده
5. Mein Bruder hilft d___ Freund___(Pl.) زما ورور له ملګرو سره مرسته کوي
6. Der Lehrer hilft d___ Schüler. ښوونکی د زده کوونکي سره مرسته کوي
7. Der Schuldirektor hilft viel____ Schüler__.
د ښوونځي مدير له ډېرو زده کوونکو سره مرسته کوي
8. Der Tabakrauck schadet d___ Kind____ (P1.) د تماکو لوګی ماشومانو ته تاوان کوي
9. Zigaretten schaden d___ Gesundheit. سګرټ روغتيا ته تاوان کوي
10. Die Lehrerin hilft d___ Schülerin___. ښوونکې د ښځينه زده کوونکو سره مرسته کوي
11. Meine Schwester hilft d_____ Freundin. زما خور له ملګرې سره مرسته کوي
12. Der Vater befiehlt _______ Jungen. پلار هلك ته امر کوي
13. Die Tochter gehorcht gern d____ Mutter. لور د مور احترام کوي
14. Die Bluse gefällt mein___ Tochter. دا کميس زما د لور خوښيږي
15. Der Apfel schmeckt ____________ (ich) gut. دا مڼه ما ته خوند راکوي
16. Die Jacke passt d___ Filmschauspieler sehr gut.
کرتی د فلم لوبغاړي په ځان کې ښه جوخته ده

17. Wir gratulieren unser___ Lehrer zu Neujahr.
موږ خپل ښوونکي ته د نوي کال مبارکي وايو

18. Ich glaube mein___ Freund__ (P1.) nicht. زه د خپلو ملګرو په خبرو باور نلرم

19. Die Bücher nützen ______ Schülern und ____ Schülerinnen.
کتابونه نارينه زده کوونکو او ښځينه زده کوونکو ته ګټه کوي

20. Es geht mein____ Bruder sehr schlecht. زما د ورور وضع ډېره خرابه ده

**Lösungen:**

1. dem 2. dem 3. dem Lehrer und der Lehrerin 4. dem Sohn und der Tochter
5. den 6. dem 7. vielen Schülern 8. den Kindern 9. der 10. den Schülerinnen
11. der 12. dem 13. der 14. meiner 15. mir 16. dem 17. unserem
18. meinen Freunden 19. den Schülern und den Schülerinnen 20. meinem

**Übung:** Beantworten Sie die Fragen nur mit den Personalpronomen!

1. Hilfst du dem alten Mann? – Ja, ich helfe ____________________.
ته دې بوډا سړي سره مرسته کوې؟

2. Schreibt die Sekretärin dem Kaufmann? –Ja, _________________.
سکرټره سوداګر ته يو ليك ليکي؟

3. Schmeckt dir der Salat? – Nein, ____________________________.
دا سلاته تا ته خوند درکوي؟

4. Passt mir diese Jacke? – Nein, _______________________________.
دا کرتی زما په ځان کې جوخته ده؟

5. Gehört das Auto dem Nachbarn? – Ja, _______________________.
دا موټر د ګاونډي دی؟

6. Dankt der Lehrer den Schülern? – Ja, _______________________.
ښوونکی له زده کوونکو نه مننه کوي؟

7. Schmecken die Bananen den Kindern? – Ja, _________________.
کېلې ماشومانو ته خوندورکوي؟

8. Gefällt der Frau das Kleid? – Nein, _________________________.
د ښځې دا اوږد کميس خوښيږي؟

9. Hören die Kinder der Großmutter zu? – Ja, __________________
ماشومان د نيا خبرو ته غوږ ږدي؟

10. Genügt die Suppe dem alten Mann? – Ja, ____________________.
دې زوړ سړي ته دا ښوروا بس ده؟

**Lösungen:**

1. ihm 2. sie schreibt ihm 3. er schmeckt mir nicht. 4. sie passt dir nicht.
5. es gehört ihm 6. er dankt ihnen. 7. sie schmecken ihnen.
8. es gefällt ihr nicht 9. sie hören ihr zu. 10. sie genügt ihm.

**Übungen:** Bestimmter Artikel – setzen Sie bitte Artikel und Nomen im Dativ ein.

1. Ich liege auf (das Sofa) .......... . زه په کوچ باندې پروت يم
2. Die Freunde sitzen auf (die Terrasse) ……….. ملګري په برنډه کې ناست دي
3. Was machst du zwischen (die Feiertage) ………. ته د رخصتۍ په ورځو کې څه کوې؟
4. Die Tasche steht neben (der Schrank) ……….. بکس د الماری په څنګ کې ایښی دی
5. Der Professor antwortet (die Studenten) ……….. پروفیسر محصلینو ته ځواب ورکوي

**Lösungen:** 1. dem 2. der 3. den 4. dem 5. den

**Übungen:**

Unbestimmter Artikel – setzen Sie Artikel und Nomen im Dativ ein.

1. In (ein Monat) ………. fahre ich in den Urlaub. په یوه میاشت کې زه په رخصتۍ ځم
2. Seit (eine Woche) ………. haben die Schüler Ferien.
د یوې اونۍ راهیسې زده کوونکي رخصت دي
3. Ich wohne über (ein Restaurant) ……….. زه د رستوران دپاسه اوسېږم
4. Meine Schwester ist zu (eine Freundin) ………. gefahren.
زما خور د یوې ملګرې کور ته تللې ده
5. Das Fest findet in (ein Konzertsaal) ………. statt.
جشن د کنسرتونو په تالار کې صورت مومي

**Lösungen:**1. einem Monat 2. einer Woche 3. einem Restaurant 4. einer Freundin 5. einem Konzertsaal.

**Übungen:**

Gemischt – setzen Sie Artikel und Nomen im Dativ ein.

1. Sie dankt (die Frau) ………. für ihre Hilfe. هغه له ښځې نه د مرستې لپاره مننه کوي
2. Der Junge versteckt sich hinter (ein Baum) ……….. هلک ځان د یوې ونې شاته پټوي
3. Das Auto gehört (ein Nachbar) ……….. دا موټر د یو ګاونډي دی
4. Nach (der Unterricht) ………. treffen wir uns im Restaurant.
له درس نه وروسته مونږ په رستوران کې راغونډیږو
5. Zwischen (die Autos) ………. suchte ich nach einer Parklücke.
د موټرونو په مینځ کې ما یو تش پارک لټو

**Lösungen:**
1. der Frau 2. einem Baum 3. einem Nachbarn 4. dem Unterricht 5. den Autos

## 4 مفعولي حالت Der Akkusativ = Wen Fall

دا هغه حالت دی چې په یو چا او یا په یو شي یوڅه کیږي. د بېلګې په توګه که چېرته یوه مېنه خوړل کیږي، نو په مېنې باندې د (Akkusativ) حالت تطبیقیږي. همدا شان که چېرته یو انسان وهل کیږي یا لیدل کیږي، نو په دې انسان باندې بیا د (Akkusativ) حالت راځي. په پښتو کې د (Akkusativ) لپاره د (مې، يې) کلمه کارول کیږي، لکه مڼه (مې) وخوړله، سړی (يې) ولید. خو کله چې په پښتو کې سړی وايي چې (زه مڼه خورم)، دلته (مڼه) د (Akkusativ) په حالت کې ده، خو د (Akkusativ) د پېژندلو نښه بیا په پښتو کې نه لیدل کیږي . په فارسي کې دا حالت د (را) سره استعمالیږي لکه (من انسان را دیدم). خو کله چې

په فارسی کې وویل شي چې (من سیب میخورم)، نو دلته په (سیب) کې د (Akkusativ) نښه نه لیدل کیږي. اوس به دوه مثالونه په جملو کې وګورو:

| | |
|---|---|
| Ich esse einen Apfel. زه یوه منه خورم | Du siehst den Mann. ته دا سړی ګورې |
| په پورتنو جملو کې منه (den Apfel) او سړی (den Mann) د (Akkusativ) حالت لري | |

**د (Akkusativ) د جوړولو لار او ګردان**

**Deklination mit dem bestimmten Artikel, Singular**

| Geschlecht جنسیت | bestimmter Artikel, Singular جنسیت ښودونکی | Akkusativ des bestimmten Artikels | Akkusativ des Nomens |
|---|---|---|---|
| Maskulinum نارینه | der | den | Mann |
| Femininum ښځینه | die | die | Frau |
| Neutrum مخنث | das | das | Kind |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich sehe den Mann. | زه دا سړی وینم |
| Er sieht die Frau. | هغه دا ښځه ویني |
| Du siehst das Kind. | ته دا ماشوم وینې |

**Deklination mit dem bestimmten Artikel, Plural**

| Geschlecht جنسیت | bestimmter Artikel, Singular جنسیت ښودونکی | Akkusativ des bestimmten Artikels, Plural | Akkusativ des Nomens, Plural |
|---|---|---|---|
| Maskulinum نارینه | der | die | Männer |
| Femininum ښځینه | die | die | Frauen |
| Neutrum مخنث | das | die | Kinder |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich sehe die Männer. | زه دا سړي وینم |
| Er sieht die Frauen. | هغه دا ښځې ویني |
| Du siehst die Kinder. | ته دا ماشومان وینې |

**Deklination mit dem unbestimmten Artikel, Singular**

| Geschlecht جنسیت | bestimmter Artikel, Singular | Akkusativ des unbestimmten Artikels | Akkusativ des Nomens |
|---|---|---|---|
| Maskulinum نارینه | der | einen | Mann |
| Femininum ښځینه | die | eine | Frau |
| Neutrum مخنث | das | ein | Kind |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich sehe einen Mann. | زه يو سړی وينم |
| Er sieht eine Frau. | هغه يوه ښځه ويني |
| Du siehst ein Kind. | ته يو ماشوم ويني |

کله چې د (Akkusativ) حالت لپاره سړي پوښتنه کوي، نو د پوښتنې نښې دا دي:

| | |
|---|---|
| wen oder was? | څوک يا څه شی |

کله چې سړی د يو انسان په برخه کې پوښتنه کوي، نو د پوښتنې نښه ده (wen) او که سړی د يو شي په برخه کې پوښتنه کوي، د دې د پوښتنې نښه ده (was)
اوس به مثالونه په جملو کې وګورو:

| Frage (wen oder was) | Antwort (Akkusativ) |
|---|---|
| Wen triffst du heute? ته نن له چا سره ليده کاته کوې؟ | Ich treffe heute den Direktor. زه نن له مدير سره ليده کاته کوم |
| Wen fährst du heute zur Schule? ته نن څوک ښوونځي ته بيايې؟ | Ich fahre die Schülerin zur Schule. زه زده کوونکې ښوونځي ته بيايم |
| Wen holst du von der Schule ab? ته څوک له ښوونځي نه راولې؟ | Ich hole das Kind von der Schule ab. زه ماشوم له ښوونځي نه راولم |
| Was isst du gerade? تن اوس څه شی خورې؟ | Ich esse den Apfel. زه مڼه خورم |
| Was isst er gerade? هغه اوس څه خوري؟ | Er isst die Banane. هغه کېله خوري |
| Was hat er heute gekauft? هغه نن څه په بيه واخيستل؟ | Er hat das Buch gekauft. هغه کتاب په بيه واخيستو |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | سړی څه پوه شي چې د يو فعل په استعمال کې له کوم حالت نه کار اخيستل کيږي، يعنې کله کارول کيږي؟ (Nominativ, Genitiv, Dativ, Akkusativ) |
| ځواب | دا دې پورې اړه لري چې کوم فعل سړی استعمالوي، نو له دې امله د فعلونو په زده کولو کې سړی بايد د دې فعل حالت ځای په ځای ورسره زده کړي. بل دا چې د ډېرو فعلونو سره نسبتي يا ربطي حرفونه (Präposition) راځي لکه (von, aus, bei) او داسې نور. په دې برخه کې په راتلونکو پاڼو کې به ډېر څه ولیدل شي. يو څو فعلونه د بېلګې په توګه په لاندې برخه کې ليکل کيږي: |

| | | |
|---|---|---|
| 1. Nominativ | *gehen* Ich gehe nach Hause. | يو چېرته تلل زه کور ته ځم |
| 2. Genitiv | *bedürfen* Das bedarf keiner Erklärung. | يو شي ته يو څه پکار اوسېدل دې ته څه تشريحات په کار ندي |
| 3. Dativ | *antworten* Er antwortete dem Lehrer nicht. | يو چا ته ځواب ورکول هغه ښوونکي ته ځواب ورنکړو |
| 4. Akkusativ | *essen* Der Affe isst einen Apfel. | يو څه خوړل بيزو يوه مڼه خوري |

| | |
|---|---|
| استثنا | ځينې نومونه شته چې د هغوی په ګردان کې په (Genitiv) کې د (-s) په ځای (-en) راځي او په (Dativ) او په (Akkuativ) مفرد کې هم ورسره (-en) ورزياتيږي. دا موضوع به په لانديني جدول کې ووينو: |

| | bestimmter Artikel | | | unbestimmter Artikel | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| Singular | Nominativ | der | Mensch | | ein | Mensch |
| | Genitiv | des | Mensch**en** | | eines | Mensch**en** |
| | Dativ | dem | Mensch**en** | | einem | Mensch**en** |
| | Akkusativ | den | Mensch**en** | | einen | Mensch**en** |
| | | | | | | |
| Plural | Nominativ | die | Mensch**en** | څنګه چې دمخه ليکل شوي دي ، په (ein) کې جمع نشته | | |
| | Genitiv | der | Mensch**en** | | | |
| | Dativ | den | Mensch**en** | | | |
| | Akkusativ | die | Mensch**en** | | | |

نور فعلونه چې د پورتني جدول په شان په (Genitiv, Dativ, Akkusativ) حالتو کې (-en) پکې زیاتیږي. په ځینو اسمونو کې تش (-n) زیاتیږي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| der Abiturient<br>بکلوریا پاس | der Bär<br>ییږه، میلو | der Bube<br>هلك | der Bote<br>پوسته چې، ډاکي | der Abgeordnete<br>د پارلمان وکیل |
| der Bursche<br>هلك، وړکی | der Erbe<br>وارث | der Experte<br>متخصص | der Fürst<br>باچاه، سردار | der Gefährte<br>د ژوند یا د لار ملګری |
| der Genosse<br>ګوندي انډیوال | der Graf خان،<br>اشرافي کورنۍ نه | der Hase<br>سوی، سویه | der Heide<br>بې دینه، کافر | der Held<br>اتل، توریالی، مېړنی |
| der Herr<br>ښاغلی | der Hirte<br>شپون | der Insasse په<br>یو شي کې ناست | der Jude<br>یهود | der Junge<br>هلك، ځلموټی |
| der Kamerad<br>انډیوال | der Knabe<br>هلك، وړکی | der Kollege<br>همکار، هم مسلك | der Komplize<br>په جرم کې شریك | der Kunde<br>مشتري |
| der Laie<br>غیرمسلکي کس | der Lotse د ښار<br>لاره ښودونکی | der Student<br>محصل | der Elefant<br>پیل، فیل، هاتي | der Dokorand<br>د ډاکټرۍ تېسس لیکونکی |
| der Präsident<br>رئیس | der Musikant<br>موسیقي غږوونکی | der Produzent<br>تولیدوونکی | der Lieferant<br>مال رسوونکی | der Demonstrant<br>لاريون کوونکی |
| der Biologe د<br>بیولوژي متخصص | der Soziologe<br>ټولنپوه | der Demokrat<br>دیموکرات | der Bürokrat<br>بیروکراتیك | der Diplomat<br>دیپلومات |
| der Automat<br>اوتومات | der Löwe<br>زمری | der Nachbar<br>ګاونډی | der Narr<br>لېونی، احمق | der Nachkomme<br>راتلونکی (نسل) |
| der Neffe<br>وراره، خوریه | der Ochse<br>خسي شوی غويي | der Prinz<br>شهزاده | der Rabe<br>کارغه | der Rebell<br>پاڅون کوونکی |
| der Rekrut<br>نوی عسکر شوی | der Riese<br>ډیو، دېپ | der Satellit<br>سټلایټ | der Sklave<br>مریی، غلام | der Idealist د ژوند<br>د لوړ هدف پلوی |
| der Christ<br>عیسوی | der Polizist<br>پولیس | der Kapitalist<br>سرمایدار | der Philosoph<br>فېلسوف | der Kommunist<br>کمونست |
| der Journalist<br>ژورنالست | der Sozialist<br>سوسیالیست | der Terrorist<br>تروریست | der Zeuge<br>شاهد | der Utopist ناممکنو<br>هیلو ته امېد لرونکی |
| der Fotograf<br>عکاس | der Architekt<br>مهندس | der Monarch<br>باچاه | der Katholik<br>کاتولیك | |

هغه نومونه چې د ګردان په وخت تش (-n) ورزیاتیږي، دا دي:

| Nominativ | Genitiv | Dativ | Akkusativ |
|---|---|---|---|
| der Herr ښاغلی | des Herrn د ښاغلي | dem Herrn ښاغلي ته | den Herrn ښاغلی |
| der Affe بیزو | des Affen د بیزو | dem Affen بیزو ته | den Affen بیزو |
| der Abgeordnete وکیل | des Abgeordneten د وکیل | dem Abgeordneten وکیل ته | den Abgeordneten وکیل |
| der Afghane افغان | des Afghanen د افغان | dem Afghanen افغان ته | den Afghanen افغان |
| der Bauer بزګر | des Bauern د بزګر | dem Bauern بزګر ته | den Bauern بزګر |

| پاملرنه | دا پورتني لغات تش یو څو بېلګې دي چې (en-) یا (n-) پکې زیاتیږي. لاندینی قاعدې ته پام وکړئ: |
|---|---|

① ډېر یوناني لغات چې په پای کې یې (loge-) راځي، نو د ګردان په وخت د پورته په شان (n-) پکې زیاتیږي: مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| der Gynäkologe د ښځو ډاکټر | des Gynäkologen د ښځو د ډاکټر | dem Gynäkologen د ښځو ډاکټر ته | den Gynäkologen د ښځو ډاکټر یې |

② هغه نارینه اسمونه چې په پای کې یې (ent-), (ant-), (and-) راځي، نو د ګردان په وخت (en-) پکې زیاتیږي: مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| der Absolvent فارغ التحصیل | des Absolventen د فارغ التحصیل | dem Absolventen فارغ التحصیل ته | den Absolventen فارغ التحصیل |

③ د ځینو لغاتو په (Genitiv) کې د ګردان په وخت (ns-) زیاتیږي. مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| der Buchstabe توری، الفبا | des Buchstabens د توري، د الفبا | dem Buchstaben توري ته، الفبا ته | den Buchstaben توری ، الفبا |
| der Gedanke فکر | des Gedankens د فکر | dem Gedanken فکر ته | den Gedanken فکر |
| der Name نوم | des Namens د نوم | dem Namen نوم ته | den Namen نوم |
| das Herz زړه، قلب | des Herzens د زړه | dem Herzen زړه ته | das Herz زړه |

څنګه چې لیدل کیږي، مخنث اسمونه په (Akkusativ) کې پخپل حال پاتې کیږي او (en-) پکې نه زیاتیږي.

**Übungen mit dem Akkusativ:**

Bestimmter Artikel – setzen Sie bitte Artikel und Nomen richtig ein.

1. Ich kenne (der Film) ……….. schon. — زه دا فلم له پخوا راهیسې پیژنم
2. Suchst du (die Tageszeitung) ………..? — ته ورځپانه لټوې؟
3. Wer hat (das Wasser) ……….. getrunken? — اوبه چا څښلې دي؟
4. Ich verstehe (der Satz) ……….. nicht. — زه په دې جملې نه پوهیږم
5. Er lernt (die Vokabeln) ……….. — هغه لغات زده کوي
6. Kennst du (dieser) ………..Jungen? — ته دا هلک پیژنې؟
7. Er kann (der Baum) ………..nicht sehen. — هغه دا ونه نشي لیدلی

8. (jeder) ………..Morgen wasche ich mir die Haare. زه هر سهار خپل وېښته پرېمينځم
9. Was isst du? Ich esse (der Apfel) ……….. ته څه خورې؟ زه يوه مڼه خورم
10. Hast du (der Brief) ……….. erhalten? تا ليك لاس ته راوړ؟ تا ته ليك دررسېد

**Lösungen**: 1. den 2. die 3. das 4. den 5. die 6. diesen 7. den 8. jeden
9. den 10. den

**Übung:**
Unbestimmter Artikel – setzen Sie bitte Artikel und Nomen im Akkusativ ein.
1. Ich kaufe (ein Eis) ………... زه يو ايسكريم په بيه اخلم
2. Wir haben (ein Schmetterling) ………... gesehen. مونږ يو پتنګ وليدو
3. Das Kind hat (eine Katze) ………... gefunden. ماشوم يوه پيشو وموندله
4. Der Großvater liest (ein Buch) ………... نيكه يو كتاب لولي
5. Die Tante schreibt (ein Brief) ………... ترور يو ليك ليكي
6. Fürchtest du (das Gewitter) ………... nicht? ته له تالندې او برېښنا نه نه ډارېږې؟
7. Der Wolf hat (ein Schaf) ………... gerissen. لېوه يو پسه وداړو
8. Der Blitz traf (ein Hund) ………... برېښنا په يو سپي ولوېدله
9. Dieser Idiot warf (ein Stein) ………... nach mir. دې احمق ما پسې يوه تيږه ګوزاره كړه
10. Wer andern (eine Grube) ………... gräbt, fällt selbst hinein.
څوك چې بل چا ته يوه كنده كيندي، پخپله پكې وليږي (متل)

**Lösungen:**
1. ein 2. einen 3. eine 4. ein 5. einen 6. das 7. ein 8. einen 9. einen 10. eine

**Übung:** Welches Nomen steht im Akkusativ?

1. Mein Opa kauft einen Hut. زما نيكه يوه خولۍ په بيه اخلي
☐ mein Opa ☐ einen Hut
2. Die Ware hat der Mann bezahlt. د جنس پيسې دې سړي وركړې
☐ die Ware ☐ der Mann
3. Die Mutter bringt das Brot. مور ډوډۍ راوړي
☐ die Mutter ☐ das Brot
4. Der alte Mann trägt eine Brille. د زوړ سړی په سترګو كې عينكې دي
☐ der alte Mann ☐ eine Brille
5. Das Gedicht hat mein Vater geschrieben. دا شعر زما پلار ليكلی دی
☐ das Gedicht ☐ mein Vater
6. Fuchs, du hast die Gans gestohlen. ای ګيدړه، تا قاز غلا كړی دی
die Gans ☐ Fuchs ☐
7. Ein gebranntes Kind scheut das Feuer. يو سوځېدلی ماشوم له اور نه ډارېږي
das Feuer ☐ Kind ☐

8. Ich habe mir den Fuß verbrannt. زما ګوته په اور وسوځېدله

den Fuß mir

9. Der Falke griff einen Hasen an. باز په يوې سويې باندې ورودنګل

einen Hasen der Falke

10. Der Torhüter sah den Gegenspieler nicht. ګولکيپر مقابل لوبغاړی ونه ليدو

den Gegenspieler der Torhüter

**Lösungen:**

1. einen Hut 2. die Ware 3. das Brot 4. eine Brille 5. das Gedicht 6. die Gans 7. das Feuer 8. den Fuß 9. einen Hasen 10. den Gegenspieler

**Deklination des bestimmten Artikels aller Fälle (Zusammenfassung)**
**د ټولو حالاتو د ځرګندو نومونو ګردان (د تکرار لپاره خلاصه)**

**Singular مفرد**

| Kasus حالت | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ فاعل حالت (1. Fall) لومړی حالت | der Mann سړی | die Frau ښځه | das Kind ماشوم |
| Genitiv اضافي حالت (2.Fall) دوهم حالت | des Mannes د سړي | der Frau د ښځې | des Kindes د ماشوم |
| Dativ مفعولي حالت (3. Fall) دريم حالت | dem Mann (e) سړي ته | der Frau ښځې ته | dem Kind (e) ماشوم ته |
| Akkusativ مفعولي حالت (4. Fall) څلورم حالت | den Mann سړی | die Frau ښځه | das Kind ماشوم |

**Plural جمع**

| Kasus حالت | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ (1. Fall) لومړی حالت | die Männer سړي | die Frauen ښځې | die Kinder ماشومان |
| Genitiv (2. Fall) دوهم حالت | der Männer د سړو | der Frauen د ښځو | der Kinder د ماشومانو |
| Dativ (3. Fall) دريم حالت | den Männern سړو ته | den Frauen ښځو ته | den Kindern ماشومانو ته |
| Akkusativ (4. Fall) څلورم حالت | die Männer سړي | die Frauen ښځې | die Kinder ماشومان |

هغه اسمونه چې په جمع کې له (a, o, u) په سر دوه ټکي ليکل کيږي، يعنې له (Umlau) نه کار اخيستل کيږي، لکه د (Baum) جمع (Bäume)، د (Kuh) جمع (Kühe)، د (Buch) جمع (Bücher)

**Singular مفرد**

| Kasus حالت | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ (1. Fall) | der Baum ونه | die Kuh غوا | das Buch کتاب |
| Genitiv (2. Fall) | des Baumes د ونې | der Kuh د غوا | des Buches د کتاب |
| Dativ (3. Fall) | dem Baum (e) ونې ته | der Kuh غوا ته | dem Buch(e) کتاب ته |
| Akkusativ (4. Fall) | den Baum ونه | die Kuh غوا | das Buch کتاب |

**Plural جمع**

| Kasus حالت | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ (1. Fall) | die Bäume ونې | die Kühe غواګانې | die Bücher کتابونه |
| Genitiv (2.Fall) | der Bäume د ونو | der Kühe د غوا ګانو | der Bücher د کتابونو |
| Dativ (3. Fall) | den Bäumen ونو ته | den Kühen غوا ګانو ته | den Büchern کتابونو ته |
| Akkusativ (4. Fall) | die Bäume ونې | die Kühe غوا ګانې | die Bücher کتابونه |

**Deklination des unbestimmten Artikels aller Fälle (Zusammenfassung)**
**د ټولو حالاتو د ناڅرګندو نومونو ګردان (د تکرار لپاره خلاصه)**

**Singular**

| Kasus حالت | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ | ein Mann یو سړی | eine Frau یوه ښځه | ein Kind یو ماشوم |
| Genitiv | eines Mannes د یو سړي | einer Frau د یوې ښځې | eines Kindes د یو ماشوم |
| Dativ | einem Mann(e) یو سړي ته | einer Frau یوې ښځې ته | einem Kind یو ماشوم ته |
| Akkusativ | einen Mann یو سړی | eine Frau یوه ښځه | ein Kind یو ماشوم |

Bei unbestimmten Artikeln entfällt das Plural.
د ناڅرګندو کسانو په ګردان کې جمع نشته، علت دا دی چې د (یو) جمع (ډېر) کیږي نو ځکه دا به غلطه وي چې وویل شي چې (یو انسانان) یا (یو ماشومان).

Die Nomen stehen dann bei unbestimmter Menge oder Anzahl ***ohne Artikel.***
د جمعي په وخت کې دا اسمونه بې له دې چې اندازه او یا شمېره یې ولیکل شي نو (Artikel) یې نه لیکل کیږي. لاندیني مثالونه وګورئ:

| Singular مفرد | | Plural جمع | |
|---|---|---|---|
| Ich esse einen Apfel. | زه یوه منه خورم | Ich esse Äpfel. | زه مڼې خورم |
| Er schreibt einen Brief. | هغه یو لیك لیکي | Er schreibt Briefe. | هغه لیکونه لیکي |

## Pluralbildung د جمعي جوړولو قواعد

د جمعي جوړولو لپاره (9) مختلفې نښې موجودې دي چې د لغاتو په پای کې ورسره یوځای کیږي چې هغه دا دي:

| | نښې | مفرد Singular | جمع Plural | د جمعي جوړولو قاعده |
|---|---|---|---|---|
| 1 | - | der Bürger وګړی | die Bürger وګړي | 1- داسې لغات پخپل حال پاتې کیږي |
| 2 | „ | der Garten باغ، حوېلۍ | die Gärten باغونه | 2 - د A, O, U په سر کې دوه ټکي لیکل کیږي |
| 3 | - e | der Film فلم | die Filme فلمونه | 3 - د لغت په پای کې (e-) ورسره یوځای کیږي |
| 4 | „ – e | die Stadt ښار | die Städte ښارونه | 4 - د A, O, U په سر کې دوه ټکي لیکل کیږي او د لغت په پای کې ورسره (e-) زیاتیږي |
| 5 | - er | das Bild انځور | die Bilder انځورونه | 5 - د لغت په پای کې ورسره (er-) زیاتیږي |
| 6 | „- er | das Amt دفتر | die Ämter دفترونه | 6 - د A, O, U په سر کې دوه ټکي لیکل کیږي او د لغت په پای کې (er-) ورسره زیاتیږي |
| 7 | - n | die Ente ایلۍ | die Enten ایلۍ ګانې | 7 - د لغت په پای کې (n-) ورسره زیاتیږي |
| 8 | - en | der Student محصل | die Studenten محصلان | 8 - د لغت په پای کې (en-) ورسره زیاتیږي |
| 9 | - s | das Auto موټر | die Autos موټرونه | 9 - د لغت په پای کې (s-) ورسره زیاتیږي |

دا چې له کوم لغت سره کوم شان چلند کیږي، کوم شی پکې زیاتیږي او که پخپل حال پاتې کیږي، دا معلومات به په لاندې برخه کې ووینو.

① هغه نومونه چې په پای کې یې (-er, -el, -en, -chen, -lein) راځي، زیاتره وخت په جمع کې پخپل حال پاتې کیږي. خو کله کله بیا هم (n-) ورسره یوځای کیږي. لاندینی جدول وګورئ:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| 1. **Maskulinum/ Neutrum** | | | das Treffen لیدنه، کتنه | die Treffen لیدنې، کتنې |
| der Arbeiter کارګر | die Arbeiter کارګران | | das Mädchen نجلۍ | die Mädchen نجونې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| der Wagen<br>موټر | die Wagen,<br>die Wägen<br>موټرونه | | das Fräulein<br>پېغله | die Fräulein<br>پېغلې |
| der Zettel<br>یوه پرزه کاغذ | die Zettel<br>ډېرې پرزې کاغزونه | | der Kumpel<br>انډیوال | die Kumpel<br>انډیوالان |
| | | | | |
| **2. Femininum** | | | | |
| die Gabel<br>پنجه | die Gabel**n**<br>پنجې | | die Schwester<br>خور | die Schwester**n**<br>خوېندې |
| die Feier<br>جشن، محفل | die Feier**n**<br>جشنونه، محفلونه | | die Mauer<br>دېوال | die Mauer**n**<br>دېوالونه |

استثنا
die Schwester خور (Singular), die Schwester**n** خوېندې (Plural)
der Bauer بزګر (Singular), die Bauer**n** بزګران (Plural)

② د ځینو نومونو دوهم توری چې (a) ، (0) او یا (u) وي، او په پای کې يې (-er) او یا (-en) راشي، نو په جمع کې کوم توری ورسره نه زیاتیږي خو (a,o,u) په (Umlaut) بدلیږي. لاندینی جدول وګورئ:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| die Mutter<br>مور | die Mütter<br>مېندې | | der Garten<br>باغ | die Gärten<br>باغونه |
| die Tochter<br>لور | die Töchter<br>لورګانې | | der Boden<br>مځکه | die Böden<br>مځکې |
| der Vater<br>پلار | die Väter<br>پلرونه | | der Ofen<br>بخارۍ | die Öfen<br>بخارۍ ګانې |

③ د ځینو نومونو په پای کې په جمع کې (-e) ورزیاتیږي. که چېرته د (Umlaut) امکانات وي، نو په نارینه او ښځینه نومونه کې (Umlaut) راځي، خو مخنث نومونه نه. جدول وګورئ:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| der Baum<br>ونه | die Bäum**e**<br>ونې | | das Brot<br>ډوډۍ | die Brot**e**<br>ډوډۍ ګانې |
| die Hand<br>لاس | die Händ**e**<br>لاسونه | | das Boot<br>وړه بېړۍ | die Boot**e**<br>وړوکې بېړۍ ګانې |
| der Wolf<br>لیوه، شرمښ | die Wölf**e**<br>لیوان، شرمښان | | das Schaf<br>پسه، وری | die Schaf**e**<br>پسونه، وری |

④ د ځینو نومونو په پای کې په جمع کې (-er) ورزیاتیږي، که چېرته د دې نومونو دوهم توری (a,o,u) وي، نو دا توري په (Umlaut) بدلیږي. دا نومونه زیاتره وخت نارینه او مخنث نومونه دي. خو د ښځینه نومونو په جمع کې (-er) نه راځي. لاندینی جدول وګورئ:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| das Bild<br>انځور | die Bilder<br>انځورونه | | der Wald<br>ځنګل | die Wälder<br>ځنګلونه |
| das Dorf<br>کلی، قریه | die Dörfer<br>کلي، قریې | | das Haus<br>کور | die Häuser<br>کورونه |
| das Fach<br>مضمون | die Fächer<br>مضمونونه | | das Maul<br>د ځناورو خوله | die Mäuler<br>د ځناورو خولې |
| das Amt<br>رسمي دفتر | die Ämter<br>رسمي دفترونه | | das Buch<br>کتاب | die Bücher<br>کتابونه |

⑤ د ځینو نومونو په پای کې په جمع کې (en-) او یا تش (n-) ورزیاتیږي، جدول وګورئ:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| der Student<br>محصل | die Studenten<br>محصلین | | die Frau<br>ښځه | die Frauen<br>ښځې |
| die Akademie<br>اکاډمی | die Akademien<br>اکاډمۍ ګانې | | die Uhr<br>ساعت، ګړۍ | die Uhren<br>ساعتونه، ګړۍ ګانې |
| das Ohr<br>غوږ | die Ohren<br>غوږونه | | die Zahl<br>عدد، شمېره | die Zahlen<br>عددونه، شمېرې |

⑥ هغه نومونه چې په پای کې یې (o) راځي او هغه نومونه چې د کومې بلې ژبې لغات دي، د دوی په جمع کې (s-) ورزیاتیږي، لاندینی جدول وګورئ:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| das Auto<br>موټر | die Autos<br>موټرونه | | das Filet<br>سرخي غوښه | die Filets<br>سرخي غوښې |
| das Kino<br>سینما | die Kinos<br>سینما ګانې | | das Genie<br>نابغه | die Genies<br>نابغه ګان |
| das Labor<br>لابراتوار | die Labors<br>لابراتوارونه | | das Atelier<br>هنري کوټه | die Ateliers<br>هنري کوټې |

په پورتنو لغاتو کې د (Filet) تلفظ (فې لې)، د (Genie) تلفظ (ژې نې)، او د (Atelier) تلفظ (اتیل یې) دی او درې واړه لغات د نورو ژبو نه اخیستل شوي لغات دي.

⑦ هغه نومونه چې پای کې یې (nis-) راځي نو په جمع کې (se-) ورسره زیاتیږي:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| die Kenntnis<br>پوهه، معلومات | die Kenntnisse<br>پوهې، معلوماتونه | | das Ergebnis<br>نتیجه | die Ergebnisse<br>نتیجې |
| das Zeugnis<br>برې لیک | die Zeugnisse<br>برې لیکونه | | das Bedürfnis<br>اړتیا، احتیاج | die Bedürfnisse<br>اړتیاوې، احتیاجات |
| das Ereignis<br>پېښه | die Ereignisse<br>پېښې | | das Hindernis<br>بندیز | die Hindernisse<br>بندیزونه |

⑧ هغه ښځینه نومونه چې په پای کې یې (in-) راځي، نو په جمع کې (nen-) ورسره زیاتیږي:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| die Studentin<br>محصله | die Studentin**nen**<br>محصلانې | | die Sekretärin<br>سکرتره | die Sekretärin**nen**<br>سکرترې |
| die Bäuerin<br>بزګره | die Bäuerin**nen**<br>بزګرې | | die Lehrerin<br>ښوونکې | die Lehrerin**nen**<br>ډېرې ښوونکې |
| die Beamtin<br>دولتي مامورہ | die Beamtin**nen**<br>دولتي مامورې | | die Polizistin<br>پولیسه | die Polizistin**nen**<br>پولیسې |

⑨ هغه نومونه چې په پای کې یې (e-) وي، نو په جمع کې (n-) ورسره زیاتیږي:

| Singular | Plural | | Singular | Plural |
|---|---|---|---|---|
| die Ziege<br>وزه | die Ziege**n**<br>وزې | | der Abgeordnete<br>د پارلمان وکیل | die Abgeordnete**n**<br>د پارلامان وکیلان |
| die Katze پیشو | die Katze**n** پیشوګانې | | die Nelke لونګ | die Nelke**n** لونګان |
| der Rabe کارغه | die Rabe**n** کارغان | | der Löwe زمری | die Löwe**n** زمریان |

⑩ ځینې نومونه شته چې هغوی جمع نلري:

| Singular | kein Plural | | Singular | kein Plural |
|---|---|---|---|---|
| der Hass کرکه | kein Plural<br>جمع نلري | | der Irrsinn<br>حماقت، ختا لاره | kein Plural<br>جمع نلري |
| die Trauer<br>غمجنتوب، خپګان | kein Plural<br>جمع نلري | | der Ärger<br>قهر، خوابدي | kein Plural<br>جمع نلري |
| der Wahnsinn<br>حماقت، لیونتوب | kein Plural<br>جمع نلري | | der Mut<br>زړوتیا | kein Plural<br>جمع نلري |

⑪ ځینې نومونه شته چې اصلاً هیڅ جمع نلري. که چېرته بیا هم د دې نومونو جمع جوړه شي، نو په جمع کې مانا یې بالکل بدلیږي.

| Singular | Plural |
|---|---|
| das Wasser اوبه، لکه د ښښلو اوبه | die Wässer, die Wasser<br>د ښښلو اوبو مختلف ډولونه |
| das Wasser ډنډ، ولاړې اوبه، سمندر | die Wasser ډنډونه، ولاړې اوبه، سمندرونه |
| das Wasser تشې متیازې، بولې | kein Plural |

په جرمني ژبه کې یو متل دی: (Er ist mit allen Wassern gewaschen) دا دی ته ویل کیږي چې یو څوک ډېر چالاک او چلباز وي، په چل او چلبازی او ژوندانه کې ډېر مهارت ولري. دلته د (Wasser) لغت په جمع کې استعمال شوی. دا اصطلاح له یو تاریخي مسلك نه اخیستل شوې ده. پخوا که کوم چا مختلف سمندرونو کې بېړی چلوله نو په ډېرو سمندرونو کې به یې تجربه او مهارت لاس ته راوړلو، نو ځکه ډېر تجربه کار او چالاك به شو.

## Pluralwörter هغه لغات چې پخپله جمع دي

ځينې لغات په پښتو کې شته چې هغوي مفرد نلري، هغوي ډېر څه ښکاره کوي، يعنې پخپله جمع دي، لکه (خلك)، (شوده)، (ماسته)، (اوبه) او داسې نور. په خبرو کې هم داسې ويل کيږي چې (خلك دي، اوبه دي، شوده دي). په جرمني ژبه کې هم داسې لغات شته چې هغوی پخپله جمع دي او مفرد نلري، دې لغاتو ته په لاتيني ژبه کې (PLURALIATANTUM)وايي. مثالونه به لاندې وګورو:

| | | | |
|---|---|---|---|
| die Ferien | رخصتي (لکه د زده کونکو رخصتي) | die Kosten | لګښت، مصرف |
| die Leute | خلك | die Eltern | مور او پلار، والدين |
| die Geschwister | خور او ورور | die Masern | شېرى، د شيري ناروغي |
| die Tropen | حاره سيمه، استوايي سيمه | die Makkaroni | مکروني (يو شان خواړه) |

## Wörter ohne Plural هغه لغات چې جمع نلري

په جرمني ژبه کې ګڼ شمېر لغات شته چې هغوی تش د مفرد په توګه کارول کيږي او هېڅ جمع نلري. خو په پښتو کې د دې لغاتو لپاره جمع شته، نو ځکه سړی بايد فکر ونکړي چې د دې لغاتو خو جمع شته. د بېلګې په توګه په پښتو کې ويل کيږي چې (دلته لږ باران دی) او (هلته ډېر بارانونه شويدي). همدا شان په پښتو کې ويل کيږي چې (دلته لږه واوره وربېدلې ده) او (هلته ډېرې واورې شوېدي). خو په جرمني ژبه کې نه د (باران) او نه د (واورې) لپاره جمع شته. نو څنګه چې مونږ وينو، په جرمني ژبه کې د ځينو لغاتو جمع نشته چې په پښتو کې شته. مثالونه به په لانديني جدول کې وګورو:

| | | | |
|---|---|---|---|
| das Obst | مېوه | das Vieh | څاروي |
| das Getreide | غله (لکه غنم، جوار) | die Milch | شوده، شيدې |
| das Fleisch | غوښه | der Käse | پنير |
| das Gold | سره زر، طلا | das Silber | سپين زر، نقره |
| der Durst | تنده | der Hunger | ولږه |
| der Schnee | واوره | der Regen | باران، شيګره |
| der Stolz | وياړ، افتخار | der Schlaf | خوب |

**Übungen:** Setzen Sie die Pluralformen ein und suchen Sie weitere Beispiele.

| | | | |
|---|---|---|---|
| 1. ~ keine Änderung | په جمع کې هېڅ بدلون نه راځي | 2. mit Umlaut | په جمع کې دوه ټکي پرې راځي |
| das Fenster, ~ - die Fenster | کړکۍ | der Bruder, ü~ - die Brüder | ورور |
| der Lehrer, ~ - ……………… | ښوونکی | der Mantel, ä~ - ……………… | بالاپوش |
| der Schüler, ~ - ……………… | زده کوونکی | die Mutter, ü~ - ……………… | مور |
| der Wagen, ~ - ……………… | موټر | die Tochter, ö~ - ……………… | لور |
| das Examen, ~ - ……………… | ازموينه | der Vater, ä~ - ………………… | پلار |
| 3. mit der Endung – e | په جمع کې ورسره (e-) يوځای کيږي | 4. mit der Endung – e und mit Umlaut | يوځای په جمع کې په توروو باندې دوه ټکي ورسره راځي او په پای کې يې (e-) کيږي |
| der Brief, ~e - ……………… | ليك | der Arzt, Ä~e – die Ärzte | ډاکټر |
| der Film, ~e - ……………… | فلم | der Gast, ä~e - ……………… | مېلمه |
| das Geschenk, ~e - ……………… | سوغات | der Sohn, ö~e - ……………… | زوی |
| der Hund, ~e - ……………… | سپی | die Stadt, ä~e ……………… | ښار |

| | |
|---|---|
| der Tag, ~e - ……............... ورځ | der Zug, ü~e - ……............... اورګاډی |
| 5. mit der Endung –er<br>په جمع کې ورسره (-er) يوځای کيږي | 6. mit der Endung –er und mit Umlaut<br>په جمع کې په تورو باندې دوه ټکي ليکل کيږي<br>او (-er) ورسره يوځای کيږي |
| das Bild, ~er – die Bilder انځور<br>das Ei, ~er - …...................... هګۍ<br>das Geld, ~er - …..................... پيسې<br>das Kind, ~er - …..................... ماشوم | das Buch, ü~er – die Bücher کتاب<br>das Dorf, ö~er - - …......... کلی<br>das Glas, ä~er - ……............ ګيلاس<br>das Haus, ä~er- - …......... کور |
| **7**. mit der Endung –(e) n په<br>په جمع کې (-n) يا (-en) ورسره يوځای کيږي | 8. ~ mit der Endung –s<br>په جمع کې (-s) ورسره يوځای کيږي |
| die Arbeit, ~en – die Arbeiten کار<br>die Fabrik, ~en - …...................... فابريکه<br>die Familie, ~n - …...................... کورنی<br>die Reparatur, ~en - ….................. ترميم<br>die Studentin, ~nen – محصله | das Auto, ~s – die Autos موټر<br>das Büro, ~s - ….................... دفتر<br>das Hotel, ~s - …...................... هوټل<br>das Kino, ~s - …...................... سينما<br>das Radio, ~s - …...................... راډيو |

**Übungen:** Bilden Sie die Pluralformen.

Beispiel:
Singular: Die Schülerin schreibt ein Diktat. زده کوونکې يوه املا ليکي
Plural: Die Schülerinnen schreiben Diktate. زده کوونکې املاګانې ليکي

1. Der Schüler schreibt den Aufsatz. زده کوونکی دامقاله ليکي
   Plural: ..........................................................,..
2. Der Professor macht ein Experiment. پروفيسر يوه تجربه کوي
   Plural:…...........................................................
3. Der Nachbar treibt Sport. ګاونډی سپورټ کوي
   Plural: ….......................................................
4. Der Schriftsteller schreibt ein Märchen. ليکوال يوه کيسه ليکي
   Plural: …........................................................
5. Die Schneiderin braucht die Schere. د ګنډونکې بياتې پکار ده
   Plural: …........................................................
6. Die Schule braucht eine Direktorin. ښوونځی يوې مديرې ته اړتيا لري
   Plural: …......................................................
7. Der Schreiner repariert das Fenster. نجار دا کړکۍ جوړوي
   Plural: …...........................................................
8. Der Gast hat das Handtuch. د مېلمه سره دا دسمال دی
   Plural: …...........................................................................
9. Der Gast hat einen Wunsch. مېلمه يوه هيله لري
   Plural: …...........................................................................
10. Die Lehrerin hat ein Radio. ښوونکې يوه راډيو لري
   Plural: …......................................................................

**Lösungen:**

1. Die Schüler schreiben die Aufsätze. زده کوونکي دا مقالې ليکي
2. Die Professoren machen Experimente. پروفيسران تجربې کوي
3. Die Nachbarn treiben Sport. ګاونډيان سپورټ کوي
4. Die Schriftsteller schreiben Märchen. ليکوالان کيسې ليکي
5. Die Schneiderinnen brauchen die Scheren. د ګنډونکو ښياتي ګانې پکار دي
6. Die Schulen brauchen Direktorinnen. ښوونځي مديرانو ته اړتيا لري
7. Die Schreiner reparieren die Fenster. نجاران کړکۍ ګانې ترميموي
8. Die Gäste haben die Bücher. له مېلمنو سره دا کتابونه دي
9. Die Gäste haben Wünsche. مېلمانه هيلې لري
10. Die Lehrerinnen haben Radios. ښوونکې راډيوګانې لري

**Übungen:** Bilden Sie die Pluralformen!

Beispiel:
Der Metzger hat ein Auto. – Die Metzer haben Autos.

1. Der Dichter schreibt ein Buch. – ......................................................................
شاعر يو کتاب ليکي
2. Der Jäger hat ein Gewehr. - …....................................................................
ښکاري يو ټوپك لري
3. Der Techniker repariert einen Fernseher. - .......................................................
ميخانيکر يو تلويزيون ترميموي
4. Die Köchin braucht ein Ei. - …......................................................................
د اشپزې يوه هګۍ پکار ده
5. Der Bräutigam braucht ein neues Haus. -..........................................................
د واده زلمي يو کور پکار دی
6. Der Arzt braucht einen weißen Kittel. -…........................................................
د ډاکټر يوه سپينه چپنه پکار ده
7. Der Student schreibt ein Examen. - …..............................................................
محصل يوه ازموينه ليکي
8. Der Nachbar hat eine Katze. - …....................................................................
ګاونډی يوه پيشو لري
9. Der Chef mag keinen Witz. - …....................................................................
د آمر ټوکې نه خوښيږي
10. Wann kommt der Bus? - ………....................................................................
سروېس کله راځي
11. Der Chef geht in das Kino. - .......................................................................
آمر سينما ته ځي
12. Das Mädchen trinkt Wasser. - ......................................................................
نجلۍ اوبه څښي
13. Der Zug ist in Frankfurt. - ...........................................................................
اورګاډی په فرنکفورت کې دی

14. Der Wagen ist defekt. - ........................................................................

موټر خراب دی

15. Der Fotograf fotografiert das Bild. ...........................................................

عکاس د دې رسم عکس اخلي کوي

**Lösungen:**

1. Die Dichter schreiben Bücher. 2. Die Jäger haben Gewehre.
3. Die Techniker reparieren Fernseher. 4. Die Köchinnen brauchen Eier.
5. Die Bräutigame brauchen neue Häuser. 6. Die Ärzte brauchen weiße Kittel.
7. Die Studenten schreiben Examen. 8. Die Nachbarn haben Katzen.
9. Die Chefs mögen keine Witze. 10. Wann kommen die Busse?
11. Die Chefs gehen in die Kinos. 12. Die Mädchen trinken Wasser.
13. Die Züge sind in Frankfurt. 14. Die Wagen sind defekt.
15. Die Fotografen fotografieren die Bilder.

## Die Präposition = Verhältniswort نسبتي يا تناسبي حرفونه

که چېرته څو نومونه او فعلونه خوا په خوا ولیکل شي، نو کېدی شي چي سړی پوه نشي چي دا نومونه له یو بل سره څه اړه لري، هدف څه دی، ولې لیکل شوي دي. مثال:

| | |
|---|---|
| Minister sprach Direktor. | (وزیر) (خبرې وکړی) (مدیر) |

دلته سړی نشي پوهېدی چي وزیر له مدیر سره خبرې وکړې، او که د وزیر په ځای مدیر خبرې وکړې، او که له وزیر نه وروسته مدیر خبرې وکړې. نو د دې لپاره چي سړی د دې کسانو په هدف پوه شي، نو په دې کې (Präposition) یا نسبتي حرفونه یا د تړاو ورکولو حرفونه سړي سره مرسته کوي. مثال:
که داسې وي چي وزیر له مدیر سره خبرې وکړې، نو دی ته ویل کیږي چي:

| | |
|---|---|
| Der Minister sprach *mit* dem Direktor. | وزیر له مدیر سره خبرې وکړې |

دلته د (mit) د کلمې په مرسته چي یو (Präposition) دی، دا مطلب څرګند شو چي وزیر له مدیر سره خبرې وکړې.
که داسې وي چي د وزیر په ځای مدیر خبرې وکړې، نو دی ته ویل کیږي چي:

| | |
|---|---|
| *Anstatt* des Ministers sprach der Direktor. | د وزیر په ځای مدیر خبرې وکړې |

دلته د (anstatt) کلمې په مرسته چي یو (Präposition) دی ، سړی په مطلب ښه پوهېدی شي چي د وزیر په ځای مدیر خبرې کوي.
که مطلب دا وي چي له وزیر نه وروسته مدیر خبرې وکړې، نو دی ته ویل کیږي چي:

| | |
|---|---|
| Nach dem Minister sprach der Direktor. | له وزیر نه وروسته مدیر خبرې وکړې |

دلته د (nach) د کلمې په مرسته چي یو (Präposition) دی، سړی په مطلب ښه پوهېدی شي چي له وزیر نه وروسته مدیر خبرې کوي.

**Zusammenfassung** **خلاصه**

(Präposition) هغه حرفونه دي چې د يوې جملې مطلب په دې ډول څرګندوي چې په جمله کې د استعمال شوو نومونو اړيکې له يو بل سره تشريح کوي. په (Präposition) باندې دا څرګنديږي چې يو کار له بل کار نه مخکې او يا وروسته شوی دی او که د هغې په ځای شوی دی او داسې نور.
څرنګه چې پورته ليدل کيږي، په يو ځاي کې (Dativ) استعمال شوی او په بل ځای کې (Genitiv).
نو دا ولې؟ سړی څه پوه شي چې کوم ځای کې (Dativ) استعماليږي، په کوم ځای کې (Genitiv) او په کوم ځای کې (Akkusativ) ؟ د دې ځواب دا دی چې دا دې پورې اړه لري چې سړی له کوم (Präposition) نه کار اخلي؟ ځينې (Präpositionen) شته چې هغه له (Genitiv) سره، ځينې د (Dativ) سره او ځينې له (Akkusativ) سره استعماليږي او ځينې له دواړو سره. په لاندې جدولونو کې ليدل کيدی شي چې کوم (Präposition) له کوم حالت سره راځي. په لاندې برخه کې به له هر حالت سره، يعني د (Genitiv, Dativ, Akkusativ) سره بېل بېل (Präposition) په مفصل ډول زده کړو.

## Präpositionen mit Genitiv

| Präpositionen mit Genitiv | Beispielsätze |
|---|---|
| A | |
| abseits ليرې، بچ | abseits des Weges له لارې نه بچ ، له لارې نه ليرې |
| abzüglich چې ورځيني ووېستل شي | Die Preise sind abzüglich der Mehrwertsteuer zu rechnen. نرخونه بايد داسې حساب شي چې دولتي ټکس ورځيني ووېستل شي |
| angesichts په لحاظ، په نظر کې نيولو سره | angesichts der Tatsache, dass … د دې حقيقت په لحاظ، د دې حقيقت په نظر کې نيولو سره چې ... |
| anhand د يو څه په مرسته، د يو څه په اساس | anhand der Unterlagen etwas beweisen د اسنادو په اسا س يو څه ثبوتول |
| anlässlich په مناسبت | Anlässlich seines hundertsten Todestages fand eine Feier statt. د هغه د مړيني د سلم تلين په مناسبت يو محفل جوړ شو |
| anstatt د يو چا په ځای، په ځای د دې چې | Anstatt des Ministers sprach der Direktor. د وزير په ځای مدير خبرې وکړې |
| anstelle د يو چا يا د يو شي په ځای | Anstelle des Arztes trat die Krankenschwester an das Bett des Patienten. د ډاکټر په ځای نرسه د رنځور کټ ته ورنږدې شوه |
| aufgrund د يو شي په سبب، د يو شي په وجه | aufgrund des schlechten Wetters د خرابې هوا په وجه |
| aufseiten له خوا، له اړخه، له طرفه | Aufseiten des Klägers gab es keine Einwände gegen das Urteil. د مدعي له اړخه د فيصلې په برخه کې څه اعتراض ونه شو |
| ausgangs په پای کې، په وروستيو کې | ausgangs des vorigen Jahrhunderts د تېرې پيړۍ په وروستيو کې (پخوانی لغت، اوس نامروجه دی) |
| ausschließlich پرته له دې، دا پکې شامل ندی | ausschließlich des Portos د پوستې د لېږلو پيسو نه غير، د لېږلو پيسې پکې شاملې نه دي |
| ausweislich د يو سند په اساس، په مسند ډول | ausweislich des Protokolls د پروتوکول په اساس، د پروتوکول سره سم<br>ausweislich der Volksbefragung د ولسپوښتنې په اساس |

| | |
|---|---|
| außerhalb دله بهر نه ، له يو ځای نه بهر | Außerhalb des Schlosses sah man den König kaum noch.<br>له ماڼۍ نه بهر باچاه تقريباً هيڅ نه ليدل کېدو |
| **B** | |
| behufs په هدف، لپاره | behufs Feststellung eines Schadens د يو تاوان د معلومولو لپاره<br>(دا لغت پخوانی دفتري لغت دی او اوس ورنه کار نه اخيستل کيږي) |
| beiderseits دواړه خوا، په دواړو خواو کي | beiderseits des Flusses د سيند په دواړو خواو کي |
| beidseits دواړه خوا، په دواړو اړخونو کي | Seit gestern ist das Licht beidseits ausgefallen.<br>له پرون راهيسي رڼا د دواړو خواو نه ورکه شوې ده |
| betreffs په برخه کي، په بابت، په بابت کي | Betreffs Ihres Antrags auf Gehaltserhöhung teile ich Ihnen folgendes mit: … د معاش د جګېدو لپاره ستاسو د غوښتنليك په برخه<br>کي تاسو ته دا خبر درکوم چي … |
| bezüglich په برخه کي، چي راجع شي | Bezüglich Ihres Antrags möchten wir Ihnen folgendes mitteilen …<br>ستاسو د غوښتنليك په برخه کي تاسو ته لاندينی معلومات درکوم .... |
| **D** | |
| dank په برکت، په مرسته | Mein Buch konnte dank deiner Hilfe schneller fertig werden. زما کتاب ستا په مرسته ژر بشپړ کېدی وشو |
| diesseits په دې اړخ، دی اړخ ته | Diesseits des Flusses liegt kein Schnee mehr.<br>د سيند دې اړخ ته اوس واوره نده پرته |
| **E** | |
| eingangs په لومړی برخه کي، په سر کي | eingangs des Jahres 1902 د ۱۹۰۲ کال په لومړی برخه کي |
| eingedenk د يو چا په ياد، د يو چا په لحاظ ، په وجه (ادبي لغت) | eingedenk eines Ereignisses د يوې پېښې په وجه<br>Eingedenk der Toten wollen wir beten.<br>د مړو په ياد مونږ غواړو چي دعا وکړو (ادبي جمله) |
| einschließlich د يو چا يا د يو شي په شمول | Der Preis beträgt 25 Euro einschließlich Porto.<br>د لېږلو پيسو سره يوځای د دي نرخ ۲۵ يورو دی |
| exklusive غير له، چي پکي شامل نه وي | exklusive der Versandkosten د لېږلو د لګښت نه غير |
| **F** | |
| fernab له يو ځای نه ډېر ليری | Inmitten des Waldes leben einige Stämme.<br>د ځنګله په مينځ کي ځيني قامونه ژوند کوي |
| **H** | |
| halber د يو شي په وجه، د يو شي په خاطر | Der unruhigen Zeiten halber hatte er eine Pistole bei sich.<br>د ناارامو وختونو په وجه له هغه سره يوه تمانچه وه |
| hinsichtlich په خاطر، د يو چا يا د يو شي له خوا | Hinsichtlich seiner Gesundheit brauchen Sie sich keine Sorge zu machen. د هغه د روغتيا له اړخه تاسو خاطرجمع واوسئ |
| **I** | |
| infolge په وجه ، له پلوه، د يو شي په خاطر | Infolge des starken Regens kam es zu Überschwemmung-en. د سخت باران په وجه سېلابونه وشول |
| inklusive په شامل، چي ورسره يوځای وي | Er verkaufte das Haus inklusive des Mobiliars.<br>هغه دا کور د فرنيچر سره يوځای خرڅ کړو |

| | |
|---|---|
| inmitten د یو ځای په مینځ کې | Das Schloss liegt inmitten des Waldes.<br>دا مانۍ د ځنګله په مینځ کې ده |
| innerhalb په مینځ کې | Der Fußballplatz liegt innerhalb der Stadt.<br>د فوټبال میدان د ښار په مینځ کې پروت دی |
| innert په یوه موده کې | innert eines Jahres د یو کال په موده کې (سویسي او اتریشي لغت) |
| in puncto له نظره، له خوا، له اړخه | In puncto Sauberkeit ist er sehr pingelig. د نظافت له اړخه هغه ډېر سختګیر دی (ادبي او د لوړې سویي لغت) |
| **J** | |
| jenseits هغه اړخ، هغه بله غاړه | jenseits des Flusses د سیند په هغه بل اړخ کې، د سیند هغه بله غاړه |
| **K** | |
| kraft پــه اســاس، پــــه بنسټ، په مرسته | Kraft des Gesetzes steht ihm eine Rente zu.<br>د قانون په اساس هغه د تعاعد مستحق دی |
| **L** | |
| längs په اوږدو کې | die Bäume längs des Flusses د سیند په اوږدو کې ونې |
| längsseits په اوږدو، په اوږد اړخ کې، په طول | Die Landschaft längsseits des Flusses bietet schöne Aussicht auf Täler.<br>د سیند په اوږدو کې د دې سیمې ښایسته درې ښکاري |
| laut په اساس | laut amtlicher Mitteilung د رسمي رپوټ په اساس |
| **M** | |
| mangels د نشتوالي په وجه، د لږوالي په علت | Mangels eines triftigen Grundes wurde er scharf gerügt.<br>د یو قانع کوونکي دلیل د نشتوالي په وجه په هغه سخته پېره واچول شوه |
| mithilfe د یو چا او یـا یو شي په مرسته | den Aufsatz mithilfe des Wörterbuches übersetzen<br>مقاله د ډکشنرۍ په مرسته ژباړل |
| mittels په واسطه، په یو شي، د یو شي په مرسته | Er öffnete die Kiste mittels eines Schraubenziehers.<br>هغه صندوق په یو پېچتاو پرانیستو، د یو پېچتاو په مرسته پرانیستو |
| **N** | |
| namens چې نـوم یـې دی، په نامه | Ein Mann namens Josef hat nach Ihnen gefragt.<br>د یوسف په نامه یو سړي ستاسو پوښتنه وکړه |
| nördlich په شمال کې، د یوځای په شمالي اړخ کې | Die Straße nördlich unseres Hauses ist gesperrt.<br>زمونږ د کور شمالي اړخ ته سړک تړل شوی دی |
| **O** | |
| ob په خاطر، په وجه (پخوانی غیر مروج لغت) | Das Kind weinte ob des Todes seiner Mutter.<br>ماشوم د خپلې مور د مړینې په خاطر وژړل (غیر مروجه جمله)<br>Sie fielen ob ihrer sonderbaren Kleidung auf.<br>د هغوی د عجیب و غریبو جامو په وجه د هرچا نظر په هغوی لګېدو |
| oberhalb لـه پـاسـه، دپاسه، بر، بره | Oberhalb des Dorfes liegt ein Wald.<br>د کلي دپاسه یو ځنګل پروت دی |
| östlich ختیځ خوا ته، د یو ځای شرقي خوا کې | Das Gebiet östlich des Flusses ist überschwemmt.<br>د سیند ختیځ خوا ته سیمې ته سېلاب ورغلی دی |
| **P** | |
| punkto لـه نظره، لـه اړخه، په برخه | punkto Geld د پیسو په لحاظ، د پیسو له لحاظه<br>punkto dummer Reden د بې عقله خبرو له لحاظه |

| | |
|---|---|
| **R** | |
| rücksichtlich په خاطر (پخوانی ناموروجه لغت) | rücksichtlich des Verlustes د تاوان په خاطر<br>(اوس له داسي لغاتو نه کار نه اخيستل کيږي) |
| **S** | |
| seitens له اړخه، له خوا، له طرفه | seitens des Gerichts د محکمي له خوا<br>Voraussetzungen seitens des Kunden د مشتري له خوا شرايط |
| seitlich په ډډه کـي، د ډډې له خوا | Seitlich der Kniescheibe ist ein Druckschmerz zu fühlen.<br>د ځنګانه سترګي په ډډه کي په ځبېښلو درد احساسيږي |
| statt د ... په ځای، د يو شي په ځای بل شی | Nimm doch das frische Brot statt des alten.<br>د ځنډنی ډوډی په ځای ته تازه ډوډی واخله |
| südlich په جنوب کي، د يو ځای په جنوبي اړخ کي | Das Gebiet südlich der Stadt ist hügelig.<br>د ښار جنوبي اړخ ته سيمه غونډی غونډی ده |
| **T** | |
| trotz سره له دي بيا هم، دي سره سره | Trotz des Regens gingen wir spazieren.<br>سره له دي چي باران و، مونږ بيا هم چکر ولاړو |
| **U** | |
| um…willen د يو چا يا يو شي لپاره، له خاطره | um des Menschen willen د انسانانو له خاطره، د انسانانو له پلوه<br>Er hat es um seines Bruders willen getan.<br>هغه دا کار د خپل ورور په خاطر وکړو |
| unbeschadet بي لـه دي چي لـه نظره وغورځول شي، سره له دي بيا هم | Unbeschadet einiger Mängel ist es doch ein wertvolles Buch. بي له دي چي نيمګړتياوي يي له نظره وغورځول شي، نور دا يو ارزښتناك كتاب دی<br>Unbeschadet seiner Verdienste unterliefen ihm schwere Fehler. بي له دي چي د هغه خدمتونه له پامه وغورځول شي، خو هغه سختي غلطي هم کړي دي |
| uneingedenk بـي لـــه دي چي په فکر کي يي وګرځي، بي له مراعاته | Er blieb seiner Pflichten uneingdenk. د خپلـي وظيفـي هېـڅ هغه په فکر کي هم ونګرځېدلي (نا مروجه پخوانی دفتري لغت)<br>Aller Mahnungen uneingedenk hatte er es doch getan.<br>دومره اخطارونه هغه مراعات نکړل او بيا هم يي دا کار وکړو |
| unfern لـه يـو ځای نـه ليري نه وي چي | unfern des Schlosses د مانی نه ليري نه (يعني مانی ته نږدي)<br>Unfern des Weges befindet sich ein kleiner Teich.<br>لاري ته نږدي يو لښتی دی |
| ungeachtet ســره لـــه، سره له دی چي | Der späten Stunde ungeachtet gingen wir spazieren.<br>ســره له دي چي د شپي ناوخته وه، مونږ بيا هم چکر ولاړو<br>Ungeachtet dessen hat er doch die Arbeit geschafft.<br>دی سره سره هغه بيا هم د دي کار په تمامولو وتوانيدو |
| unterhalb د يــو ځــای لاندي، په لاندينی برخه | Schläge unterhalb der Gürtellinie sind beim Boxen verboten. له نامه نه لاندي ګوزارونه په سوك وهلو كي منع دي |
| unweit له يو ځای نه ليري نه، يوځای ته نږدي | Das Haus liegt unweit des Flusses. دا کور د سيند نه ليري نه دی |
| **v** | |
| vermittels(t) د يو شي په مرسته (دفتري لغت) | Vermittels eines Schraubenziehers werde ich die Schraube wieder anziehen. د يو پيچتاو په مرسته به زه دا پيچ بېرته تينګ کړم |

| | |
|---|---|
| vermöge د يو شـي په مرسته | vermöge seines Vermögens د خپلي پانګي په مرسته<br>Vermöge seiner Jugend konnte er die Strapazen besser überstehen. د خپلي ځوانی په وجه هغه ادا زحمتونه ښه وزغمل شول |
| vonseiten له اړخه، له خوا، له طرفه | Vonseiten der Behörden kannst du dir keine Hilfe erhoffen. د مقاماتو له اړخه ته د ځان لپاره څه د مرستي هيله نشي کولی |
| vorbehaltlich د دي شرط لاندي چي ... | vorbehaltlich der Genehmigung durch den Präsidenten<br>په دي شرط چي جمهور رئيس ادا منظور کړي<br>Vorbehaltlich seiner Zustimmung hat der Beschluss Gültigkeit. ادا پريکړه د هغه د منظورى په شرط اعتبار لري |
| **W** | |
| während په لړ کي، په ترڅ کي، په دي وخت | während des Essens د ډوډی په وخت کي<br>während des Sommers د اوړي په لړ کي |
| wegen په وجه، په علت | wegen der hohen Preise د جګو نرخونو په وجه<br>Wegen des Krieges herrschte Nahrungsmittelknappheit.<br>د جګړي په وجه د خوراکي موادو کموالی و |
| weitab له يو ځای نه ليري | weitab vom Stadtzentrum wohnen د ښار له مرکز نه ليري اوسيدل<br>weitab des Weltgeschehens د نړيوالو پيښو نه ليري |
| westlich لويديځ خوا ته، د يو ځای په غرب کي | fünf Kilometer westlich der Grenze<br>پنځه کيلو متره د سرحد په لويديځي برخي کي |
| **Z** | |
| zeit په ټول ژوند کي | Das vergesse ich zeit meines Lebens nicht.<br>تر څو پوري چي زه ژوندی يم ادا به مي هير نشي |
| zugunsten د يـو چا پـه ګټه، د يو چا د ګټي لپاره | Zugunsten seines Bruders hat er auf das Erbe verzichtet.<br>د خپل ورور په ګټه هغه د خپل ميراث له حق نه تير شو |
| zuhanden لپاره (پخواني لغت، اوس نامروجه دی) | ein großes Lob zuhanden der freiwilligen Helfer<br>د رضاکارانه مرستندويو کسانو لپاره ډيره ستاينه |
| zu Händen د يـو چـا لاس ته دي ورسيږي | zu Händen des Ministers د وزير لاس ته دي ورسيږي |
| zulasten د يـو چـا پـه تاوان، د يو چا په لګښت، په يو چا راتلونکی | Die Kosten gehen zulasten des Käufers.<br>د دي لګښت د اخيستونکي په غاړه دی<br>Einsparungen zulasten des Volkes سپما د ولس په لګښت |
| zuseiten دواړو اړخو ته | Der Schnurrbart hing ihm zuseiten des Mundes herab.<br>د هغه بريتي د هغه د خولي دواړو اړخو ته ځوړندي وي |
| zuungunsten د يو چا په تاوان | eine Entscheidung zugunsten des Angeklagten<br>د تورن يا د متهم په تاوان يوه فيصله |
| zuzüglich چـي پـکـي شـامـل نه وي او بيا ورسره جمع شي | Der Preis zuzüglich Porto beträgt zehn Euro.<br>د دي نرخ لس يورو دی خو د پوستي لګښت پکي شامل ندی او بايد په بيل ډول ورسره جمع شي |
| zwecks د يو هدف لپاره، د يو څه لپاره | Ich suche ein Zimmer zwecks eines Praktikums.<br>زه د پرکتيك يا د عملي دورې لپاره يوه کوټه لټوم |

## Präpositionen mit Genitiv Plural

| Präpositionen mit Genitiv Plural | Beispielsätze | |
|---|---|---|
| seitens له اړخه | seitens meiner Freunde | زما د ملګرو له اړخه |
| mithilfe په مرسته | mithilfe einiger Mitarbeiter | د یو څو همکارانو په مرسته |
| anlässlich په مناسبت | anlässlich einiger Konzerte | د یو څو کنسرتونو په مناسبت |
| anstatt د یو څه په ځای | anstatt schöner Worte | د ښایسته خبرو په ځای |

څرنګه چې پورته لیدل کیږي، په (Genitiv Plural) کې د (Genitiv) حالت څرګند نه ښکاري. کله کله حتی د (Genitiv) په ځای (von) راشي. مثال:

| | |
|---|---|
| mithilfe von zehn Mitarbeitern | د لس همکارانو په مرسته |
| beiderseits von Flüssen | د سیندونو دواړو خواو ته |

**Übungen:**

Setzen Sie die folgenden Präpositionen in die Sätze ein und ergänzen Sie die Endungen:
*(wegen)* په خاطر ،په وجه, *(dank)* په مرسته , *(unweit)* تر څېرمه, *(halber)* په خاطر ,
*(binnen)* په یوه موده کې , *(ungeachtet)* چې په نظر کې ونه نیول شي، چې ورپسي ونه ګرځي

1. Der Hausbesitzer hat mir mitgeteilt, dass ich ________ dreier Monat_ aus meiner Wohnung t ausziehen muss. د کور خاوند راته خبر راکړو چې زه باید په دریو میاشتو کې له خپل استوګنځي نه ووځم
2. Er sagte: „D__ Ordnung _________ kündige ich Ihnen den Vertrag rechtzeitig.“ هغه وویل: د اصولو د مراعاتو په خاطر زه ستا قرارداد د وخت سره سم باطلوم
3. ________ d____ Hilfe eines Freundes habe ich ein anderes Zimmer bekommen. د یو ملګري په مرسته ماته یوه بله کوټه راکړل شوه
4. Das Zimmer liegt ______d ___ Universität. دا کوټه د پوهنتون تر څېرمه پرته ده
5. _________ d ________ kurz _______ Entfernung zur Universität muss ich nicht mit dem Bus fahren. پوهنتون ته د نږدې فاصلې په وجه زه دې ته مجبور نه یم چې په سرویس کې ولاړ شم
6. Deshalb habe ich das Zimmer ________ d ______ höher _________ Miete genommen. نو له دې کبله ما دا کوټه د لوړې کرایې سره سره ونیوله

**Lösungen:**

1. Der Hausbesitzer hat mir mitgeteilt, dass ich binnen dreier Monate_ aus meiner Wohnung ausziehen muss.
2. Er sagte: „Der Ordnung halber kündige ich Ihnen den Vertrag rechtzeitig.“
3. Dank_ der_ Hilfe eines Freundes habe ich ein anderes Zimmer bekommen,
4. Das Zimmer liegt unweit der Universität.

5. Wegen der kurzen Entfernung zur Universität muss ich nicht mit dem Bus fahren.
6. Deshalb habe ich das Zimmer ungeachtet der höheren Miete genommen.

**Übungen:**

Bilden Sie den Genitiv mit der angegebenen Präposition.

1. sein __ technisch __ Kenntnisse (Plural)/dank — د هغه د تخنيکي پوهې په برکت
2. unser __ schnell __ Hilfe /infolge — زمونږ د چټکې مرستې له امله
3. mein __ jüngst __ Schwester/anstelle — زما له ټولو نه کوچنۍ خور په ځای
4. d __ alt __ Burg/ unterhalb — د زړې کلا لاندې خوا ته، د زړې کلا نه ښکته
5. ihr __ gut __ Fachkenntnisse (Plural)/dank — د هغې د ښې مسلکي پوهې په برکت
6. sein __ langweilig __ Vortrag__ /während — د هغه د زړه تنګوونکي کنفرانس په لړ کې
7. d__ erwartet __ gut __ Note/anstatt — د ښو نمرو په ځای چې ورته تمه کېدله
8. d__ vielbefahren __ Straße/abseits — د هغه سړك نه لېرې چې پرې ډېر تګ راتګ کيږي
9. ihr __ siebzigst__ Geburtstag/anlässlich — د هغې د اوياومې کليزې په مناسبت
10. ein__ nächtlich __ Stromausfall/aufgrund — د شپې له مخې د برېښنا د ورکېدو په وجه
11. d__ umzäunt__ Gebiet/außerhalb — د هغه سيمې نه بهر ځای چې احاطه شوی دی
12. ein__ Gruppe begeistert__Fußballfans (Plural)/inmitten
د يوې ډلې په مينځ کې چې فوټبال يې خوښيږي
13. dies__ hoh__ Gebirgskette/jenseits — د دې يو لړ جګو غرونو نه هغه بله خوا
14. ein__ selbstgebastelt__ Radiosender/mittels
د يوې راډيو په مرسته چې پخپله کوم چا جوړه کړې ده
15. d__ zuständige Behörde/seitens — د مؤظفو مقاماتو له اړخه
16. d__ geplant__Reise/statt — د پلان شوي سفر په ځای
17. d__ holländisch__ Grenze/unweit — د هالنډ د پولې تر څېرمه، د هالنډ پولې ته نږدې
18. sein __ schwerwiegend__ Bedenken (Plural)/ungeachtet
د هغه د سخت شك او ترديد لرلو د نه مراعاتولو سره سره
19. fahrlässig__ Körperverletzung/wegen — په بې احتياطۍ د يو چا د ځان د ټپي کولو په وجه
20. ein__ schwer__ Unfall/infolge — د يوسخت ټکر په پايله کې

**Lösungen:**

1. *dank* seiner technisch*en* Kenntnisse (Plural)
2. *infolge* unser*er* schnell*en* Hilfe
3. *anstelle* mein*er* jüngst*en* Schwester
4. *unterhalb* d*er* alt*en* Burg
5. *dank* ihr*er* gut*en* Fachkenntnisse (Plural)
6. *während* sein*es* langweilig*en* Vortrag*s*
7. *anstatt* d*er* erwartet*en* gut*en* Note
8. *abseits* d*er* vielbefahren*en* Bundesstraße
9. *anlässlich* ihr*es* siebzigst*en* Geburtstag*s*
10. *aufgrund* ein*es* nächtlich*en* Stromausfall*s*
11. *außerhalb* d*es* umzäunt*en* Gebiet*s*
12. *inmitten* ein*er* Gruppe begeistert*er* Fußballfans (Plural)

13. *jenseits* dies*er* hoh*en* Gebirgskette
14. *mittels* ein*es* selbstgebastelt*en* Radiosender*s*
15. *seitens* d*er* zuständige Behörde
16. *statt* d*er* geplant*en* Reise
17. *unweit* d*er* holländisch*en* Grenze
18. *ungeachtet* sein*er* schwerwiegend*en* Bedenken (Plural)
19. *wegen* fahrlässig*er* Körperverletzung
20. *infolge* ein*es* schwer*en* Unfall*s*

## Präpositionen mit Dativ

| Präpositionen mit Dativ | Beispielsätze |
|---|---|
| **A** | |
| aus له يو شي نه، له ... نه | Sie ging aus dem Haus. هغه له کوره ووتله |
| außer غير له، غير د ... | Außer dem kleinen Bruder war niemand im Haus.<br>د وړوکي ورور نه غير بل څوك په كور كې نه و |
| **B** | |
| bei د يو چا سره، د يو شي په وخت کې | Er wohnt bei seinem Vater. هغه د خپل پلار سره اوسيږي<br>Sie hat beim Essen gelacht. هغې د ډوډۍ په وخت کې وخندل |
| binnen په يوه موده کې | binnen einem Monat د يوې مياشتې په موده کې |
| **D** | |
| dank د يو چا په مرسته | dank dem schnellen Eingreifen der Polizei<br>د پوليس د چټکې مداخلې په مرسته |
| **E** | |
| entgegen د يو شي په خلاف | Entgegen eurem Rat fahren wir noch heute weg.<br>ستاسو د مشورې په خلاف مونږ همدغه نن ځو |
| entsprechend په مطابق | einem Vorschlag entsprechend handeln<br>د يو وړانديز په مطابق چلند كول |
| **F** | |
| fern له يو شي نه ليرې، د يو ځای نه بچ | Die Vorstellung ist fern jeglicher Realität.<br>دا تصور له واقعيت نه ډېر ليرې دی<br>Der Platz befindet sich fern der Zivilisation.<br>دا ځای له مدنيت نه ډېر ليرې دی |
| **G** | |
| gegenüber يو شي او يا يو چا ته مخامخ | Sie saßen sich/einander im Zug gegenüber.<br>په اورګاډي کې هغوی يو بل ته مخامخ ناست وو |
| gemäß د يو شي په مطابق، په اساس | Sie handelten seinem Vorschlag gemäß.<br>هغوی د هغه د وړانديز په اساس چلند وکړو |
| **L** | |
| laut د يو شي په اساس، د يو شي په مطابق | Laut ärztlichem Attest leidet der Patient an Gelbsucht.<br>د ډاکټر د تصديق په اساس رنځور د زيړي په ناروغی اخته دی |
| **M** | |

| | |
|---|---|
| mit د يو چا سره او يا د يو شي سره، په يو شي، په يو څه | einen Nagel mit dem Hammer in die Wand schlagen<br>يو ميخ په ستك باندي په ديوال كې ټك و هل<br>Er fährt jeden Tag mit dem Fahrrad zur Schule.<br>هغه هره ورځ په بايسكل ښوونځي ته ځي |
| mitsamt له هر څه سره، له ټولو سره په ګډه | Er kam mitsamt der ganzen Familie.<br>هغه له غونډې كورنى سره په ګډه راغي |
| **N** | |
| nach له يو چا يا له يو شي نه وروسته | Nach dem Regen scheint die Sonne.<br>له باران نه وروسته لمر راځي |
| nahe يو ځاى ته نږدې | Das Hotel liegt nahe dem Waldrand. دا هوټل ځنګله ته نږدې دی |
| nebst له يو شي سره | ein Zimmer nebst Dusche يوه كوټه چې شاور پكې وي<br>Herr Adam nebst Gattin ښاغلی آدم له خپلې مېرمنې سره |
| **S** | |
| samt له يو چا او يا يو شي سره په ګډه | Er ging samt Weib und Kind ins Ausland.<br>هغه له ښځې او ماشومانو سره په ګډه بهر هېوادو ته ولاړ |
| seit د يو وخت راهيسې، د .... راهيسې | seit dem letzten/seit letztem Monat د تېرې مياشتې راهيسې<br>Seit letztem Sonntag haben wir uns nicht mehr gesehen.<br>د تېرې يكشنبې ورځې راهيسې مونږ يو بل بيا ندي ليدلي |
| **V** | |
| von له يو ځاى نه، د يو شي نه، د يو چا، د يو څه په برخه كې | von diesem Moment an له دې شيبې نه وروسته<br>Ich habe von meinem Vater geträumt.<br>ما خپل پلار په خوب كې وليد |
| vis-à-vis يو ځاى ته مخامخ (تلفظ: في زه في) | Wir saßen vis-à-vis dem Eingang.<br>مونږ دروازې ته مخامخ ناست وو (فرانسوي لغت) |
| **Z** | |
| zu يو ځاى ته، يو چا ته | Du solltest zum Arzt gehen. ه بايد ډاكټر ته ولاړ شي<br>Wir wurden zum Abendessen eingeladen.<br>مونږ د ماښام ډوډۍ ته مېلمه شولو |
| zufolge د يو شي په اساس، له مخې | Dem Zeugen zufolge hatte der Radfahrer keine Schuld an dem Unfall.<br>د شاهد د ريپوټ له مخې بايسكل والا په دې ټكر كې بې ګناه و |
| zuliebe د يو چا په مينه د يو چا په خاطر | Das habe ich doch dir zuliebe getan! دا خو مې ستا په مينه وكړو<br>Er hat seinem Vater zuliebe auf die Reise verzichtet.<br>هغه د خپل پلار په خاطر له سفر نه تېر شو |
| zuwider د يو شي په خلاف | der Vernunft zuwider eine falsche Entscheidung treffen<br>د تعقل په خلاف يوه غلطه فيصله كول |

## Präpositionen mit Akkusativ

| Präpositionen mit Akkusativ | Beispielsätze |
|---|---|
| B | |
| betreffend راجع په يو شي، د يو شي په برخه | unser Schreiben betreffend den Vertragsabschluss<br>د قرارداد د تړلو په برخه کې زمونږ ليك |
| bis تر، تر يو وخته | bis nächstes Jahr تر بل کاله پورې<br>Bis dahin ist alles erledigt. تر هغه پورې هرڅه ترسره شويدي |
| D | |
| durch د يو شي له مينځ نه، په واسطه، په يو شي | Er schwamm durch den Fluss ans andere Ufer.<br>هغه له سيند نه هغه بلې غاړې ته په لامبو تېر شو<br>durch die Nase atmen د پوزې له لارې ساه راښكل |
| F | |
| für لپاره، دپاره، د يو چا يا يو شي لپاره | Ich habe ein Geschenk für dich.<br>له ما سره ستا لپاره يو سوغات دى |
| G | |
| gegen په وړاندې، په مقابل کې، په شاوخوا کې | Er kämpfte gegen einen wilden Löwen.<br>هغه د يو وحشي زمري په وړاندې جګړه وکړه<br>Wir werden gegen 13 Uhr erwartet.<br>مونږ ته د غرمې د يوې بجې په شاوخوا کې خلك په تمه دي |
| J | |
| je سرې سر، هر يو، هره يوه دانه، في | Die Fahrradmiete beträgt 17 Euro je angebrochenen Tag.<br>د بايسكل كرايه هره ورځ چې شروع كيږي، د ورځې ۱۷ يورو ده<br>Ich gebe euch je zwei Äpfel. زه تاسو ته سرې سر دوه مڼې دركوم |
| K | |
| kontra په مقابل کې، په ضد، په وړاندې | In dem Spiel geht es um Schüler kontra Lehrer.<br>په دې لوبه کې زده کوونکي د ښوونكو په وړاندې دي |
| O | |
| ohne بې، بې له، بغير | Der Junge war ohne seinen Vater gekommen.<br>دا هلك بې له خپله پلاره راغلى و |
| U | |
| um په شاوخوا کې | Der Preis ist um einen Cent gestiegen.<br>نرخ د يو سنټ په شاوخوا کې پورته شوى دى<br>sich einen Schal um den Hals binden<br>د غاړې له شاوخوا نه يو د غاړې دسمال راتاوول |
| V | |
| versus په مقابل کې، د يو چا په وړاندې، په ضد | Es kam zu einer Auseinandersetzung von Halbstarken versus Erwachsenen. د ځلموټو او د بالغانو ترمينځ شخړه وشوه |
| via له لارې | ein Flug von Paris nach New York via London<br>له پاريس نه نيويارك ته د لندن له لارې الوتنه |
| W | |
| wider د يو شي يا د يو چا په خلاف، په ضد | Es geschah wider seinen Willen دا د هغه د ارادې په خلاف وشو |

**Übungen:** Setzen Sie die fehlenden Präpositionen ein.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| bis تر | durch له مینځه | für لپاره | gegen په وړاندې | ohne بې له | um د کنج نه تاو |

1. Dieser Trottel will …… einen Cent in der Tasche nach Spanien fahren.
دا لوده غواړي چې بې له دې چې یو سنټ یې په جب کې وي، هسپانیې ته ولاړ شي
2. Meine alte Großmutter kann ……ihre Brille fast nichts mehr sehen.
زما بوډۍ نیا (انا) بې له عینکو تقریباً هېڅ لیدل نشي کولی
3. Warum nimmst du dir immer so wenig Zeit ……deine Kinder?
تا ولې د خپلو ماشومانو لپاره دومره لږ وخت ځانګړی کړی دی؟
4. ……Berlin sind es noch etwa 10 Kilometer.
تر برلینه پورې لا لس کیلو متره نور پاتې دي
5. Einen Metzgerladen finden Sie gleich hier ……die Ecke.
قصابي له دې کنج نه چې تاو شوئ، دلته نږدې دی
6. Kinder, warum müsst ihr denn immer ……alle Pfützen laufen?
ماشومانو، تاسو ولې تل د اوبو د قوتي له مینځ نه تېرېږئ؟
7. Am Wochenende spielt Real Madrid ……den FC Bayern München.
د اونۍ په پای کې ریال مادرید د بایرن مونشن په وړاندې لوبیږي
8. Warum schaust du andauernd ……das Schlüsselloch?
ته ولې تل مدام د کلپ د سوري له مینځ نه کتل کوې؟
9. ……wen ist dieses teure Geschenk? دا ګران سوغات د چا لپاره دی؟
10. Der Nachbar geht schon wieder ……seine Frau ins Kino.
دا ګاونډی اوس بیا بې له خپلې مېرمنې سینما ته ځي

**Lösungen:**
1. Dieser Trottel will ohne einen Cent in der Tasche nach Spanien fahren.
2. Meine alte Großmutter kann ohne ihre Brille fast nichts mehr sehen.
3. Warum nimmst du dir immer so wenig Zeit für deine Kinder?
4. Bis Berlin sind es noch etwa 10 Kilometer.
5. Einen Metzgerladen finden Sie gleich hier um die Ecke.
6. Kinder, warum müsst ihr denn immer durch alle Pfützen laufen?
7. Am Wochenende spielt Real Madrid gegen den FC. Bayern München.
8. Warum schaust du andauernd durch das Schlüsselloch?
9. Für wen ist dieses teure Geschenk?
10. Der Nachbar geht schon wieder ohne seine Frau ins Kino.

**Übungen:**

Setzen Sie die fehlenden Präpositionen

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| bis تر | für لپاره | gegen په شاوخوا کې | ohne بې له | um په |

1. Ich fahre am Freitag …… drei Tage nach London.
زه د جمعې په ورځ د درې ورځو لپاره لندن ته ځم
2. Der Unterricht dauert von 8:30 Uhr …… 12:00 Uhr.
درس د سهار د اته نیمو نه د غرمې تر دولس بجو پورې دوام کوي

3. Mein Bruder kommt wahrscheinlich erst …… 18:00 Uhr nach Hause.
زما ورور احتمال لري چې د ماښام د شپږو بجو په شاوخوا کې راشي
4. Unser Zug fährt bereits …… 6:00 Uhr auf Gleis 4 ab.
زمونږ اورګاډی سهار وختي په شپږ بجو د څلورمې پټلۍ نه ځي
5. Wir können erst …… Abend bei euch sein.
مونږ نو ایله په ایله د ماښام شاوخوا ته ستاسو کور ته درورسیږو
6. Der Bericht muss …… heute Abend fertig sein.
دا رپوټ باید تر نن ماښامه پورې خلاص شي
7. …… Mittag muss ich meine Frau anrufen.
د غرمې په شاوخوا کې زه باید خپلې مېرمنې ته ټیلفون وکړم
8. …… wie lange möchten Sie das Auto mieten?
تر کوم وخته پورې تاسو غواړئ چې دا موټر په کرایه ونیسئ؟
9. Wie lange möchte mein Vater bleiben? …… nächste Woche Sonntag.
تر کوم وخته پورې زما پلار غواړي چې پاتې شي؟ - د بلې اونۍ تر یکشنبې ورځې پورې
10. …… wie viel Uhr fängt der Film an? په څو بجو فلم شروع کیږي؟

**Lösungen:**

1. Ich fahre am Freitag für drei Tage nach London.
2. Der Unterricht dauert von 8:30 Uhr bis 12:00 Uhr.
3. Mein Bruder kommt wahrscheinlich erst gegen 18:00 Uhr nach Hause.
4. Unser Zug fährt bereits um 6:00 Uhr auf Gleis 4 ab.
5. Wir können erst gegen Abend bei euch sein.
6. Der Bericht muss bis heute Abend fertig sein.
7. Gegen Mittag muss ich meine Frau anrufen.
8. Für wie lange möchten Sie das Auto mieten?
9. Bis nächste Woche Sonntag.
10. Um wie viel Uhr fängt der Film an?

**Übungen:**

Bestimmen Sie die fehlenden Präpositionen und setzen Sie sie ein. setzen Sie bitte das Subjekt auf Position 1. Beispiel: enden / der Unterricht / 12:00 Uhr. Lösung: Der Unterricht endet um 12:00 Uhr.

1. spazieren gehen / der Jäger / seinen Hund / niemals
ښکاري هېڅکله بې له خپل سپي په چکر نه ځي
…………………………………………………………
2. fahren / der Alkoholiker / sein Auto / einen Baum
شرابي خپل موټر د یوې ونې سره ټکروي
…………………………………………………………
3. fahren / dieser Zug / nur / München دا اورګاډی تش تر مونشن پورې ځي؟
…………………………………………………………

4. sollten / herumfahren / Sie / die Stadt تاسو د ښار له شاوخوا نه تېر شئ

…………………………………………………………

5. kommen / Herr Präsident / heute / 12:00 Uhr
رئيس صاحب نن د دولس بجو په شاوخوا كي راځي

6. sein / diese Nachricht / nicht / die Arbeiter دا خبر د کارګرو لپاره ندی

7. sein / Schulden / das Leben / viel angenehmer بې له پورونو ژوند ډېر هوسا وي

8. bleiben /möchten / die Verwandten / Freitag
خپلوان غواړي چي تر جمعي پوري پاتي شي

9. sehen / können / der alte Mann / Brille / nur schlecht
دا زوړ سړی بي له عينكو ډېر لږ ليدلی شي

10. sein / der Weg / zur / Schule / der Park ښوونځي ته لار د پارك له مينځ نه تللي ده

**Lösungen**:

1. Der Jäger geht niemals ohne seinen Hund spazieren.
2. Der Alkoholiker fährt sein Auto gegen einen Baum.
3. Dieser Zug fährt nur bis München.
4. Sie sollten um die Stadt herumfahren.
5. Herr Präsident kommt heute gegen 12.00 Uhr.
6. Diese Nachricht ist nicht für die Arbeiter.
7. Das Leben ist ohne Schulden viel angenehmer.
8. Die Verwandten möchten bis Freitag bleiben.
9. Der alte Mann kann ohne Brille nur schlecht sehen.
10. Der Weg zur Schule ist durch den Park.

## Präpositionen mit Dativ und Akkusativ

| Präpositionen mit Dativ und Akkusativ | Dativ | Akkusativ |
|---|---|---|
| an په | Das Bild hängt an der Wand. عكس په دېوال ځوړند دی | Er hängte das Bild an die Wand. هغه عكس په دېوال ځوړند كړو |
| auf د يو شي دپاسه، په يو شي باندي | Du sitzt auf dem Stuhl. ته په چوکی ناست يي | Du setzt dich auf den Stuhl. ته په چوکی کېني |
| hinter د يو شي شاته | Sie spielten hinter dem Haus. هغوی د کور شاته لوبه وكړه | Sie rannten hinter das Haus. هغوی د کور شاته منډه وکړه |
| in په يو ځای كي، په يو شي کي، په کي | Wir liegen in der Sonne. مونږ په لمر کي پراته يو | Wir legen uns in die Sonne. مونږ ځان لمر ته اچوو |
| neben د يو چا يا د يو شي په څنګ كي | Der Bräutigam steht neben der Braut. د زلمی واده د ناوي په څنګ كي ولاړ دی | Der Bräutigam stellte sich neben die Braut. د واده زلمی د ناوي په څنګ کي ودرېد |

| | | |
|---|---|---|
| über د یو شي دپاسه، د یو شي په برخه کي | Das Bild hängt über dem Tisch. عکس د میز دپاسه ځوړند د Der zweite Stock liegt über dem ersten Stock. دوهم پوړ د لومړي پوړ دپاسه دی | Er hängte das Bild über den Tisch. هغه عکس د میز دپاسه ځوړند کړو Sie wurde bis über die Ohren rot. د هغې مخ تر غوږو پورې تك سور شو |
| unter د یو شي لاندې | Der Apfel liegt unter dem Tisch. منه د میز لاندې پرته ده | Der Apfel ist unter den Tisch gerollt. منه د میز لاندې کولیدلي ده |
| vor د یو شي په مخکي، د یو شي نه مخکي | Der Wagen steht vor dem Haus. موټر د کور مخکي ولاړ دی | Du kannst den Wagen vor das Haus fahren. ته کوی شي چې موټر د کور مخي ته یوسي |
| zwischen تر مینځ، د دوه شیانو تر مینځ | Der Stuhl stand zwischen mir und dem Tisch.چوکی زما او د میز ترمینځ ایښودل شوي وه | Ich stellte den Stuhl zwischen mich und den Tisch. ما چوکی د خپل ځان او د میز ترمینځ کیښودله |

## Präposition mit Genitiv, Dativ und Akkusativ

| Präposition mit Genitiv, Dativ und Akkusativ | Genitiv | Dativ | Akkusativ |
|---|---|---|---|
| außer ۱- غیر له ...، غیر د ... ۲-بهر، خارج | außer Landes gehen له هیواد نه بهر تلل | außer ihm له هغه نه غیر | außer jeden Zweifel setzen هیڅ شك پکي نه پرېښودل |

## Präpositionen mit Genitiv und Dativ

| Präpositionen mit Genitiv und Dativ | Genitiv | Dativ |
|---|---|---|
| binnen په یوه موده کي | binnen dreier Monate/ binnen drei Monaten د دري میاشتي په موده کي | binnen einem Monat د یوي میاشتي په موده کي |
| trotz دي سره سره، سره له دي بیا هم | Trotz des Regens gingen wir spazieren. سره له بارانه مونږ بیا هم په چکر ولاړو | trotz allem Bemühen د ټولو زحمتونو سره سره |

# Die wichtigsten und meist gebräuchlichen Präpositionen

**هغه (Präpositionen) چې ډېر مهم او ډېر معمول دي، په توضيحاتو**

## 1. Präpositionen mit Akkusativ

| | bis |
|---|---|

**① بې له ارتيکل (ohne Artikel)**

**(a)** د يو ځای او د وخت د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Bis Hamburg sind es noch etwa 250 Kilometer. | تر همبورګه پورې لا ۲۵۰ کيلو متره نور پاتې دي |
| Bis nächsten Montag muss die Arbeit fertig sein. | تر راتلونکې دوشنبې پورې بايد دا کار سر ته رسېدلی وي |
| Er will noch bis April warten. | هغه غواړي چې تر اپريله پورې صبر وکړي |

(b) **د شمېرو يا عددونو په مخکې** (زياتره وخت ورسره zu يوځای کيږي)

| | |
|---|---|
| Der Laden ist von 08.00 Uhr bis 18.00 Uhr geöffnet. | دا هټۍ د سهار له اته بجو نه د ماښام تر شپږ بجو پورې پرانيستې ده |
| Für das alte Fahrrad zahle ich bis zu 50 Euro, nicht mehr. | د دې زوړ بايسکل په بدل کې زه تر ۵۰ يورو پورې پيسې ورکومه، له دې نه ډېرې نه |

**(c) د قيدونو په مخکې**

| | |
|---|---|
| Bis dahin ist es noch ein weiter Weg. | تر هغه ځايه پورې لا اوږد مزل دی |
| Auf Wiedersehen, bis nachher! | خدای په امان، تر وروسته پورې |

**② له يو بل (Präposition) سره په ګډه، يعني کله چې دوه (Präposition) شا په شا راشي:**

کله چې (bis) له يو بل (Präposition) سره په ګډه استعمال شي، نو بيا دا د دوهم (Präposition) حق دی چې له کوم حالت سره راځي، يعنې دا چې له (Akkusativ) او يا له (Dativ) سره راځي.

**(a) له يو بل قيد سره په ګډه په (Akkusativ) حالت کې**

| | |
|---|---|
| Wir gingen bis an den Rand des Abgrunds. | مونږ په کنده کې د ولېدلو په درشل کې وو |
| Das Konzert war bis auf den letzten Platz ausverkauft. | د کنسرت ټکسونه تر وروستي ځايه پورې خرڅ شوي وو |
| Er schlief bis weit in den Tag hinein. | هغه د ورځې تر ناوخته پورې ويده و |
| Bis auf eine einzige hat er alle Aufgaben richtig gelöst. | غير له يو سوال نه هغه نور ټول سوالونه صحيح حل کړي وو |

(b) له یو بل قید سره په ګډه په (Dativ) حالت کې

| | |
|---|---|
| Kannst du nicht bis nach dem Essen warten? | ته د ډوډۍ تر پایه پورې صبر نشي کولی؟ |
| Bis vor einem Jahr war noch alles in Ordnung. | تر یو کال مخکې پورې هر څه ټیك وو |
| Bis zur Bushaltestelle will ich dich gern begleiten. | د سرووېس تر تمځایه پورې به دې زه بدرګه کړم |

## d u r c h

(a) د ځای د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Wir gingen durch den Wald. | مونږ د ځنګله په مینځ کې ولاړو |
| Er schaute durch´s Fenster. | هغه د کړکۍ له مینځ نه کتل |
| Man atmet durch die Nase. | سړی د پوزې له لارې ساه راکاږي |
| Er möchte durch die ganze Welt reisen. | هغه غواړي چې په ټولې نړۍ کې سفر وکړي |

(b) د یو لامل، د یوې وسیلې او یا واسطې د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Er hatte durch einen Glücksfall 1000 Euro gewonnen. | د هغه طالع وه چې زر یورو یې وګټل |
| Das wird durch das Los entschieden. | دا د پچې اچولو (قرعه کشۍ) له لارې فیصله کیږي |
| Wir haben es durch den Rundfunk erfahren. | دا خبره مونږ د راډیو له لارې واورېدله |

(c) دا چې یو کار په کوم ډول او په کومې لارې اجرا کیږي

| | |
|---|---|
| Durch die Benutzung eines Notausgangs konnten sich die Bewohner retten. | له خطر نه د بچېدو له لارې نه د استفادې په مرسته اوسېدونکو وکړی شول چې ځانونه وژغوري |
| Durch Training stärkte der Behinderte seine Beinmuskeln. | په تمرین باندې معیوب خپل د پښو عضلات قوي کړل |

(d) د وخت د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| durch den Winter | په ټول ژمي کې |
| Das ganze Jahr durch hat sie nichts von sich hören lassen. | په دې غونډ کال کې هغې کوم غږ ندی کړی (هغه بالکل پټه یا غیبه وه) |
| Sie haben die ganze Nacht durch geredet. | هغوی ټوله شپه خبرې کړې دي |

## e n t l a n g

(a) د یوې لارې امتداد ښودنه، د یوې لارې په اوږدو تګ ښودنه، په (Akkusativ) حا لت کې

| | |
|---|---|
| Er fuhr die Straße entlang. | هغه د سړك په اوږدو روان و |
| Den Fluss entlang standen Bäume. | د سیند په اوږدو کې ونې ولاړې وې |
| Sie hatten das Auto abgestellt und gingen das Ufer entlang zu Fuß. | هغوی موټر ودرولی و او د سیند په غاړه په پښو ولاړل |
| Man sah die Menschen die Straße entlang auf das Rathaus zumarschieren. | خلك ولیدل شول چې د سړك په اوږدو مخ په ښاروالۍ روان وو |

**(b) د (Dativ) په حالت کې چې (an) د اسم نه مخکې او (entlang) د اسم نه وروسته راشي**

| | |
|---|---|
| Wir gingen an dem Haus entlang und erreichten den Garten. مونږ د کور په اوږدو ولاړو او حویلۍ ته ورسېدلو | |
| An der Mauer entlang werden Leitungen gelegt. | د دېوال په اوږدو کې لېنونه غځول کیږي |
| Wir werden die ganze Strecke fahren, nur am Ufer des Sees entlang laufen. په دې غونډې لار کې مونږ په موټر ځو، تش د سیند په غاړه په پښو ګرځو | |
| Die Bäume standen entlang dem Fluss. | ونې د سیند په غاړه ولاړې وې |
| Er rannte an der Mauer entlang. | هغه د دېوال په اوږدو کې منډې وهلې |

**(c) د (Genitiv) په حالت کې له اسم نه مخکې**

| | |
|---|---|
| Entlang des Weges standen Tausende von Menschen. د لار په اوږدو کې په زرګونه خلك ولاړ وو | |
| Die Bäume standen entlang des Flusses. | د سیند په غاړه ونې ولاړې وې |
| Entlang des Flusses wurden die Dämme ausgebaut. د سیند په غاړه بندونه نور هم جوړ شول | |

## f ü r

په لغوي مانا (für) (لپاره) ته وايي. خو په لاندینۍ برخه کې به تاسو له (a) نه تر (f) پورې وګورئ چې (für) لږ تر لږه په شپږو مختلفو برخو یا په شپږ مختلفو ماناګانو استعمالېدی شي.

**(a) د یو چا لپاره، د یو چا په ګټه، یو چا ته د مرستې لپاره، د یو چا په پته**

| | |
|---|---|
| Ich tue alles für dich. | زه تا لپاره هر څه کوم |
| Er kämpft für sein Land. | هغه د خپل هېواد لپاره مبارزه کوي |
| Wir treten für die Menschenrechte ein. | مونږ د انساني حقوقو لپاره هلې ځلې کوو |
| Für drei Euro in der Stunde arbeiten? | په ساعت کې د درې یورو په بدل کې کار کول؟ |
| ein Medikament für Kopfschmerzen | د سرخوږي لپاره درمل |
| Für den Winter ist die Jacke zu dünn. | د ژمي لپاره دا کرتۍ ډېره نرۍ ده |

**(b) د یو چا په بدل کې، د یو چا لپاره، د یو چا په استازیتوب**

| | |
|---|---|
| Bitte geh für mich auf´s Finanzamt. | ته زما په ځای د مالیې دفتر ته ولاړ شه |
| Er hat schon für alle bezahlt. | هغه د ټولو پیسې ورکړې |
| Für diese Frechheit wurden nicht du, sondern wir bestraft. د دې سپین سترګیتوب په بدل کې تا ته نه بلکې مونږ ته سزا راکړل شوه | |

**(c) د یوې مودې د بښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Ich komme nur für zwei Tage. | زه تش د دوه ورځو لپاره درځم |
| Hier bleiben wir für immer. | مونږ دلته د تل لپاره پاتې کیږو |
| Für morgen elf Uhr habe ich das Taxi bestellt. | د سبا یوولس بجو ته ما ټکسي غوښتی دی |
| Er geht für zwei Jahre nach Amerika. | هغه د دوه کلو لپاره امریکې ته ځي |

**(d) د پرتله کولو، د تناسب ښکاره کولو لپاره**

| | |
|---|---|
| Für sein Alter ist er noch sehr rüstig. | د خپل (زوړ) عمر په پرتله هغه لا ډېر تکړه دی |
| Für einen Architekten ist das eine leichte Aufgabe. | د یو مهندس لپاره دا یو اسان کار دی |
| Der Junge ist für sein Alter zu kräftig. | د خپل عمر په پرتله دا هلك ډېر قوي دی |

**(e) د یو شي د نرخ او ارزښت د ښودلو لپاره، د پیسو یا د یو بل شي په بدل کې**

| | |
|---|---|
| Wie viel hast du für das Haus bezahlt? | د دې کور په بدل کې تا څومره پیسې ورکړې دي؟ |
| Wie viel Dollar hast du für 1000 Euro bekommen? | د زر یورو په بدل کې تا څو ډالره واخیستل؟ |
| Ich habe es für 100 000 Euro bekommen. | دا ما د سل زره یورو په بدل کې لاس ته راوړ |
| Für den Preis möchte ich es nicht kaufen. | په دې نرخ یې زه نه اخلم |
| Für seine schwere Arbeit erhielt er zu wenig Geld. | د خپل سخت کار په پرتله هغه ته ډېرې لږې پیسې ورکړل شوې |

**(f) د یو لغت د دوه ځلي تکرارولو لپاره**

| | |
|---|---|
| Du hast keine Ahnung, was ich Tag für Tag erlebe. | ته له دې نه هېڅ خبر نه یې چې هره ورځ په ما څه تېرېږي |
| Er schrieb das Protokoll Satz für Satz ab. | هغه پروتوکول جمله په جمله نقل کړو |
| die Wort für Wort Übersetzung | لغت په لغت ژباړه |
| Monat für Monat gibt es Neues zu entdecken. | میاشت په میاشت نوي شیان کشفول کیږي |
| Das Fest lockt Jahr für Jahr viele Besucher nach Berlin. | دا جشن کال په کال د ډېرو لیدونکو پام برلین ته را اړوي |

## gegen

په لغوي مانا (gegen) (د یو شي په وړاندې یا مقابل) ته وایي، خو په لاندینو جملو کې به تاسو له (a) نه تر (e) پورې وګورئ چې لږ تر لږه پنځه مختلفې مانا ګانې لري:

**(a) یو لوري ته د حرکت ښودلو لپاره تر هغه پورې چې یو څه په بل څه ولږېږي**

| | |
|---|---|
| Er schlug mit der Faust gegen die Tür. | هغه دروازه په سوك ووهله |
| Er lehnte sich gegen die Wand. | هغه په دېوال تکیه وکړه |
| sich gegen etwas stemmen | د یو شي په خلاف ودرېدل |
| etwas gegen die Wand werfen | یو شی په دېوال غورځول |

**(b) د مختلف یا د یو مخالف چلند د ښکاره کولو لپاره، له یو شي سره د مخالفت په مانا**

| | |
|---|---|
| Ärzte sind gegen das Rauchen. | ډاکټران د سګرټ څکولو په خلاف دي |
| Wir müssen etwas gegen die Umweltverschmutzung tun. | مونږ باید د چاپېریال د ککړتیا په وړاندې څه اقدامات وکړو |
| ein Verstoß gegen das Gesetz | د قانون په وړاندې خلاف رفتاري |
| gegen jemanden einschreiten | د یو چا په خلاف اقدام کول |
| Ich habe nichts gegen ihn. | زه د هغه سره څه مخالفت نه لرم |

**(c) کله چې يو وخت پخپل تيك وخت کې ياد نشي بلکې په اټکلي ډول ياد شي**

| | |
|---|---|
| Wir kommen gegen 23 Uhr oder gegen Mitternacht. | مونږ د ماسخوتن په يوولس بجو او يا د نيمي شپې په شاوخوا کې راځو |
| Er kam gegen Abend nach Hause. | هغه د ماښام په شاوخوا کې کور ته راغی |
| Wir werden gegen 10 Uhr erwartet. | خلك مونږ ته د لس بجو په شاوخوا کې په تمه دي |

**(d) د يو شي سره د پرتله يا مقايسه کولو لپاره يا د يو بل شي سره د بدلولو لپاره**

| | |
|---|---|
| Was bin ich gegen ihn? | د هغه په پرتله زه څه يم؟ |
| Gegen mich ist er sehr klein. | زما په پرتله هغه ډېر ووړکی دی |
| Gegen gestern ist es heute kalt. | د پرون په پرتله نن هوا سړه ده |
| Gegen früher ist das nichts. | د پخوا په پرتله دا هيڅ شی ندی |
| Ich wette hundert gegen eins, dass … | زه سل په يو شرط ږدم چې ... |

**(e) په اصطلاحاتو کې، په هره اصطلاح کې (gegen) ځان له مانا لري**

| | |
|---|---|
| gegen den Strom schwimmen | په سيند کې مخ په پورته لامبو کول (تطابق نه کول) |
| mit dem Kopf gegen die Wand rennen | خپل سر له ديوال سره جنګول |
| Dagegen ist kein Kraut gewachsen! | د دې چاره نشته، دا ستونځه څه حل نلري |
| Er kämpft gegen Windmühlen | . هغه له داسې يو شي سره منګولې لګوي چې هيڅ زور يې نلري |

## o h n e

د (ohne) لغوي مانا ده (بې له) ، دا (Präposition) زياتره وخت بې له (Artikel) استعماليږي

| | |
|---|---|
| Diese Arbeit war ohne Nutzen. | دا کار بې ګټې و |
| Er ist ohne jedes Schamgefühl. | هغه هيڅ شرم نه لري |
| Ohne ihn wären wir immer noch dort. | بې له هغه به مونږ اوس هم هلته وای |
| Das geschah ohne sein Zutun. | بې له دې چې هغه يکې څه لاس وهلی وي، دا کار وشو |

## um

په لغوي مانا (um) څو مانا ګانې لري لکه (د يو هدف لپاره، د يو شي له شاوخوا نه) او داسې نور، خو لاندينې مثالونه ښايي چې نوري ماناګانې هم لري

**(a) د يو ځای د ښودلو لپاره، د (um … herum) په توګه**

**① د يو چا يا د يو شي له شاوخوا نه بې له کوم حرکته (په ولاړ حالت د يو شي شاوخوا)**

| | |
|---|---|
| Um den Turm herum standen viele alte Bäume. | د برج شاوخوا ډېرې ونې ولاړې وې |
| Wir saßen um den runden Tisch herum und diskutierten. | مونږ د ګرد ميز شاوخوا ناست وو او خبرې اترې مو کولې |
| Alle standen um ihn herum. | ټول له هغه نه ګرچاپېر ولاړ وو |
| Die Mutter hat ihre Kinder um sich. | د مور ګرچاپېر ماشومان وو |

**② د يو چا يا د يو شي له شاوخوا نه چې يو څوك په حرکت وي**

| | |
|---|---|
| Gehen Sie dort um die Ecke, da ist der Briefkasten. | تاسو هلته له کنج نه تېر شئ، هلته د پوستي صندوق دی |

| | |
|---|---|
| Er machte einen großen Bogen um die Feuerstelle. | هغه د اور له ځای نه ډېر لیرې تاو شو |
| Er fährt um das Haus herum. | هغه د کور له شاوخوا نه (په موټر کې) تاویږي |

**(b) د یو ټیك وخت د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Um 20 Uhr beginnt die Sportschau. | د ماښام په اته بجو سپورټي خپرونه پيل کيږي |
| Der Zug fährt genau um 08.00 Uhr. | اورګاډی د سهار په ټيك اته بجو ځي |
| Um sieben Uhr komme ich wieder. | زۀ په اوه بجو بيا راځم |

**(c) د یو غیږ دقیق د وخت د ښودلو لپاره** (په دې حالت کې له um نه وروسته Artikel راځي)

| | |
|---|---|
| Das Buch kostet um die 10 Euro herum. | د دې کتاب بيه څه ناڅه لس يورو ده |
| Er fährt um die Mittagszeit. | هغه د غرمې په شاوخوا کې ځي |
| um diese Zeit herum | د دې وخت په شاوخوا کې |

**(d) د ورکېدلو ، له لاسه ورکولو، ضايع کېدلو د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Du hast ihn um seinen Erfolg betrogen. | تا له هغه سره ټګي وکړه چې هغه بريالی نشو |
| Bei dem Feuer sind viele Tiere ums Leben gekommen. پهٔ دې اور کې ډېر ځاروي مړه شويدي | |
| Er trauert um seinen Freund. | هغه د خپل ملګري د مړينې په وجه خواشينی دی |
| Du hast mich um meinen Schlaf gebracht. | تا له ما نه خوب ورك کړو |

**(e) د یو شي د مقصد، د موخي، د موضوع د ښودلو لپاره** (دا چې يو څه د څه په برخه کې دی)

| | |
|---|---|
| Es geht um Leben und Tod. | دا د ژوند او مرګ خبره ده (چې ژوندی پاتې شي او که مړ شي) |
| Er macht sich Sorgen um sein Kind. | هغه د خپل زوی په برخه کې په اندېښنه کې دی |
| Er kämpft um sein Leben. | هغه د ژوندي پاتې کېدو لپاره لاس و پښې وهي |

**(f) د يوې خبرې د تسلسل يا د بيابيا او يا د تل کېدو د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Schritt um Schritt geht es vorwärts. | قدم په قدم پرمختګ کيږي |
| Tag um Tag verging, ohne dass etwas geschah. | ورځ په بله شوه، بې له دې چې څه وشي |
| Stunde um Stunde, Tag um Tag, Jahr um Jahr verliert sich die Zeit in der Ewigkeit. | ګړۍ په ګړۍ، ورځ په ورځ، کال په کال وخت په ازل کې ورکيږي |

**(g) د يو بدلون ښودلو لپاره چې دا بدلون په منظم ډول وي**

| | |
|---|---|
| Einen Tag um den anderen. *(= jeden zweiten Tag)* | هره دوهمه ورځ |

## w i d e r

د (wider) مانا ده (د يو شي په خلاف) او د (wieder) سره بايد ګډوډ نشي.

| | |
|---|---|
| Wider Erwarten hat die Mannschaft das Spiel verloren. د توقع په خلاف لوبډلې لوبه بايلوده | |
| Er handelte wider das Gesetz. | هغه د قانون په خلاف چلند وکړو |

| | |
|---|---|
| Das geschah wider meinen Willen. | دا کار زما د ارادې په خلاف وشو |
| Es wurden Gründe für und wider sein Vorhaben angeführt. | د هغه د پلان په پلوی او په خلاف دلیلونه وړاندې شول |

## 2. Präpositionen mit dem Dativ

### a b

**(a) د یو حد د ښودلو یا د یو تاکل شوي ځای او یا د وخت د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Ab dieser Stelle kannst du allein weiter gehen. | له دې ځای نه وروسته ته کوی شې چې یوازې پرمخ ولاړ شې |
| Der Zug fährt ab Hauptbahnhof. | دا اورګاډی له ستر یا عمومي سټېشنه ځي |
| Ab dieser Station gibt es Busverkehr. | له دې سټېشن نه وروسته سروېسونه تګ راتګ کوي |
| Ab dem 18. Lebensjahr ist man volljährig. | د ۱۸ کلنۍ نه وروسته سړی بالغ دی |
| Jugendlichen ab 16 Jahren ist der Zutritt gestattet. | له شپاړلس کلنو نه پورته زلموټو ته د ننوتلو اجازه ده |
| Ab morgen werde ich ein neues Leben beginnen. | سر له سبا نه به زه په یو نوي ژوند پیل وکړم |

**(b) د یوې نېټې ښودل له (ab) سره په (Dativ + Akkusativ) کې**

| | |
|---|---|
| ab nächstes (Akkusativ)/nächstem (Dativ) Jahr | له راتلونکي کال نه وروسته |
| ab kommendem (Dativ)/kommenden (Akkusativ) Montag | له راتلونکي دوشنبې نه وروسته |
| Ab erstem (Dativ)/ ersten (Akkusativ) Mai habe ich Urlaub. | د مې د میاشتې له لومړۍ نېټې نه وروسته زما رخصتي پیل کیږي |

### a u s

**(a ) د یو ځای له دننه نه بهر خوا ته د حرکت ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Er ging aus dem Haus. | هغه له کوره ووت |
| Sie kommen um 12 Uhr aus der Schule. | هغوی په دولس بجو له ښوونځي نه راځي |
| Ich trinke aus dem Glas. | زه له ګیلاس نه اوبه څښم |

**(b) د یو چا هویت ښودل، له یو ځای نه د یو چا راتلل ښودل، د یو شي وخت ښودل**

| | |
|---|---|
| Seine Familie stammt aus Dänemark. | د هغه کورنۍ له ډنمارک نه ده |
| Es ist ein Kind aus der Nachbarschaft. | دا زمونږ د ګاونډیانو ماشوم دی |
| Er übersetzt den Roman aus dem Spanischen ins Deutsche. | هغه دا ناول له هسپانوي نه جرمني ژبې ته ژباړي |
| etwas aus den Akten wissen | له یو شي نه د دوسیو له مخې خبر اوسېدل |

(c) **د یو شي د جوړښت مواد ښودل** (دلته **Artikel** نه کارول کیږي)

| | |
|---|---|
| Diese Schuhe sind aus echtem Leder. | دا بوټان د سوچه څرمني نه جوړ شویدي |
| Ein Atom besteht aus einem Kern und Elektronen. | یو اتوم له یوې هستې او له الکترونونو نه جوړ شوېدی |
| Eheringe sind meistens aus Gold. | د واده ګوتې زیاتره وخت د سرو زرو نه جوړ شوي وي |
| eine Treppe aus Marmor, eine Hose aus Seide | د مرمرو زینه، د وریښمو یو پطلون |

(d) **د یو چلند لپاره د یو لامل یا د یو دلیل ښودلو لپاره** (دلته Artikel نه کارول کیږي)

| | |
|---|---|
| Aus Liebe zu dir verließ ich meine Heimat. | ستا په مینه ما خپل هیواد پریښود |
| aus Angst, aus Zorn nichts tun | د ډار له لاسه، د قهر له موخې هیڅ اقدام نه کول |
| jemandem aus Versehen auf den Fuß treten | سهواً د یو چا پښه د خپلو پښو لاندې کول |
| Aus welchem Grunde sind Sie gekommen? | تاسو په کوم علت راغلي یاست |

(e) **په اصطلاحاتو کې**

| | |
|---|---|
| Er hat es aus freien Stücken getan. | هغه دا کار پخپله خوښه وکړو |
| Was soll aus uns werden? | له مونږ نه به څه جوړ شي؟ |
| Aus der Sache wird nichts. | له دې نه څه نه جوړیږي، دا بریالیتوب ته نه رسیږي |
| aus vollem Halse lachen | د زړه له براسه خندل |
| jemanden  aus den Augen verlieren | یو څوک له نظره پناه کېدل |
| sich etwas aus dem Kopf schlagen | یو څه له فکره وېستل |
| jemanden aus dem Tiefschlaf wecken | یو څوک له ژور خوب نه راویښول |

## a u ß e r

(a) **د یوې استثنا پورې محدودیت، د غیر له ... په مانا**

| | |
|---|---|
| Außer einem Hund war dort nichts Lebendiges zu sehen. | غیر له یو سپي نه هلته بل هیڅ  ژوی نه لیدل کېدو |
| Außer warmer Milch und Honig nahm der Kranke nichts zu sich. | غیر له تودو شودو او له شاتو مریض بل هیڅ شی نه خوړو |
| Ich habe keinen Freund außer dir. | له تا نه پرته زه بل هیڅ ملګری نه لرم |
| Außer ihm war niemand zu Hause. | له هغه نه پرته بل هیڅ څوک په کور کې نه وو |
| Alle außer ihm sind herzlich willkommen. | له هغه نه پرته نور ټولو ته هرکلی دی |

(b) **په اصطلاحاتو کې** (außer) **په هره جمله کې بېله بېله مانا لري**

| | |
|---|---|
| Hier seid ihr außer Gefahr. | دلته تاسو له خطره بچ یاست |
| Die Feinde sind außer Gefecht gesetzt. | په دښمنانو کې نور د جګړې توان ندی پاتې، دښمنان د جګړې نه ولېدلي دي |
| Steht das außer Zweifel? | په دې کې څه شك نشته؟ |
| Seine Behauptung steht außer Zweifel. | د هغه په ادعا کې څه شك نشته |
| Die Kinder waren außer Rand und Band. | ماشومانو د خوشحالی له لاسه کنترول له لاسه ورکړی و او  توپونه یې وهل |

| | |
|---|---|
| Das Gesetz ist doch seit Jahren außer Kraft gesetzt!? | دا قانون خو د کلونو راهیسي ناچل شوی دی |
| Er war außer Sichtweite. | هغه له سترګو نه پناه شوی و، د نظر نه پناه شوی و |
| Der General ist außer Dienst. | دي جنرال خپل تقاعد اخيستی دی |
| Ich bin ganz außer Atem. | زما ساه سوره شوي ده، زما ساه ختلې ده |
| Er ist ganz außer Puste. | هغه بالکل ساه ختلی دی |

## b e i

**(a) د يو ځای د نږدېوالي د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Hanau liegt bei Frankfurt. | د هاناو ښار د فرنکفورت ښار تر څنګ پروت دی |
| Sie müssen beim Schwimmbad rechts abbiegen. | د لامبو ډنډ تر څنګ تاسو ښي اړخ ته راتاو شئ |
| Er wohnt bei der Post. | هغه د پوسته خوني ترڅنګ اوسيږي |

**(b) په يو ځای کي د تمېدلو لپاره، د تېکاو لپاره، د هستوګني لپاره**

| | |
|---|---|
| Er war vorher beim Militär. | له هغي نه پخوا هغه په پوځ کي و |
| Bleib bei mir! | ته له ما سره پاتي شه |
| Er wohnt jetzt bei seinem Großvater, nicht mehr bei seinem Vater. | هغه اوس د خپل نيکه سره اوسيږي، د خپل پلار سره نور نه اوسيږي |
| Er war bei Demonstranten. | هغه د لاريون کوونکو (مظاهره چيانو) په ډله کي و |
| Er war beim Arzt. | هغه ډاکټر ته تللی و |

(c) **په همغه يو وخت کي د دوه پېښو د بيان لپاره** (دلته له bei نه وروسته تل يو اسم راځي)

| | |
|---|---|
| Er hatte sich beim Rasieren geschnitten. | د ږيري خريلو په وخت کي له هغه نه ځان ټپي شو |
| Beim Kochen hat er sich verbrannt. | د پخلي کولو په وخت کي د هغه کوم ځای وسوځېده |
| Musst du bei deinen Hausaufgaben immer Musik hören? | دا ضرور دی چي د کورنی وظيفي په وخت کي ته تل موسيقي واوري؟ |

**(d) د يو خوي، خاصيت د څرګندولو يا د يو شي د لامل د ښکاره کولو لپاره**

| | |
|---|---|
| Bei seinem Temperament ist das sehr verständlich. | د هغه مزاج ته چي سرى ګوري، نو بيا يري ښه پوهېدی شي |
| Bei aller Vorsicht gerieten sie doch in eine Falle. | د دومره احتياط سره سره هغوی بيا هم په يو دام کي ايسار شول |
| Bei deiner Gewissenhaftigkeit ist dieser Fehler kaum erklärlich. | ستا باوجدانتوب ته چي سرى ګوري، نو نشي پوهېدی چي ولي داسي غلطي وشوه |

(e) **په اصطلاحاتو کي** (bei) په هر ځای کي بېله بېله مانا لري

| | |
|---|---|
| Er ist bei Nacht und Nebel verschwunden. | هغه په پټه ورك شو، يو دم غيب شو |
| beim besten Willen nicht | که زه يي وغواړم او کوښښونه ورته وکړم، نو دا بيا هم نه کيږي |
| Ich schwöre bei Gott. | زه په خدای قسم کوم |
| Es bleibt alles beim Alten. | دلته هرڅه پخپل پخواني حال پاتي کيږي، څه بدلون پکي نه راځي |

| | |
|---|---|
| jemanden beim Wort nehmen | د يو چا خبره جدي نيول، پرې باور کول |
| jemanden beim Kragen packen | د يو چا گرېوان ته لاس اچول |
| Ich schwöre bei meiner Ehre. | زه پخپل وجدان قسم خورم |
| nicht ganz bei sich sein | خپل عادي حالت ته لا راغلى نه اوسېدل، نيمه ويده اوسېدل |

(f) د يو حالت د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| bei offenem Fenster schlafen | د پرانيستي کړکۍ سره ويده کېدل |
| Bei solcher Hitze kann ich nicht arbeiten. | پهٔ داسې گرمۍ کې زهٔ کار نه شم کولى |
| bei dieser Gelegenheit | پهٔ دې موقع کې |
| Komm bei Gelegenheit vorbei. | کله چې موقع پيدا شوه بيا راشه |
| Bei Regen verlasse ich das Haus nicht. | په باران کې زه له کوره نه وځم |
| Bei Tag und bei Nacht ist er für alle da. | په شپه او په ورځ کې هغه د ټولو لپاره حاضر دى |

(g) ښودل چې يو څوك په يوه شېبه کې څه کوي

| | |
|---|---|
| Er war gerade beim Lesen. | په دې شېبه کې هغه په لوستلو بوخت و |
| Sie ist beim Fernsehen. | په دې شېبه کې هغه تلويزيون گوري |
| Er starb beim Essen. | هغه د ډوډۍ خوړلو په وخت کې مړ شو |
| Beim Tod des Vaters fiel er um. | د پلار د مړيني په شېبه کې هغه مځکې ته راوغورځېدو |

## d a n k

دلته (dank) له (Danke) يعني د (منني) يا د (تشکر) د لغت سره څه اړه نلري او مانا يې ده:
د يوچا له برکته يا په مرسته. په (dank) باندې زياتره وخت يو مثبت يا نېك كار يا يو نېك لامل ښودل کيږي چې له (Dativ) او د (Genitiv) سره راتلى شي.

**(a) له (Dativ) سره:**

| | |
|---|---|
| Dank ihm kam es zu einer Lösung. | د هغه له برکته د حل لار پيدا شوه |
| Dank dem Vater konnten wir eine gute Ausbildung absolvieren.<br>د پلار په مرسته مونږ ښه تعليم وکړى شو | |
| Dank einem Zufall wurde die Tat entdeckt. | د يو تصادف له برکته دا عمل افشا شو |

**(b) له (Genitiv) سره:**

| |
|---|
| Dank eures Eingreifens konnte die Gefahr abgewandt werden.<br>ستاسو د مداخلې له برکته خطر له مينځه يووړل شو |
| Dank seines festen Glaubens überlebte der Gefangene.<br>د هغه د ټينگ ايمان له برکته هغه ژوندى پاتې شو |
| Er erreichte das Ziel dank seiner Geduld.<br>د خپلې حوصلې له برکته هغه خپل هدف ته ورسېد |
| Mein Buch konnte dank deiner Hilfe fertig werden.<br>ستا د مرستې له برکته زما کتاب سرته ورسېدو |

## entgegen

(a) د یو شي په خلا□، په مخالف اړخ (له اسم نه مخکې او وروسته هم راتلی شي)

| | |
|---|---|
| allen Erwartungen entgegen | د ټولو توقعاتو په خلاف |
| Entgegen meinem Rat ist er abgereist. | زما د سلا په خلاف هغه په سفر ولاړ |
| Deine Vorstellungen sind meinen völlig entgegen. | ستا تصورات زما د تصوراتو په خلاف دي |

(b) یو شي ته مخامخ، د یو څه په مخه

| | |
|---|---|
| Wir laufen der Sonne entgegen. | مونږ مخ په لمر ځو، لمر ته مخامخ ځو |
| Wir schwammen entgegen der Strömung. | مونږ د اوبو جریان مخالف لور ته لامبو ووهله |

## entsprechend

د یو شي سره سم، د یو شي په مطابق، مربوطه (د اسم نه مخکې او وروسته هم راتلی شي)

| | |
|---|---|
| entsprechend seinem Vorschlag | د هغه د وړاندیز سره سم |
| Er hat seiner Ansicht entsprechend gehandelt. | هغه د خپل نظر سره سم چلند کړی دی |

## gegenüber

(a) د یو ځای د ښودلو لپاره (د یو اسم نه مخکې او وروسته هم راتلی شي)

| | |
|---|---|
| Die Schule steht dem Rathaus gegenüber. | ښوونځی ښاروالي ته مخامخ پروت دی |
| Er wohnt im Haus gegenüber der Tankstelle. | هغه د تیلو ټانك ته مخامخ کور کې اوسیږي |
| Wir wohnen der Post gegenüber. | مونږ پوسته خوني ته مخامخ اوسیږو |
| Dem Lehrer gegenüber saß ein Schüler. | ښوونکي ته مخامخ یو زده کوونکی ناست و |

(b) د یو چا په وړاندې د یو چا چلند، د یو چا سره پرتله کېدنه، مقایسه کېدنه

| | |
|---|---|
| Dir gegenüber sind unsere Verwandten immer großzügig gewesen. | ستا په وړاندې زمونږ خپلوان تل مهربانه وو |
| Er ist dir gegenüber im Vorteil. | ستا په پرتله هغه په ګټه کې دی |
| Mir gegenüber ist er groß. | زما په مقایسه هغه په ونه کې جګ دی، د هغه قد له ما نه جګ دی |
| Mir gegenüber wagt er das nicht zu sagen. | هغه زما په مخ کې د دې خبرې جرأت نلري |
| Er ist den Lehrern gegenüber sehr höflich. | هغه د ښوونکو په وړاندې ډېر مؤدبه دی |

## gemäß

(a) د یو شي په مطابق، د یوې خبرې سره سم (له یو اسم نه مخکې او وروسته هم راتلی شي)

| | |
|---|---|
| gemäß dem Artikel 5 der Verfassung … | د اساسي قانون د پنځمې مادې په اساس |
| seinem Wunsch gemäß | د هغه د هیلې په اساس، د هغه د هیلې سره سم |

| | |
|---|---|
| dem Vertrag gemäß = gemäß dem Vertrag | د قرار داد سره سم، د قرار داد پهٔ اساس |
| Seinem Wunsch gemäß wurde er versetzt. | هغه د خپلې هیلې په اساس تبدیل شو |

## m i t

په لغوي مانا (mit) (له یو شي سره) ته وایي. خو په دې لاندې برخو کې له (a) نه تر (d) پورې د دې لغت نورې ماناګانې ښکاره کوي.

### (a) د یو چا یا د یو شي سره د تړاو لپاره

| | |
|---|---|
| Ich gehe mit Freunden spazieren. | زه له ملګرو سره چکر ځم |
| Willst du mit uns essen? | ته غواړې چې له مونږ سره ډوډی وخورې؟ |
| mit ihm und ohne ihn | له هغه سره او بې له هغه |
| Er ist mit ihr verheiratet. | هغه له هغې سره واده کړی دی |
| Mit mir waren es insgesamt acht Gäste. | زما په شمول ټول ټال اته میلمانه وو |

### (b) د وسیلې یا د واسطه کېدو لپاره

| | |
|---|---|
| Wir heizen mit Gas. | زمونږ بخاری په غاز تودیږي |
| Ich fahre gerne mit der Bahn. | په اورګاډي کې تګ زما خوښیږي |
| Er fährt mit dem Auto. | هغه په موټر کې ځي |
| Er schreibt mit dem Bleistift. | هغه پهٔ پنسل باندې لیکل کوي |
| Er hat sich die Hände mit der Seife gewaschen. | هغه خپل لاسونه پهٔ صابون پرېمینځل |
| Er ist mit dem Fahrrad gefahren. | هغه پهٔ بایسکل ولاړ |

### (c) د یو احساس یا د یو چلند د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Sie aßen mit Appetit. | هغوی پهٔ اشتها ډوډی وخوړله |
| Mit großer Freude habe ich deinen Brief erhalten. | پهٔ ډېره خوشحالی ما ته ستا لیک راورسېد |
| Sie lag mit Fieber im Bett. | د هغې تبه وه او په کټ کې پرته وه |

### (d) د یو ځانګړي وخت یا د یوې شیبې د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Mit der Zeit wurde sie ungeduldig. | هغه د وخت په تېرېدو سره بې حوصله شوه |
| Mit 20 Jahren machte er sein Examen. | هغه په شل کلنی کې له ازموینې نه فارغ شو |
| mit [dem] Einbruch der Dunkelheit | د تورتم یا د تیارې د راتلو سره سم |
| Sie starb mit 80 Jahren. | هغه په اتیا کلنی کې مره شوه |
| Mit dem heutigen Tag ist die Frist abgelaufen. | سر له نن نه هغه ټاکل شوې موده پای ته ورسېدله |

### (e) په اصطلاحاتو کې (mit) په هره جمله کې بېله بېله مانا لري

| | |
|---|---|
| Ich war mit dabei. | زه یکې وم، زه هلته شامل وم، ما یکې برخه درلودله |
| Ich bin mit von der Partie. | زه یکې یم، زه یکې ګډون کوم، زه ورسره یم |
| Was ist los mit dir? | پهٔ تا څهٔ شوي؟ پهٔ تا باندې څهٔ چل شوی؟ |

| | |
|---|---|
| Es geht bergauf mit ihm. | د هغه وضع مخ په ښه کېدو ده |
| Raus mit euch! | تاسو له دې ځايه ووځئ (له يوه ځايه د يو چا د شړلو لپاره ويل کيږي) |

## n a c h

په لغوي مانا (nach) (له يو شي نه وروسته) او هم (يوې خوا يا يو اړخ) ته وايي، خو په لاندې برخه کې له (a) نه تر (f) پورې (nach) په نورو ماناګانو استعمال شوی دي:

**(a) د يو ځای د ښودلو لپاره** (بې له Artikel)، له (nach) نه وروسته يو نوم راځي

| | |
|---|---|
| Wir gehen jetzt nach Hause. | مونږ اوس کور ته ځو |
| Er fliegt morgen nach Amerika. | هغه سبا امريکې ته ځي |
| Der Zug fährt von Hamburg nach München. | اورګاډی له همبورګ نه مونشن ته ځي |

**(b) د يوې خوا يا يوې مخې ښودلو لپاره**
په دې مانا (nach) له قيدونو سره راځي، له (nach) نه وروسته يو قيد يا (Adverb) راځي

| | |
|---|---|
| Bitte kommen Sie nach vorne. | تاسو مهرباني وکړئ او وړاندې راشئ |
| Fahren Sie hier nach links und dann geradeaus. | تاسو دلته کيڼ لاس ته ولاړ شئ او بيا مخامخ ځئ |
| Ein Stein fällt immer nach unten. | يوه تيږه هر وخت لاندې خوا ته ولويږي |

**(c) کله چې يو کار د يو وخت له تېرېدو نه وروسته کيږي**
د ورځو اومياشتو د ښودلو لپاره بې له (Artikel)

| | |
|---|---|
| Nach Weihnachten will er uns besuchen. | له کرسمس نه وروسته هغه زمونږ ليدو ته راځي |
| Ich bin erst nach Anfang März wieder in Frankfurt. | د مارچ د مياشتي له پيل نه وروسته زه بېرته په فرنکفورت کې يم |
| Nach Freitag nächster Woche habe ich wieder etwas mehr Zeit. | د راتلونکي اونۍ د جمعې ورځې نه وروسته بيا زه لږ څه ډېر وخت لرم |
| Es ist 5 Minuten nach 12. | د دولس بجو نه پنځه دقيقې تيرې دي |
| Er kam nach 2 Stunden wieder. | هغه ۲ ساعته وروسته بيرته راغی |
| Nach wenigen Minuten war alles vorbei. | يو څو دقيقې وروسته هر څه پای ته رسيدلي وو |

**(d) د يوې مودې يا د يو وخت د ښودلو لپاره**
له (nach) نه وروسته (Artikel) راځي

| | |
|---|---|
| Nach dem 1. April wird nicht mehr geheizt. | د اپريل د لومړۍ نېټې نه وروسته بخاری نه تودول کيږي |
| Der Dichter wurde erst nach seinem Tode anerkannt. | دا شاعر له مړيني نه يې وروسته په رسميت وپيژندل شو |
| Nach dem Regen schien wieder die Sonne. | له باران نه وروسته بيا بيرته لمر وشو |

**(e) د يو شي په اساس، په مطابق** (له اسم نه مخکې او هم وروسته راتلی شي)

| | |
|---|---|
| Dem Protokoll nach hat er folgendes gesagt … | د پروتوکول سره سم هغه دا خبره کړېده |
| Nach dem Gesetz darf er das nicht tun. | د قانون په اساس هغه دي ته اجازه نلري |
| Meiner Meinung nach ist der Satz richtig. | زما په فکر دا جمله صحيح ده |
| Du sollst nach Vorschriften handeln. | ته به اصولو سره سم چلند کوې |

**(f) د وار د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Nach ihm bist du dran. | له هغۀ نه وروسته ستا وار دی |
| Nach Berlin ist Hamburg die zweitgrößte Stadt Deutschlands.<br>له برلين نه وروسته همبورګ د جرمني له ټولو نه ستر ښار دی | |

**(g) د ځينو فعلونو سره (nach) په جبري ډول راځي**

| | |
|---|---|
| Das Kind griff nach seiner Mutter. | ماشوم خپلي مور ته لاس وغځو |
| Ich frage nach dem Weg. | زه د لاري پوښتنه کوم |
| Er strebt nach Ruhm. | هغه شهرت موندلو ته هڅه کوي |
| Ich sehne mich sehr nach meinen Kindern. | خپل ماشومان زما ډېر راپه ياديږي |

## n e b s t

**د يو شي سره مل، د يو شي سره يوځای**

| | |
|---|---|
| Er verkaufte mir das Haus nebst Garage. | هغه دا کور د ګراج سره په ما خرڅ کړو |
| Er kam nebst seinen Angehörigen. | هغه د خپل بالبچ سره راغی |
| Dieses Haus nebst Garten ist zu verkaufen. | دا کور سره د باغچې خرڅول کيږي |

## s a m t

**د يو چا يا د يو شي سره، د چا سره مل، يوځای**

| | |
|---|---|
| eine Blume samt Wurzeln | يو ګل له ريښو سره |
| Er kam samt seiner Familie. | هغه له خپلې کورنۍ سره راغی |
| Samt seinem Sohn besuchte er das Museum. | هغه د خپل زوی سره د موزيم ليدو ته ولاړ |

## s e i t

**(a) د يوې مودې د ښودلو لپاره چې له هغې نه وروسته يو څه پيلېږي**
(له Artikel سره او بې له Artikel هم راځي)

| | |
|---|---|
| Er ist seit Freitag krank. | هغه د جمعې ورځې راهيسي ناروغ دی |
| Seit Anfang August hat er wieder eine Arbeitsstelle.<br>د اګست د مياشتي د پيل راهيسي هغه يو کار پيدا کړی دی | |
| Seit der Geburt seines Sohnes interessiert er sich für Kinder.<br>د هغه د زوی د زېږېدني راهيسي هغه له ماشومانو سره علاقه لري | |
| Seit einem Monat warte ich auf eine Nachricht von euch.<br>يوه مياشت کيږي چې زه ستاسو يو احوال ته په تمه يم | |

| | |
|---|---|
| Seit dem 21. März haben wir Frühling. | د مارچ د میاشتي د ۲۱ نېټي راهیسي پسرلی دی |
| Er lebt seit Kurzem hier. | هغه د لنډې مودې راهیسي دلته اوسیږي |
| Das versucht er seit Jahren. | هغه له کلونو راهیسي په دې هڅه کې دی |
| Seit wann bist du wieder hier? | ته له کوم وخت راهیسي بېرته دلته يې؟ |

(b) په ځینو اصطلاحاتو کې

| | |
|---|---|
| seit eh und | له ډېر پخوا راهیسي |
| Darüber ist seit eh und je viel geschrieben worden.<br>په دې برخه کې له ډېر پخوا راهیسي ډېر څه لیکل شوي دي | |

## v o n

په لغوي مانا (von) (له یو چا نه) او (له یو ځای نه) ته وايي، خو په لاندینیو جملو کې له (a) نه تر (h) پورې نورې ماناګاني يې لیدل کېدی شي.

(a) د یو ځای د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Der Wind weht von Westen. | باد له لوېدیځ لوري نه راځي |
| Das Regenwasser tropft vom Dach. | د باران اوبه له بامه راڅخیږي |
| Der Zug fährt von Gleis 1. | اورګاډی له لومړی پټلی نه ځي |
| von Norden nach Süden | له شمال نه جنوب ته |

(b) د یوې نېټې د ښودلو لپاره، د یوې مودې د ښودلو لپاره

| | |
|---|---|
| Vom 30.06. bis zum 15.08. haben wir Ferien.<br>د جون له ۳۰ نېټې نه د اګست تر ۱۵ نېټې پورې زمونږ رخصتي ده | |
| Ich danke Ihnen für Ihren Brief vom 20.03.2013.<br>زه ستاسو د ۲۰۱۳ کال د مارچ د شلمې نېټې لیك نه مننه کوم | |
| von morgens bis abends | له سهار نه تر ماښامه پورې |

(c) د یو چا یا د یو شي د خواصو یا د هویت یا د مسلك د ښودلو لپاره
په داسي جملو کې له (von) نه وروسته یو قید یا (Präposition) راځي

| | |
|---|---|
| Er ist ein Mann von Charakter. | هغه یو د کرکټر خاوند سړی دی |
| Er ist von auswärts. | هغه له بهر نه راغلی دی (د دې ځای نه ندی) |
| ein Mädchen von großer Schönheit | یوه له ډېر ښایست نه ډکه نجلۍ |
| Er ist Lehrer von Beruf. | په مسلك کې هغه ښوونکی دی |

(d) د یو ځای د شروع کېدلو لپاره
په داسي حالاتو کې له (von) نه وروسته یو اسم او له اسم نه وروسته یو بل (Präposition) راځي

| | |
|---|---|
| Von Amerika aus sieht man das ganz anders. | په امریکه کې خلك دې ته بل شان نظر کوي |
| Von 12 Uhr an ist das Büro geschlossen. | له دولس بجو نه وروسته دفتر تړلی دی |
| die Entfernung von der Erde zum Mond | له ځمکې نه تر سپوږمۍ پورې فاصله |

| | |
|---|---|
| Er wusste von Anfang an Bescheid. | هغه له اوله خبر و |

**(e) د يو شي يا د يو کار د اصلي فاعل يا کوونکي د ښودلو لپاره په (Passiv) حالت کې**

| | |
|---|---|
| Er ist von den Matrosen gerettet worden. | هغه د سمندري عسکرو له خوا وژغورل شو |
| Sie wurde von ihrem Vater gelobt. | د هغې پلار د هغې ستاینه وکړه |
| Er wurde von einem Auto angefahren. | هغه يو موټر ووهه |

**(f) د يو (Genitivattribut) په ځای**

| | |
|---|---|
| Sie roch den Rauch von Zigaretten. | د هغې په پوزه د سگرټو د لوگي بوی ولگېدو |
| Ist das Taschentuch von dir? | دا دسمال ستا دی؟ |
| Das ist das Buch von meiner Lehrerin. | دا کتاب زما د ښوونکي دی |

**(g) د يو صفت يا (Adjektivattribut) په ځای**

| | |
|---|---|
| eine wichtige Frage – eine Frage von Wichtigkeit | يوه مهمه پوښتنه ـ يوه له اهميت نه ډکه پوښتنه |
| ein zehnjähriges Kind – ein Kind von zehn Jahren | يو لس کلن ماشوم ـ يو د لسو کالو ماشوم |
| der Hamburger Senat – der Senat von Hamburg | د همبورگ د سنا مجلس |

**(h) په اصطلاحاتو کې له نورو (Präpositionen) سره**

| | |
|---|---|
| von wegen | نه بابا، حقيقت داسې نه دی |
| von vornherein | له اوله، د اول نه |
| von alters her | له ډېر پخوا راهيسې |
| vonseiten = von Seiten | د يوچا له پلوه، له اړخه، له طرفه |
| Wir haben von uns aus nichts dagegen. | زمونږ له اړخه ورسره څه مخالفت نشته |
| von Tag zu Tag, von Jahr zu Jahr | ورځ په ورځ، کال په کال |
| von heute auf morgen | له نن نه سبا ته (په يوه ورځ يا په يوې شپې کې) |
| von mir aus | زما بې يکې څه، زه يکې څه غرض نلرم، زما له پلوه څه خنډ نشته) |

## zu

**(a) يو هد□ په لور، د يو ځای د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Gehen Sie doch endlich zum Arzt. | تاسو خو آخر يو ځل ډاکټر ته ولاړ شئ |
| Er lief zu seiner Mutter. | هغه خپلې مور ته ورمنډه کړه |
| Am Freitag komme ich zu dir. | د جمعې په ورځ زه تا ته درځم |
| Ich gehe noch schnell zur Bank. | زه ژر غونډې بانك ته ځم |

**(b) د يو وخت د ښودلو لپاره** (له Artikel سره او بې له Artikel هم)

| | |
|---|---|
| Zu Weihnachten bleiben wir zu Hause. | په کرسمس کې مونږ په کور کې پاتې کيږو |
| Zu meiner Zeit galten noch andere Werte. | زما په وخت کې نور ارزښتونه موجود وو |

| | |
|---|---|
| Er hat seiner Tochter das Haus noch zu seinen Lebzeiten vererbt. | هغه دا كور د خپل ژوندانه په وخت كې خپلي لور ته په ميراث وركړی و |
| Zu dieser Zeit reiste man mit Kutschen. | په دغه وخت كې خلكو په ګاډيو كې سفرونه كول |
| Zu deinem Geburtstag kann ich leider nicht kommen. | ستا كليزې ته زه له بده مرغه نشم درتلی |

**(c) د يو هد□ يا د يو قصد د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Zum Beweis möchte ich folgende Zahlen bekannt geben … | د ثبوت لپاره زه غواړم چې لاندينی شمېرې اعلاني كړم |
| Zum besseren Verständnis muss man folgendes wissen … | د ښه پوهېدلو لپاره بايد سړی په دې پوه شي چې ... |

**(d) د يو احساس ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Zu meinem Bedauern muss ich Ihnen mitteilen, dass … | په خواشينی سره زه بايد تاسو ته دا خبر دركړم چې ... |
| Ich tue das nicht zu meinem Vergnügen. | دا كار زه د خوند اخيستلو لپاره نكوم |

**(e) د يو بدلون يا تغير د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| Unter Druck wurden die organischen Stoffe zu Kohle. | د فشار لاندې عضوي مواد په سكرو بدل شول |
| Endlich kommen wir zu einer Einigung. | ايله په ايله چې مونږ موافقې ته رسيږو |

**(f) د يوې شمېرې يا د عددونو د تناسب د ښودلو لپاره**

| | |
|---|---|
| zu 50%, zu einem Drittel | په سلو كې 50 ، پنځوس سلنه - په درېمه برخه |
| Das Spiel endete 3 zu 1. | لوبه 3 په 1 پای ته ورسېدله |
| etwas zur Hälfte aufessen | د يو شي نيمايي برخه خوړل |
| zu einem großen Teil | ډېره برخه، تر ډېرې برخې پورې |

**(g) په اصطلاحاتو كې** (له Artikel سره او بې له Artikel هم)
په دې جملو كې د (zu) نه وروسته تل يو اسم راځي

| | |
|---|---|
| zu Hause sein | په كور كې اوسېدل |
| zu Wasser und zu Lande | د اوبو او د وچې له لارې |
| jemandem zu Füßen sitzen | د يوچا د پښو تر څنګ ناست اوسېدل |
| zu Mittag | په غرمه كې |
| zu Anfang des Jahres | د كال په سر كې |
| zu Boden fallen | په مځكه غورځېدل |
| zu Gott beten | خدای ته سجده كول |
| zu Ende sein | پای ته رسېدل |
| die Nacht zum Tag machen | تو له شپه ويښ پاتې كېدل |

## zufolge

**(a) د یو شي په اساس یا په مطابق، د یو شي سره سم** (ورنه مخکې یو اسم له Dativ سره راځي)

| | |
|---|---|
| seinem Wunsch zufolge. … | د هغه له هیلې سره سم … |
| Einem Gerücht zufolge will er heiraten. | د يوې اوازې له مخې هغه غواړي چې واده وکړي |
| Den Experten zufolge war die Unterschrift gefälscht. | د متخصصينو د نظر سره سم دا لاسليك جعلي دی |

**(b) د یو شي له مخې، د یو شي سره سم** (له zufolgeا نه وروسته Genitiv راځي)

| | |
|---|---|
| zufolge seines Befehls | د هغه د امر سره سم |
| Zufolge eines Gerüchts geht die Fabrik bald pleite. | د يوې ګنګوسې له مخې دا فابريكه په لنډو كې سقوط كوي |

**Übungen:**

Setzen Sie die fehlenden Präpositionen ein.

| ab | am | aus | bei | mit | nach | seit | von | zu |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

1. Möchtest du heute Abend …… mir ins Kino gehen?
ته غواړې چې نن ماښام له ما سره سينما ته ولاړ شې؟
2. Hast du heute …… der Schule schon etwas vor?
ته نن له ښوونځي نه وروسته څه كار لرې؟
3. Diese Möbel stammen …… dem 17. Jahrhundert.
دا فرنيچر د اولسمې پيړۍ د وخت نه دی
4. Wo ist dein Bruder? – Er ist …… seinem Freund.
ستا ورور چیرته دی؟ ـ هغه د خپل ملګري په كور كې دی
5. Der Student aus London ist erst …… zwei Wochen in Deutschland.
له لندن نه راغلی محصل دوه اونۍ كيږي چې په جرمني كې دی
6. …… Freitag wollen die Arbeiter streiken.
د جمعې په ورځ كارګران غواړي چې اعتصاب وكړي
7. Meine Haare sind zu lang. Ich muss dringend …… Frisör.
زما ويښته اوږده شويدي. بايد ضرور نايي ته ولاړ شم
8. Woher kommst du gerade? – Ich komme gerade …… meinem Freund.
ته همدا اوس له كوم ځای نه راغلې؟ زه همدا اوس د خپل ملګري له كوره راغلم
9. …… der neuen Brille siehst du richtig intelligent aus.
له نوو عينكو سره ته ښه ذكي ښكارې
10. Josef, holst du mir bitte eine Flasche Wasser …… dem Kühlschrank?
يوسفه، ته به دا مهرباني وكړې چې ما ته د يخچال نه يو بوتل اوبه راوړې؟

**Lösungen**:

1. mit 2. nach 3. aus 4. bei 5. seit 6. am 7. zum 8. von 9. mit 10. aus

**Übung:** Setzen Sie die fehlenden Präpositionen ein.

| aus | bei | für | gegen | mit | nach | seit | vor | zu |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

1. Ein Dieb nimmt das Geld …… der Tasche. يو غل له بکس نه پیسي راالخلي
2. …… diesem Wetter schickt man keinen Hund vor die Tür.
په داسي هوا کي هیڅ څوك سپی دروازي مخي ته نه لیږي
3. Der Vogel ist …… eine Glasscheibe geflogen.
مرغه د یو ښیښه اي دېوال په لور والوتلو
4. Ich muss jetzt gehen. Um 23:00 Uhr muss ich …… Hause sein.
زه باید اوس ولاړ شم. زه باید د شپې په یوولس بجو په کور کي واوسم
5. Ich habe keine Lust mehr. Ich möchte jetzt …… Hause gehen.
نور نو زما زړه نکیږي. زړه مي کیږي چي همدا اوس کور ته ولاړ شم
6. Der kleine Junge hat keine Angst …… großen Tieren.
دا وړوکی هلك له سترو ښاروېو نه نه ډاریږي
7. …… ihrer Kindheit braucht das Mädchen eine Sehhilfe.
له ماشومولی راهیسي دا نجلی یوې عینکې ته اړه ده
8. Das Dorf liegt …… München. دا کلی د مونشن تر څېرمه پروت دی
9. Unser Nachbar geht täglich …… seinem Hund im Park spazieren.
زمونږ ګاونډی هره ورځ له خپل سپي سره په چکر ګرځي
10. …… wen ist das Geschenk? دا سوغات له چا لپاره دی؟

**Lösungen:**

1. aus 2. bei 3. gegen 4. zu 5. nach 6. vor 7. seit 8. bei 9. mit
10. für

**Übungen:**

Setzen Sie die fehlenden Präpositionen. Deklinieren Sie die Artikelwörter. Das Subjekt setzen Sie bitte auf Position 1.
Beispiel: spazieren gehen / der Mann / uns / in der Stadt
Lösung: Der Mann geht mit uns in der Stadt spazieren.

1. gehen / wir / der / Vorlesung / in / das / Restaurant/ .
مونږ له ډوډۍ نه وروسته رستوران ته ځو
2. wohnen / der / Student / im/ Studentenheim / noch / .
محصل تر اوسه لا د خپل مور او پلار په کور کي اوسیږي
3. wollen / fliegen / wir / im / Sommer / Amerika / .
مونږ غواړو چي په اوړي کي امریکې ته په الوتکه کې ولاړ شو
4. fahren / ich / am / Mittwoch / der / Zug / Berlin / .
زه د چارشنبې په ورځ په اورګاډي کي برلین ته ځم
5. kommen / mein Vater/ morgen / endlich / das / Krankenhaus / .
زما پلار ایله په ایله سبا له روغتون نه راځي

6. liegen / Gauting / München / .                                    ګوتینګ د مونشن تر څېرمه پروت دی
7. arbeiten / der Manager / Bayer / schon / seit / 10 / Jahren / .
دا منجر د لسو کالو راهیسي د بایر په کمپنۍ کي کار کوي
8. sein / die Unterschrift / nicht / mir / .                                    دا لاسلیك زما ندی
9. müssen / gehen / du / der / Arzt / morgen / .                                    ته باید سبا ډاکټر ته ولاړ شي
10. wollen / gehen / die Fabrikarbeiter / jetzt / Hause / .
د فابریکي کارګران غواړي چي اوس کور ته ولاړ شي

**Lösungen**:

1. Wir gehen nach der Vorlesung in das Restaurant.
2. Der Student wohnt noch im Studentenheim.
3. Wir wollen im Sommer nach Amerika fliegen.
4. Ich fahre am Mittwoch mit dem Zug nach Berlin.
5. Mein Vater kommt morgen endlich aus dem Krankenhaus.
6. Gauting liegt bei München.
7. Der Manager arbeitet schon seit 10 Jahren bei Bayer.
8. Die Unterschrift ist nicht von mir.
9. Du musst morgen zum Arzt gehen.
10. Die Fabrikarbeiter wollen jetzt nach Hause gehen.

**Präpositionen mit Akkusativ oder Dativ**

| an |
|---|

د یو ځای د ښودلو لپاره (زیاتره وخت د یو شي سره د لګېدو یا د تماس په وخت)

**(a) کله چي یوه پوښتنه کیږي چي (چېرته = wohin) نو بیا جمله د (Akkusativ) سره راځي**

| | |
|---|---|
| Er hängte das Bild an die Wand.<br>Frage: Wohin hängte er das Bild? | هغه دا عکس په دېوال ځوړند کړو<br>هغه عکس چېرته ځوړند کړو؟ |
| Wir setzen uns an den Tisch.<br>Frage: Wohin setzen wir uns? | مونږ د مېز په څنګ کي کښېنو<br>مونږ چېرته کښېنو |
| Wir fahren ans Meer.<br>Frage: Wohin fahren wir? | مونږ د بحر غاړي ته ځو<br>مونږ چېرته ځو؟ |
| Er schreibt das Wort an die Tafel.<br>Frage: Wohin schreibt er das Wort? | هغه دا کلمه په تختي لیکي<br>هغه دا کلمه چېرته لیکي؟ |
| Wir gehen jetzt an den See.<br>Frage: Wohin gehen wir jetzt? | مونږ اوس لوی ډنډ (جهیل) ته ځو<br>مونږ اوس چېرته ځو؟ |

**(b) کله چي یوه پوښتنه کیږي چي (چېرته = wo) نو بیا جمله له (Dativ) سره راځي**

| | |
|---|---|
| Wir sitzen am Tisch.<br>Frage: Wo sitzen wir? | مونږ د مېز تر څنګ ناست یو<br>مونږ چېرته ناست یو؟ |
| An der Grenze werden die Pässe kontrolliert.<br>Frage: Wo werden die Pässe kontrolliert? | په سرحد کي پاسپورتونه کنټرولیږي<br>پاسپورتونه چېرته کنټرولیږي؟ |
| Das Bild hing an der Wand. | عکس په دېوال کي ځوړند و |

| | |
|---|---|
| Frage: Wo hing das Bild? | عکس چېرته ځوړند و؟ |
| Frankfurt liegt am Main. | د فرنکفورت ښار د ماین د سیند په غاړه پروت دی |
| Frage: Wo liegt Frankfurt? | فرنکفورت چېرته پروت دی؟ |
| Die Sonne steht schon hoch am Himmel. | لمر پاس په اسمان کې دی |
| Frage: Wo steht schon die Sonne? | لمر اوس چېرته دی؟ |

**(c) د مهال، د نېټي او د اونی د ورځو د ښودلو لپاره له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Am Abend kannst du mich immer zu Hause erreichen. | د ماښام له مخې ته تل ما په کور کې پیدا کوی شې |
| Sie ist am 03. März 2000 geboren. | هغه د ۲۰۰۰ کال د مارچ په دریمه نېټه زیږېدلې ده |
| Am Freitagnachmittag ist um 4 Uhr Dienstschluss. | د جمعې په ماسپښین په څلورو بجو نوکري پای ته رسیږي |
| Am Anfang schuf Gott Himmel und Erde. | په لومړي سر کې خدای اسمان او ځمکه خلق کړل |
| Am Monatsende wird das Geld oft knapp. | د میاشت په پای کې زیاتره وخت پیسې کمیږي |

**(d) د (an die ...) په ډول د (تقریباً یا څه نا څه) په مانا، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Es waren an die fünfzig Gäste anwesend. | څه نا څه پنځوس مېلمانه حاضر وو |
| Die Villa hat an die 20 Zimmer. | په دې مانۍ کې څه ناڅه شل کوټې شته |
| Er hat an die 40 Euro verloren. | له هغه نه څه نـا څه ۴۰ یورو ورک شول |

**(e) د (an ... vorbei) په ډول د (د یو چا له څنګ نه تېر) په مانا د (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Er ging an mir vorbei, ohne mich zu erkennen. | بې له دې چې هغه ما وپېژني، هغه زما له څنګ نه تېر شو |
| Er fuhr heute an der Unfallstelle vorbei. | هغه نن د ټکر له ځایه تېر شو |
| Sind wir schon an Berlin vorbei? | مونږ له برلین نه تېر شوي یو؟ |

**(f) په اصطلاحاتو کې**

| | |
|---|---|
| Ich an deiner Stelle hätte anders gehandelt. | ستا په ځای به ما بل شان چلند کړی وای |
| An meiner Stelle hättest du genauso gehandelt. | زما په ځای به تا هم همدا شان چلند کړی وای |

## auf

په لغوي مانا (auf) (د یو شي دپاسه) ته وایي، خو په لاندې جملو کې له (a) تر (k) پورې به تاسو نورې ماناګانې یې هم وګورئ

**(a) د یو ځای د ښودلو لپاره.** کله چې پوښتنه کیږي چې (چېرته = wohin) له (Akkusativ) سره

| | |
|---|---|
| Er legt das Buch auf den Tisch. | هغه کتاب په مېز باندې ږدي |
| Frage: Wohin legt er das Buch? | هغه کتاب چېرته ږدي؟ |
| Plötzlich lief das Kind auf die Straße. | یوناځاپه ماشوم سړک ته ورمنډه کړه |
| Frage: Wohin lief das Kind plötzlich? | ماشوم یوناځاپه چېرته وځغستل؟ |
| Er legte seine Hände auf meine. | هغه خپل لاسونه زما په لاسونو کېښودل |
| Frage: Wohin legte er seine Hände? | هغه خپل لاسونه چېرته کېښودل؟ |

**(b) د يو ځای د ښودلو لپاره، کله چې پوښتنه کيږي چې (چېرته = wo) له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Das Buch liegt auf dem Tisch.<br>Frage: Wo liegt das Buch? | کتاب په مېز بانـدې پروت دی<br>کتاب چېرته پروت دی؟ |
| Auf dem Heimweg ereignete sich ein Unfall.<br>Frage: Wo ereignete sich ein Unfall? | کور ته د تګ په لار کې يو ټکر وشو<br>چېرته يو ټکر وشو؟ |
| Er sitzt auf einer Parkbank.<br>Frage: Wo sitzt er? | هغه د پارك په يوې چوکۍ ناست دی<br>هغه چېرته ناست دی؟ |
| Die Vase steht auf der Fensterbank.<br>Frage: Wo steht die Vase? | ګلدان په تاخچه کې دی<br>ګلدان چېرته دی؟ |
| Ich habe ihn auf der Reise kennengelernt.<br>Frage: wo hast du ihn kennengelernt? | زه د هغه سره په سفر کې اشنا شوم<br>له هغه سره ته چېرته اشنا شوی يې؟ |

**(c) د يوې مودې د ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Vom Freitag auf Samstag übernachten wir im Hotel.<br>له جمعې نه تر شنبې پورې مونږ په هوټل کې شپه تېرووو | |
| Dieses Gesetz gilt auf Zeit, nicht auf Dauer. | دا قانون د مؤقت وخت لپاره دی، نه تل لپاره |
| Der erste Weihnachtstag fällt auf einen Freitag. | د کرسمس لومړی ورځ جمعه ده |
| Er ist auf ein paar Tage verreist. | هغه د څو ورځو لپاره په سفر تللی دی |
| Kommen Sie doch auf ein paar Minuten herein. | تاسو د يو څو دقيقو لپاره راددننه شئ |

**(d) يو لوري ته د يو حرکت د ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Der Enkel ist auf die Großmutter zugelaufen. | لمسي نيا ته ورمنډه کړه |
| Langsam ging er auf sie zu. | هغه په کراره کراره د هغې په لوري ولاړ |

**(e) د (auf … hin) په توګه د يوې مخکينۍ خبرې د ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Auf diesen Bericht hin müssen wir unsere Meinung korrigieren.<br>د دې رپوټ په اساس مونږ بايد خپل نظر بدل کړو | |
| Er wurde auf alle möglichen Krankheiten hin untersucht.<br>څه ناروغی چې شته، هغه د دې ټولو ناروغيو په اړوند معاينه شو | |
| Selbst auf die Gefahr hin, dass ich hungrig zu Bett gehe: Den Spinat esse ich auf keinen Fall. زه دا خطر په غاړه اخلم چې په وږې نس به ګټ ته ځم، خو پالك نه خورم | |
| Auf die Beschwerden der Nachbarn hin wurde der lästige Mann festgenommen.<br>د ګاونډيانو د شکايتونو په وجه دا مزاحم سړی ونيول شو | |

**(f) د (auf … hinaus) په توګه د يوې اوږدې مودې د ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Er hatte sich auf Jahre hinaus verschuldet. | هغه ځان کلونه کلونه پوروړی کړی و |
| Dieses Thema wird uns noch auf Jahre hinaus beschäftigen.<br>دا موضوع به کلونه کلونه زمونږ سر خوږوي | |
| Auf Jahre hinaus wird unsere Nationalmannschaft unschlagbar sein.<br>زمونږ ملي لوبډلې ته به کلونه کلونه څوك ماتې ورنکړی شي | |

(g) په اصطلاحاتو کې، له (Akkusativ) سره

| | |
|---|---|
| Er warf einen Blick auf den Zeugen und erkannte ihn sofort. | هغه شاهد ته یو نظر واچو او سمدلاسه یې وپېژندو |
| Auf die Dauer kann das nicht gut gehen. | د تل لپاره دا په ښه شان پرمخ تللی ونشي |
| Wir müssen uns endlich auf den Weg machen. | مونږ باید آخر روان شو |
| Er unterhält sich auf Deutsch. | هغه په **جرمني** ژبه غږیږي |
| ein Glas Wasser auf einen Schluck austrinken | یو ګیلاس اوبه په یو غرب تېرول |
| Das Haus muss auf jeden Fall verkauft werden. | په هر حالت چې وي، دا کور باید خرڅ شي |
| Das stimmt auf den Cent genau! | دا تر وروستي سنته پورې ټیک دي |

(h) **د یو شي د کېدلو د ډول ښودلو لپاره** (چې یو شی په کوم شان کیږي)

| | |
|---|---|
| Auf einmal ging die Tür auf. | یوناڅاپه دروازه پرانیستل شوه |
| Wie sagt man das auf Deutsch? | دا په جرمني ژبه څنګه ویل کیږي؟ |
| Der Dieb wurde auf der Flucht erschossen. | غل د تېښتې په وخت وویشتل شـو |
| auf elegante Art | په ماهرانه ډول، په ښایسته ډول |
| Er hat alles auf einmal gegessen. | هغه ټول شیان په یوځل وخوړل |

(i) **د تآکید او د یو شي د زیات ښودلو لپاره د یو لغت دوه ځلي تکرار لپاره**

| | |
|---|---|
| Welle auf Welle | د یوې څپې پسې بله څپه، څپه په څپه |
| Es folgte Angriff auf Angriff. | بې له دمې له یوې جملې پسې بله حمله کېدله |
| Schlag auf Schlag | پرله پسې، بې له دمې، د یو پسې ډېر ژر بل |

(j) **د ځینو فعلونو سره په جبري ډول (auf) له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| auf jemanden achten | په یو چا پام کول |
| sich auf jemanden/etwas freuen | یو چا یا یو شي ته خوښ اوسېدل |
| auf jemanden böse sein | په یو چا په قهر اوسېدل |
| auf jemanden warten | یو چا ته انتظار ویستل |

(k) **په اصطلاحاتو کې، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Auf der einen Seite habe ich dabei viel Geld verloren, auf der anderen Seite habe ich eine wichtige Erfahrung gemacht. | له یوې خوا ډېرې پیسې زما له لاسه ولاړې، له بلې خوا ما یوه مهمه تجربه وکړه |
| auf der Suche nach jemandem/etwas | د یو چا یا د یو شي په لټه کې |
| jemanden auf einem Ball kennenlernen | له یو چا سره په یو ستر محفل کې پېژندګلوي کېدل |
| auf Wiedersehen! | د خدای په امان |

## hinter

په لغوی مانا (hinter) (د یو شي شاته یا وروسته) ته وایي، خو په لاندې جملو کې له (a) نه تر (f) پورې په نورو ماناګانو کې هم استعمالیږي

(a) **د یو ځای د ښودلو لپاره**، کله چې پوښتنه کیږي چې (چېرته = wohin) ، له (Akkusativ) سره

| | |
|---|---|
| Stell das Fahrrad hinter das Haus. | ته دا بایسکل د کور شاته ودروه |
| Frage: Wohin soll ich das Fahrrad stellen? | زه بایسکل چېرته ودروم؟ |
| Das Buch ist hinter das Bücherregal gefallen. | کتاب د کتابونو د الماری شاته ولېدلی دی |
| Frage: Wohin ist das Buch gefallen? | کتاب چېرته ولېدلی دی؟ |

**(b) د یو ځای د ښودلو لپاره،** کله چې پوښتنه کیږي چې (چېرته = wo) ، له (Dativ) سره

| | |
|---|---|
| Das Motorrad steht hinter der Garage. | موټرسایکل د ګراج شاته ولاړ دی |
| Frage: Wo steht das Motorrad? | موټرسیکل چېرته ولاړ دی؟ |
| Er stand hinter mir. | هغه زما شاته ولاړ و |
| Frage: Wo stand er? | هغه چېرته ولاړ و؟ |

**(c) د یو چا سره د ملاتړ ښودلو لپاره، له (Akkusativ)** سره

| | |
|---|---|
| Er stellte sich hinter mich. | هغه زما ملاتړ وکړو، هغه زما پلوي وکړه |
| Die Gewerkschaft stellt sich hinter ihre Mitglieder. | د کارګرانو ټولنه د خپلو غړو پلوي کوي |

**(d) د یو چا سره د ملاتړ ښودلو لپاره، له (Dativ)** سره

| | |
|---|---|
| Die Beamten stehen hinter ihrem entlassenen Kollegen. | مامورین د خپل شړل شوی همکار ملاتړ کوي |
| Wer steht hinter diesem Mann? | د دې سړي شا ته څوک ولاړ دی؟ څوک یې ملاتړ کوي؟ |

**(e) د (hinter … zurück) او (hinter …her) په توګه، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Der Hund lief hinter den Wanderern her. | سپی د لارو پسې روان شو |
| hinter der Entwicklung zurückbleiben | له پرمختګ نه شاته پاتې کېدل |
| Sie blieb hinter der Gruppe der Wanderer zurück. | هغه د لارو له ډلې نه شاته پاتې شوه |

**(f) په اصطلاحاتو کې**

| | |
|---|---|
| hinter jemandes Rücken | د یو چا شاته ، د یو چا په غیاب کې |
| hinter Schloss und Riegel | بندي شوی، زنداني |
| Er ist noch nicht trocken hinter den Ohren. | هغه لا خام (بې تجربه ) دی |
| Er hat es faustdick hinter den Ohren. | هغه ډېر چلباز دی |
| hinter etwas drei Kreuze machen | ډېر خوښېدل چې یو سخت کار تېر شي |
| einen hinter die Ohren bekommen | وهل کېدل |
| Das kannst du dir hinter die Ohren schreiben. | ته دا ډېر ښه په یاد وساته چې بیا دې هېر نشي |
| Das kannst du dir hinter den Spiegel stecken. | ته دا ښه په حافظه کې وساته |
| jemanden hinters Licht führen | یو څوک غولول، یو چا سره ټګي کول |
| hinterm Mond leben | له هر شي نه بالکل بې خبره اوسېدل (لکه په سپوږمۍ کې ژوند کول) |
| sich einen hinter die Binde gießen | الکول څښل |

## i n

په لغوي مانا (in) (پکي يا په يو شي کې) ته وايي، خو په لاندې برخه کې تاسو له (a) تر (h) پورې نورې ماناګانې يې ګورئ

**(a) د يو ځای د ښودلو لپاره، کله چې پوښتنه وشي چې (چېرته = wohin) ، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Sie ist ins Bett gegangen.<br>Frage: Wohin ist sie gegangen? | هغه ويده شوه، کټ ته ولاړه<br>هغه چېرته ولاړه؟ |
| Die Bäume wachsen in die Höhe.<br>Frage: Wohin wachsen die Bäume zusehends? | ونې مخ په جګېدو دي<br>ونې کوم ځای ته وده کوي ؟ |
| Ab morgen gehst du in die Schule.<br>Frage: Wohin gehst du ab morgen? | سر له سبا به ته ښوونځي ته ځې<br>سر له سبا به ته چېرته ځې؟ |
| Er hängte die Jacke in den Schrank.<br>Frage: Wohin hängte er die Jacke? | هغه کرتی په الماری کې ځوړنده کړه<br>هغه کرتی چېرته ځوړنده کړه؟ |

**(b) د يو ځای د ښودلو لپاره، کله چې پوښتنه وشي (چېرته = wo) ، د (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Die Jacke hängt im Schrank.<br>Frage: Wo hängt die Jacke? | کرتی په الماری کې ځوړنده ده<br>کرتی چېرته ځوړنده ده؟ |
| Die Villa steht in einem alten Park.<br>Frage: Wo steht die Villa? | دا مانی په يو زوړ پارک کې ده<br>دا مانی چېرته ده؟ |
| Der Schlüssel steckt immer noch im Schloss.<br>Frage: Wo steckt der Schlüssel immer noch. | کيلي اوس هم لا په کلپ کې نښتې ده<br>کيلي اوس هم لا چېرته نښتې ده؟ |
| Er war in der Schule.<br>Frage: Wo war er? | هغه په ښوونځي کې و<br>هغه چېرته وو؟` |
| Das Rathaus liegt in der Mitte der Stadt.<br>Frage: wo liegt das Rathaus? | ښاروالي د ښار په مينځ کې پرته ده<br>ښاروالي چېرته پرته ده؟ |
| In der Schachtel ist ein Schatz verborgen.<br>Frage: wo ist ein Schatz verborgen? | په کوتی کې يوه خزانه پټه ده<br>چېرته يوه خزانه پرته ده؟ |

**(c) د وخت د ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| In der letzten Woche war er krank. | په تېرې اونی کې هغه ناروغ و |
| In einer Stunde ist Mittagspause. | په يو ساعت کې د غرمې دمه ده |
| In einem Jahren wird er zurückkehren. | په يو کال کې به هغه بېرته راشي |
| In zwei Tagen bin ich wieder gesund. | په دوه ورځو کې زه بېرته روغ يم |
| Der Zug wird in ein paar Minuten eintreffen. | اورګاډی به په يو څو دقيقو کې راورسيږي |
| Das Buch wird in Kürze erscheinen. | کتاب به په لنډو کې له چاپه راوځي |
| In diesem Sommer hat es viel geregnet. | په دې اوړي کې ډېر باران وشو |

**(d) د يوې ليکل شوې نسخې او يا د يو چا د خبرو د ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| In der Verfassung ist festgelegt, dass … | په اساسي قانون کې درج شوي دي چې ... |
| In seiner Rede sagte der Staatspräsident, … | ولسمشر پخپله وينا کې ووېل ... |

**(e) د احساس یا د یو حالت د ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| In seiner Verzweiflung machte er eine Dummheit. | د نهیلیتوب (ناامېدۍ) له لاسه هغه حماقت وکړو |
| In ihrer Angst sprangen einige Schiffspassagiere ins Meer. | د ډار له لاسه د بېړۍ ځینو مسافرینو بحر ته ټوپ کړو |
| In seinen Familienverhältnissen ist nichts geregelt. | د هغه د کورنۍ په حالاتو کې هیڅ شی سم نه دي |
| In diesem Zustand kann man den Patienten nicht in die Klinik transportieren. | په دې حالت کې رنځور روغتون ته بیول کېدی نشي |

**(f) د یوې مودې د ښودلو لپاره، له (in) نه مخکې (bis) راځي، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Seine Erinnerungen reichen bis in die früheste Kindheit zurück. | د هغه خاطرات تر وړوکي ماشوملۍ پورې رسيږي |
| Sie feierten bis in den frühen Morgen. | هغوی تر سهاروختي پورې خپل محفل ولمانځو |
| Er schrieb bis in die Nacht hinein. | هغه تر نیمې شپې پورې لیکل وکړل |

**(g) د یو شي د څرنګوالي یا د کېدلو د ډول ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Er geht in Stiefeln. | هغه په موزو کې ځي |
| Das erscheint in vielen Farben. | دا په ډېرو رنګونو کې راوځي |
| In Wirklichkeit war alles ganz anders. | په واقعیت کې دا بالکل بل شان و |
| Er war in Schwierigkeiten. | هغه په مشکلاتو کې و |

**(h) په اصطلاحاتو کې ، له (Dativ) سره** (بې له Artikel)

| | |
|---|---|
| Er ist in Not. | هغه اړ دی، هغه په سخته کې دی، محتاج دی |
| Du bist in Gefahr. | ته په خطر کې یې |
| Ich bin in Eile. | زه په بېړه کې یم |
| Du gerätst bald in Schwierigkeiten. | ته به په لنډ وخت کې په مشکلاتو اخته شي |
| Das Gesetz tritt in einem Monat in Kraft. | قانون یوه میاشت وروسته نافذ کیږي |
| Er ist in Ohnmacht gefallen. | هغه ضعف وکړو، هغه بې هوښه شو |

## n e b e n

د (neben) لغوی مانا (د یو شي په څنګ کې) او (پرته له) ده چې په (Dativ + Akkusativ) کې کارول کیږي

**(a) د یو ځای د ښودلو لپاره، کله چې پوښتنه چې وشي چې (چېرته = wohin) له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Er setzte sich neben mich. | هغه زما په څنګ کې کېناستو |
| Ich setze mich neben ihn. | زه د هغه په څنګ کې کېناستم |
| Der Bräutigam stellte sich neben die Braut. | د واده زلمی د ناوې په څنګ کې ودرېد |
| Er legte das Besteck neben den Teller. | هغه کاشوغه او پنجه د قاب په څنګ کې کېښود |

**(b) د یو ځای د ښودلو لپاره، کله چې پوښتنه چې وشي چې (چیرته = wo) د (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Er steht neben mir. | هغه زما پهٔ څنګ کې ولاړ دی |
| Sie wohnen neben uns. | هغوی زمونږ پهٔ څنګ کې اوسیږي |
| Neben dem Rathaus befindet sich ein Hotel. | د ښاروالي تر څنګ یو هوټل دی |
| Der Stall liegt rechts neben dem Haus. | غوجل د کور په ښي اړخ کې پروت دی |

**(c) له یو شي نه پرته، علاوه په یو شي، له (Dativ) سره**

| |
|---|
| Neben seinem Vermögen hat er noch eine Rente.<br>د خپلي شتمنی په څنګ کې هغه تقاعدي معاش هم لري |
| Neben anderen Möglichkeiten gibt es auch diese Möglichkeit.<br>د نـورو امکاناتـو تر څنګ دا امکانات هم شته |
| Neben seinem Lohn verdient er noch sehr viel durch verschiedene Arbeiten.<br>د خپل معاش نه پرته هغه پهٔ ځینو نورو کارونو هم ډېـري پیسي ګټي |
| Neben den genannten Argumenten sollte man auch berücksichtigen, dass …<br>د دې یاد شوو دلایلو په څنګ کې سړی باید په نظر کې ونیسي چې ... |

## ü b e r

د (über) لغوي مانا (د یو شي دپاسه) او (د یو شي په برخه کې) ده، خو په راتلونکي برخه کې له (a) نه تر (l) پورې نورې ماناګاني یې لیدی شي.

**(a) د یوې لارې د ښودلو لپاره چې دغه لار د یو ځای له مینځ نه تیریږي، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Sie entkamen über die Grenze. | هغوی د سرحد له لارې و تښتیدل |
| Wir sind über die Dörfer gefahren. | مونږ د کلو له لار ولاړو |
| Der Zug fährt nicht über Berlin. | اورګاډی د برلین پهٔ لار نهٔ ځي |
| Die Kinder liefen zunächst über die Straße und dann über die Brücke.<br>ماشومان لومړی له سړك نه او بیا له پله نه تیر شول | |

**(b) ښودل چې یو شی د بل شي دپاسه دی او ورنه اوږد هم دی، له (Dativ) او (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Sie trägt den Mantel über dem Kleid. | هغې د لمن دپاسه بالاپوش اغوستی دی |
| Er zog seine Mütze über die Ohren. | هغه خپله خولی تر غوږونو پورې ښکته کړه |
| Nebel liegt über der Wiese. | د چمن دپاسه لړه ده |
| Dicke Wolken lagen über den Berggipfeln. | د غرونو د څوکو دپاسه ګڼې وریځې وې |

**(c) ښودل چې یو شی د یو بل شي دپاسه راشي او بل شی پرې پټ شي، له (Akkusativ) سره**

| |
|---|
| Können Sie bitte die Decke über den Tisch ausbreiten?<br>تاسو کولی شئ چې سرمیزي د میز دپاسه هواره کړئ؟ |
| Er zog den Pulli über sein Hemd. — هغه بنین د کمیس دپاسه واغوست |
| Er legte die Jacke über den Stuhl. — هغه کرتی د چوکی دپاسه کیښودله |

**(d) ښودل چې یو شی لمس شي او د یو بل شي دپاسه تېرشي، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Die Hand strich über ihr Haar | د هغې د وېښتو دپاسه لاس رانښکل شو |
| Der Wind strich über die Felder. | د پټو دپاسه باد ولګېدو |
| Tränen liefen ihr über das Gesicht. | د هغې پهٔ مخ اوښکې بهېدې |

**(e) د تېرېدو د یوې لارې ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Das Flugzeug flog über den Wolken. | الوتکه د ورېځو دپاسه والوتله |
| Ich will morgen über den Platz gehen. | زه غواړم چې سبا له دې انګړ نه تېر شم |
| Sie fuhr über die Brücke. | هغه له پله نه تېره شوه |
| Er schwamm über den See. | هغه له دې ستر ډنډ نه په لامبو تېر شو |

**(f) د یو شي یا د یو ځای د موقعیت ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Die Lampe hängt über dem Tisch. | څراغ د مېز دپاسه ځوړند دی |
| Kabul liegt 1800 m über dem Meer. | کابل له بحر نه ۱۸۰۰ متره جګ پروت دی |
| Sie wohnen über uns. | هغوی زمونږ د کور دپاسه اوسيږي |

**(g) د یوې مودې د ښودلو لپاره له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Den ganzen Tag über hat er nur geschlafen. | هغه ټوله ورځ خوب کړی دی |
| Den Winter über verreisen wir nicht. | مونږ په ژمي کې سفر نه کوو |
| Übers Wochenende sind wir zu Hause. | د اونۍ په آخر کې مونږ په کور کې یو |

**(h) له یو حد نه د یو شي د زیاتوالي ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Er ist über 90 Jahre alt. | د هغه عمر د نوي کالو نه اوښتی دی |
| Das geht über meine Kräfte. | دا کار زما د وسې نه لوړ کار دی، زه ورته ناتوانه یم |
| Sein Referat war über alle Erwartungen gut. | د هغه کنفرانس له توقع نه ډېر ښه و |
| Die Temperatur liegt über dem Gefrierpunkt. | د حرارت درجه د کنګل و هلو نه پورته ده |

**(i) د یوې موضوع د ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Die Schüler haben einen Aufsatz über die Sonnenenergie geschrieben.<br>زده کوونکو د لمر د انرژۍ په برخه کې یوه مقاله ولیکله | |
| Über die Französische Revolution gibt es verschiedene Meinungen.<br>د فرانسې د انقلاب په برخه کې مختلفې مفکورې موجودې دي | |
| eine Zeitschrift über Technik | د تخنيك په برخه کې یوه مجله |

**(j) هغه بل اړخ ته د یو شي موقعیت ښودل، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Meine Freunde wohnen über der Straße. | زما ملګري د سړك په هغه بله غاړه کې اوسيږي |
| Unsere Verwandten leben über den Bergen.<br>زمونږ خپلوان د غرونو هغه بل اړخ کې ژوند کوي | |

**(k) له پورته نه لاندې او يا له لاندې نه پورته خواته، د يو حد ښودلو لپاره، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Hier versinkst du über die Knöchel im Schlamm. | دلته ته تر ښنګرو پورې په خټه کې ډوبېږې |
| Der Rock reicht über das Knie. | په دې لمن باندې ځنګونونه پټيږي |
| Der Fluss tritt über die Ufer. | د سيند اوبه د سيند له غاړې نه رابهر وځي |
| Die Milch läuft über den Rand der Tasse. | شوده د پيالې له غاړې نه بهر راوځي |

**(l) په اصطلاحاتو کې**

| | |
|---|---|
| über und über rot werden | رنګ له حده ډېر سور کېدل |
| Er wurde über und über müde. | هغه له حده ډېر ستړی شو |
| Er fand Fehler über Fehler in dem Diktat. | هغه په املا کې له حده ډېرې غلطۍ پيدا کړې |
| Der Dieb ist längst über alle Berge. | غل ډېر وخته تښتېدلی او له نظره پناه شوی دی |
| mit jemandem über Kreuz liegen | د يو چا سره په شخړه کې اوسېدل |
| Er sitzt über seinen Büchern. | هغه پخپلو کتابو کار کوي |
| über Nacht | يو ناڅاپه، نابېره، د توقع په خلاف |
| Er wurde über Nacht Millionär. | هغه يو ناڅاپه ميليونر شو |

## u n t e r

په لغوي مانا (unter) (د يو شي لاندې ) ته وايي، خو په لاندې برخو کې له (a) نه تر (e) پورې به نورې ماناګانې يې تاسو وګورئ

**(a) د يو ځای د ښودلو لپاره چې ادا ځای د بل ځای يا د بل شي لاندې وي، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Die Schlange kroch unter den Busch. | مار د بوټو لاندې ولاړ |
| Sie legte mir ein Kissen unter den Kopf. | هغې زما د سر لاندې يو بالښت کېښود |
| Ich stelle mich jetzt unter die Dusche. | زه اوس د شاور لاندې ودرېږم (شاور کوم) |
| Was kriecht da unter den Tisch? | دلته څه شی د ميز لاندې په سينه ښوييږي؟ |
| Leg bitte den Brief unter das Buch. | ته مهرباني وکړه دا ليک د کتاب لاندې کېږده |
| Wir müssen den Tisch unter die Lampe stellen. | مونږ بايد ميز د څراغ لاندې ودروو |
| Der Löffel ist unter den Schrank gefallen. | کاشوغه د الماری لاندې ولوېدله |
| Die Henne nahm ihre Küken unter ihre Flügel. | چرګې خپل چرګوړي د خپلو وزرونو لاندې کړل |

**(b) د يو ځای د ښودلو لپاره چې ادا ځای د بل ځای يا د بل شي لاندې وي، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Die Katze sitzt unter dem Schrank. | پيشو د الماری لاندې ناسته ده |
| Der Bauer sitzt unter einem Baum. | بزګر د يوې ونې لاندې ناست دی |
| Der Brief liegt unter dem Buch. | ليك د کتاب لاندې ايښی دی |
| Der Keller liegt unter dem Erdgeschoss. | تاکاو د ځمکې د سطحې لاندې دی |
| Er trägt einen Pullover unter dem Mantel. | هغه د بالاپوش لاندې يو بنين اغوستی دی |

(b) د يوې ځانګړې شمېرې نه د لږوالي ښودلو لپاره، له (Dativ) سره

| | |
|---|---|
| Das hast du unter Wert verkauft. | دا شی تا له ارزښت نه په ټيټه بيه خرڅ کړو |
| Kinder unter zehn Jahren sollten täglich nicht mehr als eine Stunde fernsehen. | له لسو کالو نه کم عمره ماشومان بايد د ورځې د يو ساعت نه ډېر ټلويزيون ونه ګوري |
| Nachts sank die Temperatur unter null Grad. | د شپې له مخې د حرارت درجه له صفر نه ټيټه شوه |
| In Mengen unter 100 Stück wird nichts verkauft. | د سل دانو نه په لږه کچه هيڅ شی نه خرڅول کيږي |

(c) په يوې ډلې کې د يو کس يا د يو شي د ښودلو لپاره، له (Dativ) سره

| | |
|---|---|
| Zum Glück war unter den Reisenden ein Arzt. | له نيکه مرغه د مسافرينو په ډله کې يو ډاکټر و |
| sich unter das Publikum mischen | د خلکو په مينځ کې ځان ورګډول |
| Es gab Streit unter den Erben. | د وارثانو تر مينځ شور ماشور وشو |
| Unter anderem sagte der Redner, … | د نورو خبرو په څنګ کې وياند وويل ... |
| Unter den Studenten gab es rege Diskussionen. | د محصلينو په مينځ کې سخته لانجه وشوه |
| etwas unter Männern besprechen | د يو څه په برخه کې له نارينو سره خبرې کول |
| Hier bin ich einer unter vielen. | دلته د ډېرو خلکو په ډله کې يو تن زه يم |

(d) د يوې خبرې يا موضوع د شرايطو ښودلو لپاره ، له (Dativ) سره

| | |
|---|---|
| Unter diesen Umständen müssen wir mit einer Preiserhöhung rechnen. | په داسي شرايطو کې مونږ بايد د نرخونو د لوړېدو په تمه واوسو |
| Es ist unmöglich, unter solchen Bedingungen zu arbeiten. | د داسي شرايطو لاندې کار کول ناشوني دي |
| Unter dieser Voraussetzung kann ich Ihren Vorschlag annehmen. | په دغه شرط زه ستا وړانديز منلی شم |
| Es gibt keinen Grund, unter Zwang zu leben. | دي ته کوم دليل نشته چې د فشار لاندې څوک ژوند وکړي |
| Er hat unter Lebensgefahr mein Leben gerettet. | هغه ځان ته د مرګ په خطره زما ژوند له مرګه بچ کړو |
| Unter Schmerzen wirst du deine Kinder gebären. | ته به په دردونو کې خپل ماشومان وزيږوې |
| Ich bin unter Tränen eingeschlafen und unter Tränen wieder aufgewacht. | زه په اوښکو ويده شوی يم او په اوښکو بېرته ويښ شوی يم |

(e) د يو شي د علت ښودلو لپاره ، له (Dativ) سره

| | |
|---|---|
| Er leidet unter heftigen Schmerzen. | هغه په سختو دردونو کړيږي |
| Sie stöhnte unter der Hitze. | هغه د ګرمی له لاسه په زګېروي شوه |

(f) د يوې مودې د ښودلو لپاره ، له (Dativ) سره

| | |
|---|---|
| Unter der Woche hat sie keine Zeit. | د اونۍ په مينځ کې هغه هيڅ وخت نلري |

| | |
|---|---|
| Unter Mittag habe ich eine Stunde frei. | د غرمي له مخې زه يو ساعت وزګار يم |
| Unter Tags lege ich mich gar nicht hin. | د ورځې له مخې زه هېڅکله نه څملم |

(f) په اصطلاحاتو کې ، له (Dativ + Akkusativ) سره

| | |
|---|---|
| etwas unter den Teppich kehren | د يوې سختې خبرې د حلولو په ځای ورځينې سترګې پټول |
| etwas unter Kontrolle bringen | يو شی د کنټرول لاندې راوستل |
| etwas unter der Hand verkaufen | يو شی په پټه (په تور بازار کې) خرڅول |
| Er ist unter dieser Telefonnummer nicht zu erreichen. هغه په دې ټېلفون شمېره نه پيدا کيږي | |
| Das geschah unter seinem Kommando. | دا کار د هغه د قوماندې لاندې وشو |

## v o r

په لغوی مانا (vor) (د يو شي نه مخکې يا وړاندې) ته وايي، خو په لاندې برخه کې له (a) نه تر (e) پورې به تاسو نورې ماناګانې وګورئ

**(a) د يو ځای ښودلو لپاره چې د دې ځای په مخکې يو څه وي، له (Akkusativ) سره**

| | |
|---|---|
| Beim Gähnen soll man die Hand vor den Mund halten. د اړرمي کښلو په وخت بايد سرى د خولې مخې ته لاس ونيسي | |
| Stell die Schuhe vor die Tür. | ته بوټان د دروازې مخې ته کېږده |
| Er stellte mir den Koffer vor die Füße. | هغه بکس زما د پښو په مخکې کېښود |
| So kann ich doch nicht vor meinen Vater treten. | زه خو د خپل پلار مخې ته نشم ودرېدلی |
| Er wollte das Pferd vor den Wagen spannen. | هغه غوښتل چې آس د ګاډی مخکې وتړي |
| Stell dich einmal vor den Spiegel. | ته يو ځل د هنداري مخې ته ودرېږه |
| Er trat vor 5 Minuten vor das Haus. | هغه پنځه دقيقې دمخه د کور مخ ته راودرېدو |

**(b) د يو ځای د ښودلو لپاره چې د دې ځای په مخکې يو څه وي ، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Das Taxi hielt vor unserem Haus. | ټکسي زمونږ د کور مخې ته ودرېدو |
| In der Schlange standen noch viele Leute vor mir. په کتار کې ډېر کسان له ما نه مخکې ولاړ وو | |
| Wir standen vor verschlossener Tür. | مونږ د تړلې دروازې مخې ته وو |
| Plötzlich stand er vor mir. | هغه يوناڅاپه زما پۀ مخکې ولاړ و |
| Kannst du vor dem Kino auf mich warten? ته کوی شې چې د سينما مخې ته ما ته انتظار وباسې؟ | |
| Sie steht vor dem Spiegel. | هغه د هندارې په مخکې ولاړه ده |

**(c) د يو وخت ښودلو لپاره چې له دې نه دمخه يو څه پيښ شوي وي، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Vor drei Minuten hat er angerufen. | هغه درې دقيقې دمخه ټيلفون وکړو |
| Der Zug ist 10 Minuten vor 8 abgefahren. | اورګاډی لس دقيقې کم اته بجې ولاړ |
| Er hat kurz vor der Prüfung sein Studium abgebrochen. هغه له ازموينې نه لنډ وخت مخکې خپل تحصيل خوشې کړو | |
| einen Tag vor seiner Abreise | د هغۀ له سفر نه يوه ورځ دمخه |

| | |
|---|---|
| Er kommt nicht vor dem Abend. | هغه له ماښام نه مخکې نه راځي |
| Jetzt ist es fünf Minuten vor sieben Uhr. | اوس پنځه کم اوه بجې دي |

**(d) د یو شي د وجې یا لامل ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Vor Schreck fiel er in Ohnmacht. | هغه د ډار له لاسه ضعف وکړو |
| Er konnte vor Freude nicht sprechen. | د خوشحالۍ له لاسه هغه خبرې نشوې کولی |
| Er zittert vor Angst. | هغه د ډار له لاسه رپېږي |
| Mein Herz stand still vor Schreck. | زما زړه د ډار له لاسه ودرېد |
| Sie weinte vor Wut. | هغې د قهر له لاسه ژړل |
| Sie errötete vor Scham. | هغه له شرمه شوه |
| In dem Zimmer war vor lauter Qualm nichts zu sehen. په دې کوټه کې د ډېر لوګي له لاسه بل هېڅ شی نه ښکاره کېدو | |

**(e) په اصطلاحاتو کې**

| | |
|---|---|
| Gnade vor Recht ergehen lassen. | یو څوک ښښل، معافول، یو چا ته سزا نه ورکول |
| Ihm läuft vor Ärger die Galle über. | د قهر له لاسه د هغه خېټه په درد شوه |
| Er sieht den Wald vor lauter Bäumen nicht. | د ډېرو نښو له لاسه اصلي نښه نه شول لیدلی |
| vor allem/vor allen Dingen | له هر څه نه مخکې |

## zwischen

په لغوي مانا (zwischen) (په مینځ کې یا ترمینځ) ته وایي چې له (Dativ + Akkusativ) سره کارول کیږي.

(a) د یو ځای ښودلو لپاره چې دغه ځای د دوه ځایونو تر مینځ وي، کله چې پوښتنه وشي چې (wo)، له (Dativ) سره

(b) د یو ځای ښودلو لپاره چې دغه ځای د دوه ځایونو تر مینځ وي، کله چې پوښتنه وشي چې (wohin)، له (Akkusativ) سره

| | |
|---|---|
| Er will die Garage zwischen die beiden Häuser bauen. هغه غواړي چې د دې دواړو کورونو تر مینځ ګراج جوړ کړي | |
| Frage: Wohin will er die Garage bauen? | هغه چېرته غواړي چې ګراج جوړ کړي؟ |
| Sie steckte den Brief zwischen die Seiten ihres Buches. هغې دا لیک د خپل کتاب د پاڼو تر مینځ کېښود | |
| Frage: Wohin steckte er den Brief? | هغه دا لیک چېرته کېښود |
| Er stellte sich zwischen meinen Sohn und mich. | هغه زما د زوی او زما تر مینځ ودرېد |
| Frage: Wohin stellte er sich? | هغه چېرته ودرېد؟ |
| Die Mutter stellte sich zwischen die beiden Töchter. مور د دواړو لونو په مینځ کې ودرېدله | |
| Frage: Wohin stellte sie sich? | هغه چېرته ودرېدله؟ |

**(c) د دوه وختونو یا دوه شمېرو ترمینځ د یوې پېښې د ځرګندولو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Zwischen den Halbzeiten eines Fußballspiels liegt eine Pause von fünfzehn Minuten. | د یوې فوټبال لوبې په نیمایي برخه کې یوه پینځلس دقیقه ایزه دمه وي |
| Wir gehen zwischen neun und zehn Uhr. | مونږ د نهو او لسو بجو تر مینځ ځو |
| Das geschah zwischen dem 1. und 5. Mai. | دا پېښه د مې د لومړۍ او پینځمې نېټې تر مینځ وشوه |
| Die Temperatur soll morgen zwischen 20 und 30 Grad liegen. | سبا به د تودوخې درجه د شلو او دېرشو درجو تر مینځ وي |
| Der Preis liegt zwischen 80 und 100 Euro. | نرخ د اتیا او سل یورو ترمینځ دی |
| Er ist zwischen 50 und 60 Jahre alt. | د هغه عمر د پنځوسو او شپېتو کالو تر مینځ دی |

**(d) د دوه کسانو تر مینځ د اړیکو ښودلو لپاره، له (Dativ) سره**

| | |
|---|---|
| Zwischen den beiden wurden Blicke gewechselt. | د دوی دواړو تر مینځه نظرونه بدل شول |
| zwischen zwei Parteien vermitteln | د دوه ګوندونو تر مینځ مینځګړتوب کول |
| Es gibt häufig Streit zwischen ihnen. | د هغوی تر مینځ ډېر وخت شخړه وي |
| Die Verbindung zwischen uns ist abgerissen. | زمونږ تر مینځ اړیکې شکېدلې دي |
| Zwischen all den vielen Leuten fallen wir gar nicht auf. | د دومره ډېرو خلکو په مینځ کې مونږ ته څوك نه متوجه کېږي |

**(e) په اصطلاحاتو کې**

| | |
|---|---|
| zwischen Tür und Angel | په ډېره بیړه او په وارختایی |
| zwischen zwei Stühlen sitzen | د دوه کسانو ترمینځ نیوهېدل چې له کوم یو سره ملګرتوب وشي |
| zwischen den Zeilen lesen | په هغو کنایو او په پټو اشارو ځان پوهول چې په لیکل شو کرښو کې په ځرګند ډول ندي لیکل شوي |

**کله له (Dativ) او کله له (Akkusativ) نه کار واخیستل شي؟**

ځنګه چې په پورتنیو مثالونو کې لیدل کیږي، ځینې (Präpositionen) له (Dativ) سره او ځینې له (Akkusativ) سره استعمال شول. نو سړی څه پوهیږي چې کوم وخت له (Dativ) او کله له (Akkusativ) نه کار واخلي؟ ځواب دا دی چې د دې لپاره څو قاعدې دي:

① کله چې په یو فعل کې خوځېدل یا حرکت نه وي، یعني له یو ځای نه بل ځای ته د ځای بدلېدل نه وي، او د پوښتنې لپاره په (wo?) پوښتنه وشي، نو په دې وخت کې له (Dativ) نه کار اخیستل کیږي. په بل عبارت کله چې سړي پوښتنه وکړي چې یو څوك یا یو شی چېرته دی، په کوم حالت کې دی، نو په دغه وخت کې له (Dativ) نه کار اخیستل کیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Frage: | Wo hängt das Bild? | پوښتنه: عکس چېرته ځوړند دی؟ |
| Antwort: | Das Bild hängt an der Wand. | ځواب: عکس په دېوال کې ځوړند دی |

② کله چې په یو فعل کې خوځېدل یا حرکت وي، یعني له یو ځای نه بل ځای ته د ځای بدلېدل راپېښ شي، او د پوښتنې لپاره په (wohin?) پوښتنه وشي، نو په دې وخت کې له (Akkusativ) نه کار اخیستل

کیږي. په پښتو کې داسې ویل کیږي چې کله چې د یو شي د حالت په برخه کې داسې پوښتنه وشي چې په پلانکي شي باندې ځه وشي او یا په پلانکي شي باندې یو ځوك ځه کوي، یعنې په یو شي باندې تل یو ځه کیږي، نو په دې وخت کې (Akkusativ) استعمالیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Frage: Wohin hängte sie das Bild? | پوښتنه: هغې عکس چېرته ځوړند کړو؟ |
| Antwort: Sie hängte das Bild an die Wand. | ځواب: هغې عکس په دېوال ځوړند کړو |

③ که چېرته په یو فعل کې خوځېدل یا حرکت وي، خو له یو کور یا له یوې سیمې نه بلې سیمې ته تګ پکې نه وي، یعنې دا کور بدل نشي او حرکت په همدې یو کور یا په یوې سیمې کې وي، نو دلته سره له دې چې حرکت موجود دی، نو بیا هم (Dativ) استعمالیږي. دا نو ولې؟ دمخه خو یاده شوه چې حرکت چې پکې وي، هلته (Akkusativ) راځي. ځواب دا دی چې دلته سړی پوښتنه کوي چې (wo?). مثال:

| | |
|---|---|
| Frage: Wo läuft er herum? | هغه په کوم ځای کې ډېخوا او هغه خوا ګرځي؟ |
| Antwort: Er läuft in der Schule herum. | هغه په ښوونځي کې دېخوا او هغه خوا ګرځي |

④ که چېرته په یو فعل کې خوځېدل یا حرکت وي، خو دا حرکت داسې وي یو ځوك د یو کور نه بل کور ته او یا د یوې سیمې نه بلې سیمې ته ولاړ شي، یعنې کور یا سیمه بدله شي نو دلته (Akkusativ) استعمالیږي، ځکه چې سړی دلته دا سوال کوي چې (wohin?). مثال.

| | |
|---|---|
| Frage: Wohin gehst du? | پوښتنه : ته چېرته ځې؟ |
| Antwort: Ich gehe in die Schule. | ځواب: زه ښوونځي ته ځم |

⑤ ځیني فعلونه شته چې په هغو کې نه حرکت شته او نه د کور یا د سیمې بدلېدل شته، خو هغه بیا هم له (Akkusativ) سره استعمالیږي. دا نو ولې؟ علت دا دی چې داسې فعلونه د (Akkusativ) له (Präposition) سره کارول کیږي، نو کله چې د یو فعل سره (Präposition) راغې، نو بیا یوازینۍ فیصله پخپله د همدې (Präposition) په لاس کې ده چې له (Dativ) سره راځي او که له (Akkusativ) سره. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich freue mich sehr über deinen Besuch. | زه ستا په راتګ ډېر خوښ یم |
| Ich warte bis morgen auf dich. | زه تر سبا پورې تا ته انتظار وباسم |

دا چې ولې په دې حالت کې له (Akkusativ) نه کار اخیستل کیږي، دې لپاره کوم دلیل نشته. یوازینۍ دلیل یې دا دی چې دا د فعل پورې اړه لري، لکه (یو شي ته خوښ اوسېدل = sich freuen über) . دا فعل تل له (Akkusativ) سره یو ځای کارول کیږي. په دې وجه کله چې سړی د (sich freuen) لغت زده کوي، باید سمدلاسه ورسره دا زده کړي چې دا فعل له (Akkusativ) سره استعمالیږي.

⑥ ځیني فعلونه شته چې په هغو کې نه حرکت او نه سکون شته، دا فعلونه تش د یو چا حالت بیانوي، خو تل له (Dativ) سره استعمالیږي. علت دا دی چې د دې فعلونو (Präposition) د (Dativ) غوښتنه کوي، مثال:

| | |
|---|---|
| Er hat Angst vor dem Hund. | هغه له سپي نه ډاریږي |
| Das Kind hat Sehnsucht nach seinem Vater. | ماشوم خپل پلار پسې خپه دی |

څنګه چې دلته ښکاري، دا فعلونه هروخت له (Dativ) سره استعمالیږي:

| | |
|---|---|
| Angst haben vor + *Dativ*<br>له یو چا یا یو شي نه ډارېدل | Sehnsucht haben nach + *Dativ*<br>یو چا پسې خپه اوسېدل |

⑦ ځیني فعلونه شته چې هغه له (Dativ او Akkusativ) سره راتلی شي او دواړه صحیح دي، مثال:

| |
|---|
| Warum hast du dich in deinem *(Dativ)* Zimmer eingeschlossen?<br>تا ولې ځان په خپله کوټه کې کلپ کړو؟ |
| Warum hast du dich in dein *(Akkusativ)* Zimmer eingeschlossen?<br>تا ولې ځان په خپله کوټه کې کلپ کړو؟ |

ځنګه چې په پورتنیو جملو کې ښکاري، (sich einschließen = ځان په یو ځای کې کلپول) له (Dativ) او (Akkusativ) سره د (in) له (Präposition) سره استعمالېدلی شي چې د دواړو ډولو استعمال یې صحیح دی.

## Stellung der Präpositionen د نسبتي حرفونو دریځ یا د استعمال ځای

### 1. Vor den Substantiven/Pronomen stehende Präpositionen:

① په عمومي ډول (Präpositionen) له اسم ، ضمیر او له قید نه مخکې راځي، یعني لومړی (Präposition) یادیږي او وروسته اسم او یا ضمیر. مثال:

| | |
|---|---|
| Vor dem Haus schläft ein Hund. | د کور په مخکې یو سپی ویده دی |

په پورتنۍ جمله کې لومړی (vor) راغلی چې (Präposition) دی او وروسته (dem Haus) چې د (Dativ) حالت دی.

| | |
|---|---|
| *Bei* ihm findet man nichts. | د هغه سره سرې هیڅ شی نشي موندلی |

په پورتنۍ جمله کې لومړی (bei) راغلی چې (Präposition) دی او وروسته (ihm) چې ضمیر دی.

| | |
|---|---|
| *Seit* gestern regnet es nicht mehr. | د پرون راهیسې باران نه وریږي |

په پورتنۍ جمله کې لومړی (seit) راغلی چې (Präposition) دی او وروسته (gestern) چې قید دی.

### 2. Nach den Substantiven/Pronomen stehende Präpositionen:

② په ځینو حالاتو کې (Präposition) د اسم یا د ضمیر نه وروسته راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Tu es deiner Mutter *zuliebe*. | ته د خپلې مور په خاطر دا وکړه |

په پورتنۍ جمله کې (zuliebe = په خاطر) چې (Präposition) دی له (Mutter) نه وروسته راغلی چې اسم دی.

| | |
|---|---|
| Ich gehe nur dir *zuliebe* hin. | زه تش ستا په خاطر هلته ورځم |

په پورتنۍ جمله کې (zuliebe) چې (Präposition) دی، له (dir) نه وروسته راغلی چې ضمیر دی.
نور (Präpositionen) چې له اسم یا له ضمیر نه وروسته راځي دا دي: (halber, zuwider)

| | |
|---|---|
| Dem Abkommen *zuwider* griff er doch ein. | د تړون په خلاف هغه بیا هم مداخله وکړه |
| Er ist dringender Geschäfte *halber* verreist.<br>هغه د ډېر عاجلو سوداګریزو معاملاتو له کبله په سفر تللی دی | |

**3. Vor oder nach den Substantiven/Pronomen stehende Präpositionen:**

③ ځینې (Präpositionen) شته چې کله له اسم یا له ضمیر نه مخکې او کله وروسته راځي. مثال:

| |
|---|
| *Entgegen* eurem Rat fahren wir noch heute weg.<br>ستاسو د مشورې په خلاف مونږ همدا نن ځو |

دلته (entgegen) یو (Präposition) دی چې له ضمیر نه مخکې راغلی دی. بل مثال:

| |
|---|
| Dem Antrag des Staatsanwaltes *entgegen* wurde er freigesprochen.<br>د څارنوال د غوښتنلیك په خلاف هغه برائت واخیستو |

په پورتنی جمله کې (entgegen) یو (Präposition) دی چې له (Staatsanwalt = څارنوال) نه چې یو اسم نه وروسته راغلی دی.

نور (Präpositionen) چې کله له اسم یا له ضمیر نه مخکې او کله وروسته راځي، دا دي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| entlang | gegenüber | nach | ungeachtet | wegen | zufolge |
| په اوږدو کې | په وړاندې | وروسته له | چې په نظر کې ونه نیول شي | په وجه | په اساس |

4. **Zweiteilige Präpositionen**

④ ځینې (Präpositionen) شته چې له دوه برخو نه جوړ شوي دي، لومړۍ برخه یې له اسم یا له ضمیر نه مخکې او دوهمه برخه یې له اسم یا له ضمیر نه وروسته راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| *um* seiner Verdienste *willen* | د هغه د خدمتونو په خاطر |
| Er hat es *um* seines Bruders *willen* getan. | هغه دا کار د خپل ورور په خاطر وکړو |

دلته (um …. willen) دوه برخه ایزه (Präposition) دی، مانا یې ده (د یو چا په خاطر). د دې (Präposition) لومړۍ برخه (um) له ضمیر او اسم، یعنې له (seiner Verdienste) نه مخکې راغلې او دوهمه برخه یې، یعنې (willen) د همدې ضمیر او اسم نه وروسته راغلې ده . نور مثالونه:

| | |
|---|---|
| *von* Jugend *an/auf* | د ځوانۍ راهیسې |
| Ich bin *von* Jugend *an/auf* daran gewöhnt. | د ځوانۍ راهیسې دا زما عادت ګرځېدلی دی |

دلته ( von … auf) لکه د پورتني مثال په شان دوه برخه ایز (Präposition) دی.

| | |
|---|---|
| *vom* ersten Tag *an* | له لومړۍ ورځې راهیسې |
| *Vom* Frühjahr *an* wurde das Wetter besser. | د پسرلي له پیل نه هوا ښه شوه |

دلته (vom … an) دوه برخه ایز (Präposition) دی :

| | |
|---|---|
| پاملرنه | ځینې (Präpositionen) شته چې له دوه خپلواکو (Präpositionen) نه جوړ شوي دي او خوا په خوا راځي، نو له دې کبله له اسم یا له ضمیر نه مخکې راځي. دا به لاندې وګورو: (bis zu … = تر … پورې) او یا (bis nach … = تر … پورې) |

مثال:

| | |
|---|---|
| Das hält *bis zu* 10 Jahren. | دا تر لس کالو پورې دوام کوي |
| Die Polizei folgte seiner Spur von München *bis nach* Hamburg.<br>پولیسو د هغه پل له مونشن نه تر همبورګه پورې تعقیب کړو | |

## 5. Auf etwas zuvor Geäußertes verweisende lexikalisierte Formen

⑤ کله کله له ځينو (Präpositionen) سره نور حروف يوځای کيږي چې د يوې پخوا يادې شوې جملې يا د يوې پخوا يادې شوې موضوع په بنسټ ولاړ وي، مثال: (demgegenüber) يعنې (د دې په خلاف يا د دې په وړاندې). لاندينی جملې ته وګورئ:

| demgegenüber د دې په خلاف يا د دې په وړاندې |
|---|
| Die Beweise meines Gegners sind so überzeugend, dass ich *demgegenüber* nichts mehr zu sagen habe. زما د سيال دلايل دومره قانع کوونکي وو چې پـه وړاندې يې زه هېڅ د ويلو څه نه لرم |

| demnach نو په دې اساس، نو د دې په اساس |
|---|
| Er war noch vor dem Zweiten Weltkrieg geboren, *demnach* musste er älter als seine Schwester sein. هغه له دوهمې نړېوالې جګړې نه مخکې زېږېدلی و، نو په دې اساس دی بايد له خپلې خور نه مشر وای |

| deswegen نو ځکه، نو په دې |
|---|
| Er war krank, *deswegen* konnte er nicht zum Dienst kommen. هغه ناروغه و، نو ځکه يې ونکړی شول چې وظيفې ته راشي |

| demzufolge نو په دې وجه، نو په دې اساس |
|---|
| Die Blume stand in einem dichten Wald und bekam *demzufolge* kein Licht. دا ګل په يو ګڼ ځنګله کې ولاړ و، نو په دې وجه هېڅ رڼا ورته ونه رسېدله |

**Übungen:** Ergänzen Sie an (am) oder in (im), aber nur, wo es notwendig ist.

تاسو په جملو کې (an, am, in, im) ډك کړئ، خو تش په هغه ځای کې چې لازم دي

1. Ich bin mit meinen Eltern ___ 2007 nach Berlin gezogen.
ما په 2007 کال کې د خپل مور او پلار سره برلين ته کډه وکړه
2. …… Frühjahr 2008 habe ich dort mein Studium begonnen.
د 2008 کال په پسرلي کې هلته ما خپل تحصيل پيل کړو
3. …… 2011 kann ich es hoffentlich abschließen.
هيله ده چې په 2011 کال کې يې زه خلاص کړی شم
4. …… 1. Juli beginnen die Semesterferien.
د جولای په لومړی نېټه د سمستر رخصتی پيل کيږي
5. …… August fahre ich nach Frankreich. د اګست په مياشت کې زه فرانسې ته ځم
6. Meine Freunde erwarten mich …… 2. August in Paris.
زما ملګري د اګست په دوهمه نېټه په پاريس کې زما په تمه دي
7. …… kommenden Wochenende besuchen wir das Schloss und den Park.
د راتلونکي اونی په پای کې مونږ د مانۍ او پارك ليدو ته ورځو
8. Mit dem Auto sind wir …… einer Stunde dort.
په موټر کې مونږ په يو ساعت کې هلته رسيږو
9. …… Sonntag machen wir einen Ausflug in die Umgebung.
د يکشنبې په ورځ مونږ په دې شاوخوا کې ميله کوو
10. …… der Nacht zum Montag kommen wir zurück.
چې سبا ته يې دوشنبه وي، په دې شپه مونږ بېرته راځو

11. Zum Glück muss ich mein Referat erst …… nächsten Montag halten.
له نېکه مرغه زه باید خپل کنفرانس د راتلونکي دوشنبې په ورځ وړاندې کړم

**Lösungen:**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1. - | 2. im | 3. - | 4. am | 5. im | 6. am |
| 7. am | 8. in | 9. am | 10. in | 11. am | |

**Übungen:** Ergänzen Sie an (am) oder in (im)
تاسو په لاندې جملو کې تش ځایونه په (an, am, in, im) ډک کړئ

1. Noch nie hat sich die Welt so schnell verändert wie …… den letzten zweihundertfünfzig Jahren.
نړۍ هیڅکله دومره ژر نده بدله شوې لکه په دې وروستیو دوه سوه او پنځوس کلونو کې
2. …… Dezember letzten Jahres hatte es geschneit.
د تېر کال د دسامبر په میاشت کې واوره شوې وه
3. Als …… 1945 der Krieg beendet war, herrschte in Deutschland Hungersnot.
کله چې په 1945 کال کې جګړه پای ته ورسېدله، په جرمني کې ولږه او تنکسه وه
4. …… 21.07.1969 landeten die ersten Menschen auf dem Mond.
د 1969 کال د جولای په 21 نېټه لومړنی انسان سپوږمۍ ته ښکته شو
5. Was geschah …… Jahr 1776? په ۱۷۷۶ کال کې څه پېښه وشوه؟
6. …… 1967 führte Dr. Barnard die erste Herztransplantation durch.
په 1967 کال کې ډاکټر(Barnhard) له یو کس نه بل کس ته د زړه پیوندول وکړل
7. …… selben Jahr starb sein Vater. په همدې کال کې د هغه پلار مړ شو
8. …… 19. Jahrhundert gab es keine Computer. په نولسمې پېړۍ کې کمپیوترونه نه وو

**Lösungen**:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 1. in | 2. im | 3. ___ | 4. am | 5. im | 6. ___ | 7. im | 8. im |

**Übungen**: **:** Bitte ergänzen Sie: an (am) oder in (im) an (am) oder in (im)!

1. …… einem Monat په یوه میاشت کې
2. …… drei Tagen په درې ورځو کې
3. …… meinem Geburtstag زما په کلیزه کې
4. …… Morgen په سهار کې
5. …… 20 Sekunden په شل ثانیو کې
6. …… der Nacht په شپه کې
7. …… letzten Tag des Monats د میاشتې په وروستۍ ورځ کې
8. …… Jahresanfang د کال په پیل کې
9. …… der Neuzeit په نوی وخت کې
10. …… Jahr 1945 په ۱۹۴۵ کال کې
11. …… Herbst په منې کې
12. …… Samstag په شنبه کې
13. …… Juli په جولای کې
14. …… zwei Jahren په دوه کلونو کې
15. …… Nachmittag په ماسپښین کې
16. …… dritten Tag په دریمه ورځ
17. …… zwei Jahrzehnten په دوه لسیزو کې
18. …… der Zeit vom 1. bis 10. Juli د جولای د لومړۍ نه تر لسمې پورې
19. …… der Mittagszeit د غرمې په مهال
20. …… diesem Augenblick په دې شېبه کې
21. …… Abend په ماښام کې

**Lösungen**:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 1. in | 2. in | 3. an | 4. am | 5. in | 6. in | 7. in |
| 8. am | 9. in | 10. im | 11. im | 12. am | 13. im | 14. in |
| 15. am | 16. am | 17. in | 18. in | 19. in | 20. in | 21. am |

**Übungen:** Präpositionen mit Dativ und Akkusativ (I).

Wo passen die Präpositionen: aus, bei, in, mit, nach, von, zu?

1. Mein Lehrer ist …… Köln. زما ښوونکی د کولن د ښار دی
2. Er will …… Berlin ein Zimmer suchen. هغه غواړي چې په برلین کې یوه کوټه ولټوي
3. Zuerst ist er …… dem Zug nach Frankfurt gefahren.
لومړی هغه په اورګاډي کې فرنکفورت ته ولاړ
4. Sein Freund hat ihn …… Bahnhof abgeholt.
د هغه ملګري هغه یې د اورګاډي له سټېشنه راوستو
5. Dann sind sie …… seinem Freund gefahren. بیا هغوی د هغه د ملګري کور ته ولاړل
6. Mein Bruder ist einen Tag …… seinem Freund geblieben.
زما ورور یوه ورځ د خپل ملګري په کور کې پاتې شو
7. Von Frankfurt ist er …… Heidelberg weitergefahren.
له فرنکفورت نه هغه (Heidelberg) ته ولاړو

**Lösungen:**

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| 1. aus | 2. in | 3. mit | 4. vom | 5. zu | 6. bei | 7. nach |

**Übungen:** Ergänzen Sie die Sätze mit: bei oder mit

1. Mein Vater arbeitet …… einer Baufirma. زما پلار په یوې ساختماني کمپنۍ کې کار کوي
2. Josef wohnt nicht mehr …… seinen Eltern.
یوسف اوس د خپل مور او پلار سره نه اوسیږي
3. Er wohnt …… seinem Bruder zusammen. هغه د خپل ورور سره په ګډه اوسیږي
4. Mittags ist Josef …… seinem Vater in die Stadt gegangen.
د غرمې له مخې یوسف د خپل پلار سره ښار ته ولاړ
5. Sie haben …… einem Freund von meinem Vater gegessen.
هغوی زما د پلار د یو ملګري په کور کې ډوډۍ وخوړه
6. Heute hat mein Vater seinen Freund …… dem Auto zum Bahnhof gebracht.
نن زما پلار خپل ملګری یې په موټر کې د اورګاډي سټېشن ته یووړ

**Lösungen:**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1. bei | 2. bei | 3. mit | 4. mit | 5. bei | 6. mit |

# Verben mit Akkusativ, Dativ und Genitiv

په دې پورتنيو پاڼو کې تاسو ډېر (Präpositionen) زده کړل چې د هغوی په مرسته يو فعل په يو خاص حالت کې، يعني په (Nominativ, Genitiv, Dativ, Akkusativ) کې ګرداني‌ږي. اوس به داسي فعلونه زده کړو چې هغوی بې له (Präposition) پخپل قوت يا پخپل خاصيت په يو پورتني حالت کې ګردانيږي. داسي فعلونه زښت ډېر دي، نو مونږ به د بېلګې په توګه يو څو فعلونه د خپل حالت سره زده کړو.

## 1. Verben mit Akkusativ

له دغه فعلونو نه وروسته تل (Akkusativ) راځي چې دا راز فعلونو ته (transitive Verben) هم وايي، يعني متعدي فعلونه. د لوړې سويې په ډکشنريو کې د داسي فعلونو په څنګ کې *(tr.)* ليکل شوی وي چې مطلب يې (transitiv) يا متعدي دی.

| | |
|---|---|
| abholen يو چېرته ورتلل او يو څوک له ځانه سره راوستل | Er holt seinen Vater von der Bushaltestelle ab. هغه خپل پلار پسې ورځي او هغه د بس له تمځايه له ځانه سره راولي |
| abschließen کلپول، قلپول | Bitte schließen Sie die Haustür ab. تاسو مهرباني وکړئ او دروازه کلپه کړئ |
| abstellen ودرول، درول | Wo stellst du dein Fahrrad ab?ته خپل بايسکل چېرته ودروې |
| anhalten په لنډ ډول ودرول | Er hält das Taxi an. هغه ټکسي د لنډ وخت لپاره ودرو |
| anrufen يو چاته ټيلفون کول | Er ruft seinen Vater an. هغه خپل پلار ته ټيلفون کوي |
| anschauen ليدل، کتل | Schauen Sie die Fotos an. تاسو عکسونه وګورئ |
| ausfüllen ډکول | Füllen Sie bitte das Formular aus. تاسو فورمه ډکه کړئ |
| auswählen غوره کول | Wählen Sie ein Foto aus. تاسو يو عکس غوره کړئ |
| beantworten ځواب ورکول | Ich beantworte deine Fragen. زه ستا پوښتنو ته ځواب درکوم |
| besichtigen يو ځای کتل | Wir besichtigen heute das Schloss. مونږ نن ماڼی ګورو |
| besuchen د يو چا ليدو ته ورتلل | Sie besuchte ihren Vater. هغه د خپل پلار ليدو ته ورغله |
| brauchen په کارېدل | Er braucht einen Tisch. د هغه يو مېز په کار دی |
| dabeihaben يو څه له ځانه سره درلودل | Er hat immer seinen Pass dabei. له هغه سره تل پاسپورټ يې ورسره وي |
| einkaufen سودا اخيستل | Sie kauft Kartoffeln ein. هغه کچالان په بيه اخلي |
| einladen يو چاته بلنه ورکول | Ich lade dich ein. زه تا ته بلنه درکوم |
| fragen پوښتنه کول | Fragen Sie Ihren Mann. تاسو د خپل مېړه نه پوښتنه وکړئ |
| geben يو چاته يو څه ورکول | Gib mir bitte einen Apfel. ته ما ته يوه منه راکړه |
| haben درلودل | Ich habe heute keine Zeit. زه نن وخت نلرم |
| informieren يو څوک خبرول | Bitte informieren Sie mich darüber. په دې برخه کې تاسو ما خبر کړئ |
| kennen يو څوک پېژندل | Kennen Sie diesen Mann? تاسو دا سړی پېژنئ؟ |
| lesen لوستل | Er liest einen Aufsatz. هغه يوه مقاله لولي |
| machen يو څه کول | Du hast einen Fehler gemacht. تا يوه غلطي وکړه |
| nehmen اخيستل، نيول | Nimm den Eimer und hole Wasser. ته ستل واخله او اوبه راوړه |
| schälen پوستکی ويستل | Er schält den Apfel. هغه د منې پوستکی وباسي |
| trinken څښل ، څکل | Sie trinkt einen Tee. هغه چای څښي |
| untersuchen معاينه کول | Der Arzt untersucht den Patienten. ډاکټر ناروغ معاينه کوي |

| | |
|---|---|
| verstehen په یو شي پوهېدل | Ich verstehe den Satz nicht. زه په دې جملې نپوهېږم |
| wiederholen یو شی بیا ویل، تکرارول | Wiederholen Sie bitte den Satz. تاسو مهرباني وکړئ او دا جمله یوځل بیا ووایئ |
| zeichnen رسمول، انځورول | Sie zeichnet ein Bild. هغه یو تصویر رسموي |

## 2. Verben mit Dativ

| | |
|---|---|
| antworten ځواب ورکول | Ich werde dir bald antworten. زه به تاته ژر ځواب درکړم |
| begegnen یو ځوك په مخه راتلل، له یو چا سره مخامخېدل | Gestern bin ich einem hübschen Mädchen begegnet. پرون یوه ښایسته نجلۍ زما په مخه راغله |
| danken له یو چا به منته کول | Ich danke dir für deine Hilfe. زه ستا د مرستي له امله له تا نه منته کوم |
| folgen له یو چا پسي ورتلل | Folgt mir, bitte! تاسو ما پسي راځئ |
| gefallen د یو چا خوښېدل | Diese Tasche gefällt mir nicht. دا بکس زما نه خوښیږي |
| gehören د یو چا اوسېدل، د یو شي خاوند اوسېدل | Das Buch gehört nicht mir, sondern dir. دا کتاب زما ندی، بلکې ستا دی |
| gelingen په بریالیتوب سر ته رسېدل | Die Veranstaltung ist ihm gut gelungen. دا پروګرام هغه په بریالیتوب سرته ورسولی شو |
| gratulieren مبارکي ویل | Ich gratuliere euch zur neuen Wohnung. د نوي استوګنځي له پلوه زه تاسو ته مبارکي وایم |
| gut tun ګټه رسول، ښه لګېدل | Die Reise wird euch gut tun. دا سفر به په تاسو ښه ولګیږي |
| helfen مرسته کول | Können Sie mir bitte helfen. تاسو له ما سره مرسته کوی شئ |
| passen په ځان کي جوخت اوسېدل | Die Schuhe passen dir gut. دا بوټان ستا په پښو کي ښه جوخت دي |
| sagen یو چاته یو څه ویل | Sag mir bitte, wo das Buch ist. ته ما ته ووایه چې دا کتاب چېرته دی |
| schmecken خوند ورکول | Das Essen hat mir nicht geschmeckt. دې ډوډۍ ما ته خوند رانکړو |
| vertrauen باور درلودل | Ich vertraue meinen Eltern. زه پخپل مور او پلار باور لرم |
| verzeihen یو ځوك ښنل | Er hat seinem Feind verziehen. هغه خپل دښمن وبښو |
| weh tun درد کول، خوږېدل | Der Zahn tut mir sehr weh. زما غاښ ډېر خوږیږي |
| zuhören یو چاته غوږ ایښودل | Kannst du mir nicht zuhören? ته ما ته غوږ نشې ایښودلی؟ |

## 3. Verben mit Genitiv

له (Genitiv) سره فعلونه ډېر لږ دي. ځیني فعلونه چي په لاندیني جدول کي لیکل شویدي، هغه عام او مروج ندي او په ورځینیو خبرو کي یي ځوك نه استعمالوي. دا شان جملي تش په دفترونو کي او یا په دولتي فورمو او یا په پخوانو کتابونو کي لیدل کېدی شي.

| | |
|---|---|
| anklagen په یو چا په محکمه کي دعوه کول | Er war des Mordes angeklagt. په هغه باندې په محکمه کي د وژني یا د قتل دعوه شوې وه |
| annehmen منل، قبلول | Wir nahmen uns des Themas an. دا موضوع مونږ ومنله |
| bedienen له یو شي نه استفاده کول، له یو شي نه کار اخیستل | Darf ich mich kurz Ihres Telefons bedienen? اجازه ده چي زه ستاسو له ټیلفون نه استفاده وکړم؟ |

| | |
|---|---|
| bedürfen اړتیا درلودل | Es bedarf keines Wortes. دا کومو الفاظو ته اړتیا نلري |
| bemächtigen له يو چا نه په زور يو څه اخيستل، نيول | Er bemächtigte sich des Autos und entfloh.<br>هغه موټر په زورزياتي ونيو او وتښتېدو |
| beschuldigen پــه يــو چــا باندي پړه اچول، ګنهګارول | Man beschuldigte ihn des Betrugs.<br>په هغه باندي د درغلی پړه واچول شوه |
| besinnen د يـو شـي پـه بـرخـه کي سوچ يا فکر کول | Er hat sich eines Besseren besonnen.<br>هغه ته يو بل ښه فکر وريه ياد شو |
| bezichtigen په يو چا بـانـدي يوه پړه اچول | Er wurde des Diebstahls bezichtigt.<br>په هغه باندي د غلا پړه واچول شوه |
| enthalten بـي طـرفـه پـاتـي کېدل، له يو شي نه ډډه کول | Er enthielt sich jeglichen Kommentars.<br>هغه له هر شان تبصري نه ډډه وکړه، هغه هېڅ ونه ويل |
| entledigen ځان له يو شي نه خلاصول، له ځانه ليري کول | Er hatte sich des Mantels entledigt.<br>هغه خپل بالاپوش ويستلی و |
| erbarmen مهربانېدل | Herr, erbarme dich unser! خدايه، په مونږ مهربان شه |
| erfreuen درلـودل، د يـو شـي خاوند اوسېدل | Sie erfreut sich bester Gesundheit.<br>د هغي روغتيايي حالت ډېر ښه دی |
| erinnern په ياد اوسېدل | Ich erinnere mich dessen noch sehr genau.<br>دا مي ډېر ښه په ياد دي |
| freuen له يـو شـي نـه خوند اخيستل | Er freut sich seines Lebens. هغه له خپل ژوند نه خوند اخلي |
| gedenken د يو چا ياد کول | Der Opfer wurde gedacht. د قربانيانو ياد وشو |
| harren سترګي په لار اوسېدل (دا يو غير مروج لغت دی) | Wir haben seiner lange geharrt.<br>مونږ هغه ته ډېر وخت سترګي په لار وو |
| rühmen ستايل، صفت کول | Man rühmte ihn seiner Taten.<br>د هغه د کړنو (اعمالو) ستاينه وشوه |
| schämen شرمېدل | Ich schäme mich dessen. زه په دي شرمېږم<br>Sie brauchen sich nicht Ihrer Taten zu schämen!<br>تاسو پخپلو کړنو مه شرمېږئ |
| überführen پـه يـو چـا باندي يو څه ثابتول | Der Minister wurde der Lüge überführt.<br>په وزير باندي دروغ ثابت شول |
| verdächtigen پــه يــو چــا باندي د يو شي شك راتلل | Man verdächtigte sie der Spionage.<br>په هغي باندي د جاسوسی شك راغی |
| vergewissern ځان متيقنول، ځان خاطرجمع کول | Im Spiegel vergewisserte er sich seiner selbst.<br>په هینداره کي هغه ځان د ځان په برخه کي متيقن کړو |
| versichern ډاډ ورکول، اطمينان ورکول | Ich versichere dich meiner Hilfe.<br>زه تا ته د خپلي مرستي ډاډ درکوم |
| zeihen په يو چا باندي يو تور لګول، تورن کول | Er wurde des Diebstahls geziehen.<br>په هغه باندي د غلا تور ولګول شو |

# پوښتنه کول Fragen

پوښتنه کول په دوه ډولو دي :

| Fragen ohne Fragewort<br>هغه پوښتنه چې د پوښتنې کلمه ورسره نه وي | Fragen mit Fragewort<br>هغه پوښتنه چې د پوښتنې کلمه ورسره وي |
|---|---|

۱ـ بې د سواليې له کلمې پوښتنه (Fragen ohne Fragewort)
تر اوسه پورې خو مونږ دومره زده کړل چې د يوې ساده جملې د جوړولو لپاره د جملې په سر کې يو اسم او يا ضمير، د جملې په دوهمه برخه کې فعل او په دريمه برخه کې مفعول راځي. مثال:

| Aussagesatz معلوماتي جمله | | |
|---|---|---|
| 1. Position لومړی دريځ | 2. Position دوهم دريځ | 3. Position دريم دريځ |
| du ته | gehst ځې | heute nach Hause کور ته نن |
| Du gehst heute nach Hause. | ځې ته کور نن ته | بشپړه جمله: |

که چېرته په پورتنۍ جمله کې هغه څه چې په دوهم دريځ (2. Position) کې ليکل شوي. يعنې(gehst) = ځې) په لومړي دريځ (1. Position) کې وليکل شي، نو يوناځاپه د دې معلوماتي جملې نه يوه سواليه يا د پوښتنې جمله جوړيږي، په لاندې ډول:

| Fragesatz سواليه جمله | | |
|---|---|---|
| 1. Position لومړی دريځ | 2. Position دوهم دريځ | 3. Position دريم دريځ |
| gehst ځې | du ته | heute nach Hause? نن کور ته |
| Gehst du heute nach Hause? | ته ؟ کور نن ته ځې | سواليه جمله : |

اوس نو مونږ زده کړل چې د سواليې جملې په سر کې تل يو فعل راځي او بيا د فعل نه وروسته په دوهم دريځ کې فاعل او په دريم دريځ کې مفعول راځي. په دې شان سواليه جملو کې دې ته اړتيا نشته چې له سواليه کلمو نه لکه (کله، څنګه، چېرته = wann, wie, wo) نه کار واخيستل شي.

د دا شان پوښتنو په ځواب کې سړی يا (هو = ja) او يا (نه = nein) او يا (ولې نه = doch) ځواب ورکوي. په بل عبارت دا هغه شان پوښتنې دي چې د يوې پوښتنې په ځواب کې سړی يوه فيصله يا پرېکړه کوي، نو له دې کبله ورته د پرېکړې پوښتنه او يا (Entscheidungsfragesatz) هم وايي : مثال:

| Fragesatz | Antwort |
|---|---|
| Habe ich dir das Buch gegeben?<br>ما درته کتاب درکړی دی؟ | Ja, du hast mir das Buch gegeben.<br>هو، تا ما ته کتاب راکړی دی |
| Kennst du den Mann? ته دا سړی پيژنې؟ | Nein, ich kenne ihn nicht.<br>نه، زه يې نه پيژنم |
| Hast du gar keine Zeit? ته هيڅ وخت نلرې؟ | Doch, ich habe Zeit. ولې نه، زه وخت لرم |

| پاملرنه | کله چې يوه پوښتنه په منفي ډول وشي، لکه (Hast du gar keine Zeit?) يعنې (ته هيڅ وخت نه لرې؟)، دلته (keine Zeit?) منفي پوښتنه ده. نو د مثبت ځواب په وخت کې بيا تل (doch ولې نه) ويل کيږي، يعنې ولې نه زه وخت لرم. |
|---|---|

**Übungen:** Bilden Sie Fragesätze! تاسو سواليه جملې جوړې کړئ

Beispiel: مثال
Nein, dieses Auto gehört mir nicht. نه دا موټر زما ندی
له ځواب نه سواليه جمله په دې ډول جوړيږي:
Gehört dieses Auto dir? دا موټر ستا دی؟

1. Nein, wir haben den Garten nicht gekauft; er gehört zur Wohnung.
نه، دا حوېلی مونږ په بيه نده اخيستې، هغه د دې استوګنځي برخه ده

…………………………………………………………………………………

2. Nein, die Obstbäume haben wir nicht gepflanzt; sie waren schon da.
نه، دا د مېوو ونې مونږ ندي کرلې، هغه همدلته وې

…………………………………………………………………………………

3. Ja, die Beete haben wir selbst angelegt. هو، دا پټې مونږ پخپله جوړ کړي دي

…………………………………………………………………………………

4. Ja, die Tomaten haben hier genug Sonne. هو، روميانو ته دلته په کافي اندازه لمر رسيږي

…………………………………………………………………………………

5. Ja, das Gartenhaus ist ganz neu. هو، دا د باغچې کوټنۍ نوې ده

…………………………………………………………………………………

6. Ja, das haben wir selbst gebaut. هو، دا مونږ پخپله جوړه کړېده

…………………………………………………………………………………

7. Nein, einen Bauplan haben wir nicht gehabt. نه، د ودانۍ يو پلان مونږ نه درلود .

…………………………………………………………………………………

8. Nein, so ein Haus ist nicht schwer zu bauen. نه، د داسې يو کور جوړول ګران ندي

…………………………………………………………………………………

9. Nein, das Material dafür ist nicht billig. نه، د دې مواد ارزانه ندي

…………………………………………………………………………………

10. Ja, so ein Garten macht viel Arbeit. هو، د داسې يوې باغچې لپاره ډېر کار پکار دی

…………………………………………………………………………………

**Lösungen**:

1. Habt ihr den Garten gekauft? تاسو دا حوېلی په بيه اخيستی دی؟
2. Habt ihr die Obstbäume gepflanzt? تاسو د مېوې ونې کرلې دي؟
3. Habt ihr die Beete selbst angelegt? تاسو دا پټې پخپله جوړ کړي دي؟
4. Haben die Tomaten hier genug Sonne? دې روميانو ته کافي اندازه لمر رسيږي؟
5. Ist das Gartenhaus neu? دا د باغچې کوټنۍ نوې ده؟
6. Habt ihr das selbst gebaut? دا تاسو پخپله جوړ کړی دی؟
7. Hattet ihr einen Bauplan? تاسو د ودانۍ يو پلان درلود؟
8. Ist so ein Haus schwer zu bauen? د داسې کور جوړول ګران دي؟
9. Ist das Material dafür billig? د دې لپاره مواد ارزان دی؟
10. Macht so ein Garten viel Arbeit? دې باغ ته ډېر کار پکار دی؟

**Übungen:**

Bilden Sie Fragen zu den Aussagesätzen! تاسو له دې معلوماتي جملو نه سوالونه جوړ کړئ

1. Doch, ich erledige meine Hausaufgaben selbst. ولې نه، زه خپله کورنۍ وظیفه پخپله کوم

……………………………………………………………………………

2. Doch, ich habe den Brief erhalten. ولې نه، ماته دا لیك ورسېدو

……………………………………………………………………………

3. Doch, ich habe mich beschwert. ولې نه، ما شکایت وکړو

……………………………………………………………………………

4. Doch, ich habe meine Beschwerde schriftlich eingelegt.
ولې نه، ما خپل شکایت په تحریري ډول وکړو

……………………………………………………………………………

5. Doch, ich habe einen Brief sofort abgeschickt. ولې نه، ما دا لیك سمدلاسه ولیږو

……………………………………………………………………………

6. Doch, ich habe sofort beim Finanzamt angerufen.
ولې نه، ما سمدلاسه د مالیې وزارت ته ټیلفون وکړو

……………………………………………………………………………

7. Doch, ich habe das Geld zurückbekommen. ولې نه، ماته پیسې بېرته راکړل شوې

……………………………………………………………………………

8. Doch, ich bin zufrieden. ولې نه، زه راضي یم

……………………………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Erledigen Sie Ihre Hausaufgaben denn nicht selbst?
تاسو خپله کورنۍ وظیفه پخپله نه کوئ؟
2. Haben Sie denn den Brief nicht erhalten? تاسو ته دا لیك ونه رسېدو؟
3. Haben Sie sich denn nicht beschwert? تاسو شکایت ونکړو؟
4. Haben Sie ihre Beschwerde denn nicht schriftlich eingelegt?
تاسو خپل شکایت په تحریري ډول ونکړو؟
5. Haben Sie denn den Brief nicht sofort abgeschickt? تاسو دا لیك سمدلاسه ونه لیږو؟
6. Haben Sie denn nicht sofort beim Finanzamt angerufen?
تاسو سمدلاسه د مالیې وزارت ته ټیلفون ونکړو؟
7. Haben Sie denn das Geld nicht zurückbekommen? تاسو ته پیسې بېرته درنکړل شوې؟
8. Sind Sie denn nicht zufrieden? تاسو راضي نه یاست؟

**Übungen:**

Geben Sie auf die Frage erst eine negative Antwort und danach eine positive Entgegnung! تاسو لاندینو پوښتنو ته لومړی منفي او ورپسې مثبت ځواب ورکړئ

1. Verkauft dieser Metzger auch Hammelfleisch? دا قصاب د پسه غوښه هم خرڅوي؟

……………………………………………………………………………

2. Macht dieser Schuster auch Spezialschuhe? دا موچي خاص بوټان هم جوړوي؟

……………………………………………………………………………………

3. Macht dieser Friseur auch Haarverlängerungen? دا نايي ویښته اوږدول هم کوي؟

……………………………………………………………………………………

4. Hat deine Tante auch Kinder? ستا ترور (خاله) هم ماشومان لري؟

……………………………………………………………………………………

5. Gibt es in der Kantine auch Brot? په کانتین کې ډوډۍ هم شته؟

……………………………………………………………………………………

6. Seht ihr abends auch Kriminalfilme. تاسو د ماښام له مخې جنايي فلمونه هم ګورئ؟

……………………………………………………………………………………

7. Hat der Reisebus eine Klimaanlage? په دې سفري سروېس کې اېرکنډېشن شته؟

……………………………………………………………………………………

8. Hat der Kindergarten einen Spielplatz? په دې وړکتون کې د لوبو مېدان شته؟

……………………………………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Nein, er verkauft kein Hammelfleisch. Doch er verkauft auch Hammelfleisch.
نه، هغه د پسه غوښه نه خرڅوي ـ ولې نه هغه د پسه غوښه هم خرڅوي
2. Nein, er macht keine Spezialschuhe./ Doch er macht auch Spezialschuhe.
نه هغه خاص بوټان نه جوړوي ـ ولې نه، هغه خاص بوټان هم جوړوي
3. Nein, er mach keine Haarverlängerungen./ Doch er macht auch Haarverlängerungen. نه هغه د ویښتو اوږدول نه کوي ـ ولې نه هغه د ویښتو اوږدول هم کوي
4. Nein, sie hat keine Kinder./ Doch sie hat auch Kinder.
نه، هغه ماشومان نلري ــ ولې نه هغه ماشومان هم لري
5. Nein, in der Kantine gibt es kein Brot./ Doch, es gibt in der Kantine auch Brot. نه په کانتین کې ډوډۍ نشته ـ ولې نه، په کانتین کې ډوډۍ هم شته
6. Nein, abends sehen wir keine Kriminalfilme./ Doch, abends sehen wir auch Kriminalfilme. نه، مونږ د ماښام له مخې جنايي فلمونه نه ګورو ـ ولې نه، مونږ د ماښام له مخې جنايي فلمونه هم ګورو
7. Nein, er hat keine Klimaanlage./ Doch, er hat auch eine Klimaanlage.
نه، هغه اېرکنډېشن نلري ـ ولې نه، هغه اېرکنډېشن هم لري
8. Nein, er hat keinen Spielplatz./ Doch, er hat auch einen Spielplatz.
نه، هغه د لوبو مېدان نلري ـ ولې نه، هغه د لوبو مېدان هم لري

**Übungen:**

Geben Sie eine Antwort entsprechend den Angaben in Klammern.
د پوښتنې لپاره تاسو هغه ځواب ورکړئ چې د پوښتنې شاته په قوس کې لیکل شوی دی.

Beipiel: مثال
Ist dein Vater immer noch krank? (nicht mehr) ستا پلار اوس هم ناروغ دی؟ (اوس نه)
Antwort ځواب
Nein, er ist nicht mehr krank. نه، هغه اوس ناروغ ندی

1. Geht dein Sohn noch in den Kindergarten? (nicht mehr)
ستا زوی لا وړکتون ته ځي؟ (نور نه)

2. Hat dein Bruder schon eine Stelle gefunden? (noch keine)
ستا ورور ته کوم کار پیدا شو؟ (تر اوسه پورې لا نه)
3. Hat Ihre Nichte schon ihr Examen gemacht? (noch nicht)
ستا ورېرې د پوهنتون وروستی ازموینه ورکړېده؟ (تر اوسه پورې لا نه)
4. Arbeitet deine Tochter noch in dem Anwaltsbüro? (nicht mehr)
ستا لور لا تر اوسه پورې د وکیل په دفتر کې کار کوي؟ (نور نه)
5. Bleibt eure Mitarbeiterin noch länger in der Firma? (nicht mehr lange)
ستاسو همکاره تر ډېر وخته پورې په کمپنۍ کې پاتې کیږي؟ (نور نه)
6. Habt ihr die Polizei schon informiert? (noch nicht)
تاسو پولیسو ته احوال ورکړی دی؟ (لاتر اوسه پورې نه)
7. Kommt dein Bruder denn nicht mehr aus Amerika zurück? (nur noch im Urlaub) ستا ورور له امریکې نه بېرته نه راځي؟ (تش په رخصتۍ کې)
8. Fliegst du nächste Woche nicht nach China? (erst in zwei Wochen)
ته راتلونکې اونۍ چین ته سفر نه کوې؟ (دوه اونۍ وروسته)
9. Hast du schon die Einreisegenehmigung bekommen? (noch nicht)
تا ته ویزه درکړل شوې ده (لا تر اوسه پورې نه)
10. Fliegst du dann direkt nach Berlin? (erst nach Moskau)
ته بیا مستقیماً په الوتکه کې برلین ته ځې (لومړی مسکو ته)

**Lösungen:**

1. Nein, er geht nicht mehr in den Kindergarten. نه، هغه اوس وړکتون ته نه ځي
2. Nein, er hat noch keine Stelle gefunden. نه، هغه لا تر اوسه پورې کار ندی پیدا کړی
3. Nein, sie hat ihr Examen noch nicht gemacht.
نه، هغې د پوهنتون وروستی ازموینه لا تر اوسه پورې نده ورکړې
4. Nein, sie arbeitet nicht mehr in dem Anwaltsbüro.نه، هغه د وکیل په دفتر کې کار نکوي
5. Nein, sie bleibt nicht mehr lange in der Firma.
نه، هغه ډېر وخت په کمپنۍ کې نه پاتې کیږي
6. Nein, wir haben sie noch nicht informiert.
نه، مونږ هغوی ته لا تر اوسه پورې احوال ندی ورکړی
7. Nein, er kommt nur noch im Urlaub aus Amerika zurück.
نه، هغه تش په رخصتۍ کې له امریکې نه بېرته راځي
8. Nein, ich fliege erst in zwei Wochen nach China.
نه، زه دوه اونۍ وروسته چین ته په الوتکه کې ځم
9. Nein, ich habe sie noch nicht bekommen. نه، هغه لا تر اوسه پورې ما ته راکړل شوې نده
10. Nein, ich fliege erst nach Moskau. نه، زه لومړی مسکو ته په الوتکه کې ځم

### ۲- د سوالیي کلمې سره پوښتنه (Fragen mit Fragewort)

د دا شان پوښتنو په ځواب تش په (هو= ja) او یا (نه = nein) نه ویل کیږي. دې ته نور تشریحات پکار دي لکه (کله، په کوم ځای کې، په کوم وخت کې، د چا له خوا، چا ته، له چا نه) او داسې نور. دا شان پوښتنې په دې ډول کیږي چې د جملې په سر کې یا په لومړي دریځ کې د سوالیي کلمه، لکه (wann, wo) او داسې نور راځي . د جملې په دوهم ځای کې فعل راځي او د جملې په دریم ځای کې فاعل، یعنې (Subjekt) او یا مفعول یا (Objekt) او په څلورم دریځ کې (Objekt) راځي، په لاندې ډول:

| Fragesatz سواليه جمله | | | |
|---|---|---|---|
| 1. Position<br>لومړی دریځ | 2. Position<br>دوهم دریځ | 3. Position<br>دریم دریځ | 4. Position<br>څلورم دریځ |
| wann کله | gehst ځې | du ته | nach Hause کور ته |
| Wann gehst du nach Hause? ته کله کور ته ځې؟ : بشپړه سواليه جمله | | | |

د سواليه پوښتنو جوړول له دې پورې اړه لري چې د چا او يا د څه شي په برخه کې پوښتنه کيږي، يعني د فاعل (Subjekt = wer) ، (Dativobjekt = wem)، (Akkusativobjekt = wen) او يا د يو شي د خاوندتوب (Zugehörigkeit = wessen) په برخه کې پوښتنه کيږي. اوس به د دې هر يو حال په برخه کې بېلې بېلې جملې وګورو:

**① د فاعل يا (Subjektiv) په برخه کې پوښتنه**

| Fragesatz (Frage nach einem Subjekt) | | | |
|---|---|---|---|
| wer څوک | gibt درکوي | dir تا ته | das Buch کتاب |
| Wer gibt dir das Buch? څوک تا ته کتاب درکوي؟ | | | |

**② د مفعول (Dativobjekt) په برخه کې پوښتنه**

| Fragesatz (Frage nach einem Dativobjekt) | | | |
|---|---|---|---|
| wem چا ته | gibst ورکوي | du ته | das Buch کتاب |
| Wem gibst du das Buch? ته کتاب چا ته ورکوې؟ | | | |

**③ د مفعول (Akkusativobjekt) په برخه کې پوښتنه**

| Fragesatz (Frage nach einem Akkusativobjekt) | | | |
|---|---|---|---|
| wen څوک، چا | siehst ګورې | du ته | jetzt اوس |
| Wen siehst du jetzt? ته اوس څوک وينې؟ | | | |

**④ د يو شي د خاوندتوب (Zugehörigkeit) په برخه کې پوښتنه**

| Fragesatz (Frage nach der Zugehörigkeit) | | | |
|---|---|---|---|
| wessen د چا | Buch کتاب | ist دی | das دا |
| Wessen Buch ist das? دا د چا کتاب دی؟ | | | |

**⑤ د يو ولاړځای په برخه کې پوښتنه**

| Fragesatz (Frage nach dem Ort) | | | |
|---|---|---|---|
| wo چېرته | ist دی | das Haus کور | |
| Wo ist das Haus? دا کور چېرته دی؟ | | | |

### ⑥ يو ځای ته د تګ په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach der Orstveränderung) | | | |
|---|---|---|---|
| wohin کومې خوا ته | gehst ځې | du ته | heute نن |
| Wohin gehst du heute? ته نن کومې خوا ته ځې؟ | | | |

### ⑦ له يو ځای نه د راتګ يا د اخيستلو په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach der Herkunft) | | | |
|---|---|---|---|
| woher له کومه ځايه | kommst راځې | du ته | heute نن |
| Woher kommst du heute? ته نن له کومه ځايه راځې | | | |

### ⑧ د يو وخت يا د يوې مودې په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach dem Zeitpunkt) | | | |
|---|---|---|---|
| wann کله | gehst ځې | du ته | nach Hause کور ته |
| Wann gehst du nach Hause? ته کور ته کله ځې؟ | | | |

### ⑨ د يو شي د ډول يا د څرنګوالي په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach der Art und Weise) | | | |
|---|---|---|---|
| wie څنګه | ist دی | die Farbe رنګ | des Hauses د کور |
| Wie ist die Farbe des Hauses? د کور رنګ څنګه دی؟ | | | |

### ⑩ د يو شي د لامل يا د علت په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach dem Grund der Handlung) | | | |
|---|---|---|---|
| warum ولې | schläfst ويده کيږې | du ته | hier دلته |
| Warum schläfst du hier? ته ولې دلته ويده کيږې؟ | | | |
| weshalb په څه علت | gehst ځې | du ته | ins Kino سينما ته |
| Weshalb gehst du ins Kino? په څه علت ته سينما ته ځې؟ | | | |

### ⑪ د يو کار د موخې يا د هد□ په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach dem Ziel einer Handlung) | | | |
|---|---|---|---|
| wozu په کوم هدف | studierst تحصيل کوې | du ته | Medizin طب |
| Wozu studierst du Medizin? ته په کوم هدف د طب تحصيل کوې؟ | | | |

### ⑫ د يو شي د غوره کولو په برخه کې پوښتنه

| Fragesatz (Frage nach der Auswahl) | | | |
|---|---|---|---|
| welcher کوم | Mann سړی | ist دی | dein Vater ستا پلار |
| welche کومه | Frau ښځه | ist ده | deine Mutter ستا مور |
| welches کوم | Kind ماشوم | ist دی | dein Bruder ستا ورور |

## کوم سرې ستا پلار دی، کومه ښځه ستا مور ده، کوم ماشوم ستا ورور دی؟

کله چې د سواليي له کلمې سره يو (Präposition) يا ضمير يوځای شي، لکه (mit, für, bei) ، نو ادا (Präposition) د سواليي له کلمې نه مخکې راځي، لکه (mit wem, für wen, bei wem) . مهمه ادا ده چې دلته پوښتنه تش د اشخاصو يا انسانانو لپاره وشي. که چېرته پوښتنه د يو شي، يو کار او د يا د يوې موضوع په برخه کې وي، نو هغه په دې ډول کيږي چې د (wen + wem) په ځای تش (wo) له (Präposition) نه مخکې ليکل کيږي او ورپسې بيا (Präposition) راځي، په دې ډول:

| Frage nach einer Person<br>د يو انسان په برخه کې پوښتنه | Frage nach einer Sache<br>د يو شي په برخه کې پوښتنه |
|---|---|
| bei + wem = bei wem له چا سره | wo + bei = wobei په کومه موقع کې |
| durch + wen = durch wen د چا له لارې | wo + durch = wodurch د څه شي له مينځه |
| für + wen = für wen د چا لپاره | wo + für = wofür د څه لپاره |
| gegen + wen = gegen wen د چا په وړاندې | wo + gegen = wogegen د څه په وړاندې |
| mit + wem = mit wem له چا سره | wo + mit = womit په څه باندې |
| nach + wem = nach wem له چا نه وروسته | wo + nach = wonach د څه شي نه وروسته |
| zu + wem = zu wem د چا په لور | wo + zu = wozu د څه لپاره |
| an + wen = an wen چا ته، د چا په نامه | wo + r + an = woran په څه شي، له څه نه |
| über + wen = über wen د چا په برخه کې | wo + r + über = worüber<br>د څه شي په برخه کې |

مثالونه په جملو کې:

| د انسانانو په برخه کې پوښتنه | د شيانو په برخه کې پوښتنه |
|---|---|
| Mit wem habt ihr euch angefreundet?<br>له چا سره تاسو ملګري شوئ؟<br>Mit einer dänischen Familie.<br>له يوې ډنمارکی کورنی سره | Womit hast du den Fleck weggebracht?<br>په څه شي باندې دا داغ تا پاك كړو؟<br>Mit einem Waschpulver.<br>د کالو مينځلو په يو پوډر باندې |
| An wen denkst du gerade?<br>ته په همدې شيبه کې د چا په فکر کې يې؟<br>An den lustigen Sänger.<br>د دې مست سندرغاړي په فکر کې | Woran kann man Wölfe erkennen?<br>په څه شي باندې سړی لېوان پېژندلی شي؟<br>An ihrem Geheule. د هغوی په انګولا |
| Bei wem übernachtest du heute?<br>د چا په کور کې ته نن ويده کيږې؟<br>Bei meinem Onkel. د خپل تره په کور کې | Wobei habt ihr denn Probleme?<br>په څه شي کې تاسو ستونځې لرئ؟<br>Bei der Müllbeseitigung.<br>د کثافاتو په هيسته کولو کې |
| Zu wem gehst du heute?<br>ته نن د چا کور ته ځې؟<br>Zu meiner Mutter. د خپلې مور کور ته | Wozu brauchst du einen neuen Anzug? نوې دريشي ستا د څه لپاره په کاره ده؟<br>Zu deiner Hochzeit. ستا د واده لپاره |
| Über wen redet ihr?<br>د چا په برخه کې تاسو خبرې کوئ؟<br>Über den Mathematiklehrer.<br>د رياضي ښوونکي په برخه کې | Worüber sprichst du gerade?<br>ته د څه شي په برخه کې دمګړی غږيږې؟<br>Über die Mathematikprüfung.<br>د رياضي د ازموينې په برخه کې |
| Durch wen hast du das erfahren? | Wodurch wurde er berühmt? |

| | |
|---|---|
| د چا له لاري ته له دې نه خبر شوې؟<br>Durch meinen Vater. د خپل پلار له لارې | په څه باندې هغه مشهور شو؟<br>Durch seine Gedichte. پخپلو شعرونو باندې |

| | |
|---|---|
| (a, i, u, ü) کله چې (wo) له يو داسې (Präposition) سره يوځاى شي چې په سر کې يې<br>يعني غږ لرونکي توري وي، نو د (wo) او د (Präposition) ترمينځ يو (r) ليکل کيږي. | پاملرنه |

| Fragewort mit einer Präposition mit Anfangsvokal | |
|---|---|
| falsch غلط | richtig صحيح |
| ~~wo + an = woan = falsch غلط~~ | wo + r + an = woran په څه شي |
| ~~wo + in = woin = falsch غلط~~ | wo + r + in = worin په څه شي کې |
| ~~wo + unter = wounter = falsch غلط~~ | wo + r + unter = worunter د څه شي لاندې |
| ~~wo + über = woüber = falsch غلط~~ | wo + r + über = worüber په څه شي باندې |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| Woran hast du dich verletzt? | ته په څه شي ټپي شوې؟ |
| Worin befand sich das Buch? | کتاب په څه شي کې و؟ |
| Worunter hast du das Buch gefunden? | د څه شي لاندې تا کتاب پيدا کړو؟ |
| Worüber war das Tuch ausgebreitet? | دا دسمال د څه شي دپاسه هوار شوى و؟ |

# Antworten ځواب ورکول

د پورتنو پوښتنو په ځواب کې د (da) له کلمې نه کار اخيستل کيږي چې مانا يې ده (په دې). نو کله چې (da) له يو (Präposition) سره يو ځاى شي، نو دا دې پورې اړه لري چې د دې (Präposition) لومړنى توری غږلرونکی دی او که بې غږه دی.

**① (da) له هغه (Präposition) سره چې لومړی توری يې بې غږه دی**

| da + Präposition ohne Anfangsvokal | |
|---|---|
| da + bei = dabei<br>ورسره مل | Er öffnete das Paket, ein Brief war nicht *dabei*.<br>هغه پارسل پرانيستو، يو ليك ورسره مل نه و |
| da + durch = dadurch<br>له مينځه يې | Es gibt nur eine Tür, *dadurch* muss jeder gehen.<br>تش يوه دروازه شته چې له مينځه يې هر څوك بايد تېر شي |
| da + gegen = dagegen<br>په ضد يې | Wenn Sie mich fragen, bin ich *dagegen*.<br>که چېرته تاسو له ما نه پوښتنه کوئ، زه يې په ضد يم |
| da + für = dafür<br>په بدل کې يې | Ich arbeite, *dafür* bekomme ich Geld.<br>زه کار کوم، په بدل کې يې پيسې لاس ته راوړم |
| da + hin = dahin<br>هلته | Wir können zu Fuß *dahin* gehen.<br>مونږ کوى شو چې په پښو هلته ورشو |
| da + mit = damit<br>په دې باندې | *Damit* kannst du ihn ruinieren.<br>په دې باندې ته هغه بربادولی شې |
| da + nach = danach<br>له دې نه وروسته | Eine halbe Stunde *danach* kam er wieder.<br>له دې نه نيم ساعت وروسته هغه بېرته راغى |

## ② (da) له هغه (Präposition) سره چې لومړی توری يې غږلرونکی دی

| da + Präposition mit Anfangsvokal | |
|---|---|
| da + r + an = daran<br>په دې باندې | *Daran* wird die Welt nicht zu Grunde gehen.<br>په دې باندې به نړۍ له مينځه ولاړه نشي |
| da + r + in = darin<br>په دې کې | Wie viele Menschen wohnen *darin*?<br>په دې کې څومره انسانان اوسيږي |
| da + r + über = darüber<br>دپاسه يې | An der Wand stand ein Tisch, *darüber* hing ein Spiegel. د دېوال تر څنګ يو ميز و، دپاسه يې يوه هنداره وه |
| da + r + unter = darunter<br>لاندې يې | Sie wohnen im 2. Stock und ich genau *darunter*.<br>هغوی په دوهم پوړ کې اوسيږي او زه ټيک لاندې يې اوسېږم |

د پوښتنو لپاره نور مثالونه:

| Fragewörter mit Nomen د اسمونو په برخه کې پوښتنې | |
|---|---|
| *Wie viele* Stunden seid ihr gewandert?<br>تاسو څو ساعته مزل وکړو؟ | Sieben Stunden. اوه ساعته |
| *Wie viel* Geld habt ihr ausgegeben?<br>تاسو څومره پيسې ولګولې؟ | Nicht mehr als 80 Euro.<br>له اتيا يورو نه ډېر نه |
| *Welches* Hotel hat euch am besten gefallen?<br>کوم هوټل ستاسو د ټولو نه ډېر خوښ شو؟ | Das Hotel „Stern“.<br>د (ستوري) هوټل |
| *Was für ein* Tier ist das? دا څه شان حيوان دی؟ | Das ist ein Esel. دا يو خر دی |

| د (wie viel) او (wie viele) تر مينځ توپير | |
|---|---|
| wie viel = څومره | د (wie viel) ځواب تل په مفرد کيږي، خو بې له (Artikel) |
| wie viele = څومره | د (wie viele) ځواب تل په جمع کيږي، خو بې له (Artikel) |

| wie + Adverb | |
|---|---|
| *Wie lange* seid ihr schon in Berlin?<br>څومره وخت کيږي چې تاسو په برلين کې ياست؟ | Wir sind schon einen *(Akk.)* Monat in Berlin. د يوې مياشتې راهيسې په برلين کې يو |
| *Wie oft* darf man Sport treiben?<br>څومره وخت سپورټ کولو ته اجازه ده؟ | Man darf jeden *(Akk.)* Tag Sport treiben. سړی کولی شي چې هره ورځ سپورټ وکړي |
| *Wie lang* war die Schlange? دا مار څومره اوږد و؟ | Die Schlange war einen *(Akk.)* Meter lang. دا مار يو متر اوږد و |
| *Wie hoch* ist der Berg? دا غر څومره جګ دی؟ | Dieser Berg ist 1000 Meter hoch. دا غر زر متره جګ دی |

**د (wie lang) او (wie lange) تر مینځ توپیر**

کله چي د یو شي د اوږدوالي په برخه کي پوښتنه کیږي، نو دا پوښتنه په (wie lang) کیږي. په ځواب کي به د همدې شي اوږدوالی ښودل کیږي چي څومره متره او داسي نور. نو ځکه په ځواب کي یې (lang) بېرته تکراریږي، لکه دوه متره اوږد (zwei Meter lang).
کله چي د یو وخت په برخه کي پوښتنه کیږي چي څومره وخت، دا پوښتنه په (wie lange) کیږي. د (wie lange) په ځواب کي به د یو وخت دوام ښودل کیږي چي څومره وخت، یعني دوه ساعته، دوه ورځي، دوه کاله او داسي نور. د ځواب په وخت بیا د (lange) کلمه بیا نه تکراریږي. مثال:

| wie lang څومره اوږد | wie lange څومره (وخت) |
|---|---|
| Wie lang ist der Tisch?<br>دا میز څومره اوږد دی؟<br>Der Tisch ist zwei Meter lang.<br>دا میز دوه متره اوږد دی | Wie lange soll ich noch auf dich warten?<br>زه څومره وخت نور تا ته انتظار وباسم؟<br>Du sollst noch eine Stunde auf mich warten. ته یو ساعت نور هم ماته انتظار وباسه |

# Indirekte Fragesätze

څه چي مو په پورتنی برخي کي زده کړل هغه (direkte Fragesätze) یعني مستقیمي پوښتني یا نیغ په نیغه پوښتني وی. د دې په څنګ کي غیرمستقیمي پوښتني شته چي هغه په فرعي جملو یا (Nebensätze) کي کیږي. غیرمستقیمي پوښتني یا (indirekte Fragesätze) زیاتره وخت د مؤدبه خلکو له خوا کارول کیږي او په غوږ دومره کلکي نه لګیږي، ځکه چي دا پوښتني په احترامانه ډول کیږي. اوس به د پوښتنو دواړه جملې څنګ په څنګ له نږدې نه وګورو:

| direkte Fragesätze مستقیمي جملې | indirekte Fragesätze غیر مستقیمي جملې |
|---|---|
| Wie spät ist es? څو بجې دي؟ | Wissen Sie, *wie* spät es ist?<br>تاسو ته پته ده چي څو بجې دي؟ |
| Ist der Minister verheiratet?<br>وزیر واده کړی دی؟ | Weißt du, ob der Minister verheiratet ist?<br>تا ته څه پته ده چي وزیر واده کړی دی او که نه؟ |
| Wann fährt der Zug ab?<br>اورګاډی کله ځي؟ | Können Sie mir sagen, wann der Zug abfährt تاسو ما ته ویلی شئ چي اورګاډی کله ځي؟ |
| Was kostet der grüne Pullover?<br>د دې شین بنین بیه څو ده؟ | Ich würde gern wissen, was der grüne Pullover kostet. زما هیله ده چي پوه شم چي د دې شین بنین بیه څو ده |
| Wo wohnen Sie, bitte?<br>تاسو په کوم ځای کي اوسیږئ؟ | Dürfte ich Sie fragen, wo Sie wohnen?<br>اجازه ده له تاسو نه وپوښتم چي تاسو چیرته اوسیږئ؟ |
| Wie alt sind Sie? تاسو څو کلن یاست؟ | Darf ich wissen, wie alt Sie sind?<br>اجازه ده چي زه پوه شم چي تاسو څو کلن یاست؟ |
| Wie komme ich bitte zur Bushaltestelle?<br>د سرویس تمځي ته کومه لار تللې ده؟ | Können sie mir bitte sagen, wie ich zur Bushaltestelle komme? تاسو ما ته ویلی شئ چي د سرویس تمځي ته کومه لاره تللې ده؟ |

غیر مستقیمي پوښتني په (Konjunktiv) کي هم شته چي تاسو یې کوی شئ هلته یې په لړ څه بله بڼه وګورئ.

**Übungen:** Bilden Sie indirekte Fragen mit Fragewort.

1. Wie heißt er? د هغه نوم څه دی؟
→ Ich habe keine Ahnung, ………… زه نپوهېږم چې د هغه نوم څه دی
2. Wo hast du das Kleid gekauft? دا جامي تا چېرته اخیستي دي؟
→ Ich weiß nicht mehr, ………… زه اوس نپوهېږم چې دا مې چېرته اخیستي دي
3. Wann kommt er uns besuchen? هغه زمونږ لیدلو ته کله راځي؟
→ Er hat nicht gesagt, ………… هغه ندي ویلي چې هغه کله زمونږ لیدو ته راځي
4. Warum hat sie so schlechte Laune? د هغه مزاج ولې دومره خراب دی؟
→ Ich kann dir nicht sagen, ………… زه درته نشم ویلی چې د هغه مزاج ولې خراب دی
5. Wer kommt zum Fest? څوك محفل ته راځي؟
→ Ich verrate dir nicht, ………… زه درته دا راز نه وایم چې څوك محفل ته راځي

**Lösungen:**
1. wie er heißt. 2. wo ich das Kleid gekauft habe. 3. wann er uns besuchen kommt. 4. warum sie so schlechte Laune hat. 5. wer zum Fest kommt.

**Übungen:** Bilden Sie indirekte Fragen mit *ob*!

1. Haben die Museen sonntags geöffnet? د یکشنبې په ورځ موزیمونه پرانیستي دي؟
→ Ich bin mir nicht sicher, …………
زه متیقن نه یم چې د یکشنبې په ورځ موزیمونه پرانیستي دي او که نه
2. Ist dein Bruder jetzt im Urlaub? اوس ستا ورور په رخصتی تللی دی؟
→ Ich weiß nicht, ………… زه نپوهېږم چې زما ورور په رخصتی تللې دی او که نه
3. Ist er verheiratet? هغه واده کړی دي؟
→ Ich verrate dir nicht, ……… زه درته دا راز نه وایم چې هغه واده کړی دی او که نه
4. Sprechen sie Deutsch oder Englisch? هغوی جرمني غږيږي او که انګلیسي؟
→ Ich verstehe nicht, ………… زه نپوهېږم چې هغوی په جرمني غږيږي او که په انګلیسي؟
5. Ist das eine Sommermode oder Wintermode? دا د اوړي موډ دی او که د ژمي موډ ؟
→ Ich möchte nicht darüber urteilen, …………
زه په دې برخه کې نه غواړم قضاوت وکړم چې دا د اوړي موډ دی او که د ژمي

**Lösungen**:
1. ob die Museen sonntags geöffnet haben. 2. ob mein Bruder jetzt im Urlaub ist. 3. ob er verheiratet ist. 4. ob sie Deutsch oder Englisch sprechen. 5. ob das eine Sommermode ist oder Wintermode.

**Übungen:** Bilden Sie indirekte Fragen.

1. Warum will er Französich lernen? هغه ولې غواړي چې فرانسوي زده کړي؟
→ Frag mich nicht, …………
ته له ما نه دا پوښتنه مه کوه چې هغه ولې فرانسوي زده کول غواړي
2. Hat die Polizei den Einbrecher gefasst? هغي مونږ
→ Ich weiß nicht, ………… زه پرې نپوهېږم چې پولیسانو داړه مار ونیو او که نه

3. Sind sie schon wieder abgereist? هغوی بېرته په سفر تللي دي؟
→ Ich habe noch nicht nachgesehen, …………
ما ندي کتلي چې هغوی بېرته په سفر تللي دي او که نه
4. Wie soll ich mich verhalten? زه څه شان چلند وکړم؟
→ Ich weiß auch nicht, ………… زه پرې هم نپوهېږم چې ته څه شان چلند وکړې
5. Wessen Befehl ist das? دا د چا امر دی؟
→ Ich habe keine Ahnung, ………… زه پرې خبر نه يم چې دا د چا امر دی

**Lösungen:**
1. warum er Französich lernen will. 2. ob die Polizei den Einbrecher gefasst hat. 3. ob sie schon wieder abgereist sind. 4. wie du dich verhalten sollst. 5. wessen Befehl das ist.

## Rektion der Verben د فعلونو د حالاتو څرګندونه

په دې چې په جرمني ژبه کې څلور حالات (Nominativ, Genitiv, Dativ, Akkusativ) موجود دي، نو دې ته څه قاعده نشته چې کوم فعل له کوم حالت سره استعمال شي. له بده مرغه جرمني فعلونه د پښتو فعلونو د حالاتو سره ډېر توپير لري. د بېلګې په توګه کله چې سړی له يو چا نه مننه کوي، نو په پښتو کې ويل کېږي چې:

| |
|---|
| زه (له تا نه) مننه کوم |

خو په جرمني ژبه کې داسې ويل کېږي چې :

| |
|---|
| Ich danke dir. زه (تا ته) مننه کوم |

همدا شان د پوښتنې کولو لپاره په پښتو کې ويل کېږي چې:

| |
|---|
| زه (له تا نه) پوښتنه کوم |

خو په جرمني ژبه کې ويل کېږي چې:

| |
|---|
| Ich frage dich. زه (تا) پوښتنه کوم |

داسې نور په زرګونو فعلونه شته چې سړی نپوهېږي چې دې فعلونو سره کوم حالات راځي. په تېره بيا د (Dativ) او د (Akkusativ) د فعلونو پېژندل ډېر ګران کار دی. د بېلګې په توګه به د (پوښتنه کول) (fragen) او د (ځواب ورکول) (antworten) فعلونه ووينو:

| | |
|---|---|
| Ich frage ihn (= *Akkusativ*)<br>زه له هغه نه پوښتنه کوم | Ich antworte ihm (= *Dativ*)<br>زه هغه ته ځواب ورکوم |

نو په دې ډول په دې چې د حالاتو د پېژندلو لپاره کومه ځانګړې قاعده نشته، نو کله چې مونږ يو فعل زده کوو، نو ناچار حالت يې هم بايد ورسره زده کړو. په دې لاندې برخه کې به ووينو چې کوم فعل له کوم حالت سره راځي.

**① Verben mit Akkusativ**
له (Akkusativ) سره بې شمېره فعلونه موجود دي چې په لاندې برخه کې به يو څو فعلونه ياد شي.
① هغه فعلونه چې يو اصلي فاعل لري:

| | | | |
|---|---|---|---|
| kaufen | په بيه اخيستل | Er kauft einen Computer. | هغه يو کمپيوټر په بيه اخلي |
| essen | خوړل | Ich esse einen Apfel. | زه يوه منه خورم |
| trinken | څښل | Das Kind trinkt ein Glas Wasser. | ماشوم يو ګيلاس اوبه څښي |
| sehen | ليدل | Siehst du die Berge? | ته دا غرونه وينې؟ |

② هغه فعلونه چې د فاعل په ځای د جملې په سر کې (es) او د فرعي جملې په سر کې (dass …) راځي:

| | | |
|---|---|---|
| ärgern | په قهرول | Es ärgert mich, dass du zu spät gekommen bist.<br>زه په دې باندې په قهر يم چې ته ناوخته راغلی يې |
| beunruhigen | ناراملول | Es beunruhigt ihn, dass sein Sohn raucht.<br>هغه دې ته نارامه دی چې د هغه زوی سګرټ څکوي |
| wundern | تعجب کول | Es wundert mich, dass du die Prüfung bestanden hast.<br>زه دې ته تعجب کوم چې ته په ازموينه کې بريالی شوی يې |
| freuen | خوښيدل | Es freut mich, dass du gekommen bist.<br>زه په دې خوښ يم چې ته راغلی يې |

③ زياتره نه بېلېدونکي فعلونه چې په سر کې يې (be-, ver-, zer,-) راځي، نو (Akkusativ) ته اړتيا لري:

| | | |
|---|---|---|
| besuchen<br>د يو چا ليدو ته ورتلل | Ich besuche meinen Sohn. | زه د خپل زوی ليدو ته ورځم |
| verlassen<br>له يوه ځايه وتل | Er verließ die Schule. | هغه له ښوونځي نه ووت |
| verstehen پوهېدل | Ich habe dich nicht verstanden. | زه ستا په خبرو پوه نشوم |
| zerbrechen ماتول | Das Kind zerbrach den Teller. | ماشوم قاب مات کړو |

④ کله چې د يوې جملې په سر کې (es gibt …) راشي، او يا د (haben) فعل ګردان شي، نو تل (Akkusativ) ورسره راځي:

| | |
|---|---|
| Es gibt keinen Beweis dafür.<br>د دې لپاره کوم ثبوت نشته | Wir haben einen Garten. مونږ يو باغ لرو |
| Es gibt viele Länder. ډېر هېوادونه شته | Er hatte das beste Zeugnis.<br>له تولو نه د هغه بريليك ښه و |
| Es gibt keinen Grund dafür.<br>دې ته څه دليل نشته | Er hat keinen Respekt vor mir.<br>هغه ما ته هېڅ په درنه سترګه نه ګوري |
| Es gibt nur einen Menschen, der mich glücklich machen kann.<br>تش يو انسان شته چې ما نېکمرغه کوی شي | Ich habe keinen Hunger. زه وږی نه يم |

⑤ کله چې له يو (Akkusativ) فعل نه يوه (Aktiv) جمله جوړه شي او بيا دا جمله په (Passiv) بدله شي، نو په دې وخت کې د (Aktiv) جملې (Akkusativ) د (Passiv) د جملې (Nominativ) يا فاعل ګرځي. مثال:

| Aktiv | Passiv |
|---|---|
| Ich esse einen Apfel. زه مڼه خورم | Der Apfel wird von mir gegessen. مڼه زما له خوا خوړل کیږي |
| Er löscht den Brand. هغه اور مړ کوي | Der Brand wird von ihm gelöscht. اور د هغه له خوا مړ کیږي |

په پورتنۍ لومړۍ جمله کې (einen Apfel) په (Aktiv) جمله کې د (Akkusativ) حالت لري، خو د (Passiv) په جمله کې (der Apfel) د (Nominativ) یا فاعل حالت لري.
همدا شان په دوهمه جمله کې (den Brand) په (Aktiv) جمله کې د (Akkusativ) حالت لري، خو د (Passiv) په جمله کې (der Brand) د (Nominativ) یا فاعل حالت لري.

| | |
|---|---|
| **پاملرنه** | که تاسو په پورتني معلومات ښه پوه شوي نه یاست، نو په دغه ځای مه نهیلي کیږي، د (Aktiv) او (Passiv) په برخه کې بشپړ معلومات وروسته د (Aktiv und Passiv) په مبحث کې تشریح شوی دی چې هلته به مو هرومرو زده شي. |

**Übungen**:

Setzen Sie die passenden Verben sowie die unbestimmten Artikel ein!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| backen | besuchen | brauchen | essen | haben |
| hören | lesen | machen | rauchen | trinken |

1. Mein Vater ………… jeden Tag ………… Flasche Apfelsaft.
زما پلار هره ورځ یو بوتل د مڼو شربت څښي
2. Der Diabetiker ………… schon seit drei Wochen ………… Diät.
د شکرې په ناروغۍ اخته مریض د درې اونیو راهیسې پرهیز کوي
3. Der Idiot ………… schon wieder ………… Zigarette. دا احمق بیا سګرټ څکوي
4. Mein Freund ………… nur ………… Sohn. زما ملګری تش یو زوی لري
5. Mein Großvater ………… abends gern ………… Buch.
زما نیکه د ماښام له مخې په شوق سره یو کتاب لولي
6. Unsere Schule ………… ………… neue Sporthalle.
زمونږ ښوونځي ته یو نوي سپورتي تالار پکار دی
7. Ich ………… heute Abend ………… Kumpel von mir.
نن ماښام زه د خپل یو انډیوال لیدو ته ورځم
8. Das Kind ………… ………… Apfel. ماشوم یوه مڼه خوري
9. Der Bäcker ………… heute ………… Kuchen. نانبای نن یو کیك پخوي
10. Der Musiker ………… gerade ………… Musikkassette.
موسیقار اوس د موسیقۍ یو کسټ اوري

**Lösungen:**

1. trinkt eine 2. macht eine 3. raucht eine 4. hat einen 5. liest ein
6. braucht eine 7. besuche einen 8. isst einen 9. backt einen 10. hört eine

## ② Verben mit Dativ

له (Dativ) سره فعلونه ډېر لږ دي. دا فعلونه ټول (intransitiv) یا لازمي فعلونه دي. له دې نه مطلب دا چې دا فعلونه کوم (Akkusativ) ته اړتیا نلري. د (Dativ) جملو د پوښتنو لپاره تل داسې پوښتنه کیږي چې: (wem?) یعني (چا ته؟) خو کله چې ځواب یې سړی واوري، نو سړي ته دا فکر پیدا کیږي چې د (wem) مانا به غلطه ژباړل شوې وي. د دې مطلب لپاره به لاندینی جمله ووینو.

| | |
|---|---|
| Wem dankte der Mann?<br>دې سړي له چا نه مننه وکړه؟ | Der Mann dankte dem Helfer.<br>دې سړي له مرستندوی نه مننه وکړه |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | په پورتنۍ جمله کې د (wem) مانا (له چا نه) لیکل شوېده. خو په لغوي مانا (wem) (یو چا ته) ته وایي. نو دا ولې د (یو چا ته) په ځای (له چا نه) ژباړه وشوه؟ آیا دا ژباړه غلطه ده؟ |
| ځواب | نه، دا ژباړه غلطه نده. مهم ټکی دا دی چې په جرمني ژبه کې داسې نه ویل کیږي چې (ته له چا نه مننه کوې) بلکې داسې ویل کیږي چې (ته چا ته مننه کوې). نو ځکه بیا ځواب هم په (Dativ) راځي او ویل کیږي چې (زه پلانکي ته) مننه کوم. بل مثال |

| | |
|---|---|
| Wem hilft der Junge?<br>دا هلك له چا سره مرسته کوي ؟ | Der Junge hilft seinem Vater.<br>دا هلك له خپل پلار سره مرسته کوي |

څنګه چې په پورتنۍ جمله کې لیدل کیږي، په جرمني ژبه کې داسې نه ویل کیږي چې (ته له چا سره مرسته کوې؟ بلکې داسې ویل کیږي چې (ته چا ته) مرسته کوې. دا چې ولې (چا ته) ویل کیږي، نو دا د هرې ژبې خپله ځانګړتیا ده.
کله چې له (Dativ) سره یوه (Aktiv) جمله جوړه شي او بیا په (Passiv) واړول شي، نو په (Passiv) کې هم د جملې (Dativ) پخپل حال پاتې کیږي، یعني (Nominativ) یا د جملې فاعل ورنه نه جوړیږي.
مثال:

| Aktiv | Passiv |
|---|---|
| Er hilft dir. هغه له تا سره مرسته کوي | Dir wird von ihm geholfen.<br>له تا سره د هغه له خوا مرسته کیږي |
| Der Lehrer gratulierte dem Schüler.<br>ښوونکي زده کوونکي ته مبارکي وویله | Dem Schüler wurde vom Lehrer gratuliert. له خوا ښوونکي د ته کوونکي زده مبارکي وویل شوه |

څنګه چې په پورتنیو جملو کې لیدل کیږي، هم په (Aktiv) او هم په (Passiv) کې (Dativ) پخپل حال پاتې دی. د (Dativ) فعلونو نه یو څو مهم فعلونه په لاندې جدول کې لیکل شوي او په جملو کې استعمال شویدي:

| Verb | Beispielsätze |
|---|---|
| absagen<br>منفي ځواب ورکول | Ich muss Ihnen morgen leider absagen.<br>زه ناچار یم چې د سبا لپاره تاسو ته منفي ځواب درکړم |
| ähneln مشابهت لرل،<br>ورته اوسېدل | Das Kind ähnelt seinem Vater sehr.<br>ماشوم خپل پلار ته ډېر ورته دی، د خپل پلار سره ډېر مشابهت لري |
| antworten یو چا ته<br>ځواب ورکول | Warum antwortest du mir nicht? ته ما ته ولې ځواب نه راکوې؟ |
| begegnen یو څوک د<br>یو چا په مخه راتلل | Gestern bin ich einem sehr hübschen Mädchen begegnet.<br>پرون یوه ډېره ښایسته نجلۍ زما په مخه راغله |

| | |
|---|---|
| beitstehen د یو چا سره مرسته کول | Lieber Gott. Steh mir bei! ګرانه خدایه، ته له ما سره مرسته وکړه |
| beitreten ځان په یوه ډله کې شاملول | Er ist einer politischen Partei beigetreten. هغه ځان په یو سیاسي ګوند کې شامل کړو |
| danken له یو چا نه مننه کول | Ich danke Ihnen. زه له تاسو نه مننه کوم |
| dienen د یو چا خدمت کول | Womit kann ich Ihnen dienen? زه ستاسو څه خدمت وکړم؟ |
| drohen یو چا ته ګواښ کول | Willst du mir etwa drohen? ته غواړې چې ما ته ګواښ وکړې؟ |
| einfallen په فکر کې ګرځېدل | Zu deinem Problem fällt mir leider auch nichts ein. ستا د ستونځې په برخه کې زما په فکر کې هم هېڅ نه ګرځي |
| entgegenkommen د یو چا مراعات کول | Warum kommst du mir nicht ein bisschen entgegen? ته ولې لږ غوندې زما مراعات نکوې؟ |
| fehlen یو څوک د یو چا په یاد کې ګرځېدل | Seine verstorbene Mutter fehlt ihm so sehr. د هغه په حق رسېدلې مور د هغه ډېره په یاد کې ګرځي |
| folgen یوچا پسې تلل د یو چا شا شا ته تلل | Bitte folgen Sie mir unauffällig. بې له دې چې څوک پوه شي، تاسو زما شا شا ته راشئ |
| gefallen خوښېدل | Gefällt dir dieses Bild? دا عکس ستا خوښیږي؟ |
| gehorchen یو چا ته احترام کول | Alle Kinder müssen ihren Eltern gehorchen. ټول ماشومان باید د خپل مور او پلار احترام وکړي |
| gehören یو شی د یو چا مال اوسېدل | Gehört das Schiff dir? دا بېړۍ ستا ده؟ د دې بېړۍ خاوند ته یې؟ |
| gelingen سرته رسېدل، جوړېدل | Der Kuchen ist dir sehr gut gelungen. دا کیك ستا له خوا په ډېر ښه ډول جوړ (پوخ) شوی دی |
| genügen بسېدل، کفایت کول | Das genügt mir nicht. دا ما ته بس ندی، دا ماته کفایت نکوي |
| glauben د یو چا په خبرو باور کول | Seine Freunde glauben ihm nicht. د هغه ملګري د هغه په خبرو باور نکوي |
| gratulieren یو چا ته مبارکي ویل | Seine Freunde gratulierten ihm zum Geburtstag. د هغه ملګرو هغه ته د هغه د کلیزې مبارکي ووېله |
| gut tun یو چا ته ګټه رسول | Die Reise wird dir gut tun. دا سفر به درته ګټه ورسوي |
| helfen له یو چا سره مرسته کول | Könnten Sie mir einen Augenblick helfen? تاسو کوی شئ چې له ما سره یوه شیبه مرسته وکړئ؟ |
| missfallen له یو چا نه بد راتلل | Sein Freund missfällt seinem Vater. د هغه ملګری د هغه د پلار بدې راځي |
| sich nähern یو ځای ته نږدې کېدل | Der Feind näherte sich der Stadt. دښمن ښار ته رانږدې شو |
| nachlaufen یو چا پسې تلل | Der Hund läuft seinem Herrn nach. سپی د خپل خاوند پسې روان دی |
| nützen یو چاته ګټه رسول | Das nützt mir gar nichts. دا ما ته څه ګټه نه رسوي |

| | |
|---|---|
| passen په ځـان کـې جـوخـت اوسېدل | Der neue Anzug passt deinem Bruder sehr gut.<br>دا نوې درېشي ستا د وررور په ځان کې ښه جوخته ده |
| passieren په يو چا پېښېدل | Das ist mir vorher noch nie passiert.<br>دا ما ته له دې نه مخکې هېڅ ندي راپېښ شوي |
| platzen چاودېدل، حوصله پای ته رسېدل | Mir platzt gleich der Kragen!<br>زما حوصله نږدې ده چې پای ته ورسيږي |
| raten مشوره ورکول | Ich rate dir, schnellstens zum Arzt zu gehen.<br>زه تا ته دا مشوره درکوم چې ته ژر تر ژره ډاکټر ته ولاړ شه |
| sich schaden ځان ته تاوان رسول | Du schadest dir nur selbst, wenn du lügst.<br>کـه چېرته ته دروغ وواييې، نو ته به ځان ته تاوان ورسوې |
| schmecken خوند ورکول | Diese Speise schmeckt meinem Vater besonders gut.<br>دا خواړه زما پلار ته ډېر خوند ورکوي |
| vertrauen اعتماد کول، باور کول | Er vertraut seinem Sohn nicht mehr.<br>هغه پخپل زوی نور اعتماد نکوي |
| verzeihen ښنل، عفوه کول | Verzeih mir nur noch das eine Mal! دا راته يو ځل وبښه |
| weh tun درد کول | Mein Zahn tut mir sehr weh. زما غاښ ډېر خوږيږي |
| widersprechen د يو چا خبره ردول | Du sollst mir nicht widersprechen! ته زما خبرې مه ردوه |
| zuhören د يو چا خبرو ته غوږ ايښودل | Kannst du mir nicht einmal zuhören?<br>ته نشې کولی چې يو ځل زما خبرو ته غوږ کېږدې؟ |
| zustimmen د يـو شـي سـره موافقه کول | Ich kann deiner Argumentation nicht zustimmen.<br>ستا د دلايلو سره زه موافقه نشم کولی |

**Übungen:** Setzen Sie passende Verben ein!

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| antworten<br>ځواب ورکول | danken<br>مننه کول | fehlen<br>نشتوالي احساسول | gefallen<br>خوښېدل | gehören<br>د يو چا اوسېدل |
| glauben<br>باور کول | gratulieren<br>مبارکي ويل | helfen<br>مرسته کول | sagen<br>ويل | schmecken<br>خوند کول |

1. Deutschland gefällt mir sehr gut. Aber meine Heimat und meine Freunde ……… mir sehr. د جـرمني هـېـواد زما ډېر خوښيږي. خو زه د خپل هېـواد او د خپلو ملګـرو د نشتوالي احساس کوم
2. Ich …………… Ihnen für Ihre Hilfe. زه له تاسو نه ستاسو د مرستې نه مننه کوم
3. Meine Lehrerin hat heute Geburtstag. Wir müssen ihr ……………. نن زما د ښوونکې کليزه ده. مونږ بايد ورته مبارکي ووايو
4. Am Wochenende wollen wir umziehen. Kannst du uns dabei ……………? مونږ غواړو چې د اونۍ په پای کې بل ځای ته کډه وکړو. ته له مونږ سره مرسته کوی شې؟
5. Der Lehrer fragt den Schüler. Aber er …………… ihm nicht. ښوونکی له زده کوونکي نه پوښتنه کوي. خو هغه ورته ځواب نه ورکوي
6. Der Kuchen …………… meinen Kindern außerordentlich gut. دا کيک زما ماشومانو ته ډېر خوند ورکوي

7. Er lügt immer. Ich …………… ihm kein einziges Wort mehr.
هغه تل دروغ وايي. زه د هغه په يوه خبره هم باور نکوم
8. Von wem ist das Buch? Jakob, …………… es dir?
دا کتاب د چا دی؟ يعقوبه. دا ستا دی؟
9. Das Hemd ist wirklich sehr hübsch. Es …………… mir sehr gut.
دا کميس په ريښتيا چې ډېر ښايسته دی. زما ډېر خوښيږي
10. Warum …………… du mir eigentlich dauernd die Unwahrheit?
ته ولې تل مدام ناسمه خبره کوې؟

**Lösungen:**

1. fehlen 2. danke 3. gratulieren 4. helfen 5. antwortet 6. schmeckt 7. glaube 8. gehört 9. gefällt 10. sagst

## ③ Verben mit Dativ und Akkusativ

ډېر لږ فعلونه شته چې هغوی دوه مفعولونو ته، يعني (Dativ) او (Akkusativ) ته اړتيا لري. په لاندېني جدول کې له دې ډلې نه مهم فعلونه په جملو کې يادول کيږي:

| | |
|---|---|
| anvertrauen يو چا ته په اعتماد يو څه ويل | Ich will dir ein Geheimnis anvertrauen.<br>زه غواړم چې تا ته يو پټ راز په اعتماد ووايم |
| beantworten ځواب ورکول | Kannst du mir bitte meine Frage beantworten!<br>ته که مهرباني وکړئ او زما پوښتنې ته ځواب ووايې |
| beweisen ثبوتول | Das werde ich dir beweisen. دا به زه تا ته ثبوته کړم |
| borgen په امانت ورکول | Kannst du mir bis morgen dein Auto borgen?<br>ته کوی شي تر سبا پورې ما ته خپل موټر په امانت راکړې؟ |
| bringen راوړل | Mein Sohn, bring uns bitte eine Kanne Tee.<br>زما زويه، ته مونږ ته يو چاينك چاې راوړه |
| empfehlen ښودل، توصيه کول | Können Sie uns ein gutes Restaurant empfehlen?<br>تاسو کوی شئ چې مونږ ته د يو ښه رستوران سپارښتنه وکړئ؟ |
| erklären تشريح کول | Kannst du mir das nochmal erklären?<br>ته کوی شي چې دا يو ځل بيا ما ته تشريح کړې؟ |
| erlauben اجازه ورکول | Ich erlaube ihm, das Buch mitzunehmen.<br>زه هغه ته اجازه ورکوم چې کتاب له ځانه سره واخلي |
| erzählen کيسه کول | Opa, kannst du uns eine Geschichte erzählen?<br>بابا، ته کوی شي چې مونږ ته يوه کيسه وکړې؟ |
| geben ورکول | Warum gibst du es mir nicht? ته يې ما ته ولې نه راکوې؟ |
| glauben په يو شي باور کول | Ich glaube dir kein einziges Wort mehr.<br>زه نور ستا په يوه خبره هم باور نکوم |
| kaufen په بيه اخيستل | Mein Vater kauft mir ein Motorrad.<br>زما پلار ما ته يو موټرسيکل په بيه اخلي |
| leihen په امانت ورکول | Ich leihe niemandem mein neues Auto.<br>زه خپل نوی موټر هيڅ چا ته په امانت نه ورکوم |
| liefern وړل، رسول، استول | Die Firma liefert uns die bestellte Ware nicht.<br>کمپنی مونږ ته غوښتل شوی جنس نه راستوي |

| | |
|---|---|
| mitteilen یو چا ته یو خبر او یا څه معلومات ورکول | Er hat uns seine neue Telefonnummer mitgeteilt. هغه مونږ ته خپله نوي د ټیلفون شمیره راکړه |
| rauben غلا کول | Die Räuber raubten uns unser ganzes Geld. غلو زمونږ ټولې پیسې غلا کړې |
| reichen ورکول، ورغځول | Der Verlierer reichte dem Gewinner seine Hand. بایلونکي ګټونکي ته خپل لاس وروغځو |
| sagen ویل | Warum hast du mir das nicht gesagt? تا ما ته دا ولې ونه ویل؟ |
| schenken یو چا ته وربښل، سوغات ورکول | Schenkst du mir deine alte Uhr? ته ما ته خپل زوړ ساعت رابښې؟ |
| schicken لیږل، استول | Ich schicke Ihnen einen Brief. زه تاسو ته یو لیك استوم |
| schreiben لیکل | Du hast mir wieder keine Postkarte geschrieben! تا ما ته بیا کوم پوست کارټ ونه لیکو |
| senden استول ، لیږل | Ich werde Ihnen eine E-Mail senden. زه به تاسو ته یو برېښنالیك واستوم |
| stehlen غلاکول | Man hat mir das Geld gestohlen. کوم چا زما پیسې غلا کړې دي |
| überlassen یو چاته پرېښودل | Unsere Tante hat uns ihr Vermögen überlassen. زمونږ ترور خپله شتمني مونږ ته پرې ایښې ده |
| verbieten منع کول | Ich verbiete es dir. دا شی زه تا ته منع کوم |
| verschweigen له یو چا نه یوه خبره پټول، خبره نه کول | Warum hast du uns deine Niederlage verschwiegen? تا له مونږ نه خپله ناکامي ولې پټه کړه؟ |
| versprechen یو چا ته د یو شي وعده کول | Du hast es mir versprochen. تا ما ته د دې ژمنه کړېده |
| weg\|nehmen له یو چا نه یو څه اخیستل | Es ist ganz leicht, dem Kind den Ball wegzunehmen. له ماشوم نه توپ اخیستل اسان کار دی |
| wünschen هیله کول، غوښتل | Ich wünsche Ihnen ein frohes neues Jahr. زه تاسو ته یو هوسا نوی کال غواړم |
| zeigen ښودل | Zeig mir deinen Fuß! ته ما ته خپله پښه راوښایه |

## ④ Verben mit zwei Akkusativen

ډېر لږ فعلونه شته چې دوه (Akkusativ) ته اړتیا لري. په راتلونکي جدول کې مهم فعلونه په جملو کې کارول شوي دي:

| Beispielsätze | Verb |
|---|---|
| nennen په یوه نامه یادول | Er nannte mich einen Dummkopf. هغه ما ته احمق وویل |
| kosten په یوه بیه تمامېدل، په یو شي باندې پیسې لګېدل | Das hat mich einen großen Haufen Geld gekostet. په دې باندې زما یو خروار پیسې ولګېدلې |
| schimpfen په یوه بده نامه یادول، په یوه نامه کنځل | Sie schimpfte den Mann einen Betrüger. هغې دې سړي ته ټګ وویل، دا سړی یې د ټګ په نامه یاد کړو |
| lehren یو چا ته یو څه ورزده کول، یو څه ورښودل | Er hat mich Schwimmen gelehrt. هغه ما ته لامبو راوښودله |
| schelten یو خوك دګل، یو چا ته بدې ردې ویل | Sie schalt ihn einen Esel. هغې هغه ته خر وویل، هغې هغه د خره په نامه یاد کړو |

## ⑤ Verben mit Genitiv

د (Genitiv) فعلونه نه یوازې لږ دي، بلکې دا فعلونه مخ په له مینځه تلو دی، نو په لاندې جدول کې ځینې فعلونه یادیږي چې کله کله په دفترونو او یا ادبي لیکنو کې ورځینې کار اخیستل کیږي. په ورځینې ژوند او غیر رسمي ځایو کې ورځخه کار نه اخیستل کیږي.

| Verb | Beispielsätze |
|---|---|
| anklagen په محکمه کې به یو چا دعوه کول | Er war des Mordes angeklagt.<br>په هغه باندي په محکمه کې د مرګ دعوه شوي وه |
| annehmen<br>یو څه منل، په غاړه اخیستل | Wir nahmen uns des Themas an.<br>دا موضوع مونږ په غاړه واخیستله |
| bedienen له یو شي نه کار اخیستل، استفاده کول | Darf ich mich kurz Ihres Telefons bedienen?<br>اجازه ده چې زه ستاسو له تیلفون نه استفاده وکړم؟ |
| bedürfen یو شي ته اړتیا اوسیدل، ضرورت اوسیدل | Es bedarf keines Wortes. کومې کلمې یا خبرې ته اړتیا نشته |
| bemächtigen په یو شي باندې برغل کول او هغه په زور خپل لاس کې نیول | Da bemächtigte sich der Teufel ihrer Seelen.<br>شیطان د هغوی روح په زور پخپل لاس کې ونیو |
| beschuldigen په یو چا باندې یو تور لګول | Man beschuldigte ihn des Betrugs.<br>په هغه باندي د تقلب تور لګول شوی دی |
| besinnen حافظې ته راتلل، راپه یادیدل | Sie besannen sich eines Besseren.<br>هغوی ته یو لاپسې یو ښه تصمیم ورپه یاد شو |
| bezichtigen په یو چا یو تور لګول، یو څوک تورن کول | Er wurde des Diebstahls bezichtigt.<br>په هغه باندي د غلا تور ولګول شو |
| enthalten له یو شي نه ډډه کول | Er enthielt sich jeglichen Kommentars.<br>هغه له هر شان تبصرې نه ډډه وکړه |
| entledigen<br>ځان له یو چا نه خلاصول | Er versuchte, sich seines Gegners zu entledigen.<br>هغه کوښښ وکړو چې ځان له خپل سیال نه خلاص کړي |
| erbarmen په یو چا رحم کول، زړه خوږیدل | Gott, erbarme dich unser! خدایه په مونږ مهربان شه |
| erfreuen په یو ښه حالت یا درېځ کې اوسیدل | Sie erfreut sich bester Gesundheit.<br>د هغې روغتیایي حالت ډېر ښه دی |
| erinnern<br>یو شی د یو چا په یاد اوسیدل | Ich erinnere mich dessen noch sehr genau.<br>دا زما ډېر ښه په یاد دي |
| freuen<br>له یو شي نه خوند اخیستل | Er freut sich seines Lebens. هغه له خپل ژوند نه خوند اخلي |
| gedenken د یو چا یاد کول، یو څوک یادول | Der Opfer wurde gedacht. د قربانیانو یاد کول |
| harren یو شي ته سترګې په لار اوسیدل، په انتظار اوسیدل | Ich harre der Dinge, die da kommen.<br>زه هغه شیانو ته سترګې په لار یم چې راځي |
| rühmen په یو شي ویاړل، افتخار کول | Sie können sich rühmen, Ihr Werk vollendet zu haben. تاسو په دې ویاړلی شئ چې خپل اثر مو بشپړ کړو |
| schämen په یو شي شرمیدل | Ich schäme mich dessen. زه په دې شرمیږم |

| | |
|---|---|
| überführen<br>په يو چا يو څه ثبوتول، ثابتېدل | Der Minister wurde der Lüge überführt.<br>په وزير باندې دروغ ثابت شول |
| verdächtigen يو څوك په يو شي تورن كول، تورنول | Man verdächtigte sie der Spionage.<br>په هغې باندې د جاسوسۍ تور ولګول شو |
| vergewissern ځان مطمئنول، خاطرجمع كول | Sie hat sich der Zuverlässigkeit dieses Mannes vergewissert. هغې د دې سړي د اعتماد له پلوه ځان مطمئن كړو |
| versichern يو چا ته ډاډ وركول، يو څوك مطمئنول | Ich versichere dich meiner Hilfe.<br>زه تا ته د خپلې مرستې ډاډ دركول |
| zeigen په يو چا يو تور لګول، يو څوك تورن كول | Er wurde des Diebstahls angezeigt.<br>په هغه باندې دغلا تور ولګول شو |

### ⑥ Verben mit Akkusativ und Genitiv

هغه فعلونه چې له (Akkusativ) او (Genitiv) سره په ګډه استعمالیږي، زیاتره حقوقي لغات دي چې په محکمو او قضایي چارو کې کارول کیږي. په جمله کې لومړی (Akkusativ) او وروسته (Genitiv) راځي. د دې لغاتو نه هغه څوك كار اخلي چې ژبنۍ سويه يې اوچته وي او ادبي ليكنې كوي. نو دا لغات په لاندیني جدول کې لیکل شوي دي:

| Verb | Beispiele |
|---|---|
| anklagen په يو چا باندې په محكمه كې دعوه كول | Man klagte ihn des Mordes an.<br>په هغه باندې د قتل دعوه وشوه |
| bezichtigen په يو چا تور لګول، يو څوك تومتي كول | Sie bezichtige ihn der Unehrlichkeit.<br>هغې په هغه تور ولګو چې اخلاصمند نه دی |
| überführen په يو چا باندې يو ناوړه كار ثابتول | Die Polizei überführte den Autofahrer der Trunkenheit am Steuer. پولیسو په دريور باندې دا ثابته چې په نشه حالت كې يې موټر يې چلوه |
| verdächtigen يو څوك په يوه خبره تومتي كول | Man verdächtigte den Zeugen der Lüge.<br>شاهد په دې تومتي شو چې دروغ يې ويلي دي |

**Übungen:**

Setzen Sie die Artikel, Adjektive und Nomen in der richtigen Form ein *(Genitiv, Dativ, Akkusativ)*.

1. Mit (das rote Boot) …… fuhren sie (ein reißender Fluss) …… entlang.
هغوی په يو سور ماكو (سرې بېړۍ) كې د يو سيند په اوږدو كې ولاړل چې ډېر تيز بهېدو
2. Während (der letzte Uraub) …… wohnten wir in (eine schöne Ferienwohnung) ……. په تېرې رخصتۍ كې مونږ په يو ښكلي د رخصتۍ استوګنځي كې واوسېدلو
3. Er gab (die Lehrerin) …… (der Brief) …… (der Vater) …….
هغه ښوونكې ته د پلار ليك وركړو

**Lösungen:**

1. Mit dem roten Boot fuhren sie einen reißenden Fluss entlang.
2. Während des letzten Urlaubs wohnten wir in einer schönen Ferienwohnung.
3. Er gab der Lehrerin den Brief des Vaters.

**Übungen:**

Setzen Sie die Pronomen richtig ein (Genitiv, Dativ, Akkusativ).

1. Ist es okay, wenn ich (du) ...… heute besuchen komme? Ich wollte (du) ...… (du) ...… Jacke zurückbringen.
   دا سمه ده چې زه نن ستا کور ته درشم؟ ما غوښتل چې تا ته ستا کرتۍ بېرته دروړم
2. Wegen (sie) ...… jugendlichen Aussehens muss sie im Kino immer (sie) ...… Ausweis zeigen.
   د تنکۍ پېغلې په شان ښکاره کېدو په وجه هغه مجبوره ده چې په سینما کې خپله پېژندپانه وښایي
3. Er öffnete (er) ...… Tür und schaute (wir) ...… überrascht an. Er hatte nicht mit (wir) ...… Besuch gerechnet.
   هغه دروازه خلاصه کړه او مونږ ته یې په حېرانتیا وکتل. هغه زمونږ د ورتلو په تمه نه و
4. Aufgrund (ihr) ...… Aussage konnte der Dieb (ich) ...… Geldbörse gefasst werden. ستاسو د بیان په وجه زما د پیسو د بټوې غل ونیول شو

**Lösungen:**

1. Ist es okay, wenn ich dich heute besuchen komme? Ich wollte dir deine Jacke zurückbringen.
2. Wegen ihres jugendlichen Aussehens muss sie im Kino immer ihren Ausweis zeigen.
3. Er öffnete seine Tür und schaute uns überrascht an. Er hatte nicht mit unserem Besuch gerechnet.
4. Aufgrund eurer Aussage konnte der Dieb meiner Geldbörse gefasst werden.

**Übungen:**

Setzen Sie Artikel, Adjektive, Nomen und Pronomen richtig ein
*(Genitiv, Dativ, Akkusativ)*.

1. Von (die nächste Haltestelle) ……. aus sind es nur zwei Minuten bis zu (ich) ……. nach Hause. له دې نږدې تمځایه څخه زما تر کوره پورې تش دوه دقیقې لاره ده
2. Ungeachtet (seine starke Erkältung) ……. fuhr er mit (wir) ……. in (der Urlaub) ……. دې سره سره چې هغه سخت ریزش کړی و، هغه له مونږ سره په رخصتۍ ولاړ
3. Wir setzten (unser Spaziergang) ……. um (der See) ……. trotz (das schlechte Wetter) ……. fort.
   د خرابې هوا سره سره مونږ د لوی ډنډ له شاوخوا نه خپل چکر ته ادامه ورکوو

**Lösungen**:

1. Von der nächsten Haltestelle aus sind es nur zwei Minuten bis zu mir nach Hause.
2. Ungeachtet seiner starken Erkältung fuhr er mit uns in den Urlaub.
3. Wir setzten unseren Spaziergang um den See trotz des schlechten Wetters fort.

**Übungen:** Setzen Sie die richtigen Fälle ein!

1. Mein Onkel hat sein ……. Sohn ein……. neues Auto gekauft.
زما کاکا خپل زوی ته یو نوی موټر په بیه واخیست
2. Das Geburtstagskind hat sein……. Freunden Einladungen geschickt und sein…………. Oma ein ……. langen Brief geschrieben.
هغه ځوك چي کلیزه یي ده خپلو ملګرو ته بلني ولیږلي او خپلي نیا ته یو اوږد لیك ولیکو
3. Er hat sein……. Frau eine ……. Halskette mitgebracht.
هغه خپلي مېرمني ته یوه غاړکی له ځانه سره راوړله
4. Unser Nachbar hat sein ……. Eltern sein ……. neues Haus gezeigt.
زمونږ ګاونډي خپل مور او پلار ته خپل نوی کور وښود
5. D ……. Enkelin hat die Oma dies ……. teuren Ohrring geschenkt.
خپلي لمسی ته نیا دا ګرانه غوږوالی وبښله
6. Sein ……. Freund hat er ein ……. guten Ratschlag gegeben
خپل ملګري ته هغه یوه ښه مشوره ورکړه
7. Die Mutter erzählt ihr ……. Tochter ein ……. schöne Geschichte.
مور خپلي لور ته یوه ښایسته کیسه وویله
8. Der Gastgeber hat d ……. Gästen ein ……. Kaffee gekocht.
کوربه د مېلمنو لپاره قهوه جوړه کړه

**Lösungen:**

1. seinem Sohn ein 2. seinen Freunden, seiner Oma einen langen Brief 3. seiner Frau eine Halskette 4. seinen Eltern sein neues Haus 5. der Enkelin diesen teuren Ohrring 6. seinem Freund einen guten Ratschlag 7. ihrer Tochter eine schöne Geschichte 8. den Gästen einen Kaffee

## ⑦ Verben mit Prädikatsnominativ د تشریحي فاعل فعلونه

په عادي حالاتو کي په یوې لنډې جملي کي د یو فعل سره تش یو فاعل وي. دا څرګند دی چي فاعل حالت (Nominativ) دی. مثال: (هغه کور ته ځي = Er geht nach Hause) . په دې ځای کي د جملي فعل (gehen) او د جملي فاعل (er) او حالت یي (Nominativ) دی، یعني دا فعل تش یو فاعل لري او بس. تاسو داسي تصور کوی شئ چي په یوه جمله کي دوه فاعله وي؟ هو، داسي جملي په پښتو کي هم شته چي لاندې به یي وګورو:

| هغه | یو | شیطان | دی |
|---|---|---|---|

په پورتنی جمله کي پوښتنه دا ده چي فاعل کوم یو دی؟ (شیطان) فاعل دی او که (هغه)؟ ځواب دا دی چي (شیطان) او (هغه) دواړه د جملي فاعلان دي. د دې دواړو فاعلانو توپیر دا دی چي (شیطان) د (هغه) خواص یا صفت یا څرنګوالی څرګندوي، یعني هغه شیطان دی. داسي جملي چي په یوه جمله کي دوه فاعله وي، په جرمني ژبه کي هم شته چي په لاندې برخه کي به یي وګورو:

| Du bist ein Idiot. | ته یو احمق یي |
|---|---|

په دغه ځای کي د جملي فعل تش یو دی چي هغه (bist) دی، خو فاعلان یي دوه دي چي یو یي (du) او بل یي (Idiot) دی چي د دواړو حالت (Nominativ) دی. داسي فعلونه دومره لږ دي چي شمېره یي د ګوتو په شمار ده. په لاندیني جدول کي یو څو نور مثالونه وګورئ:

| Verb | Beispiele |
|---|---|
| sein شتون درلودل، اوسېدل | Die Biene ist ein Insekt. د شاتو مچۍ يوه حشره ده |
| werden کېدل، جوړېدل | Mein Sohn wird später Arzt. زما زوی وروسته ډاکټر کيږي |
| bleiben پاتې کېدل | Er bleibt mein Freund. هغه زما ملګری پاتې کيږي |
| scheinen ښکارېدل، برېښېدل | Der Händler scheint ein Betrüger zu sein. دا سوداګر داسې ښکاري چې ټګمار واوسي |
| heißen نومېدل، نوم درلودل | Er heißt Löwe. د هغه نوم زمری دی |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | په پورتني جدول کې دا فعلونه (werden, sein, scheinen, bleiben) په هغه مانا ګانو چې ياد شويدي په يوازې ځان بې له دوه (Nominativ) نشي استعمالېدی. په بل عبارت دا فعلونه په دغه ماناګانو هرومرو يو دوهم (Nominativ) ته اړتيا لري. د لومړي او دوهم (Nominativ) تر مينځ ډېر توپير دی او هغه دا چې لومړی (Nominativ) د جملې فاعل دی او دوهم (Nominativ) جمله تشريح يا بشپړه کوي. په پورتني لومړي مثال کې (du) د جملې اصلي فاعل دی او (Idiot) سره له دې چې دا هم فاعل دی، خو دا کوم سوچه او اصيل فاعل ندی، ځکه چې دا فاعل د لومړي فاعل حال يا خاصيت تشريح کوي. نو له دې کبله دا فاعل يو تشريحي فاعل دی چې په ګرامر کې دې ته وايي: (Prädikatsnominativ) . |
| پوښتنه | د يو فاعل د حال تشريح کول خو په يو صفت يا په (Adjektiv) لاپسې ښه کيږي، مثال: <br> Du bist sehr dumm. ته ډېر بې عقله يې <br> په پورتنی جملي کې (ډېر بې عقله = sehr dumm) د دې فاعل حال ډېر ښه تشريح کړی دی، بې له دې چې دا کوم فاعل يا د (Nominativ) په حالت کې واوسي، د دې ځواب څه دی؟ |
| ځواب | کله چې د يو فاعل تشريح په يو صفت (Adjektiv) وشي، نو همدومره تشريح بس ده او دوهم فاعل يا بل (Nominativ) ته بيا اړتيا نشته. نور مثالونه: |

| Satz mit einem Nominativ | Prädikatsnominativ |
|---|---|
| Ameisen sind fleißig. مېږي خواريکښ دي | Alles bleibt beim Alten. هر څه پخپل حال پاتې کيږي، څه بدلون پکې نه راځي |
| Der Sänger wurde berühmt. سندرغاړی مشهور شو | Sein neues Auto ist ein Mercedes. د هغه نوی موټر مرسيدس دی |
| Du bist tapfer. ته زړور يې | Mein Bruder heißt Emil. زما د ورور نوم ايميل دی |
| Er schläft sehr unruhig. هغه ډېر ناارامه خوب کوي | Er hat sich als Lügner erwiesen. هغه ځان د دروغجن په حيث ثابت کړو |

## ⑧ Verben, die mit einem Akkusativ in einer festen Verbindung stehen

**هغه فعلونه چې تل له (Akkusativ) سره په ګډه کارول کيږي**

دا هغه فعلونه دي چې له يو اسم سره يو ځای استعماليږي. دا اسم او دا فعل يو واحد جوړوي. که په اسانه ژبه دا خبره ياده کړو نو وبه وايو چې دا اسم تش د همدې يو فعل سره استعمالېدی شي او بس. که چېرته دا اسم له کوم بل فعل سره استعمال شو، نو يا به دا جمله غلطه وي او که غلطه نه وي، نو مانا به يې بالکل بدله وي. ډېر لږ اسمونه شته چې له دوه فعلونو سره همغه يوه مانا لري. لومړی به يو پېنتو مثال راوړو: په پښتو کې ډېر اسمونه د (کول) فعل سره يوځای کيږي او يوه جمله ورځيني جوړيږي، لکه: کار کول،

فعاليت كول، اقدام كول، توبه كول، تجربه كول، بريد كول، تېښته كول او داسي نور. په جرمني ژبه كي ډېر لږ لغات دي چي په هغوی كي لكه د پښتو په شان د (كول = machen) فعل ورسره يوځای شي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Fehler machen<br>غلطي كول | eine Dummheit machen<br>حماقت كول | eine Pause machen<br>دمه كول |

خو زياتره وخت په جرمني ژبه كي له نورو فعلونو نه كار اخيستل كيږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| eine Sünde begehen<br>يوه ګناه كول | eine Maßnahme ergreifen<br>يو اقدام كول | Obacht geben<br>پام كول |

څنګه چي په پورتنيو مثالونو كي ليدل كيږي، ګڼ شمېر لغات شته چي په پښتو د (كول = machen) فعل سره يو ځای راځي، خو په جرمني كي به غلطه وي چي له هغو سره (كول = machen) وكارول شي.

| falsch غلط | richtig صحيح |
|---|---|
| ~~Krieg machen = falsch~~ | Krieg führen جګړه كول |
| ~~Rede machen = falsch~~ | Rede halten وينا كول |
| ~~Gnade machen = falsch~~ | Gnade walten lassen رحم كول |

په لاندېني جدول كي به نور اسمونه وګورو چي له مختلفو فعلونو سره ګډ د (Akkusativ) په حالت كي كارول كيږي:

| | |
|---|---|
| Flucht ergreifen تېښته كول | Der Feind ergriff die Flucht. دښمن تېښته وكړه |
| Entscheidung treffen<br>پرېکړه كول، فيصله كول | Ich treffe die Entscheidung, mein Haus zu verkaufen. زه دا پرېكړه كوم چي خپل كور خرڅ كړم |
| Ordnung schaffen<br>نظم تينګول، تنظيم تينګول | Er schafft die Ordnung, die sein Team braucht.<br>هغه تنظيم چي د ده د ټيم په كار دی، هغه يې تينګوي |
| Ordnung bringen<br>نظم راوستل | Die Polizei versuchte Ordnung in die Reihen der Demonstranten zu bringen.<br>پوليسو كوښښ وكړو چي د لاريون كوونكو په مينځ كي نظم راولي |
| in Ordnung bringen<br>منظمول، ګډوډي له مينځه وړل | Bring doch dein Zimmer in Ordnung.<br>ته كوټه دي راټوله كړه |
| ein Urteil fällen د محكمې له خوا پرېكړه كېدل | Wann das Urteil gefällt wird, blieb unklar.<br>دا څرګنده نشوه چي د محكمې پرېكړه كله كيږي |
| einen Baum fällen<br>يوه ونه وهل | In diesem Jahr werden 90 Bäume gefällt.<br>په دې كال كي ۹۰ وني وهل كيږي |
| Atem holen ساه راښكل | Er holte tief Atem. هغه ژوره ساه راښكله |
| jmdn in Atem halten<br>يو څوك نا كرارول | Er hält die Welt in Atem. هغه نړۍ ناكراره كړې ده |
| sich die Mühe geben<br>ځان ته تكليف وركول | Er hat sich alle Mühe gegeben. هغه ډېر زحمت ويستلی دی |
| Abschied nehmen<br>يو چاته په مخه ښه ويل، له يو چا نه خدای پاماني اخيستل | Hundert Menschen nahmen auf dem Friedhof Abschied vom Verstorbenen. په هديره كي سل كسانو له مړي نه خدای پاماني واخيسته |

| | |
|---|---|
| Platz nehmen<br>په یو ځای کې کېناستل | Bitte nehmen Sie Platz. تاسو مهرباني وکړئ او کېنئ |
| Rache nehmen غـچ اخیستل، بدل اخیستل، انتقام اخیستل | Sein Sohn wurde ermordet. Nun will er Rache nehmen. د هغه زوی ووژل شو. اوس هغه غواړي چې غچ واخلي |
| Stellung beziehen zu<br>د یو شي په برخه کې دریځ نیول | Dazu müssen wir Stellung beziehen.<br>د دې په برخه کې مونږ باید دریځ ونیسو |
| einen Antrag stellen<br>د یو شي لپاره عریضه کول | Wie wird der Antrag gestellt? عریضه څنګه کیږي؟ |
| Bescheid geben<br>احوال ورکول | Ich gebe Ihnen morgen Bescheid.<br>زه تاسو ته سبا احوال درکوم |
| die Schuld geben<br>پړه په یو چا اچول | Ich habe mir selbst die Schuld gegeben.<br>پړه ما په خپل ځان واچوله |

## ⑨ Verben mit präpositionalem Objekt

ډېر فعلونه شته چې خاص له یو (Präposition) سره استعمالیږي، لکه له (an, bei, für) سره. بیا دا (Präposition) له یو خاص حالت سره راځي، یعني له (Genitiv, Dativ, Akkusativ) سره. په دې حالاتو کې له دې استعمال شوی اسم نه بیا یو مفعول یا (Objekt) جوړیږي. دغه (Präposition) او دغه مفعول یا (Objekt) له یو بل نه یو نه بېلېدونکی واحد جوړوي چې په ګرامر کې ورته وایي : (Präpositionalobjekt). اوس به دا خبره په عملي بڼه وګورو. (sorgen) یو فعل دی چې مانا یې ده (د یو چا غم خوړل). له دې فعل سره تل یو (Präposition) پکاریږي چې هغه (für) دی. له (für) نه وروسته تل (Akkusativ) راځي. نو په دې ډول مونږ لیکو چې:

| | |
|---|---|
| sorgen + für + Akkusativ<br>د یو چا غم خوړل | Wer sorgt für die Kinder?<br>څوك د ماشومانو غم خوري؟<br>Mein Vater sorgt für die Kinder.<br>زما پلار د ماشومانو غم خوري |

## ⑩ Reflexive Verben

| | |
|---|---|
| sich erinnern + an + Akkusativ<br>یو چا ته یو څه وریه یادیدل | Ich erinnere mich manchmal an meine Jugend. کله کله ماته خپله ځواني راپه یادیږي |

## ⑪ Verben mit zwei Objekten

| | |
|---|---|
| jemanden danken + für + Akkusativ<br>له یو چا نه د یو څه لپاره منته کول | Der Verletzte dankte dem Arzt für die Hilfe. ټپي له ډاکټر نه د مرستې له امله منته وکړه |

## ⑫ Verben, die zwei Präpositionen benötigen

| | |
|---|---|
| sich beschweren + bei + Dativ + über + Akkusatv<br>یو چاته د یو څه له پلوه شکایت کول | Er beschwerte sich bei der Polizei über den Nachbarn. هغه پولیس ته د خپل ګاونډي له امله شکایت وکړو |

## ⑬ Stellung der Präposition und des Personalpronomens

کله چې سړی د یو انسان په اړوند یوې پوښتنې ته ځواب وایي، نو لومړی (Präposition) او بیا ضمیر وروسته راځي، یعنې داسې: (an + Personalpronomen) . مثال:

| | |
|---|---|
| Denkst du an deinen Vater.<br>ته د خپل پلار په برخه کې فکر کوې؟ | Ja, ich denke immer an ihn.<br>هو، زه تل د هغه په برخه کې فکر کوم |

## ⑭ Zusammensetzung von „da" + Präposition

کله چې سړی د یو شي په برخه کې پوښتنه کوي او یا پوښتنې ته ځواب ورکوي نو لومړی (da) او بیا وروسته (Präposition) راځي چې بیا دا دواړه له یوبل سره یوځای کیږي او د یوې کلمې په ډول لیکل کیږي، په لاندې ډول.

| da | + | Präposition | | |
|---|---|---|---|---|
| da | + | bei | = | dabei |
| da | + | mit | = | damit |
| da | + | nach | = | danach |

Beispielsätze:

| Frage | Antwort |
|---|---|
| Wie fühlst du dich dabei?<br>په دې کې ته ځان څنګه احساسوې؟ | Ich fühle mich dabei sehr wohl.<br>په دې کې زه ځان ډېر ښه احساسوم |
| Was machst du damit?<br>ته په دې باندې څه کوې؟ | Ich gieße damit die Blumen.<br>په دې باندې زه ګلانو ته اوبه اچوم |
| Was machst du danach?<br>له دې نه وروسته ته څه کوې؟ | Danach gehe ich nach Hause.<br>له دې نه وروسته زه کور ته ځم |

## ⑮ „da" + Präpositionen, die mit einem Vokal beginnen

خو کله چې یو (Präposition) په یو غږ لرونکي توري پیل شي، نو د (da) او د (Präposition) تر مینځ یو (r) لیکل کیږي، یعنې داسې: da + r + an = daran . مثال:

| Frage | Antwort |
|---|---|
| Denkst du an deine Arbeit?<br>ته د خپل کار په برخه کې فکر کوې؟ | Ja, ich denke daran.<br>هو، زه په برخه کې یې فکر کوم |

**Übungen:** Bilden Sie bitte Fragesätze!
Beispiel:

| Aussagesatz | Frage پوښتنه |
|---|---|
| Ich habe mich mit Freunden getroffen.<br>ما د ملګرو سره لیده کاته وکړل | Mit wem hast du dich getroffen?<br>تا له چا سره لیده کاته وکړل؟ |
| Wir haben über das Wetter diskutiert.<br>مونږ د هوا په برخه کې خبرې اترې وکړې | Worüber habt ihr diskutiert?<br>تاسو د څه شي په برخه کې خبرې اترې وکړې؟ |

1. Viele Menschen fürchten sich vor Aids. ډېر انسانان له ايډس نه ډارېږي
2. Die Politiker kümmern sich nicht um die Hungersnot.
سياستوال د ولږې غم نه خوري
3. Mein Vater hält nichts von diesem Projekt. زما د پلار په نظر کې دا پلان ښه نه ښکاري
4. Er schimpft und ist wütend auf die Politiker.
هغه سياستوالو ته بدې ردې وايي او پرې په قهر دی
5. Er interessiert sich für die Sonnenenergie. هغه د لمر د انرژۍ علاقمند دی
6. Sie denken nicht an ihre Kinder. هغوی د خپلو ماشومانو په فکر کې ندي
7. Es geht um die Verkehrsunfälle. موضوع د ترافيکي پېښو په برخه کې ده
8. Sie stecken das Geld in die eigene Tasche. هغوی پيسې پخپل جب کې اچوي
9. Wir haben uns an dieses Wetter gewöhnt. مونږ له دې هوا سره عادت شوي يو
10. Er ist an Krebs gestorben. هغه په سرطان مړ شو

**Lösungen:**

1. Wovor fürchten sich viele Menschen? 2. Worum kümmern sich die Politiker nicht? 3. Wovon hält mein Vater nichts? 4. Auf wen schimpft er und ist wütend? 5. Wofür interessiert er sich? 6. An wen denken sie nicht? 7. Worum geht es? 8. Worin stecken sie das Geld? 9. Woran haben wir uns gewöhnt? 10. Woran ist er gestorben?

# Deklination von Adjektiven د صفت ګردان

مخکې له دې چې د صفت ګردان زده کړو، بايد په دې پوه شو چې صفت څه شی دی؟ صفت يوه عربي کلمه ده چې په يوه مانا د يو شي ستاينې ته وايي. په ګرامر کې مطلب له ستاينې نه ندی بلکې د يو شي له څه شان والي يا څرنګوالي نه دی. کله چې سړی وايي چې: هغه نجلۍ ښايسته ده او هغه هلك بدرنګ دی. په عامه ژبه کې سړی فکر کوي چې د ښايسته نجلۍ ستاينه وشوه او د بدرنګ هلك غيبت وشو. خو په ګرامر کې (ښايسته) ستاينې ته نه وايي او (بدرنګ)غيبت ته نه وايي. (ښايسته) او (بدرنګ) دواړه په ګرامر کې د يو چا څرنګوالی بيانوي. له څرنګوالي نه مطلب ښه يا خراب، ښايسته يا بدرنګ، صفت يا غيبت ندی بلکې تش دا دی چې يو شی څنګه او يا په کوم حال دی. نو په دې وجه صفت په ګرامر کې تش د يو انسان، د يو حيوان، د يو شي، د يو کار او يا د يوې پېښې څرنګوالي بيانوي. همدا شان په جرمني ژبه کې صفت ته (Wiewort) وايي، يعنې (د څرنګوالي لغت). نو په دې وجه (Adjektiv) يا صفت تش يوې پوښتنې ته ځواب وايي او هغه پوښتنه دا ده :

| Wie ist eine Person oder eine Sache? | يو کس يا يو شی څنګه دی؟ |
|---|---|

اوس به يوه بېلګه وګورو:

| Frage | Antwort |
|---|---|
| Kennst du diese Filmschauspielerin?<br>ته د فلم دا لوبغاړې پېژنې؟ | Ja, sie ist groß, hat dunkle Haare und blaue Augen. Sie ist jung, gut aussehend, sehr höflich und nebenbei reich. هو، هغه په ونه کې دنګه ده، تور وېښته او آبي سترګې لري. هغه ځوانه ده، ښه ښکاري، با ادبه ده او په څنګ کې شتمنه هم ده |

په پورتني مثال کي هغه توري چي سور رنګ لري هغه تول د فلم لوبغاړي ځرنګوالی ښايي. دا توول ځرنګوالی تصادفاً د هغي ستاينه کوي. هغه کېدی شي چي په ونه کي ټيټه وي، په شکل کي بدرنګه او په يوه سترګه ړنده واوسي. دا صفات په ګرامر کي بيا هم ځرنګوالی ښايي چي ورته (Adjektiv) وايي. مخکي له دي چي د صفت ګردان وګورو، نو وبه ګورو چي په پښتو کي صفت څنګه ګردانيږي. څنګه چي په پښتو کي د يو نارينه لپاره صفت يو شان او د ښځي لپاره بل شان دی، نو په جرمني ژبه کي هم همدا شان دی. يو مثال: (اسمان شين دی). اسمان مذکر دی، نو ځکه ورته (شين) ويل کيږي. (دا ونه شنه ده) . ونه ښځينه لغت دی، نو ځکه ورته (شنه) ويل کيږي.

**صفت په څه شان له اسم سره يوځای کيږي؟**

صفت له يو اسم سره په دوه ډولو يوځای کېدی شي. يو ډول يي دا دی چي صفت له اسم مخ ته وليکل شي، په دي ډول:

| Artikel + | Adjektiv + | Nomen |
|---|---|---|
| das | kleine وړوکی | Kind ماشوم |
| die | hübsche ښايسته | Frau ښځه |
| der | große جګ | Mann سړی |

بل ډول يي دا دی چي يو صفت د يو اسم شاته راشي. په دي وخت بيا صفت نه ګردانيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Das Haus ist alt. دا کور زوړ دی | Der Mann ist krank. دا سړی ناروغه دی |

دا چي په جرمني ژبه کي د ګردان په وخت صفت څه شان بدليږي، دا څلور ټکو پوري اړه لري چي هغه دا دي:

① د صفت ګردان دي پوري اړه لري چي هغه اسم چي ځرنګوالی يي په دي صفت تشريح کيږي، په کوم دريځ کي دی، دا په دي مانا چي:

| | | |
|---|---|---|
| (bestimmter Artikel) | = | ۱- ځرګند (Artikel) لري او که نه ؟ |
| (unbestimmter Artikel) | = | ۲- (Artikel) يي ناځرګند دی ؟ |
| (kein Artikel, Nullartikel) | = | ۳ - هيڅ (Artikel) نه لري |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| 1. bestimmter Artikel ځرګند ارتيکل | Der junge Mann kauft das Fahrrad. دا ځوان سړی دا بايسکل په بيه اخلي |
| 2. unbestimmter Artikel ناځرګند ارتيکل | Ein junger Mann kauft morgen ein Fahrrad. يو ځوان سړی سبا يو بايسکل په بيه اخلي |
| 3. kein Artikel, Nullartikel چي ارتيکل پکي نشته | Junge Männer braucht das Land. دي هيواد ته ځوان کسان پکارېږي |

② د صفت ګردان دي پوري اړه لري چي هغه اسم چي ځرنګوالی يي په دي صفت تشريح کيږي، يو اسم دی او که ډېر اسمونه دي، يعني مفرد دی او که جمع؟ مثال:

| I. Singular مفرد | II. Plural جمع |
|---|---|
| Das kleine Kind spielt mit seinem Ball. وړوکی ماشوم د خپل توپ سره لوبي کوي | Die kleinen Kinder spielen mit ihren Bällen. وړوکي ماشومان خپلو توپونو سره لوبي کوي |

③ د صفت ګردان دي پورې اړه لري چې هغه اسم چې څرنګوالى يې په دې صفت تشريح کيږي، جنسيت يې څنګه دى، نارينه دى، ښځينه دى او که مخنث دى؟ مثال:

| | |
|---|---|
| 1. Maskulinum نارينه يا مذکر | Der blaue Himmel gefällt mir sehr gut.<br>شين اسمان زما ډېر خوښيږي |
| 2. Femininum ښځينه يا مؤنث | Die dunkle Nacht will nicht enden.<br>دا تياره شپه نه سبا کيږي |
| 3. Neutrum مخنث | Das kleine Mädchen spielt mit ihrer Puppe.<br>دا وړه نجلۍ د خپلې نانځکې سره لوبې کوي |

④ د صفت ګردان دي پورې اړه لري چې هغه اسم چې څرنګوالى يې په دې صفت تشريح کيږي، په کوم حالت (Nominativ, Genitiv, Dativ, Akkusativ) کې دى، پخپله فاعل دى او مفعول؟ مثال:

| | |
|---|---|
| I. Nominativ فاعلي حالت | Der fleißige Student lernt täglich fünf Stunden.<br>خواريکښ محصل د ورځې پنځه ساعته درس وايي |
| II. Genitiv اضافي حالت | Der Vater des fleißigen Studenten ist Professor.<br>د خواريکښ محصل پلار پروفيسر دى |
| III. Dativ مفعولي حالت (واسطه لرونکى) | Die Universität verlieh dem fleißigen Studenten einen Preis.<br>پوهنتون دي خواريکښ محصل ته يوه جايزه ورډالۍ کړه |
| IV. Akkusativ مفعولي حالت (بې واسطه) | Den besten Schüler würdigte die Schule.<br>ښوونځي له ټولو نه ښه زده کوونکى وويارل |

اوس به دا ټول ګردانونه په لاندينيو جدولونو کې بېل بېل په تفصيلاتو وګورو.

## ① Deklination von Adjektiven mit bestimmtem Artikel د ځرګندو اسمونو لپاره

Singular مفرد

| Kasus حالت | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ فاعلي حالت | der alte Mann<br>زوړ سړى | die junge Frau<br>ځوانه ښځه | das kleine Kind<br>وړوکى ماشوم |
| Genitiv اضافي حالت | des alten Mannes<br>د زوړ سړي | der jungen Frau<br>د ځواني ښځې | des kleinen Kindes<br>د وړوکي ماشوم |
| Dativ مفعولي حالت | dem alten Mann(e)<br>زوړ سړي ته | der jungen Frau<br>ځواني ښځې ته | dem kleinen Kind(e)<br>وړوکي ماشوم ته |
| Akkusativ مفعولي حالت | den alten Mann<br>زوړ سړى | die junge Frau<br>ځوانه ښځه | das kleine Kind<br>وړوکى ماشوم |

Beispielsätze:

| | | |
|---|---|---|
| Nominativ | Der alte Mann geht spazieren. | دا زوړ سړى چکر وهي |
| Genitiv | Das ist das Haus des alten Mannes. | دا د دې زوړ سړي کور دى |

| | |
|---|---|
| Dativ | Ich habe mit dem alten Mann gesprochen. ما دې زوړ سړي سره خبرې وکړې |
| Akkusativ | Kennst du den alten Mann? ته دا زوړ سړی پېژنې؟ |

Plural جمع

| Kasus حالت | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ فاعلي حالت | die alten Männer زاړه سړي | die jungen Frauen ځواني ښځې | die kleinen Kinder وړوکي ماشومان |
| Genitiv اضافي حالت | der alten Männer د زړو سړو | der jungen Frauen د ځوانو ښځو | der kleinen Kinder د وړو ماشومانو |
| Dativ مفعولي حالت | den alten Männern زړو سړو ته | den jungen Frauen ځوانو ښځو ته | den kleinen Kindern وړو ماشومانو ته |
| Akkusativ مفعولي حالت | die alten Männer زاړه انسانان | die jungen Frauen ځواني ښځې | die kleinen Kinder واړه ماشومان |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Nominativ | Die alten Männer gehen spazieren. دا زاړه سړي چکر وهي |
| Genitiv | Das ist das Haus der alten Männer. دا د دې زړو سړو کور دی |
| Dativ | Ich habe mit den alten Männern gesprochen. ما دې زړو سړو سره خبرې وکړې |
| Akkusativ | Kennst du die alten Männer? ته دا زاړه سړي پېژنې؟ |

څنګه چې پورته ليدل کيږي، د صفتونو جمع د درېواړو جنسيتونو لپاره په ټولو څلور حالاتو کې يو شان ده چې په (en) کيږي.

**Übungen:**
Ergänzen Sie die bestimmten Artikel und deklinieren Sie die Adjektive.

1. D …. klein …. Kind will d …. fremd …. Mann nicht grüßen.
وړوکی ماشوم نه غواړي چې پردي سړي ته سلام واچوي
2. D …. gelb …. Hemd passt nicht zu d …. rot …. Schuhen.
دا ژېړ کميس له سرو بوټانو سره نه لګيږي
3. D …. besorte …. Vater lässt sein …. ängstlich …. Sohn nicht allein.
وسواسي پلار خپل دارن زوی يوازې نه پرېږدي
4. D …. breit …. Tisch passt nicht durch d …. schmal …. Tür.
دا پلن ميز د دې تنګې دروازې له مينځ نه نشي تېرول کېدلی
5. D …. grün …. Bohnen schmecken d …. kleinen …. Kindern nicht.
دا شنه لوبيا دې وړو ماشومانو ته خوند نه ورکوي
6. D …. defekte …. Fahrrad steht unter d …. groß …. Baum.
خراب شوی بايسکل د لويې ونې لاندې ولاړ دی
7. D …. krank …. Mann möchte d …. bitter …. Fiebersaft nicht einnehmen.
ناروغ سړی نه غواړي چې د تبې تريخ شربت وڅښي

8. D …. faul …. Kinder wollen d …. schmutzig …. Gläser nicht spülen.
دا لټ ماشومان نه غواړي چې ناپاك ګيلاسونه پريمينځي
9. D …. fleißig …. Studenten wollen d …. schwierig …. Physiktest bestehen.
خواريكښ محصلين غواړي چې د فزيك په سخته ازموينه كې بريالي شي
10. D …. einfältige …. Mann will d …. hübsch …. Prinzessin heiraten.
دا ساده سړی غواړي چې له دې ښايسته شهزادګۍ سره واده وكړي

**Lösungen:**

1. Das kleine Kind will den fremden Mann nicht grüßen.
2. Das gelbe Hemd passt nicht zu den roten Schuhen.
3. Der besorgte Vater lässt seinen ängstlichen Sohn nicht allein.
4. Der breite Tisch passt nicht durch die schmale Tür.
5. Die grünen Bohnen schmecken den kleinen Kindern nicht.
6. Das defekte Fahrrad steht unter dem großen Baum.
7. Der kranke Mann möchte den bitteren Fiebersaft nicht einnehmen.
8. Die faulen Kinder wollen die schmutzigen Gläser nicht spülen.
9. Die fleißigen Studenten wollen den schwierigen Physiktest bestehen.
10. Der einfältige Mann will die hübsche Prinzessin heiraten.

## ② Deklination von Adjektiven mit unbestimmtem Artikel

د ناخرګندو اسمونو لپاره مثالونه

Singular مفرد

| Kasus حالت | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ<br>فاعلي حالت | ein alter Mann<br>يو زوړ سړی | eine junge Frau<br>يوه زړه ښځه | ein kleines Kind<br>يو وړوكی ماشوم |
| Genitiv<br>اضافي حالت | eines alten Mannes<br>د يو زوړ سړي | einer jungen Frau<br>د يوې ځوانې ښځې | eines kleinen Kindes<br>د يو وړوكي ماشوم |
| Dativ<br>مفعولي حالت | einem alten Mann<br>يو زوړ سړي ته | einer jungen Frau<br>يوې ځوانې ښځې ته | einem kleinen Kind(e)<br>يو وړوكي ماشوم ته |
| Akkusativ<br>مفعولي حالت | einen alten Mann<br>يو زوړ سړی | eine junge Frau<br>يوه ځوانه ښځه | ein kleines Kind<br>يو وړوكی ماشوم يې |

Beispielsätze:

| | | |
|---|---|---|
| Nominativ | Das ist ein alter Mann. | دا يو زوړ سړی دی |
| Genitiv | Das ist das Haus eines alten Mannes. | دا د يو زوړ سړي كور دی |
| Dativ | Ich habe mit einem alten Mann gesprochen. | ما له يو زوړ سړي سره خبرې وكړې |
| Akkusativ | Ich kenne einen alten Mann. | زه يو زوړ سړی پيژنم |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | د ناخرګنده اسمونو په ګردان كې جمع نشته (دا به غلطه وي چې وويل شي يو هلكان)<br>دا مطلب به په لاندينو جملو كې وګورو. |

# Adverbien قیدونه

قید یا (Adverb) د لاتیني کلمې (*Adverbium*) نه اخیستل شوی چې په جرمني ژبه کې ورته (Umstandswort) وایي، یعني (د حالاتو د بیانولو کلمه). په ګرامر کې قید د یو فعل، د یو کار، د یوې پېښې او یا د یو حالت څرنګوالی بیانوي. هېر مو نشي چې په تېر مبحث کې مو صفت زده کړو. صفت د انسانانو او یا د شیانو یا د اسمونو څرنګوالی ښایي، خو قید یا (Adverb) د فعل څرنګوالی ښایي. اوس به یو مثال وګورو:

| | | |
|---|---|---|
| Adjektiv | Das ist ein tapferer Held. | دا یو زړور مېړنی دی |

په پورتنۍ جمله کې د یو اسم څرنګوالی ښودل کیږي چې دا اسم (مېړنی = Held) دی، یعني دا مېړنی زړور دی. نو په دې چې دلته د یو کس یا د یو اسم څرنګوالي وښودل شو، نو دا یو صفت یا یو (Adjektiv) شو.

اوس به همدا جمله په داسې ډول وګورو چې په هغې کې د یو فعل څرنګوالی ښودل کیږي:

| | | |
|---|---|---|
| Adverb | Der Held kämpft tapfer. | مېړنی په زړورتیا جګړه کوي |

په پورتنۍ جمله کې د فعل څرنګوالی تشریح کیږي. دلته فعل (جګړه کول = kämpfen) دی. کله چې دلته پوښتنه وشي چې دا مېړنی څه شان جګړه کوي، نو د لته د جګړه کولو د څرنګوالي په برخه کې پوښتنه کیږي چې هغه څه شان جګړه کوي، په زړورتیا او که په بې زړه توب؟ د ځواب لپاره یې بیا لیکل شوېدی چې هغه په زړورتیا جګړه کوي. نو په دې اساس (tapfer) دلته یو قید یا (Adverb) دی.

د قید یا (Adverb) بله ځانګړنه دا ده چې (Adverb) د یو فعل د موقعیت، د وخت او دریځ په برخه هم معلومات ورکوي، دا په دې مانا چې د (Adverb) په مرسته سړي خبریږي چې یو کار چېرته، په کوم وخت کې او په کوم دریځ کې شوی دی، لکه (نن)، (پرون)، (دلته)، (هلته) او داسې نور. نو له دې کبله (Adverb) ډېر ډولونه لري چې یو څو ډوله به یې په لاند جدول کې وګورو:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Lokaladverb<br>د ځای ښودلو قید | hier<br>دلته | dort<br>هلته | überall<br>هر چېرته | irgendwo<br>په کوم ځای کې |
| Temporaladverb<br>د وخت ښودلو قید | heute<br>نن | morgen<br>سبا | immer<br>تل | jetzt<br>تل |
| Modaladverb<br>د ډول ښودلو قید | sehr<br>ډېر | vielleicht<br>کېدی شي چې | beinahe<br>نږدې و چې | genug<br>کافي اندازه |
| Kausaladverb<br>د علت ښودلو قید | darum<br>نو ځکه | deshalb<br>ځکه | trotzdem<br>دې سره سره | daher<br>په دې وځه |

اوس به مثالونه به په جملو کې وګورو:

| | | |
|---|---|---|
| Lokaladverb | Wir sind *dorthin* gefahren. | مونږ هلته ولاړو |
| Temporaladverb | Wir sind *gestern* gefahren. | مونږ پرون ولاړو |
| Modaladverb | Wir sind *anders* gefahren. | مونږ په بله لاره ولاړو |
| Kausaladverb | *Deswegen* bist du nicht zur Schule gegangen!<br>نو ځکه ته ښوونځي ته ولاړ نشوې | |

په پورتنیو جملو کې (dorthin) د ځای ښودلو قید، (gestern) د وخت د ښودلو قید، (anders) د ډول د ښودلو قید، او (deswegen) د علت د ښودلو قید دی.

له صفت سره د دې (Adverb) بل توپیر دا دی چې دا قیدونه له خپل حد نه نه زیاتیږي او نه کمیږي، یعني سړی نشي ویلی چې (دلته، لاپسې دلته، له ټولو نه دلته).

یو (Adverb) کېدی شي چې د یو صفت، د یو بل قید یا (Adverb) او یا د یوې بشپړې جملې او حتی د صفت په شان د یو اسم څرنګوالی بیان کړي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| mit einem Adjektiv | Ihre Haare sind *sehr* lang. | د هغې ویښته ډېر اوږده دي |
| mit einem Adverb | Sie kommt *sehr* bald. | هغه ډېر لنډ وخت وروسته راځي |
| mit einem Nomen | *Der Mann dahinten* ist dumm. | هغه شاتینی سړی احمق دی |

په پورتنی لومړی جمله کې (lang) یو صفت یا (Adjektiv) دی، او (sehr) یو (Adverb) دی چې دا (Adverb) دا صفت (lang) تشریح کوي، یعني (ډېر اوږد = sehr lang) .
په دوهمه جمله کې (bald) پخپله یو قید دی چې په یو بل قید (sehr) باندې تشریح کیږي (sehr bald)
په دریمه جمله کې (der Mann) یو اسم دی چې په (Adverb) باندې تشریح کیږي، په دې ډول (der Mann dahinten)، یعني (هغه شاتینی سړی).

څنګه چې دمخه وویل شول، په (Adverb) کې د یو شي صفت نه زیاتول او نه کمول کېدی شي. خو په ځینو خاصو حالاتو کې استثنآ بیا هم زیاتول یکې راځي چې په دې لاندې برخه کې لیکل کیږي:

| Adverb | | Komparativ | | Superlativ | |
|---|---|---|---|---|---|
| gern | په مینه | lieber | لاپسې ډېرپه مینه | am liebsten | له ټولو نه ډېرپه مینه |
| oft | ډېر وخت | öfter | لاپسې ډېر وخت | am häufigsten | له ټولو نه ډېر وخت |
| viel | ډېر | mehr | لاپسې ډېر | am meisten | له ټولو نه ډېر |
| gut | ښه | besser | لاپسې ښه، نور هم پسې ښه | am besten | له ټولو نه ښه |

ځینې صفتي قیدونه یا (Adjektivadverbien) شته چې د هغوی دریمه لوړه درجه (Superlativ) داسې جوړیږي چې له دې قیدونو سره (auf´s + -ste) یو ځای کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| auf´s + schön + -ste =<br>auf´s schönste<br>ډېر په ښه ډول، په ډېر ښایسته ډول | Der Tanz wurde auf´s schönste vorgeführt.<br>دا ګډا په ډېره ښایسته ډول وړاندې کړی شوه |
| auf´s + beste =<br>auf´s beste په ډېر ښه ډول | Wir haben uns auf´s beste unterhalten.<br>مونږ له یو بل سره زښتې ښې خبرې اترې وکړې |
| auf´s + höflich + ste =<br>auf´s höflichste په ډېر احترام | Er begrüßte uns auf´s höflichste.<br>هغه مونږ ته په ډېر احترام ستړې مشې ووېله |
| auf´s + scharf + -ste =<br>auf´s schärfste<br>په ډېر تونډ ډول، ډېر په شدید ډول | Er verurteilte das Verbrechen auf´s schärfste.<br>هغه په ډېر تونډ ډول د دې جنایت غندنه وکړه |

ځینې صفتي قیدونه (Adjektivadverbien) شته چې د هغوی د دریمې لوړې درجې (Superlativ) په پای کې (-stens) راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| spät + -stens = spätestens<br>چي ډېره ناوخته شي | Das Konzert endet spätestens um 12 Uhr.<br>چي ډېره ناوخته شي، نو کنسرت به په ۱۲ بجو پای ته ورسيږي |
| früh + -stens = frühestens<br>چي ډېر وخته وشي | Er kommt frühestens morgen zurück.<br>چي ډېر وخته وشي، نو هغه به سبا راشي |
| schnell + -stens = هر څومره<br>schnellstens ژر چي کيږي | Dies muss schnellstens geändert werden.<br>دا بايد هر څومره ژر چي کيږي، بدل شي |
| mindest + -stens = لږ تر لږه،<br>mindestens چي ډېر لږ شي | Es dauert mindestens 3 Stunden.<br>چي ډېر لږ شي، نو دا درې ساعته دوام کوي |
| wenig + -stens =<br>wenigstens چي ډېر لږ شي، اقلاً | Das kostet wenigstens 300 Euro.<br>چي ډېر لږ شي، نو د دې بيه درې سوه يورو کيږي |
| warm + -stens =<br>wärmstens په ډېر تود ډول | Die Partei hat diesen Vorschlag wärmstens begrüßt. ګوند دې وړانديز ته ډېر تود هرکلی ووايو |
| hoch + -stens =<br>höchstens چي ډېر شي | Es dauert höchstens 2 Stunden.<br>چي ډېر شي نو دا به دوه ساعته دوام وکړي |
| best + -stens =<br>bestens ډېر ښه، له ټولو نه ښه | Hier ist alles bestens. دلته هر څه ډېر ښه دي<br>Wir sind bestens vorbereitet. مونږ ډېر ښه چمتو يو |

ځيني قيدونه شته چي دوهمي يا درېمي درجې ته د هغوی زياتونه کېدونکي نده. په دې وخت کې د درجې د زياتولو لپاره له لاندينيو کلمو نه کار اخيستل کيږي:

| | |
|---|---|
| mehr زيات | weiter نور هم |
| am meisten له ټولو نه زيات | am weitesten له ټولو نه لېرې |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| mehr<br>نور هم پسې ډېر، لاپسې ډېر | Der Weg geht hier mehr bergauf als dort drüben.<br>لاره دلته د هغه بل ځای په پرتله ډېره مخ په پورته تللې ده |
| am meisten له ټولو نه ډېر | Hier geht der Weg am meisten bergab.<br>دلته لاره د ټولو ځايو په پرتله مخ په ښکته تللې ده |
| weiter له ټولو نه وړاندې | Das Buch liegt weiter oben.<br>کتاب په لاپسې پورته ځای کې دی |
| am weitesten له ټولو نه لېرې | Er steht am weitesten hinten. هغه له ټولو نه شاته ولاړ دی |

ځيني قيدونه شته چي هغوی دريمي درجې لوړوالي ته رسېدلي دي، د قيد په پای کې (-st) راځي، خو نه ګردانيږي. مثالونه:

| | |
|---|---|
| baldigst<br>ډېر ژر، هر څومره ژر چي کيږي | Das Parlament muss baldigst ein neues Gesetz verabschieden. پارلمان بايد هر څومره ژر چي کيږي، يو نوی قانون تصويب کړي |
| höflichst<br>په ډېر احترام، له ډېر احترام نه ډك | Ich bitte Sie höflichst, nach hinten zu gehen.<br>زه له تاسو نه په ډېر احترام هيله کوم چي شاته ولاړ شئ |
| freundlichst<br>په ډېر صميميت، په احترام | Ich möchte Sie freundlichst bitten, etwas genauer hinzuhören. زه له تاسو نه په ډېر صميميت هيله کوم چي خبرو ته سم غوږ کيږدئ |
| weitgehendst تر ډېره حده | Das Ziel haben wir weitgehendst erreicht. |

| | |
|---|---|
| | مونږ تر ډېره حده هدف ته رسېدلي يو |
| möglichst هر څومره چې کېدی شي، حتی الامکان | Er wollte möglichst viel reisen.<br>هغه غوښتل چې هر څومره ډېر چې کېدی شي، سفرونه وکړي |

## Adverbiale Bestimmungen پە قید باندې د فعل بشپړونه

کله چې د یوې جملې د فعل په برخه کې داسې پوښتنه وشي چې (چېرته دا کار وشو، کله دا کار وشو، ولې دا کار وشو، په کوم ډول دا کار وشو)، نو د دې پوښتنو په ځوابولو باندې بیا دا جمله بشپړه شوه. په هغه څه باندې چې دغه پوښتنې ځوابيږي، دې ته (adverbiale Bestimmung) وايي. نو همدغه (adverbiale Bestimmung) ډېر ډولونه لري چې یو څو به يې په لاندې برخه کې وګورو:

| | |
|---|---|
| 1. adverbiale Bestimmung des Ortes | د ځای ښودلو صیغه |
| 2. adverbiale Bestimmung der Zeit | د وخت ښودلو صیغه |
| 3. adverbiale Bestimmung der Art und Weise | د کار ډول ښودلو صیغه |
| 4. adverbiale Bestimmung des Grundes | د کار د علت ښودلو صیغه |

په لاندې برخه کې به د فعل د تشریح کولو لپاره دغه صیغې وګورو:

### Adverbiale Bestimmung des Ortes په قید باندې د ځای ښودنه

Die adverbiale Bestimmung des Ortes (lokal) erklärt, *wo* etwas passiert.
دا قید ښايي چې په کوم ځای کې یوه پیښه کیږي، کومه پوښتنه چې دلته کیږي، هغه دا ده:

| | | |
|---|---|---|
| Frage | wo, wohin, woher | چېرته، کوم ځای ته، له کومه ځایه |

Beispiele: مثالونه

| | |
|---|---|
| Der Wolf lauerte *tief im Wald.* | لیوه د ځنګله په مینځ کې کمین نیولی دی |
| Ich wohne *hoch oben.* | زه هلته پورته ځای کې اوسیږم |
| Der Mann dort hat keine Schuhe an. | هغه سړی چې هلته دی په پښو کې یې بوټان نشته |

په پورتنی لومړی جمله کې (د ځنګله په مینځ کې = tief im Wald)، په دوهمه جمله کې (هلته پورته = hoch oben) او په دریمه جمله کې (هلته = dort) د فعل د ځای په برخه کې معلومات ورکوي چې دا درې واړه (adverbiale Bestimmung des Ortes) دي.

کله چې پوښتنه وشي چې (چېرته، کوم ځای ته، له کومه ځایه = wo? wohin? woher?) نو په ځواب کې یې ډېر قیدونه راتلی شي چې هغه په لاندې جدول کې لیکل شوي دي.

| Frage | Adverb |
|---|---|
| wo?<br>په کوم ځای کې | (da هلته ،دلته), (dort هلته), (hier دلته) ,(oben پورته ), (außen بهر خوا ته),<br>(draußen بهر), (drinnen پکې دننه), (drüben هلته), (innen دننه), (unten ښکته),<br>(mitten په مینځ کې), (vorn مخکې), (hinten شا ته), (links کیڼ اړخ ته),<br>(rechts ښي اړخ ته) |
| wohin? | (dahin دغه ځای ته), (dorthin هغه ځای ته) , (hierhin دې ځای ته)،<br>(hinein پکې دننه), (hinaus بهر خوا ته), (hinunter ښکته خوا ته)، |

| | |
|---|---|
| کوم ځای ته | (aufwärts مخ په پورته خوا ته) , (hinüber هغه بلې غاړې ته) ، (rückwärts شا خوا ته), (vorwärts مخ په وړاندې), (abwärts مخ په لاندې خوا ته) (nach unten ښکته خوا ته), (nach oben پورته خوا ته) , (seiwärts ډډې خوا ته) |
| woher? له کومه ځایه | (hierher له دې ځایه), (dorther له هغه ځایه), (daher له دې ځایه) , (von darußen له بهر نه), (von oben له پورته خوا نه), (von unten له لاندې نه) (nach draußen بهر خوا ته), (nach oben پورته خواته), (nach unten ښکته خواته) |

**Übungen:**

Schreiben Sie das Fragewort für die Adverbiale des Ortes am Anfang der Frage. Schreiben Sie dann die Adverbiale des Ortes als Antwort.

Beispiel:

Wir gehen *ins Schwimmbad.* — مونږ د لامبو ډنډ ته ځو

Frage: *Wohin* gehen wir? — پوښتنه: مونږ چېرته ځو؟

Antwort: *ins Schwimmbad* — ځواب: د لامبو ډنډ ته

1. Das Fest findet im Freien statt. — محفل په ازاده هوا کې صورت مومي
   Frage: …………… findet das Grillen statt? — پوښتنه: کباب کول چېرته صورت مومي؟
   Antwort: ………………. — ځواب: په ازاده هوا کې
2. Er ging in die Bibliothek, um zu lesen. — هغه د مطالعې لپاره کتابتون ته ولاړ
   Frage: …………… ging er? — پوښتنه: هغه کوم ځای ته ولاړ؟
   Antwort: ………………. — ځواب: د ناستې کوټې ته
3. Seine Eltern stammen aus Dänemark. — د هغه مور او پلار د ډنمارك نه دي
   Frage: ………… stammen seine Eltern? — پوښتنه: د هغه مور او پلار له کوم ځایه دي؟
   Antwort: : ………………. — ځواب: له ډنمارك نه
4. Das Geld fiel unter den Tisch. — پیسې د مېز لاندې ولوېدلې
   Frage: …………… fiel das Geld? — پوښتنه: پیسې کوم ځای ته ولوېدلې؟
   Antwort: ………………. — ځواب: د مېز لاندې
5. Mein Vater hält auf dem Parkplatz. — زما پلار موټر په پارك کې ودروي
   Frage: …………… hält mein Vater? — پوښتنه: زما پلاړ چېرته موټر ودروي؟
   Antwort: ………………. — ځواب: په پارك کې
6. Die Radrennfahrer fahren nach Berlin. — بایسکل ځغلوونکي برلین ته ځي
   Frage: …………… fahren die Radrennfahrer? — پوښتنه: بایسکل ځغلوونکي چېرته ځي؟
   Antwort: ………………. — ځواب: برلین ته

**Lösungen**:

1. (Frage: wo) (Antwort: im Freien) 2. (Frage: wohin) (Antwort: ins Wohnzimmer) 3. (Frage: woher) (Antwort: aus Dänemark) 4. (Frage: wohin) (Antwort: unter den Tisch) 5. (Frage: wo) (Antwort: auf dem Parkplatz) 6. (Frage: wohin) (Antwort: nach Berlin)

## Adverbiale Bestimmung der Zeit — په قید باندې د وخت ښودنه

Die adverbiale Bestimmung der Zeit (temporal) beschreibt, *wann* etwas passiert.

دا قید ښایي چې په کوم وخت کې، کوم مهال یوه پیښه کیږي، کومه پوښتنه چې دلته کیږي، هغه دا ده:

| | |
|---|---|
| Frage | wann? seit wann? bis wann? wie oft? wie lange?<br>كله، د كوم وخت راهيسي، تر كوم وخت پورې، څو واره، څومره وخت؟ |

Beispiel:

| | |
|---|---|
| Ich wasche mich *jeden Morgen*. | زه هر سهار ځان پرېمينځم |
| Ich war *gestern* beim Sport. | زه پرون سپورټ ته تللی وم |
| Ich war *zwei Wochen* in London. | زه دوه اونۍ په لندن کې وم |

په پورتنيو جملو کې (هر سهار = jeden Morgen)، (پرون = gestern)، (دوه اونۍ = zwei Wochen) د فعل د وخت ښودونکي يا (adverbiale Bestimmung der Zeit) دي.

## Adverbiale Bestimmung der Art und Weise په قېد باندې د ډول ښودنه

Die adverbiale Bestimmung der Art und Weise (modal) erklärt, *wie* etwas passiert. دا قېد ښايي چې څنګه، په کوم ډول، په څه شان يوه پېښه کيږي او يا يو شی څه خپل دی

| | |
|---|---|
| Frage | Wie? Auf welche Art und Weise? څنګه، په کوم ډول |

Beispiele:

| |
|---|
| *Unter allgemeinem Beifall* fiel ich auf die Nase.<br>خلك د چكچكو په حالت کې وو چې زه پاتې راغلم (ناكام شوم) |
| Ich erreichte das Ziel *mit letzter Kraft*. د خپل وروستي قوت په مرسته زه هدف ته ورسېدم |
| Er erteilte *fröhlich* Auskunft. هغه په خوشحالی معلومات وړاندې کړو |

په پورتنيو جملو کې (unter allgemeinem Beifall)، (mit letzter Kraft) او (fröhlich ) ته وايي: (adverbiale Bestimmung der Art und Weise )

## Adverbiale Bestimmung des Grundes په قېد باندې د علت ښودنه

Die adverbiale Bestimmung des Grundes (kausal) erklärt, *warum* etwas passiert. دا قيد ښايي چې ولې، په کوم لامل، په کوم علت، په کومه وجه يوه پېښه کيږي

| | |
|---|---|
| Frage | warum? weshalb? wieso? ولې، په کوم لامل |

Beispiele:

| |
|---|
| Der Flug musste *wegen eines Gewitters* verschoben werden.<br>د تالندې او برېښنا له کبله الوتنه وځنډول شوه |
| Die Schule fiel *wegen Schneetreibens* aus. . د ډېرې واورې له کبله ښوونځی وتړل شو |
| Die Straße wurde *durch einen Unfall* blockiert. سړك د يو ټکر له کبله وتړل شو |

په پورتنيو جملو کې (د تالندې او برېښنا له کبله = wegen eines Gewitters)، (د ډېرې واورې له کبله = wegen Schneetreibens) او (د ټکر له کبله = durch einen Unfall) په قېد باندې د علت ښودونکي يا (adverbiale Bestimmung des Grundes) دي.

## Adverbiale Bestimmung des Mittels په قېد باندې د وسیلې ښودنه

Die adverbiale Bestimmung des Mittels (instrumental) erklärt, *mit welchem Mittel* etwas passiert. دا قید ښایي چې په کومه وسیله، په کوم شي باندې یو څه کیږي

| | |
|---|---|
| Frage | womit? wodurch? mit welchem Mittel/ Werkzeug/ Hilfsmittel?<br>په څه باندې، په کومه وسیله، په کوم اسباب، د څه شي په مرسته |

Beispiele:

| | |
|---|---|
| *Mithilfe einer Schere* schneidet er das Bild aus. | د یوې بیاتي په مرسته هغه دا عکس غوڅوي |
| Er schneidet den Apfel *mit dem Messer*. | هغه منه په چاقو غوڅوي |
| Sie schreibt *mit dem Bleistift*. | هغه په پنسل لیکل کوي |

په پورتنیو جملو کې (د یوې بیاتي په مرسته = mithilfe einer Schere)، (په چاقو mit dem Messer) او (په پنسل = mit dem Bleistift) هغه قیدونه دي چې د یو فعل وسیله ښایي، چې ورته (adverbiale Bestimmung des Mittels) وایي.

## Adverbiale Bestimmung des Zwecks په قېد باندې د هد□ ښودنه

Die adverbiale Bestimmung des Zweckes (final) erklärt, *wozu* etwas passiert.
دا قید ښایي چې په کومه موخه یا د څه هدف لپاره یوه پېښه کیږي

| | |
|---|---|
| Frage | Mit welchem Zweck? Wozu? Zu welchem Ziel? Mit welcher Absicht?<br>دلته پوښتنه کیږي چې د څه قصد لپاره، ولې، د کومې موخې یا د څه هدف لپاره |

Beispiele:

| | |
|---|---|
| *Zwecks besserer Sicht* setzte ich eine Brille auf. | د ښه لیدلو لپاره زه عینکې په سترګو کوم |
| *Zum besseren Verständnis* las ich den Satz nochmals. | د ښه پوهېدلو لپاره دا جمله ما یوځل بیا ولـوستله؟ |
| Sie sparten Geld *für schlechte Zeiten*. | د سختو وختونو لپاره هغوی پیسې وساتلې |

په پورتنیو جملو کې (د ښه لیدلو لپاره = Zwecks besserer Sicht)، (د ښه پوهېدلو لپاره Zum besseren Verständnis) او (د سختو وختونو لپاره = für schlechte Zeiten) په قېد باندې د علت ښودونکي یا (adverbiale Bestimmung des Zwecks) دي.

## Adverbiale Bestimmung der Bedingung په قېد باندې د شرط ښودنه

Die adverbiale Bestimmung der Bedingung (konditional) erklärt, *unter welcher Bedingung* etwas passiert. دا قید ښایي چې د کومو شرایطو لاندې یو څه کیږي

| | | |
|---|---|---|
| Frage | Unter welcher Bedingung? | د کومو شرایطو لاندې |

Beispiele:

| |
|---|
| *Bei schönem Wetter* gehen wir morgen spazieren.<br>په ښه هوا کې سبا په چکر ځو |
| Das Fest findet *bei schlechtem Wetter* im Haus statt.<br>په خرابه هوا کې محفل په کور کې لمانځل کيږي |
| *Mit etwas mehr Anstrengung* kannst du es schaffen.<br>په لږ څه ډېر زحمت ته کوی شې چې بريالی شې |

په پورتنيو جملو کې (په ښه هوا کې = bei schönem Wetter)، (په خرابه هوا کې bei schlechtem Wetter) او (په لږ څه ډېر زحمت = mit etwas mehr Anstrengung) په قېد باندې د علت ښودونکي يا (adverbiale Bestimmung der Bedingung) دي.

## Adverbiale Bestimmung der Folge     په قېد باندې د نتيجې ښودنه

Die adverbiale Bestimmung der Folge (konsekutiv) erklärt, *mit welcher Folge* etwas passiert.     دا قيد ښايي چې د يوې پېښې پايله يا عاقبت به څنګه وي

| | | |
|---|---|---|
| Frage | Mit welcher Folge? Mit welcher Wirkung? | پايله څه ده، اغيز يې څه دی؟ |

Beispiele:

| |
|---|
| Es gab viel zu wenig Wasser, *so dass* viele Pflanzen eingingen.<br>اوبه ډېرې لږې وې چې له امله يې ډېر بوټي وچ شول |
| Es war *so* trocken, *dass* viele Flüsse und Seen austrockneten.<br>وچکالي دومره ډېره وه چې له امله يې ډېر سيندونه او ډنډونه وچ شول |

په پورتنيو جملو کې (چې له امله يې وچ شول = *so dass* … eingingen)، (چې له امله يې وچ شول *so* … *dass* …austrockneten.) (adverbiale Bestimmung der Folge) دي.

## Adverbiale Bestimmung des Gegengrundes په قېد باندې د متقابل لامل ښودنه

Die adverbiale Bestimmung des Gegengrundes (konzessiv) erklärt, *trotz welchen Umstands* etwas passiert.     دا قيد ښايي چې له يو حالت سره سره بيا هم يو څه پېښيږي

| | | |
|---|---|---|
| Frage | trotz welchen Umstands? | له کوم شي سره سره |

Beispiele:

| |
|---|
| *Trotz aller Schwierigkeiten* erreichte ich das Ziel.<br>له دومره مشکلاتو سره سره زه هدف ته ورسېدم |
| *Trotz der großen Hitze* ging die Arbeit flott voran.<br>سره له ډېرې ګرمۍ کار په چټکۍ پرمخ ولاړ |
| *Trotz aller Proteste* will er im Amt bleiben.<br>له دومره اعتصابونو سره سره هغه غواړي چې پخپلې چوکۍ پاتې شي |

په پورتنيو جملو کي (له دومره مشکلاتو سره سره = trotz aller Schwierigkeiten)، (سره له ډېرې ګرمۍ trotz der großen Hitze) او (له دومره اعتصابونو سره سره *Trotz aller Proteste*) په قېد باندې د علت ښودونکي يا (adverbiale Bestimmung des Gegengrundes) دي.

## Adverbiale Bestimmung des Gegensatzes په قېد باندې د توپير ښودنه

Die adverbiale Bestimmung des Gegensatzes erklärt, was gerade anstatt eines anderen Ereignisses vorgenommen wird.

دا قيد ښايي چې همدا اوس د يوې بلې پېښې په ځای څه شی کيږي

| | | |
|---|---|---|
| Frage | anstatt wessen? | چا او يا د څه شي په ځای |

**Beispiele:**

| | |
|---|---|
| *Anstatt des Ministers* sprach der Direktor. | د وزير په ځای مدير خبرې وکړې |
| *Anstatt eines Gesprächs* machte er lieber eine Wanderung. | د خبرو په ځای هغه قدم وهلو ته ولاړ |
| *Anstatt zu schlafen*, hören die Kinder Radio. | د خوب په ځای ماشومان راډيو اوري |

په پورتنيو جملو کي (د وزير په ځای= anstatt des Ministers) ، (د خبرو په ځای anstatt eines Gesprächs) او (د خوب په ځای anstatt zu schlafen) په قېد باندې د علت ښودونکي يا (adverbiale Bestimmung des Gegensatzes) دي.

**Übung:**

Schreiben Sie das Fragewort für die Adverbiale der Zeit am Anfang der Frage. Schreiben Sie dann die Adverbiale der Zeit als Antwort.

Beispiel: مثال
Wir besuchen *morgen* das Museum. — مونږ سبا د موزيم د کتلو لپاره ورځو
Frage: Wann besuchen wir das Museum? — پوښتنه : مونږ کله د موزيم ليدو ته ورځو؟
Antwort: morgen ځواب : سبا

1. Ich habe heute keine Zeit. — زه نن وخت نه لرم
   Frage: …………. habe ich keine Zeit? — پوښتنه : زه کله وخت نه لرم؟
   Antwort: …………. — ځواب : نن
2. Ich rief dreimal bei dir an. — ما درې ځلي تا ته ټيلفون وکړو
   Frage: …………. rief ich bei dir an? — پوښتنه : ما تا ته څو ځلي ټيلفون وکړو؟
   Antwort: …………. — ځواب: درې ځلي
3. Abends habe ich frei. — د ماښام له مخې زه وزګار يم
   Frage: …………. habe ich frei? — پوښتنه : زه کله وزګار يم
   Antwort: …………. — ځواب : د ماښام له مخې
4. Du wurdest selten gelobt. — ستا ستاينه ډېره لږه وشوه
   Frage: …………. wurdest du gelobt? — پوښتنه: څومره ستا ستاينه وشوه؟
   Antwort: …………. — ځواب : ډېره لږه

5. Wir gehen oft spazieren. مونږډېر وخت په چکر وځو
Frage: ………… gehen wir spazieren? پوښتنه: مونږ څومره وخت په چکر وځو؟
Antwort: …………
6. Der Braten bleibt zwei Stunden im Backofen. کباب دوه ساعته په داش کې پاتې کيږي
Frage: ………… bleibt der Braten im Backofen? پوښتنه:
کباب څومره وخت په داش کې پاتې کيږي؟
Antwort: ………… ځواب : دوه ساعته
7. Den Zug habe ich im letzten Augenblick erreicht.
په وروستی شېبه کې زه اورګاډي ته ورسېدم
Frage: ………… habe ich den Zug erreicht? پوښتنه: زه کله اورګاډي ته ورسېدم؟
Antwort: ………… ځواب : په وروستی شېبه کې

**Lösungen:**

1. wann (Antwort: heute) 2. wie oft (Antwort: dreimal) 3. wann (Antwort: abends) 4. wie oft (Antwort: selten) 5. wie oft (Antwort: oft) 6. wie lange (zwei Stunden) 7. wann (Antwort: im letzten Augenblick)

**Übungen:**

Schreiben Sie die *adverbiale Bestimmung der Zeit*, die *adverbiale Bestimmung des Ortes* sowie die *adverbiale Bestimmung der Art und Weise* in die Lücken.

1. Schnell fuhr ein Fahrer in eine Kurve. په چټکی یو موټر په یو کږلېچ کې تاو شو
………… …………
(adverbiale Bestimmung der Art und Weise) adverbiale Bestimmung des Ortes
2. Er bremst kräftig und das Auto begann in der Kurve zu schleudern.
هغه قوي برك ووهو او موټر په کږلېچ کې تاوراتاو شو
………… …………
(adverbiale Bestimmung der Art und Weise) adverbiale Bestimmung des Ortes
3. Quietschend brach das Heck des Wagens aus.
په قیـــو غږ کولو د موټر د شا برخه د سړك نه بهر ووتله
…………
(adverbiale Bestimmung der Art und Weise)
4. Der Wagen schoss auf den nahen Acker. موټر په ډېرې چټکی مخ په کروندو ولاړ
…………
(adverbiale Bestimmung des Ortes)
5. Das Auto fiel scheppernd auf die Seite. د ماتېدو ګړز وشو او موټر په ډډه ولوېد
…………
(adverbiale Bestimmung der Art und Weise)
6. Nach zwei Minuten erlosch das Fahrlicht. دوه دقیقې وروسته د موټر څراغ مړ شو
…………
(adverbiale Bestimmung der Zeit)
7. Verärgert stieg der Fahrer aus. موټروان خپه له موټر نه راووت
…………
(adverbiale Bestimmung der Art und Weise)

8. Zum zweiten Mal musste er ein Auto kaufen.
هغه مجبور شو چې د دوهم ځل لپاره يو موټر په بيه واخلي
…………
(adverbiale Bestimmung der Zeit)

**Lösungen:**

1. schnell … in eine Kurve 2. kräftig … in der Kurve 3. quietschend
4. auf den nahen Acker 5. scheppernd 6. nach zwei Minuten 7. verärgert
8. zum zweiten Mal

**Übungen :**

Wählen Sie die richtige adverbiale Bestimmung aus. Der Satzteil, den Sie bestimmen sollen, ist unterstrichen.

Adverbiale der Art und Weise — Adverbiale der Zeit
Adverbiale des Grundes — Adverbiale des Ortes

1. Mein Neffe blieb zwei Wochen lang in den Ferien.
زما وراره دوه اونۍ په رخصتۍ تللی و
……………………………………………..
2. Die meiste Zeit angelte er mit seinem Großvater am Hafen.
زياتره وخت هغه د خپل نيکه سره په بندر کې کبان نيول
……………………………………………..
3. Wegen der großen Hitze saßen sie im Schatten einer Weide.
د ډېرې ګرمی په وجه هغوی د ولې د سيوري لاندې ناست وو
……………………………………………..
4. Sie kamen jedes Mal fröhlich vom Angeln zurück.
هغوي به هر ځل د کب نيولو نه خوشحاله بېرته راتلل
……………………………………………..
5. Die Fische bereitete seine Großmutter in der Pfanne zu.
کبان به د هغه نيا (انا) په کړايي کې پخول
……………………………………………..
6. Leider hatte mein Neffe dort zweimal Bauchschmerzen gehabt.
له بده مرغه زما وراره ته هلته د خېټې درد پيدا شو
……………………………………………..
7. Nächstes Jahr hat er etwas anderes vor. په راتلونکي کال کې هغه بل پروګرام لري
……………………………………………..
8. Wegen des vielen Sonnenscheins ist er ganz braun geworden.
د ډېر لمر په وجه د هغه پوستکی تور شوی دی
……………………………………………..

**Lösungen**:

1. Mein Neffe blieb zwei Wochen lang in den Ferien. (= *Adverbiale der Zeit*)
2. Die meiste Zeit angelte er mit seinem Großvater am Hafen.
(= *Adverbiale des Ortes)*

3. Wegen der großen Hitze saßen sie im Schatten einer Weide.
(= *Adverbiale des Grundes*)
4. Sie kamen jedes Mal fröhlich vom Angeln zurück.
(= *Adverbiale der Art und Weise)*
5. Die Fische bereitete seine Großmutter in der Pfanne zu.
( = *Adverbiale des Ortes*)
6. Leider hat mein Neffe zweimal Bauchschmerzen gehabt.
(= *Adverbiale der Zeit)*
7. Nächstes Jahr hat er etwas anderes vor. *(= Adverbiale der Zeit*)
8. Wegen des vielen Sonnenscheins ist er ganz braun geworden.
(= *Adverbiale des Grundes)*

## Ergänzungen zu den Adverbien د بشپړتيا لپاره نور معلومات

### I. Adverbiale Bestimmung der Art und Weise د يو شي د ډول ښودلو قيد

دې ته (Modaladverbien) هم وايي. په دې کې ځيني قيدونه شته چې يوې خبرې ته يا لاپسي نور هم قوت يا شدت ورکوي، يا دا چې دا خبره لاپسي کمزوري کوي، لکه (ډېر واضح). دلته د (ډېر) کلمه يو قيد دی او (واضحتوب) نور هم زياتوي. بل مثال: (په يقيني ډول صحيح). دلته (په يقيني ډول) يو قيد دی چې (صحيحتوب) لاپسي زياتوي . په لاندې جدول کې به هغه قيدونه وګورو چې د يو صفت زياتوالي او يا لږوالي کوي.

| | |
|---|---|
| verstärkend<br>قوي کوونکي قېدونه | (sehr ډېر) , (besonders) ,( خاص), (unbedingt هرو مرو) (außerordentlich فوق العاده) (ungewöhnlich غيرعادي) (sicher يقيناً), (bestimmt هرو مرو), (allerdings خو) (natürlich طبعاً), (gewiss يقيناً) , (absichtlich قصداً) (folgendermaßen په لاندې ډول) , (tatsächlich واقعاً )<br>Das musst du unbedingt tun. ته بايد هرو مرو دا وکړې<br>Sie ist sehr hübsch. هغه ډېره ښايسته ده |
| abschwächend<br>کمزوري کوونکي قيدونه | (fast تقريباً ), (kaum دومره لږ لکه هيڅ), (ganz پوره، بالکل) (beinah(e) نږدې، تقريباً) ، (einigermaßen يو اندازه) (ziemlich تر ډېره حده)<br>Jetzt ist es fast zu spät. اوس نو تقريباً ډېره ناوخته ده |
| in Frage stellend تر پوښتنې<br>لاندې راوستونکي قيدونه | (vielleicht شايد، احتمالاً) , (versehentlich سهواً) , (möglicherweise چې لري امکان), (wahrscheinlich احتمالاً) ، (vermutlich داسي اټکل کيږي چې)<br>Das ist vielleicht richtig. شايد چې دا صحيح واوسي |
| verneinend<br>منفي ځواب ورکوونکي قيدونه | (gar nicht هيڅ نه), (überhaupt nicht بالکل نه), (keineswegs په هيڅ وجه نه), (keinesfalls په هيڅ حالت نه) (vergebens بې ځايه، خوشي) ، (umsonst بې ځايه، خوشي)<br>Das darfst du keineswegs tun. ته به په هيڅ وجه دا نکوي |

**توضيحات:**

① هغه قيدونه چې په پای کې يې (-erweise) راځي، هغه د يو چا خپل فکر او يا د يو چا قضاوت او يا نتيجه ګيري ښايي او هم کېدی شي چې دا د بل چا فکرا و يا قضاوت واوسي. مثال:

Er hat *dummerweise* den Vertrag schon unterschrieben. = Dass er den Vertrag schon unterschrieben hat, war dumm von ihm. هغه له بې عقلی نه دا قرارداد وخته لاسليك کړيدی. يعني دا چې هغه دا قرارداد وخته لاسليك کړيدی، دا د هغه بې عقلي وه

Ich habe *glücklicherweise* die Prüfung bestanden. = Dass ich die Prüfung bestanden habe, war ein Glück für mich. له نېکه مرغه زه په ازموينه کې بريالی شوم. يعني دا چې زه په ازموينه کې بريالی شوم، دا زما نېکمرغي وه

Wir werden euch *möglicherweise* bald besuchen. = Dass wir euch bald besuchen werden, ist möglich. کېدی شي چې مونږ په دې لنډو کې ستاسو ليدو ته درشو. يعني دا چې مونږ به په دې لنډو کې ستاسو ليدو ته درشو، دا کېدونکی دی

② هغه قيدونه چې په پای کې يې (-halber) او يا (-falls) راځي، هغه د يوې خبرې دليل او يا شرط څرګندوي. مثال:

Er muss *schlimmstenfalls* eine Geldstrafe zahlen. = Wenn es schlimm kommt, muss er eine Geldstrafe zahlen.که سختـه شي، نـو هغه به مالي جـريمه تحويله کړي، يعني که حالات سخت شي، نو هغه به مالي جريمه تحويله کړي

Er hat *vorsichtshalber* einen Rechtsanwalt genommen. = Weil er vorsichtig sein wollte, hat er einen Rechtsanwalt genommen.
هغه احتياطآ يو وکيل نيولی دی، يعني په دې چې هغه احتياط کوه، نو يو وکيل يې نيولی دی

Deine Äußerungen sind *bestenfalls* naiv, wenn nicht dumm. = Wenn der beste Fall eintritt, sind deine Äußerungen naiv, wenn nicht dumm.
ستا خبرې که بې عقله نه وي، نو چې ډېرې ښې شي، نو ساده به وي. يعني دا چې په ډېر ښه حالت کې به ستا خبرې ساده وي، که نه نو بې عقله به وي

③ کله چې (als) د قيد په توګه وکارول شي، نو دا په دې مانا چې خلك په دې برخه کې څه فکر کوي، يعني دا چې د (als) په يادولو يو څوك د يو شي د مثبت يا منفيوالي په برخه کې خپل نظر وايي. بل دا چې (als) د يو شي حيثيت يا کيفيت يا درجه هم ښايي، مثال:

| | |
|---|---|
| Die Maßnahme hat sich *als* richtig erwiesen. | دا اقدام صحيح ثابت شو |
| Dieses Buch gilt *als* sehr umfangreich. | دا کتاب د ډېر جامع کتاب په حيث ګڼل کيږي |
| etwas *als* gute Ware verkaufen | يو شی د ښه مال په نامه خرڅول |

که چېرته له (als) نه وروسته يو اسم راشي، نو زياتره وخت بې له (Artikel) راځي او د (als) مانا ده (د يو چا په توګه ، د يو چا په حيث، په يو وخت کې). مثال:

In diesem Konflikt hat er sich *als* Politiker richtig verhalten.
په دې لانجه کې هغـه د سياستوال په توګه ښه چلند وکړو

| | |
|---|---|
| *Als* Kind habe ich hier oft gespielt. | په ماشومولی کې ما دلته ډېر وخت لوبې کړې دي |
| Wir kennen ihn *als* einen guten Gastgeber. | مونږ هغه د يو ښه کوربه په توګه پېژنو |
| Er legte sein Amt *als* Vorsitzender nieder. | د رئيس په حيث هغه خپله چوکی پرېښودله |
| etwas *als* Medizin nehmen | يو شی د درمل په توګه خوړل |

**Übungen:**

Schreiben Sie das Fragewort für die Adverbiale der Art und Weise am Anfang der Frage. Schreiben Sie dann die Adverbiale der Art und Weise als Antwort.

Beispiel:
Unter Beifall betrat der Sänger die Bühne. — سندرغاړی په چکچکو د ستېج سر ته راغلی
Frage: Wie betrat der Sänger die Bühne? — سندرغاړه په څه ډول د ستېج سر ته راغله؟
Antwort: unter Beifall — ځواب: په چکچکو

1. Mit größter Anstrengung siegte ich. — په نهایت زحمت زه برلاسی شوم
   Frage: ……. siegte ich? — پوښتنه: زه څنګه برلاسی شوم؟
   Antwort: ………………… — ځواب: په نهایت زحمت
2. Ich lief mit letzter Kraft ins Ziel. — هغه وروستی قوت چې ما درلود، ورنه ما کار واخیست او بیا هدف ته ورسېدم
   Frage: ……. lief ich ins Ziel? — پوښتنه: زه په څه ډول هدف ته ورسېدم؟
   Antwort: ………………… — ځواب : په هغه وروستي قوت چې ما درلود
3. Man wird besser, indem man übt. — کله چې سړی تمرین وکړي، نو سړی لاپسې ښه کیږي
   Frage: ……. wird man besser? — پوښتنه: سړی په څه باندې لاپسې ښه کیږي؟
   Antwort: ………………… — ځواب: په تمرین باندې
4. Er rannte wie der Blitz nach Hause. — هغه لکه د برېښنا په شان کور ته ورمنډه وکړه
   Frage: ……. rannte er nach Hause? — پوښتنه: هغه څه شان کور ته ورمنډه وکړه؟
   Antwort: ………………… — ځواب: لکه د برېښنا په شان
5. Auf diese Weise wurde sie schnell berühmt. — په دې ډول هغه ژر مشهوره شوه
   Frage: ……. wurde sie schnell berühmt? — پوښتنه: هغه په کوم ډول مشهوره شوه
   Antwort: ………………… — ځواب: په دې لاره
6. Die Figur wirkte geheimnisvoll. — دا شکل داسې ښکارېدو لکه چې ډېر پټ رازونه پکې وي
   Frage: ……. wirkte die Figur? — پوښتنه: دا شکل څنګه ښکارېدو؟
   Antwort: ………………… — ځواب: لکه چې پټ راز پکې وي

**Lösungen:**

1. (Frage: wie) (Antwort: mit größter Anstrengung) 2. (Frage: wie) (Antwort: mit letzter Kraft) 3. (Frage: wie) (Antwort: indem man übt) 4. (Frage: wie) (Antwort: wie der Blitz) 5. (Frage: wie) (Antwort: auf diese Weise) 6. (Frage: wie) (Antwort: geheimnisvoll)

**Bildung von attributiven Adjektiven aus Adverbien له قید نه صفت جوړونه**

کله چې د ځینو قیدونو په پای کې (-ig) ورزیات شي نو له قید نه صفت جوړیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| heute + ig = heutig<br>نن = نننی | dort + ig = dortig<br>هلته = هلتنی | bald + ig = baldig<br>په لنډو کې = په لنډو کې |
| bisher + ig = bisherig<br>تر اوسه = اوسنی | vorher + ig = vorherig<br>له مخه = مخکینی | vor + ig = vorig<br>مخکې = مخکینی |

ځيني قيدونه بيا بې قاعده دي او د هغوي نه ځيني توري راوېستل کيږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| gestern + ig = gestrig<br>پرون = پرونی | morgen + ig = morgig<br>سبا = سبانی | hies + ig = hiesig<br>دلته = د دې ځای |
| oben + ig = obig<br>پورته = پورتنی | jetzt + ig = jetzig<br>اوس = اوسنی | |

پورتني قيدونه په جملو کې:

Der *heutige* Tag war sehr kalt. نننی ورځ ډېره سړه وه
Die *hiesige* Schule ist sehr weit. د دې ځای ښوونځی ډېر ليرې دی
Die *jetzige* Situation lässt keinen Platz für Fehler.
په اوسني حالت کې د غلطيو لپاره ځای نشته
Schicken Sie die Ware bitte an *obige* Adresse. تاسو جنس په پورتني پتې ولېږئ
Die Kinder der *gestrigen* Bettler sind heute die Reichen im Dorfe.
د پرونيو سوالګرانو ماشومان نن د کلي کې شتمنان دي
Der *morgige* Ausflug wird sehr anstrengend sein.
سبانی مېله به ډېره ستومانه کوونکي وي

ځيني نور قيدونه شته چې د صفت جوړولو په وخت (-ig) پکې نه راځي او بې له قاعدې جوړيږي.

| | | |
|---|---|---|
| außen بهر = äußere بهرنی<br>äußere Probleme<br>بهرنی ستونځی | innen دننه = innere دننني<br>innere Krankheiten<br>دننني ناروغی | unten ښکته = untere ښکتنی<br>das untere Stockwerk<br>ښکتنی پوړ |
| vor مخکې = vordere مخکينی<br>die vorderen Stühle<br>مخکينی چوکۍ ګانې | oben پورته = obere پورتنی<br>die obere Schicht<br>پورتنی طبقه | hinten شا ته = hintere شاتينی<br>die hintere Reihe<br>شاتينی کتار |

| Auswahl der Adverbien der Art und Weise mit Dativ<br>د دول ښودلو هغه قيدونه چې له (Dativ) سره راځي | |
|---|---|
| abträglich<br>تاوان رسوونکی | Das Rauchen ist *der* Gesundheit abträglich.<br>سګرټ څکول روغتيا ته تاوان رسوي |
| ähnlich<br>ورته، مشابه | Das Kind ist *der* Mutter ähnlich. دا ماشوم مور ته ورته دی، دا ماشوم لکه<br>د مور په شانې ښکاري |
| angeboren<br>له زيږيدنې راهيسې | Der Herzfehler ist *ihm* angeboren. دا د زړه ناروغي له زيږيدنې راهيسې<br>په هغه کې ده |
| angemessen<br>مناسب | Ihr Gehalt ist *ihrer* Leistung angemessen.<br>د هغې معاش د هغې له کار سره مناسب دی |
| behilflich<br>مرستندوی | Können Sie *mir* in dieser Sache behilflich sein?<br>تاسو په دې کار کې له ما سره مرسته کوی شئ؟ |
| bekannt<br>څرګند، معلوم | Seine Aussage ist *mir* seit Langem bekannt.<br>د هغه خبرې له ډېر وخت راهيسې ما ته څرګندې دي |
| beschwerlich<br>په عذابونکی، سخت | Lange Flugreisen sind *mir* zu beschwerlich.<br>د الوتکې اوږده مزلونه ما ته په عذابونکي دي |

| | |
|---|---|
| bewusst<br>په شعوري ډول | Das ist *mir* niemals bewusst geworden.<br>په شعوري ډول زه هېڅکله په دې نه یم پوه شوی |
| böse په قهر | Bist du *mir* böse? ته په ما په قهر يې؟ له ما نه خپه يې؟ |
| dankbar منونکی | Ich bin *dir* sehr dankbar. زه له تا نه ډېر منونکی یم |
| entsprechend<br>د يو شي سره سم | Der Preis *ist* der Qualität der Ware entsprechend.<br>د مال نرخ د جنسيت سره سم دی |
| fremd<br>پردی، بېګانه | Diese Stadt ist *mir* immer fremd geblieben.<br>دا ښار ما ته تل پردی پاتې شوی دی |
| gegenwärtig<br>په حافظه کې پاتې | Der Buchtittel war dem Professor im Augenblick nicht<br>gegenwärtig. په دې شېبه کې د کتاب نوم د پروفيسر حافظې ته نه ورتلو |
| geläufig<br>څرګند، پوه، معلوم | Dieser Ausdruck ist *mir* nicht geläufig. زه په دې اصطلاح نه پوهېږم |
| gelegen په ګټه | Deine Hilfe kommt *mir* sehr gelegen. ستا مرسته ډېره زما په ګټه ده |
| gewachsen<br>له وسه پوره، قادر | Er ist dieser Aufgabe *nicht* gewachsen.<br>دا وظيفه د هغه له وسه پوره نه ده |
| gleichgültig<br>بې تفاوته | Es ist mir gleichgültig, ob du dort hingehst oder nicht.<br>دا ما ته بې تفاوته ده چې ته هلته ځې او که نه |
| nahe نږدې، لنډ | Wir waren *dem* Ziel sehr nahe. مونږ هدف ته ډېر نږدې شوي وو |
| peinlich له شرم<br>نه ډك، شرموونکی | Sein Lob war *mir* peinlich. د هغه په صفت باندې زه شرمېدلم |
| recht په طبع سم،<br>په طبع برابر | Sein Besuch war *den* Verwandten nicht recht.<br>د خپلوانو کور ته ورتګ د خپلوانو په طبع برابر نه و |
| sympathisch<br>چې خوښ شي | Meine neue Lehrerin ist *mir* sympathisch.<br>زما نوې ښوونکې زما خوښېږي |
| treu<br>وفا دار، با وفا | Er ist *seiner* Frau immer treu geblieben.<br>هغه خپلې مېرمنې ته تل وفادار پاتې شوی دی |
| überlegen<br>برلاسی، غالب | Unsere Mannschaft war *der* gegenerischen Mannschaft überlegen.<br>زمونږ ټيم په سيال ټيم باندې برلاسی و |
| unterlegen<br>کمزوری، مغلوب | Er war *seinen* Konkurrenten unterlegen.<br>هغه د خپلو سيالانو نه کمزوری و |
| vergleichbar<br>ورته ، په شان | Dein Lebensweg ist *meinem* vergleichbar.<br>ستا ژوندلار زما د ژوندلارې سره مقايسه کېدی شي |
| verhasst منفور،<br>د کرکې وړ | Dieser Mensch ist *mir* verhasst. له دې انسان نه زما کرکه راځي |
| zugetan خوښ،<br>ګران | Er ist *seinen* Enkelkindern sehr zugetan.<br>د هغه لمسيان د هغه ډېر خوښېږي |
| zuwider چې ډېر<br>بد راشي | Deine Lügen sind *mir* zuwider. ستا دروغونه زما ډېر بدې راځي |

| Auswahl der Adverbien mit Zeit- und Maßangaben im Akkusativ<br>د وخت او اندازې هغه قیدونه چې له (Akkusativ) سره راځي | |
|---|---|
| alt عمر لرونکی | Das Kind ist erst *einen* Monat alt. دا ماشوم اوس یو میاشتینی شو |
| breit پلن | Der Schrank ist *einen* Meter breit. دا الماری یو متر پلنه ده |
| dick ډبل | Das Brett ist zwanzig Millimeter dick. دا تخته شل میلي متره ډبله ده |
| hoch لوړ، جګ | Der Himalaya ist 8848 Meter hoch. د همالیا غر ۸۸۴۸ متره لوړ دی |
| lang اوږد | Das Bett ist zwei Meter lang. دا کټ دوه متره اوږد دی |
| lang ټول، غونډ | Er arbeitet *den* ganzen Tag lang. هغه ټوله ورځ کار کوي |
| schwer دروند | Der Stein ist *einen* Zentner (= 50 kg) schwer.<br>دا تیږه پنځوس کیلوګرامه درنه ده |
| tief ژور | Die Grube ist zehn Meter tief. دا کنده لس متره ژوره ده |
| weit لیرې | Manche Vögel können 10 000 Kilometer weit fliegen.<br>ځیني مرغان لس زره کیلومتره لیرې الوتلی شي |
| wert<br>ارزښت لرونکی | Deine Ersparnisse sind nur noch die Hälfte wert.<br>ستا د سپما ارزښت اوس تش په نیمه اندازه دی |

**Adverbien mit Präpositionen هغه قیدونه چې د تراو حرفونو سره یوځای راځي**

ځیني قیدونه شته چې هغه د تراو حرفونو یا (Präposition) سره یو ځای راځي چې یا د (Dativ) او یا د (Akkusativ) سره کارول کیږي. مثال (په یو شي باندې ویاړ کوونکی *auf* stolz). دلته (stolz) یو قید دی او (auf) د تراو حرف یا (Präposition) دی چې د (Akkusativ) سره استعمالیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Worauf bist du stolz? ته په څه باندې ویاړ کوې؟ ته په څه باندې ویاړیږې؟<br>Ich bin stolz auf mein gutes Examen. زه پخپلې ښې ازموینې باندې ویاړ کوم<br>Ich bin stolz darauf, dass ich ein ausgezeichnetes Examen geschrieben habe.<br>زه په دې ویاړم چې ازموینه مې ډېره ښه لیکلې ده | |

نور (Präpositionen) په لاندې جدولونو کې لیکل شویدي

| Auswahl der gebräuchlichsten Adverbien mit Präpositionen (Akkusativ) | | |
|---|---|---|
| *Adverb* | *Präposition* | *Beispielsatz* |
| ärgerlich<br>په قهر | über | Er ist ärgerlich über *seinen* Kollegen.<br>هغه په خپل همکار باندې په قهر دی |
| aufmerksam<br>متوجه | auf | Er hat mich auf *die* Gefahren aufmerksam gemacht.<br>هغه زه خطرونو ته متوجه کړم |
| bekannt<br>مشهور | für | Das Hotel ist bekannt für *seine* gute Küche.<br>دا هوټل د ښې ډوډۍ په وجه مشهور دی |
| bekümmert<br>غمجن، خپه | über | Er war über *seine* Niederlage sehr bekümmert.<br>هغه د خپلې ناکامۍ په وجه ډېر غمجن و |
| betroffen<br>خپه، خواشینی | über | Sie war über *den* Tod ihres Vaters sehr betroffen.<br>هغه د خپل پلار د مړینې له پلوه ډېره خواشینې وه |
| beunruhigt<br>نا ارامه | über | Der Minister ist über *die* Wirtschaftslage sehr beunruhigt. وزیر د اقتصادي وضعې له پلوه ډېر ناارام دی |
| böse په قهر | auf | Ich bin böse auf *dich.* زه تا پسې په قهر یم |

| | | |
|---|---|---|
| eifersüchtig د میني له حسد نه ډك | auf | Sie ist eifersüchtig auf *ihren* Mann. هغه ښځه د خپل میړه سره د میني رخه کوي (نه غواړي چې میړه یې د نورو ښځو خوښ شي) |
| entsetzt شوك لیدلی، ډارېدلی | über | Ich bin entsetzt über *diese* Grausamkeit. دې ظلم او بې رحمی باندې ما شوك ولیدو |
| erfreut خوښ، خوشحاله | über | Ich bin erfreut über diese Initiative der Regierung. د حکومت د دې ابتکار له امله زه خوښ یم |
| froh خوښ، خوشحاله | über | Wir sind froh über die gute Nachricht. د دې ښه خبر په وجه مونږ خوښ یو |
| glücklich خوښ، نېکمرغه | über | Ich bin sehr glücklich über diese Lösung. په دې حل باندې زه ډېر خوښ یم |
| neidisch له حسد نه ډك | auf | Er ist neidisch auf meinen Erfolg. زما په بریالیتوب د هغه رخه راځي (زما بریالیتوب نشي لیدلی) |
| nützlich ګټور، مفید | für | Es war für die Natur sehr nützlich, dass es geregnet hat. دا چې باران وشو، دې د طبیعت لپاره ډېره ګټه وکړه |
| schädlich مضر، تاواني | für | Das ist schädlich für die Gesundheit. دا د روغتیا لپاره تاواني شی دی |
| stolz وياړلی | auf | Ich bin stolz auf dich. زه په تا وياړم |
| verbittert خپه او ناراض | über | Sie ist verbittert über ihr schweres Schicksal. هغه د خپل سخت تقدیر له پلوه خپه او ناراضه ده |
| verliebt په یو چا مین | in | Bist du in sie verliebt? ته په هغې مین یې؟<br>Er ist in dich verliebt. هغه په تا مین دی |
| verwundert حیران پاتې | über | Ich bin sehr verwundert über seine Stellungnahme. زه د هغه دریځ ته حیران پاتې یم |

| Auswahl der gebräuchlichsten Adverbien mit Präpositionen (Dativ) | | |
|---|---|---|
| *Adverb* | *Präposition* | *Beispielsatz* |
| angesehen مشهور، محبوب، مخورېز | bei/ als | Er ist bei seinen Kollegen angesehen. هغه د خپلو همکارانو په منځ کې محبوبیت لري<br>Wir brauchen ein System, das als gerecht angesehen wird. مونږ داسې یو سیستم په کار دی چې خلك ورته د عادل سیستم په سترګه وګوري |
| arm چې پکې لږ وي | an | Europa ist sehr arm an Ressourcen. په اروپا کې طبیعي زېرمې ډېرې لږې دي<br>Diese Speise ist arm an Kalorien. په دې خوړو کې کالوري لږه ده |
| begeistert چې ډېر خوښ شي | von | Die Jugendlichen waren von dem Konzert begeistert. د ځوانانو دا کنسرت ډېر خوښ شو |
| bekannt بلد، مشهور | mit/bei | Ich bin mit ihm seit der Schulzeit bekannt. زه د ښوونځي د وخت راهیسې له هغه سره بلد یم<br>Er ist bei allen Fußballspielern bekannt. د ټولو فوټبالرانو تر منځ هغه مشهور دی |
| beliebt محبوب | bei | Er war bei seinen Kollegen sehr beliebt. هغه د خپلو همکارانو په منځ کې ډېر محبوبیت درلود |

| | | |
|---|---|---|
| besessen یو شي پسي لېونی | von | Er ist von seiner Arbeit so besessen, dass er seine Familie völlig vernachlässigt. هغه خپل کار پسي دومره لېونی دی چي خپله کورنی يې بالکل هېره کړېده |
| betroffen اغېزمن شوی | von | Viele Menschen sind vom Erdbeben betroffen. ډېر خلك د زلزلي له امله اغېزمن شويدي |
| blass کمرنګه، ژیړ | vor | Vor Schreck ist sie ganz blass geworden. هغه د ډار له لاسه بالکل ژيړه شوه |
| erkrankt په یوې ناروغی اخته | an | Er ist an einer Grippe erkrankt. هغه د والګي په ناروغی اخته دی |
| fähig لـه وسـه پـوره، توان لرونکی | zu | Der Angeklagte ist durchaus zu einem Mord fähig. دا متهم د وژلو توان لري |
| fertig خلاص، تمام، سر ته رسېدلی | mit | Ich bin mit meinen Aufgaben noch nicht fertig. ما لا خپلي وظيفي خلاصي کړي ندي |
| fertig چمتو، تیار | zu | Die Holzbretter sind fertig zum Transport. د لرګو تختي د لېږلو لپاره چمتو دي |
| frei له یو شـي نه تـش، خالي | von | Dieser Schritt ist jedoch nicht frei von Problemen. دا قدم له ستونځو نه تش نه دی |
| freundlich ښه وضع کوونکی | zu | Er ist immer freundlich zu mir. هغه له ما سره تل ښه وضع کوي |
| interessiert علاقه لرونکی | an | Ich bin an diesem schönen Haus sehr interessiert. زه له دې ښايسته کور سره ډېره علاقه لرم |
| reich غني، شتمن، بډا، ډېر څه لرونکی | an | Alaska ist reich an Bodenschätzen. په (Alaska) کي طبيعي معدني زېرمي ډېري دي |
| rot سور | vor | Er wurde vor Wut ganz rot. د قهر له لاسه هغه تك سور شو |
| überzeugt باور لرونکی | von | Er ist von dieser Meinung völlig überzeugt. په دې مفکوره باندې هغه بالکل باور لري |
| verrückt یو شي پسي لېونی | nach | Er ist ganz verrückt nach Cowboyfilmen. هغه د کوبايي فلمونو پسي لېونی دی |
| verschieden توپیر لرونکی، مختلف | von | Obwohl sie Brüder sind, sind sie voneinander sehr verschieden. سره لـه دې چي هـغوی سـره ورونـه دي، خو له يو بل نه ډېر توپير لري |
| verständnisvoll تفاهم لرونکی | gegenüber | Seien Sie verständnisvoll gegenüber dem fremden Brauchtum. تاسو بايد د پردو دودونو سره تفاهم ولرئ |
| verwandt له یو چا سره خپل | mit | Also sind wir miteinander verwandt. ښه نو، مونږ له يو بل سره خپل يو |
| voll ډك | von | ein Herz voll Liebe له مينې نه ډك زړه |
| voreingenommen د یو چا په هکله مخکی له مخکي بد نظره | gegenüber | Sie waren dem neuen Kollegen gegenüber ein wenig voreingenommen. هغـوی د نـوي همکار په هکله مخکي له مخکي لږ څه بد نظره وو |
| zufrieden د یو چا یا د یو شي نه راضي | mit | Er ist nie mit sich zufrieden. هغه هيڅکله له ځان نه راضي نه دی |

| | | |
|---|---|---|
| zurückhaltend<br>ځان ګوښه نیوونکی | gegenüber | Sie verhält sich uns gegenüber sehr zurückhaltend. زمونږ په وړاندې هغه ځان ډېره ګوښه نیسي |

# Partikel نه ګردانېدونکي الفاظ

په پورتنیو برخو کې مو په مفصل ډول د صفتونو ګردانونه او قیدونه په مختلفو ډولونو زده کړل. په دې برخه کې به داسي الفاظ زده کړو چي پخپله ظاهرآ هېڅ اهمیت نلري، دا په دې مانا چي دا الفاظ نه د صفت، نه د اسم او نه د فعل په شان ګردانیږي. بل دا چي دا الفاظ په جمله کې هېڅ شان بنیادي برخه نلري. دې الفاظو ته (Partikel) وايي. په لغوي مانا (Partikel) اصلا یو (بڅرکي) یا یوې (ذرې) ته وايي، خو په ګرامر کې بیا هم ځان ته ځای لري. که چېرته دا الفاظ موجود نه وي، نو بیا هم له یوې جملې نه سړې مطلب اخیستی شي. مثال:

| |
|---|
| Das ist *ja* unglaublich. په دې باندې د سړي باور نه راځي |

دلته د (ja) کلمه یو (Partikel) دی. که دا جمله بې له (ja) په دې ډول راشي چي :
(Das ist unglaublich) ، نو له دې جملې نه هم پورتنی مانا اخیستل کېدی شي. دا چي دا الفاظ دومره غیرمهم دي، نو پوښتنه دا ده ولې دلته په ګرامر کې ورته ځای ورکول کیږي؟ ځواب دا دی چي دا الفاظ یو مطلب لاپسي ښه څرګندوي. هغه کنایه چي یو ویونکي ورته ګوته نیسي، په دې الفاظو باندې د اورېدونکي غوږ ته لاپسي واضح رسیږي. مثال: که چېرته یو کور اور اخیستی وي او د کور خاوند اطفایې ته غږ وکړئ چي هله ژر راشئ چي کور اور اخیستی دی، خو اطفائیه هغه وخت راورسیږي چي ټول کور سوی وي. نو په دغه وخت کې د کور خاوند اطفایې ته څه وايي؟ هغه به دا ووايي چي:

| |
|---|
| Kommen Sie jetzt *erst*? تاسو اوس راځئ (چي ټول کور سوځېدلی دی) ؟ |

په پورتنۍ جمله کې (erst) یو (Partikel) یا یو ګرامري (بڅرکی) دی، خو څنګه چي پورته لیدل کیږي، په جرمني ژبه کې بڅرکی (erst) هغه څه بیانوي چي په پښتو کې یې یوه غونډه جمله بیانوي چي هغه جمله دا ده (چي ټول کور سوځېدلی دی). دا شان الفاظ د لیکلو په ځای د ژبې یا د خولې له لارې لاپسي ښه غوږ ته راځي، ځکه دا الفاظ ډېر په تآکید او په شدت ویل کیږي. له بده مرغه ډېرو (Partikel) الفاظو ته په پښتو کې هممانیز یا مترادف لغات نشته، نو له دې کبله په پښتو کې داسي یوه مهمه اشاره یا کنایه د یو لفظ په ځای په یوه اوږده جمله کیږي. په جرمني ژبه کې (Partikel) زښت ډېر دي، خو د بېلګې په توګه به په لاندې برخه کې یو څو معمول (Partikel) زده کړو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| schon | nur | bloß | erst | noch |

## s c h o n

دا لفظ په مختلفو ماناګانو استعمالیږي.
① کله چي یو کار د وخت له لحاظه له وخته مخکې وشي

| |
|---|
| Kannst du für heute etwas Holz hacken? ته کوی شي چي د نن لپاره لږ څه لرګي وچوې؟<br>Das habe ich *schon* vor zwei Stunden getan. دا مې وخته دوه ساعته دمخه کړي دي |

② کله چې یو کار د توقع په خلاف وشي

Der Arzt sagt, der Patient soll heute diese Tablette nicht nehmen.
ډاکټر وایي چې رنځور دې نن دغه ګولی ونخوري
Er hat sie *schon* genommen. (چې اصلاً باید خوړلې یې نه وای) هغه وخته دا ګولی خوړلې ده

③ کله چې بې صبري وشي او سړی غواړي چې یو کار دې ژر وشي

Komm *schon* zu mir! ته ځنډ مکوه او ژر زما خوا له راشه
Nun, mach *schon*! ته ځنډ مه کوه، اوس ژر دا وکړه

④ کله چې د یو کار سره د چا اصلاً موافقه نه وي، نو ځکه د کېدلو لپاره یې محدودیت ته اشاره وشي

Das kannst du *schon* machen, aber ich sage dir, dass es gefährlich ist.
ته دا کار کوی شي، خو زه درته وایم چې دا کار خطرناکه دی

⑤ کله چې دوه کارونه بې له دمې شا په شا وشي، اصلاً باید لږ څه دمه پکې راغلې وای

Kaum war seine Frau gestorben und *schon* hat er wieder geheiratet.
د هغه د ښځې د مړینې نه لا لږ وخت تېر شوی نه و چې هغه بل واده وکړو

⑥ کله چې په یو شي کې لږ څه حېرانتیا یا تعجب ښکاره کړی شي

Das Kind ist *schon* acht Jahre alt. دا ماشوم اته کلن دی (اصلاً ډېر وړوکی ښکاري)
Sie sind jetzt *schon* der Hundertste, der mich das fragt.
تاسو دا سلم کس یاست چې دا پوښتنه رانه کوي (حیران یم چې ولې دومره ډېر خلك رانه پوښتنه کوي)

⑦ کله چې د یو شي بیه یا نرخ له توقع نه لږه وي

Ein gutes Auto bekommt man heute *schon* für unter 10.000 Euro.
یو ښه موټر نن د لس زره یورو نه په ټیټه بیه لاس ته راوړل کېږي

⑧ کله چې د یو چا خبره یاده شي چې ډېر پخوا کوم چا کړې وي

*Schon* Sokrates soll geklagt haben: Die Jugend hat keinen Respekt mehr vor älteren Leuten.
ویل کېږي چې سقراط هم دا پرياد کړی دی چې: نن ورځ ځوانان مشرانو ته احترام نکوي

⑨ کله چې یو لږ شی یو لوی غبرګون یا عکس العمل ته کفایت وکړي

*Schon* der bloße Gedanke daran ekelt mich an.
تش زما په فکر کې د هغې ګرځېدل ماته کانګه راولي

⑩ کله چې د یوې خبرې سخت عاقبت ته اشاره وشي

Du wirst *schon* sehen! ته به عاقبت یې وګورې چې څه کېږي

⑪ کله چې د یو کار د کېدلو زیات احتمال ته اشاره وشي

Er wird *schon* wieder kommen. هغه به بېرته راشي (احتمالات یې ډېر دي)

⑫ کله چې یو شي ته په ټیټه سترګه وکتل شي

Was du *schon* weißt! په هغه څه چې ته پوهېږې، هغه هیڅ په حساب کې نه راځي

⑬ کله چې د یو کار په بدل کې یوه خاصه غوښتنه او یا توقع یاده شي

Wenn ich mich *schon* dafür hergebe, dann will ich auch ordentlich bezahlt werden.
دې کار ته چې زه حاضر شم، نو په بدل کې یې سمه حق الزحمه هم غواړم

⑭ کله چې په یو کار کې سموالی یاد شي چې هېڅ نیمګړتیاوې پکې پاتې نشي

Wenn *schon*, denn *schon*!
یو کار چې یو څوک کوي، یا دې په ښه توګه وکړي او یا دې هېڅ نکوي (نیمګړی کار دې څوك نکوي)

⑮ کله چې یو څوك او یا یو شی په هېڅ ډول ونه منل شي

Ich ergebe mich niemandem, dir *schon* gar nicht.
زه هېڅ چا ته نه تسلیمیږم، تا ته خو په هېڅ وجه نه
Meine Tochter mag keine Äpfel, solche *schon* gar nicht.
زما د لور مڼې هېڅ نه خوښیږي، داسې مڼې خو په هېڅ وجه نه

## n u r

① کله چې د یو کار د کولو لپاره د امکان تر حده پورې زحمت یاد شي

Ich besuche meinen kranken Vater, sooft ich *nur* kann.
هر څومره چې زما له وسه کیږي، زه د خپل ناروغ پلار لیدو ته ورځم

② کله چې د یوې موضوع په حل کې له یو چا نه لار ورکه شي

Was soll ich *nur* tun? له ما نه لار ورکه ده چې څه وکړم؟
Wo ist denn *nur* mein Schlüssel? زما کیلي چیرته ورکه ده؟

③ کله چې په یوې خبرې کې حیرانتیا، تعجب، نیوکه یا انتقاد یاد شي

Was er *nur* alles kann! هغه په څومره ډېرو شیانو پوهیږي ( یعني هغه ډېر څه کوی شي)
Was ist das *nur* für eine schöne Stadt! دا څومره ښایسته ښار دی
Was hast du da *nur* wieder gemacht! دلته تا بیا څه کړي دي (یعني ورانی دې کړی دی)

④ د یو چا د ارامولو او هغه ته د جرآت ورکولو لپاره

*Nur* mit der Ruhe, wir haben Zeit genug! هرڅه په کراره، مونږ په کافي اندازه وخت لرو
*Nur* Mut, das schaffst du schon! مه ډاريږه، ته یې کوی شي

⑤ د یو کس او یا د یو شي پورې د یو محدودیت ښکاره کولو لپاره

*Nur* einer hat den Unfall überlebt und sonst niemand.
تش یو کس په دې ټکر کې ژوندی پاتې شو او بل هېڅ څوك نه
Ich habe *nur* das Fahrrad verkauft und nichts anderes.
ما تش دا بایسکل خرڅ کړی دی او بل هېڅ نه
Mein Sohn hat das Brot *nur* gekauft und nicht gegessen.
زما زوی دا ډوډی تش په بیه اخیستې ده او خوړلې یې نده

Ich habe ihn *nur* kurze Zeit gesehen. هغه ما د ډېر لنډ وخت لپاره ليدلی دی
Das habe ich ja gleich gesagt, du hast es mir *nur* nicht geglaubt.
دا خبره خو ما سمدلاسه وکړه، خو تا زما په خبره باور ونکړو
Der Film hat mir gut gefallen, *nur* dass er ein bisschen zu lang war.
دا فلم مې خوښ شو، خو لږ څه ډېر اوږد و

⑥ کله چې يوه هيله يا ارمان بيان شي

Wenn er *nur* wieder nach Hause käme! کاشکې چې هغه بېرته کور ته راشي
Hätte ich das doch *nur* nicht gesagt! کاشکې چې دا مې نه وای ويلي

⑦ کله چې يو چا ته يو ګواښ وشي يا يو چا ته اخطار ورکړل شي

Komm du mir *nur* nach Hause! ته خو زما کور ته راشه (چې زه درته ښه سزا درکړم)
Glaub *nur* nicht, dass du damit durchkommst!
ته فکر مکوه چې ته به په دې باندې پرمخ تللی وشي

## b l o ß

(bloß) د (nur) سره هممانيز يا مترادف لغت دی او په ډېرو حالاتو کې په هر هغه ځای کې کارول کېدی شي چې هلته (nur) کارول کيږي.

① يو مطلب چې په مخکينی جمله کې يې صفت شوی و، په دوهمه جمله کې د صفت محدودولو لپاره

Das Konzert war toll, *bloß* war die Musik ein bisschen zu laut.
کنسرت نور ښه و، خو د موسيقی غږ لږ څه ډېر جګ و
Ich habe es auch gehört. Ich frage mich *bloß*, stimmt das auch?
دا ما هم اورېدلي دي. خو ما ته دا پوښتنه راپيدا کيږي، چې دا ريښتيا هم ده او که نه

② د يوې پېښې د شدت د لږ ښودلو لپاره، د يو شي د اغېز د کم ښودلو لپاره

Die Kugel hat ihn *bloß* gestreift und nicht voll getroffen.
ګولی هسې د هغه د پوستکي له سر نه تېره شوه او د هغه په ځان ونه لګېدله

③ د يو شي د بد عاقبت د ښودلو لپاره

Bleib im Bett, sonst wirst du *bloß* noch krank.
ته په کټ کې پاتې شه، او که نه نو ته به ناروغ شي
Sag lieber nichts, sonst wird er *bloß* noch wütender.
ته څه مه وايه، او که نه نو هغه لاپسې په قهريږي

④ کله چې په يوې خبرې کې حيرانتيا، تعجب، نيوکه يا انتقاد ياد شي

Wie konntest du *bloß* so etwas Schreckliches tun? تا نو څنګه داسې يو بد کار کوی شو؟

⑤ د يو چا د ارامولو او هغه ته د جرآت ورکولو لپاره

Reg dich *bloß* nicht auf! *Bloß* keine Angst! ته خپل اعصاب مه خرابوه ! مه ډارېږه!

⑥ کله چې یو چا ته یو ګواښ وشي یا اخطار ورکړل شي

Halt *bloß* endlich den Mund! ته دي نور نو خوله نیسه (خبرې مکوه)
Glaub *bloß* nicht, dass ich mir das gefallen lasse! ته فکر مکوه چې زه به دا هسې ومنم

⑦ کله چې یوه هیله یا ارمان بیان شي

Hätte ich das doch *bloß* nicht gesagt! کاشکې چې دا خبره مې نه وای کړې
Wenn wir *bloß* schon da wären! کاشکې چې موږ اوس هلته رسېدلي وای

## erst

① د یو حالت د لاپسې سخت ښودلو یا د یو ځرنګوالي د لاپسې ډېر ښودلو لپاره

Er ist schon frech, aber sein Bruder *erst*. هغه سپین سترګی دی، خو د هغه ورور لاپسې ډېر
Würdest du diesem Kind weiterhelfen? Jetzt *erst* recht. ته به له دې ماشوم سره نور هم مرسته وکړې؟ که پخوا مې کوله او که نه کوله، خو اوس یې هرومرو کوم

② کله چې یو کار یا یوه پېښه له خپل اصلي وخت نه وروسته وشي

Ich bin *erst* gegen Mittag aufgewacht. غرمه رانږدې شوې وه چې زه له خوبه راویښ شوم
*Erst* viel später habe ich alle Einzelheiten erfahren.
ډېر وخت وروسته زه له جزیاتو نه یې خبر شوم

③ کله چې د یوې پېښې نه ډېر وخت تېر شوی نه وي

Ich habe ihn *erst* kürzlich gesehen. هغه ما لنډ وخت مخکې ولیدو

④ کله چې ښکاره کړی شي چې د وخت له اړخه لا ډېره وخته ده او وخت لا شته

Bleib noch ein bisschen, es ist *erst* zehn Uhr. ته لږ څه پاتې شه، اوس خو لا لس بجې دي
Es ist *erst* Oktober, und schon schneit es!اوس لا د اکتوبر میاشت ده، خو بیا هم واوره ورېږي

⑤ کله چې یو کار د توقع په خلاف ډېر لږ شوی وي

Ich lese schon seit vier Stunden und habe trotzdem *erst* 2 Seiten geschafft.
دا څلور ساعت دی چې زه مطالعه کوم، خو دې سره سره تش دوه پاڼې مې خلاصې کړې دي

⑥ کله چې یو کار د توقع په خلاف ډېر ځنډ وشي

Der Bus fährt *erst* in vier Stunden.
سروېس څلورساعته وروسته ځي (توقع دا ده چې ژر ولاړ شي)

⑦ کله چې له یو کار سره ضدیت او مخالفت وي، او یا یو د یو کار د کولو تصمیم ونښودل شي

Sie geht nicht gern einkaufen, und freitags *erst* recht nicht.
د هغې خو هسې هم سودا اخیستل نه خوښیږي، خو د جمعې په ورځو کې هېڅ نه

## n o c h

① کله چي يو کار لا سرته رسېدلی نه وي، خو سرته رسېدل يې نږدې شوي وي

| | |
|---|---|
| Es schneit kaum *noch*. | واوره دومره لږه وريږي چې سړی فکر کوي چې هېڅ به نه وريږي |
| Der Film läuft *noch*. | فلم لا روان دی، فلم لا پای ته رسېدلی ندی |
| Ich habe *noch* nicht gefrühstückt! | ما لا تر اوسه پوره سبا ناری ندی کړی |

② کله چي له يو کار يا له يوې نېټې نه مخکې يو بل کار د کولو وي

Kannst du das *noch* vor den Ferien erledigen?
ته کوی شې چې دا له رخصتيو نه مخکې خلاص کړې؟
Ich muss *noch* die Blumen gießen, bevor wir weggehen.
مخکې له دې نه چې مونږ بهر ولاړ شو، زه بايد ګلانو ته اوبه واچوم

③ کله چي د يو کار بد عاقبت بيان شي

Mit dem Zigarettenrauchen bringst du dich *noch* ins Grab!
په سګرټ څکولو باندې ته ځان په قبر کې غورځوې
Das wirst du *noch* bereuen. ته به له دې نه پښېمانه شې

④ کله چي سړی يو کار په نږدې راتلونکي کې کوي

| | |
|---|---|
| Ich komme *noch* darauf zurück. | زه دې ټکي ته بېرته راځم |

⑤ کله چي په نږدې راتلونکي کې يو کار کېدونکی وي

| | |
|---|---|
| Sie wird *noch* kommen. | هغه به راشي |

⑥ کله چي لنډ وخت مخکې يو څه پېښ شوي وي

Sieh an, gestern war er *noch* krank und heute tanzt er schon wieder in der Disko! ته خو ګوره، پرون هغه ناروغ و، او نن هغه په ډيسکو کې ګډا کوي

⑦ کله چي يوه پېښه ډېر ژر وشي

*Noch* ehe ich aussteigen konnte, schloss die Türe.
مخکې له دې نه چې زه ښکته کېدی وشم، دروازه بنده شوه
Der Fahrer starb *noch* am Unfallort. موټروان لا د ټکر په ځای کې مړ شو

⑧ کله چي يوڅه له يو بل څه نه اضافه پاتي وي، خو دومره لږ وي چې خلاصېدو ته نږدې وي

| | |
|---|---|
| Ich habe *noch* sieben Euro. | له ما سره اوه يورو پاتي دي |
| Hast du *noch* ein bisschen Zeit? | ته لږ څه نور وخت لرې؟ |

⑨ کله چي د موجوده شيانو تر څنګ نور څه يکي زيات شي او يا يو بل تن په يوه ډله کې يوځای شي

| | |
|---|---|
| Bringen Sie mir *noch* eine Tasse Tee, bitte! | تاسو ما ته يوه بله پياله چای نور هم راوړئ |

| | |
|---|---|
| Nimmst du *noch* ein Stück Kuchen? | ته یوه ټوټه نور کیك اخلې؟ |
| Und wer ist *noch* hinzugekommen? | او بل څوك په دې کې ورزیات شو؟ |

⑩ کله چې یو شی د بل شي سره پرتله شي، نو سره له منفي اړخه بیا هم له نورو نه ښه وي

Da hast du *noch* Glück gehabt, andere mussten mit solch einer Grippe im Bett bleiben! ستا طالع وه، نور کسان د داسې والګي سره مجبور وو چې په کټ کې پاتې شي

⑪ کله چې د یو شي برتري یا لوړوالی څرګند کړی شي

| | |
|---|---|
| Das waren *noch* Zeiten! | دا هغسې (ښه) وختونه وو |
| Dies ist eben *noch* Qualität! | دې ته نو (ښه) کیفیت وایي |

⑫ کله چې د یو چا توقع تر سره نشي او سړی له یو چا نه ګیلې مانې وکړي

Du hättest *noch* ein paar Minuten warten können!
تا کولی شو چې یو څو دقیقې نور هم صبر وکړې (په دې چې تا صبر ونکړو، نو څکه دا کار ونشو)
Das hättest du wohl *noch* für mich tun können! تا کولی شو چې زما لپاره دا وکړې (خو ودې نکړو)

⑬ کله چې د یو صفت لاپسې زیاتول یا کمول بیان شي

Hier ist es ja *noch* schöner als ich gedacht habe!
څومره چې ما فکر کوه، دا ځای له هغې نه نور هم ښایسته دی
Nun wird wohl alles nur *noch* schlimmer. اوس به هرڅه لاپسې خراب شي

⑭ کله چې یو شی پخپل حال پاتې شي، سره له دې چې یو څوك بدلولو ته یې خواري هم وکړي
(دلته له (noch) سره (so) یوځای کیږي، په دې ډول: (noch so)

Da kannst du *noch so* viel trainieren, der Bauch bleibt immer noch so dick.
ته که هرڅومره ډیر تمرین وکړې، ستا ګېډه بیا هم غټه پاتې کیږي
Du kannst *noch so* viel schreien, erst machst du die Hausaufgaben!
که ته هرڅومره ډیرې چیغې وهې ووهه، لومړی به ته خپلې کورنۍ وظیفې کوې

⑮ کله چې سړی د یو هېر شوي شي پوښتنه کوي

| | |
|---|---|
| Wie war *noch* Ihr Name? | ستاسو نوم څه و؟ (زما هېر شوېدی) |
| Wie hieß *noch* die Hauptstadt von Kanada? | د کاناډا پلازمینه څه نومېده؟ |

نور (Partikel) دا دي

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| sogar | eigentlich | vielleicht | einigermaßen | wenigstens |
| wohl | kaum | besonders | vor allem | |

**Übungen:**

Bitte ergänzen Sie die folgenden Sätze mit: schon, erst, nur, noch!

1. Habt ihr schon alle Fenster geputzt? تاسو ټولې کړکۍ پاکې کړېدي؟
   Nein, wir haben ……….. die Fenster im Schlafzimmer geputzt.
   نه، مونږ تش د خوب د کوټې کړکۍ پاکې کړې
2. Der Schule beginnt um 08.00 Uhr. ښوونځي په ۸ بجو شروع کیږي
   Um 08.15 Uhr waren ……….. 4 Schüler im Unterricht.
   په پنځلس باندې اته بجو لا څلور شاګردان په درس کې وو
3. Jeden Tag kommen 20 Schüler zum Unterricht.
   هره ورځ شل تنه زده کوونکي درس ته راځي
   Heute waren ……….. 4 Schüler im Unterricht.
   نن په درس کې تش څلور تنه زده کوونکي حاضر وو
4. Normalerweise rufe ich ihn mehrmals an.
   په عادي حالت کې هغه ته زه څو وارې ټېلفون کوم
   Heute habe ich ihn ……….. einmal angerufen und ……….. hat er zugesagt.
   نن هغه ته ما تش یوځل زنګ ووهو او هغه سمدلاسه هوکړه وکړه
5. Selbst 4 jährige Kinder können sich alleine anziehen.
   حتی څلورکلن ماشومان په یوازې ځان خپلې جامې اغوستلی شي
   Dieses Kind ist ……….. 5 Jahre alt und kann sich nicht alleine anziehen.
   دا ماشوم وخته پنځه کلن شوی دی او په یوازې ځان خپلې جامې نشي اغوستلی
6. Du warst an meinen Büchern sehr interessiert. تا زما د کتابونو سره ډېره علاقه درلودله
   Hast du mein neues Buch ……….. gelesen? تا زما نوی کتاب لوستی دی؟
   Nein, Ich habe im Augenblick ….. wenig Zeit. Ich habe leider ……….. 30 Seiten gelesen. نه، دمګړۍ زما وخت ډېر لږ دی، ما تش دېرش پاڼې يې لوستې دي
7. Glauben Sie, dass Sie das noch im Laufe dieser Woche erledigen können?
   تاسو فکر کوئ چې د دې اونۍ په لړ کې به دا کار خلاص کړی شئ؟
   Nein, in dieser Woche habe ich ……….. genug zu tun; ich werde wohl …… nächste Woche dazu kommen.
   نه، په دې اونۍ کې زما کار ډېر دی، زما به ایله په ایله په راتلونکې اونۍ کې ورته وخت پیدا شي
8. Es wäre besser, wenn er das wüsste. ښه به دا وای چې هغه له دې خبر وای
   Weiß er das ……….. ? Nein, er wird es ……….. heute Abend erfahren.
   هغه له دې نه خبر دی؟ نه هغه به نن ماښام له دې نه خبر شي
9. Ich benötige dringend Informationen über Herrn Patmann.
   د ښاغلي پتمن په برخه کې زما ډېر ضرور معلومات پکار دی
   Ich kann Ihnen leider ……….. wenig über Herrn Patmann erzählen.
   د ښاغلي پتمن په برخه زه تاسو ته ډېر لږ څه ويلی شم
   Wir kennen uns ……….. seit einem Jahr und treffen uns ……….. selten.
   مونږ د یو کال راهیسې یو بل پېژنو او یو بل ډېر لږ وینو
10. Um gut Deutsch sprechen zu können, muss man mindstens 6 Monate Deutsch lernen. د دې لپاره چې سړی په جرمني ژبه ښه وغږېدلی شي، سړی باید لږ تر لږه شپږ میاشتې جرمني ژبه زده کړي

Obwohl er ……….. seit 2 Monaten Deutsch lernt, kann er ……… ganz gut sprechen; ……….. seine Aussprache ist noch nicht in Ordnung.
سره له دې چې هغه د دوه میاشتو راهیسې جرمني ژبه زده کوي، هغه په جرمني ژبه ښه غږېدی شي. تش د هغه تلفظ ښه نه دی

11. Mir wurde versprochen, dass ein Mechniker sich heute bei Ihnen meldet.
له ما سره ژمنه وشوه چې نن به یو میخانیکر له تاسو سره اړیکي نیسي
Hat sich ……….. jemand bei Ihnen gemeldet? Nein, bei uns hat sich ……….. niemand gemeldet. له تاسو سره کوم چا اړېکي نیولي دي؟ نه، له مونږ سره تراوسه پوري هېڅ چا اړیکي ندي نیولي

12. Haben Sie alles erledigt? تاسو ټول کارونه سرته رسولي دي؟
Nein, ich habe sehr viel zu tun, ich bin gerade ……….. vom Urlaub zurück-gekommen. نه، زه زښت ډېر کار لرم او همدا اوس له رخصتۍ نه بېرته راغلم

13. So etwas sagt man seinem Chef sofort. داسې خبره خپل آمر ته سړی سمدلاسه کوي
Warum sagen Sie mir denn das alles ……….. heute! Das hätten Sie mir ……….. viel früher sagen müssen.
تاسو دا ټولې خبرې ماته ولې اوس کوئ! دا خبرې باید تاسو ماته ډېر پخوا کړې وای

14. Das Essen war sehr lecker. Es war ……….. zu heiß.
ډوډۍ ډېره خوندوره وه ، خو ډېره توده وه

15. Der Schüler ist sehr faul. Wäre er ……….. fleißiger.
دا زده کوونکی ډېر لټ دی، کاشکې چې هغه لږ څه خواریکښ وای

16. Ich mag es nicht, wenn du mich anfasst. Fass mich ……….. nicht an!
دا زما نه خوښېږي چې ته په ما لاس ولګوې. پام کوه چې په ما لاس ونه لګوې

17. Du kannst ……….. so viel lügen, du bist beim Klauen fotografiert worden.
هرڅومره دروغ چې ته ویلی شې وایه یې، د غلا په وخت کې ستا عکاسي شوېده

18. Ich habe nicht so viel Zeit. Komm ………..! زه ډېر وخت نلرم. ځنډ مکوه او ژر راشه

19. Kaum hat die Sonne geschienen und …… schneit es wieder.
د لمر سترګه لا لیدل شوې نه وي چې بیا واوره پیل شي

20. Ich sehne mich nach alten Zeiten. زما هغه پخواني وختونه راپه یادیږي
Das waren ……….. Menschen! دا څه (ښه) انسانان وو

**Lösungen:**

1 nur 2. erst 3. nur 4. nur, schon 5. schon 6. schon 7. schon 8. schon 9. nur, erst, nur 10. erst, schon, nur 11. schon, noch 12. erst 13. erst, schon 14. bloß 15. bloß 16. bloß 17. noch 18. schon 19. schon 20. noch

# Das Pronomen = Fürwort ضمیر یا نومځری

ضمیر ته په پښتو کې (نومځری) وایي، یعني نوم ښودونکی. له دې کلمې نه په ژبه کې هغه وخت کار اخیستل کیږي چې سړی نه غواړي چې یوه کلمه څو څو واره تکراره شي. یعني د تکرار د مخنیوي لپاره د یوې کلمې په ځای بله کلمه استعمالیږي. نو په همدې علت په جرمني ژبه کې ورته (Fürwort) ویل شویدي، یعني د یوې کلمې په ځای بله کلمه. په لاتیني ژبه کې ورته (Pronomen) وایي. (Pro) یعني لپاره. (Nomen) یعني نوم یا اسم. دا چې ضمیر په عربي کې (وجدان) ته هم وایي دا د ګرامر سره څه اړه نلري. اوس به په پښتو ژبه کې یو مثال وګورو:

| |
|---|
| ما یوه ښځه ولیدله. ښځه ناروغه وه. ښځه یو ډاکټر ته ولاړه. ډاکټر ښځې ته درمل ورکړو. ښځه بیا د ډاکټر په درمل بېرته ښه شوه. |

څنګه چې ښکاري، دلته د ښځې کلمه څوڅو واره تکراره شوه. بیا د ډاکټر کلمه څو واره تکراره شوه. د دې لپاره چې دا جملې په غوړ ښې ولګیږي، نو ښه به دا وي چې د څو واره ښځې ښځې ښځې په ځای وویل شي چې: (هغې). همدا رنګه ښه به دا وي چې د څو واره ډاکټر ډاکټر په ځای وویل شي چې: (هغه) . (هغې) او (هغه) ته نومځری یا ضمیر وایي. نومځري یا ضمیرونه په څو ډوله دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Personalpronomen | شخصي ضمیر | Demonstrativpronomen | د اشاري ضمیر |
| Reflexivpronomen | منعکسه ضمیر | Relativpronomen | ربطي ضمیر |
| Reziprokpronomen | متقابل ضمیر | Interrogativpronomen | سواليه ضمیر |
| Possessivpronomen | د خاوند ښودلو ضمیر | Indefinitpronomen | مبهم ضمیر |

## Personalpronomen (persönliches Fürwort) شخصي ضمیر

دا هغه ضمیر دی چې یو شخص، یو کس، یو څوك یا په بل عبارت یو انسان ښکاره کوي. دغه کس کېدی شي حاضر واوسي یا غیر حاضر، کېدی شي چې یو تن واوسي یا ډېر کسان، کېدی شي چې خبرې کونکی واوسي یا غوږ نیونکی. خبرې کونکي یا متکلم ته په جرمني ګرامر کې ویل کیږي:
(1. Person = لومړی کس)، غوږنیونکي یا مخاطب ته ویل کیږي: (2. Person = دوهم کس) او غیرحاضر یا غایب ته ویل کیږي: (3. Person = دریم کس)
شخصي ضمیرونه دا دي :

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ich زه | du ته | er، sie, es هغه | wir مونږ | ihr تاسو | sie هغوی | Sie (محترم کس) تاسو |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| 1. Person Singular<br>لومړی مفرد کس | ich زه | | 1. Person Plural<br>د لومړي کس جمع | wir مونږ |
| 2. Person Singular<br>دوهم مفرد کس | du ته | | 2. Person Plural<br>د دوهم کس جمع | ihr تاسو |
| 3. Person Singular<br>دریم مفرد کس | er هغه نارینه<br>sie هغه ښځه<br>es هغه ماشوم | | 3. Person Plural<br>د دریم کس جمع | sie هغوی |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | په پښتو کې په لاندینۍ برخه کې لیکل شوې کومه جمله صحیح ده؟ |

| Welche Frage ist richtig? | |
|---|---|
| Ich sehe du? = زه ته وينم | Ich sehe dich? = زه تا وينم؟ |

(ځرګنده ده چې صحيح جمله دا ده: (زه تا وينم) . په جرمني ژبه کې ويل کيږي: (Ich sehe dich) دا په دې مانا چې دلته له (du) نه چې د (Nominativ) حالت دی، د (Akkusativ) حالت جوړ شوی دی يعني (تا = dich) . له دې نه دا نتيجه اخيستل کيږي چې ټول شخصي ضميرونه ګردانيدی شي او ګردان يې په دې ډول دی:

## Die Deklination der Personalpronomen

## د شخصي ضميرونو ګردان

| Kasus حالت<br>Frage پوښتنه | Singular مفرد | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | 1. Person Singular<br>لومړی مفرد کس | 2. Person Singular<br>دوهم مفرد کس | 3 Person Singular Maskulinum<br>دريم مفرد کس نارينه | 3. Person Singular Femininum<br>دريم مفرد کس ښځينه | 3. Person Singular Neutrum<br>دريم مفرد کس ماشوم يا مخنث |
| Nominativ<br>wer oder was?<br>څوک يا څه شی | ich<br>زه | du<br>ته | er<br>هغه نارينه | sie<br>هغه ښځه | es<br>هغه ماشوم |
| Genitiv<br>wessen?<br>د چا | meiner<br>زما | deiner<br>ستا | seiner<br>د هغه | ihrer<br>د هغې | seiner<br>د هغه |
| Dativ<br>wem? چا ته | mir<br>ما ته | dir<br>تا ته | ihm<br>هغه ته | ihr<br>هغې ته | ihm<br>هغه ته |
| Akkusativ<br>wen oder was?<br>څوک، چا | mich<br>ما، زه | dich<br>تا، ته | ihn<br>هغه نارينه | sie<br>هغه ښځه | es<br>هغه ماشوم |

| Kasus حالت<br>Frage: پوښتنه | Plural جمع | | |
|---|---|---|---|
| | 1. Person Pl. | 2. Person Pl. | 3. Person Pl. |
| Nominativ څوک يا څه شی<br>wer oder was? | wir<br>موږ | ihr<br>تاسو، تاسې | sie<br>هغوی |
| Genitiv<br>wessen? د چا | unser<br>زموږ | euer<br>ستاسو | ihrer<br>د هغوی |
| Dativ<br>wem? چا ته | uns<br>موږ ته | euch<br>تاسو ته | ihnen<br>هغوی ته |

| Akkusativ<br>wen oder was ? څوک | uns<br>مونږ | euch<br>تاسو، تاسي | sie<br>هغوی |
|---|---|---|---|

| Ich | du | wir | ihr | Sie |
|---|---|---|---|---|
| دا پورتني نومځري هغه ضميرونه دي چي يو غږېدونکی کس يا ډېر کسان مستقيماً يا نيغ په نيغه ښکاره کوي، هر څه دوي پخپله وايي او کوم غايب کس پکي نشته | | | | |

مثال:

| Ich habe dich gestern gesehen. | ما ته پرون وليدلې |
|---|---|

| er | sie | es | sie (Plural) |
|---|---|---|---|
| دا هغه نومځري دي چي د دوي نومونه اوس نه ياديږي. د دوي نومونه پخوا له کوم بل چا له خوا ياد شويدي او اوس د هغوی د نوم په ځای ويل کيږي چي (هغه، هغې، هغوی). | | | |

۱- (ich, du, wir, ihr, Sie) ضميرونه تل لپاره اشخاص يا انسانان دي چي مستقيماً يا نيغ په نيغه ورسره خبري کيږي او ويانډ يې پخپله يادوي. مثال:
Ich habe dich gestern gesehen. ما ته پرون وليدلې

۲- er, sie, es, sie (Plural) هغه شخصي ضميرونه دي چي پخوا د کوم ويونکي له خوا په خپل نامه ياد شويدي او اوس يې نوم نه اخيستل کيږي او د نوم په ځای يې ويل کيږي چي؛ هغه، هغې، هغوی ...
Der Professor ist verreist. Er kommt heute nicht.
پروفيسر په سفر تللی دی. هغه نن نه راځي

۳- (du, ihr) د ماشومانو، نږدي خپلوانو او ملګرو ته کارول کيږي. مثال:
Wie heißt du? ستا نوم څه دی؟
Was macht ihr heute Abend? تاسو نن ماښام څه کوئ؟

۴- (Sie) هغه ضمير دی چي د احترام لپاره مشرانو ته، پردو ته او هغه چا ته کارول کيږي چي سړی ورسره ډېر نږدي ملګری نه وی او يا ورسره په رسمياتو کي خبري کوي. (Sie) د يو کس او يا د ډېرو کسانو لپاره په همغه يو ډول کارول کيږي. مثال: (?Wie heißen Sie ستاسو نوم څه دی؟ )

په پورتنيو نومځرو کي په دريو ځايو کي د (sie) کلمه ياده شوېده چي توپير به يې يو ځل بيا تشريح شي.

| | |
|---|---|
| 1. sie<br>هغه ښځه | دا نومځری تش يوي ښځي ته ياديږي چي له هغي سره مخامخ خبري نکيږي، بلکي دغه ښځه د يو چا سره په خبرو کي ياديږي. دا نومځری په وروکي (s) ليکل کيږي. مثال:<br>sie ist heute sehr krank هغه نن ډېره ناروغه ده |
| 2. sie<br>هغوی | دا نومځری هغه کسانو ته ياديږي چي کېدی شي دا ټول کسان نارينه واوسي، يا ټولي ښځي واوسي او يا نارينه او ښځي په ګډه واوسي او شمېره يې له يو نه ډېره وي ، يعني يا به دوه نارينه وي، يا به دوه ښځي وي او يا به يو سړی او يوه ښځه وي چي له دوي سره مخامخ خبري نکيږي بلکي دوي د يو بل چا سره په خبرو کي ياديږي. دا نومځری په وروکي (s) ليکل کيږي. مثال:<br>sie sind sehr friedliche Menschen هغوی ډېر سوله ايز انسانان دي |

| | |
|---|---|
| 3. Sie<br>تاسو محترم شخص | دا نومځری هغه کسانو ته یادیږي چي دا کس یا یو نارینه واوسي یا ډېر نارینه کسان. بل دا چي دا کس کېدی شي چي یوه ښځه یا ډېري ښځې وي. همدا رنګه کېدی شي چي دا کسان یو نارینه او یوه ښځه وي او ډېر نارینه او ښځینه کسان په ګډه وي. د دغو کسانو سره تل مخامخ خبري کیږي، یعني دغه کسانو ته د غربېدونکي له خوا مخامخ خطاب کیږي. د دي نومځري لومړی توری تل په غټ (S) لیکل کیږي. مثال:<br>Wie heißen Sie? ستاسو (محترم کس) نوم څه دی؟ |
| | ۵- (du, dich, ihr, euch) تل لپاره په وړو تورو لیکل کیږي. تش د جملي په سر کې د هر لغت لومړنی توری لوی لیکل کیږي. |

**Übungen:**
Setzen Sie in Ihrer Antwort die entsprechenden Personalpronomen ein. Beispiel:
Magst du Äpfel? - ستا مني خوښیږي؟ Ja, ich mag sie. هو، هغه زما خوښیږي

| | |
|---|---|
| 1. Ist das Auto neu? دا موټر نوی دی؟ | Ja ................................. |
| 2. Ist die Lampe kaputt? دا څراغ خراب دی؟ | Ja ................................. |
| 3. Schmecken die Äpfel? دا مني خوند کوي؟ | Ja ................................. |
| 4. Sind die Kinder laut? د ماشومانو غږ جګ دی | Ja ................................. |
| 5. Fährt der Zug schnell? اورګاډی چټك روان دی؟ | Ja ................................. |
| 6. Kommt dein Vater morgen? ستا پلار سبا راځي؟ | Ja ................................. |
| 7. Bist du verliebt? ته مین شوی یې؟ | Ja ................................. |
| 8. Ist Josef noch jung? یوسف لا ځوان دی؟ | Ja ................................. |
| 9. Herr Jakob, haben Sie das Geld?<br>ښاغلی یوسف، پیسي له تاسو سره دي؟ | Ja ................................. |
| 10. Haben die Kinder die Brille?<br>عینکې د ماشومانو سره دي؟ | Ja ................................. |

**Lösungen**: 1. Ja, es ist neu. 2. Ja, sie ist kaputt. 3. Ja, sie schmecken. 4. Ja, sie sind laut. 5. Ja, er fährt schnell. 6. Ja, er kommt morgen. 7. Ja, ich bin verliebt. 8. Ja, er ist noch jung. 9. Ja, ich habe es. 10. Ja, sie haben sie.

**Übungen**:
Personalpronomen + Akkusativ. Verwenden Sie die Frage. Benutzen Sie in Ihrer Antwort Personalpronomen!
Frage: Trinkst du den Tomatensaft? ته د رومیانو شربت ؟
Nein, … …. ….
Antwort: Nein, ich trinke ihn nicht. ځواب: نه زه هغه نه څښم

1. Isst du das Gemüse? ته دا سابه خوري؟
   Nein, … …. …. نه، زه هغه نه خورم
2. Mag deine Tochter Spinat? پالك ستا د لور خوښیږي؟
   Nein, … …. …. نه، هغه هغه نه خوري

3. Kauft dein Bruder den Wagen? ستا ورور داموټر په بيه اخلي؟
Nein, … …. ….  نه، هغه هغه په بيه نه اخلي
4. Hörst du auch den Wind? د دې باد غږ ستا په غوږ هم درځي؟
Nein, … …. ….  نه هغه زما په غوږ نه راځي
5. Siehst du auch das Flugzeug? ته هم دا الوتکه وينې؟
Nein, … …. ….  نه، زه يې نه وينم
6. Herr Direktor, schreiben Sie den Brief? ښاغلی مدير ، دا ليك تاسو ليکئ؟
Nein, … …. ….  نه، زه يې نه ليکم
7. Lesen die Schüler die Bücher? زده کوونکي کتابونه لولي؟
Nein, … …. ….  نه، هغوی يې نه لولي
8. Backt der Bäcker Kekse? نانبای کلچې پخوي؟
Nein, … …. ….  نه، هغه يې نه پخوي
9. Beißt der Hund den Mann? دا سپی دا سړی داړي؟
Nein, … …. ….  نه، هغه يې نه داړي
10. Schneidet ihr die Zwiebeln? تاسو پياز غوڅوئ؟
Nein, … …. ….  نه، مونږ يې نه پخوو

**Lösungen:**

1. Nein, ich esse sie nicht. 2. Nein, sie mag ihn nicht. 3. Nein, er kauft ihn nicht. 4. Nein, ich höre ihn nicht. 5. Nein, ich sehe es nicht. 6. Nein, ich schreibe ihn nicht. 7. Nein, er kocht sie nicht. 8. Nein, sie lesen sie nicht. 9. Nein, er beißt ihn nicht. 10. Nein, wir schneiden sie nicht.

**Übungen:** Ordnen Sie die Satzglieder. Konjugieren Sie die Verben. Setzen Sie das Subjekt auf Position 1. Das Verb steht immer auf Position 2.
Beispiel: vergessen هېرول / er هغه / seine Dummheit خپل حماقت /nicht mehrنور نه
Lösung: Er vergisst seine Dummheit nicht mehr. هغه خپل حماقت نور نه هېروي

1. anbellen / der Hund / ihn / immer سپی هغه پسې تل غاپي
……………………………………………………………
2. Er/eine Pizza/heute Abend/machen هغه نن ماښام يو پيزا جوړوي
…………………………………………………………… .
3. fotografieren / der Mann / sie / nicht دا سړی د هغه عکس نه اخلي
……………………………………………………………
4. sein / Lukas / von Beruf / Metzger د لوکاس مسلك قصابي ده
………………………………………………………… ............
5. kaufen / ich / das Auto / nicht زه دا موټر په بيه نه اخلم
……………………………………………………………
6. sein / sie (Pl.) / verheiratet / nicht هغوی د يو بل سره واده نه دی کړی
……………………………………………………………
7. arbeiten / sie (Sing.) / Berlin / in هغه په برلين کې کار کوي
……………………………………………………………
8. verdienen / er / Geld / sehr viel هغه زښتې ډېرې پيسې ګټي
……………………………………………………………

9. studieren / wir / Mathematik
مونږ د رياضي تحصيل کوو

..................................................................

10. telefonieren / ich / mein Freund / mit / täglich
زه د خپل ملګري ته هره ورځ ټيلفون کوم

..................................................................

**Lösungen:**

1. Der Hund bellt ihn immer an. 2. Er macht heute Abend eine Pizza. 3. Der Mann fotografiert sie nicht. 4. Lukas ist Metzger vom Beruf. 5. Ich kaufe das Auto nicht. 6. Sie sind nicht verheiratet. 7. Sie arbeitet in Berlin. 8. Er verdient sehr viel Geld. 9. Wir studieren Mathematik. 10. Ich telefoniere täglich mit meinem Freund.

## Reflexivpronomen منعکسه ضميرونه يا نومځرى

منعکسه ضمير يا نومځري ته په جرمني ژبه کې (rückbezügliches Fürwort) وايي. د يو منعکسه ضمير نه مطلب د يوې جملې د فاعل پيداکول دي چې دا فاعل پخوا د جملې په سر کې ياد شوى دى. د دې مطلب د پوهېدلو لپاره سړى بايد داسې تصور وکړي چې د يو منعکسه ضمير په لاس کې يوه هينداره ده او په يوه جمله کې ځان لټوي. خو البته د دې ضمير ځان د دې جملې په سر کې ياد شوى دى او داسې ياد شوى دى چې يا يې نوم ياد شوى دى او يا يې شخص ياد شوى دى. هغه کس چې ياد شوى دى، کېدى شي چې (زه) او يا (ته) او يا (هغه) او يا کوم بل څوك واوسي. په ګرامر کې دا ياد شوى کس يا نوم د جملې فاعل دى، يا په بل عبارت د يوې جملې فاعل او منعکسه ضميرهمغه يو کس دى. په پښتو کې هم داسې نومځري شته خو د جرمني ژبې په پرتله ډېر لږ دي. د بېلګې په توګه که سړى په پښتو کې ووايي چې:

| | | |
|---|---|---|
| پرېمينځم | ځان | زه |

دلته (زه) او (ځان) همغه يو کس دى. دا خبره که د هينداري په عباراتو وکړو، نو وبه وايو چې د (زه) په لاس کې يوه هينداره ده او (ځان) پکې لټوي. په پورتنۍ جمله کې (زه) د جملې فاعل او (ځان) منعکسه ضمير يا (Reflexivpronomen) دى. که يو څوك داسې ووايي چې (زه تا پرېمينځم)، دا بيا منعکسه ضمير يا (Reflexivpronomen) نشو، ځکه چې د (زه) په لاس کې هينداره ده او ځان پکې نشي ليدلى، بلکې (تا) پکې ويني، نو ځکه دا بيا منعکسه ضمير يا (Reflexivpronomen) نشو.

په لاندې جدول کې به په پښتو کې د نورو کسانو منعکسه ضميرونه وګورو:

| ډېر کسان | | | يو کس | | |
|---|---|---|---|---|---|
| پرېمينځو | ځانونه | مونږ | پرېمينځم | ځان | زه |
| پرېمينځئ | ځانونه | تاسو | پرېمينځې | ځان | ته |
| پرېمينځي | ځانونه | هغوى | پرېمينځي | ځان | هغه |

په دې پښتو جملو کې (ځان) او (ځانونه) منعکسه نومځري يا د جرمني ژبې (Reflexivpronomen) دي. څنګه چې ليدل کيږي، په پښتو کې د ټولو کسانو لپاره دوه منعکسه ضميرونه موجود دي. د يو کس، يعني د (زه، ته، هغه) لپاره ويل کيږي چې (**ځان**) او د ډېرو کسانو، يعني د (مونږ، تاسو، هغوى) لپاره ويل کيږي (**ځانونه**). خو په جرمني ژبه کې د هر چا لپاره ځانګړى منعکسه نومځرى شته چې په لنډ ډول به په همدغه ځاى کې ياد شي.

| Personalpronomen Singular | Reflexivpronomen | | Personalpronomen Plural | Reflexivpronomen |
|---|---|---|---|---|
| ich | mich ځان | | wir | uns ځانونه |
| du | dich ځان | | ihr | euch ځانونه |
| er, sie, es | sich ځان | | sie | sich ځانونه |

تاسو به دې ته متوجه شوي یاست چې (mich, dich, uns, euch) د (Akkusativ) حالت ښایي، نو په دې ډول سرې باید په دې پوه شي چې منعکسه ضمیرونه په (Dativ + Akkusativ) او په ډېر لږ وخت کې په (Genitiv) کې استعمالیدلی شي، خو په (Nominativ) کې منعکسه ضمیر نشته.
دا چې د (Dativ + Akkusativ) منعکسه ضمیرونه کوم یو دي، دا به په لاندیني جدول کې وګورو.

| Die Deklination der Reflexivpronomen د منعکسه ضمیرونو ګردان | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | Singular یو کس | | | | | Plural ډېر کسان | | |
| | ich | du | er | sie | es | wir | ihr | sie |
| Nominativ | په (Nominativ) کې منعکسه نومځري یا ضمیر نشته | | | | | | | |
| Akkusativ | mich | dich | sich | sich | sich | uns | euch | sich |
| Dativ | mir | dir | sich | sich | sich | uns | euch | sich |
| Genitiv | meiner | deiner | seiner | ihrer | seiner | unser | euer | ihrer |

هغه منعکسه نومځري چې له (Akkusativ) سره راځي، د ګردان په توګه:

| | |
|---|---|
| Ich schäme mich. زه شرمیږم | Wir schämen uns. مونږ شرمیږو |
| Du schämst dich. ته شرمیږې | Ihr schämt euch. تاسو شرمیږئ |
| Er/sie/es schämt sich. هغه شرمیږي | Sie schämen sich. هغوی شرمیږي |

هغه منعکسه فعلونه چې له (Akkusativ) سره راځي، په جملو کې:

| | |
|---|---|
| sich auskennen یو چیرته بلد اوسیدل | Ich kenne mich hier nicht aus. زه دلته بلد نه یم |
| sich beeilen بیړه کول، عجله کول | Bitte beeile dich. Es ist schon spät. ته بیړه وکړه چې ناوخته ده |
| sich verlieben په یو چا مینیدل | Er hat sich in das Mädchen verliebt. هغه په دې نجلی مین شو |

هغه منعکسه نومځري چې له (Dativ) سره راځي، د ګردان په توګه:

| | |
|---|---|
| Ich wasche mir die Füße. زه خپلې پښې پرېمینځم | Wir waschen uns die Füße. مونږ خپلې پښې پرېمینځو |
| Du wäschst dir die Füße. ته خپلې پښې پرېمینځې | Ihr wascht euch die Füße. تاسو خپلې پښې پرېمینځئ |
| Er/ sie/ es wäscht sich die Füße. هغه هلك، هغه ښځه، هغه ماشوم خپلې پښې پرېمینځي | Sie waschen sich die Füße. هغوی خپلې پښې پرېمینځي |

هغه منعکسه فعلونه چې له (Dativ) سره راځي، په جملو کې:

| | |
|---|---|
| sich etwas aneignen یو څه زده کول | Ich eigne mir etwas an. زه یو څه زده کوم |

| | |
|---|---|
| Was bildest du dir eigentlich ein? ای خو د خجالتی خبره ده چې ته دا شان بد فکرونه کوې | sich etwas einbilden په خپل خیال کې یو خراب شان فکر کول |
| Ich denke mir eine Geschichte aus. زه پخپل فکر کې یوه کیسه جوړوم | sich etwas ausdenken پخپل فکر کې یو څه جوړول، د یو شي فکر کول |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | سرې څه یوه شي چې په کوم ځای کې له (Akkusativ) نه او په کوم ځای کې له (Dativ) نه کار واخیستل شي؟ |
| ځواب | هره جمله چې په هغې کې (Reflexivpronomen) تش د فاعل په توګه وي او مفعول ورسره نه وي نو (Akkusativ) ورسره راځي، لکه: |

| | |
|---|---|
| Ich schäme mich. | زه شرمیږم |

دلته دا ټوله جمله له یو فاعل، یعنې (ich) او له یو فعل، یعنې (schäme mich) نه جوړه شوېده.
په دې جمله کې کېدی شي چې یو مفعول هم وکارول شي، بې له دې چې دلته له (Dativ) نه کار واخیستل شي، خو د دې شرط دا دی دا فعل پخپله پخپل خاصیت کې یو (Akkusativ) ته اړتیا ولري، مثال:

| | |
|---|---|
| Ich schäme mich für meine Tochter. | زه پخپلي لور شرمیږم |

په پورتنی جمله کې (پخپلي لور = für meine Tochter) یو مفعول دی، خو له (Akkusativ) سره، ځکه چې پخپله همدا فعل (sich schämen für) تل له (Akkusativ) سره راځي.

اوس به یو فعل وګورو چې نومځري یې د (Dativ + Akkusativ) سره کارول کېدی شي:

| Akkusativ | Dativ |
|---|---|
| Ich wasche mich. زه ځان پرېمینځم | Ich wasche mir die Füße. زه خپلې پښې پرېمینځم |

که یوځل بیا د هنداري تصور وکړو، نو د (Akkusativ) په حالت کې د (زه) په لاس کې یوه هنداره ده او (ځان) پکې لټوي، نو په دې چې (زه) او (ځان) همغه یو کس دی، نو ځکه له (Akkusativ) سره راځي. د (Dativ) په حالت کې د (زه) په لاس کې یوه هنداره ده، خو (ځان) پکې نشي لیدلی. کوم شی چې هغه لیدلی شي، هغه پښې دي. دا پښې کېدی شي چې د کوم بل چا واوسي، نو اوس به یوه جمله وګورو چې د بل چا پښې پریمنځل کیږي چې د دې حالت (Dativ) دی:

| |
|---|
| Ich wasche dir und den anderen Kindern die Füße. زه ستا او د نورو ماشومانو پښې پرېمینځم |

| | |
|---|---|
| ازمایښتي پوښتنه | که یوه جمله داسې راشي چې : (Ich wasche dich) یعنې زه تا پرېمینځم. آیا دلته (dich) منعکسه نومځرې، یعنې (Reflexivpronomen) دی او که نه؟ |
| ځواب | نه، دلته (dich) منعکسه نومځرې نه بلکې (Akkusativ) دی، ځکه چې (ich) او (dich) مختلف کسان دي. (dich) هغه وخت منعکسه ضمیر کېدی شي چې دواړه کسان لکه د هینداري په شان همغه یو کس وښايي، یعنې جمله داسې وي چې: |

| | |
|---|---|
| Du wäschst dich. | ته ځان پرېمینځې |

که چېرته بیا لکه د هغې بلې جملې په شان د ځان په ځای (پښې) پرېمینځل شي، نو دلته بیا (Dativ) ورسره راځي، په لاندې ډول:

| | |
|---|---|
| Du wäschst dir die Füße. | ته خپلې پښې پرېمينځې |

هغه منعکسه نومځري چې له (Genitiv) سره راځي، د گردان په توگه:

| | |
|---|---|
| *Ich spotte meiner.* زه په ځان ملنډې وهم | *Wir spotten unser.* مونږ په ځان ملنډې وهو |
| *Du spottest deiner.* ته په ځان ملنډې وهې | *Ihr spottet euer.* تاسو په ځان ملنډې وهئ |
| *Er/es spottet seiner. Sie spottet ihrer.* هغه په ځان ملنډې وهي | *Sie spotten ihrer.* هغوی په ځان ملنډې وهي |

يوه مشهوره اصطلاح چې منعکسه نومځرى له (Genitiv) سره راځي، دا ده:

| |
|---|
| *Das spottet jeder Beschreibung.* دا خبره دومره د خجالتى او شرم وړ ده چې سرى يې بيانولى نشي |

هغه منعکسه نومځري چې يو (Präposition) ورسره وي، د گردان په توگه:

## Präpositionalobjekt = Reflexivpronomen mit Präposition

| | |
|---|---|
| Ich zweifle *an* ***mir***. زما په ځان باور نشته | Wir zweifeln *an* ***uns***. زمونږ په ځان باور نشته |
| Du zweifelst *an* ***dir***. ستا په ځان باور نشته | Ihr zweifelt *an* ***euch***. ستاسو په ځان باور نشته |
| Er/sie/es zweifelt *an* ***sich***. د هغه هلك، د هغې ښځې، د هغه ماشوم په ځان باور نشته | Sie zweifeln *an* ***sich***. د هغوی په ځان باور نشته |

**Übungen:**

1. Du solltest .......... nicht weigern, zu deinem Onkel zu fahren.
ته بايد له دې نه ډډه ونکړې چې د خپل تره (کاکا) کور ته ولاړ شې
2. Zieh .......... bitte einen anderen Pullover an, der ist schrecklich!
ته يو بل بنين واغونده، دا ډېر بدرنگه دى
3. Morgen stelle ich .......... in der neuen Firma vor. زه سبا نوې کمپنۍ ته ځان ور پېژنم
4. Ich kenne .......... in dieser Stadt nicht gut aus. په دې ښار کې زه ښه بلد نه يم
5. Ich will .......... gerade das Rauchen abgewöhnen.
په دې وخت کې زه غواړم چې سگرټ څکول پرېږدم
6. Bevor ich gehe, kämme ich .......... ordentlich die Haare.
مخکې له دې نه چې زه ولاړ شم، خپل ويښته ښه ږمنځوم
7. Hast du .......... im Internet über die Flugpreise informiert?
په اينټرنيټ کې دې ځان د الوتکو نرخونو په برخه کې خبر کړو؟
8. Ich muss .......... für das schöne Geschenk bedanken.
زه بايد د دې ښه سوغات لپاره مننه وکړم
9. Ich kann .......... nicht mehr so viel leisten wie früher.
زه اوس ځان ته دومره ډېر شيان نشم اخيستلی لکه د پخوا په شان
10. Du hast .......... beim Treppensteigen verletzt? زينو ته په ختلو کې ته ټپي شوې؟

11. Ich will .......... nicht schon wieder bei deinem Vater beschweren!
زه نه غواړم چې یو ځل بیا ستا پلار ته شکایت وکړم
12. Ich freue .......... über deinen Besuch. ستا راتګ ته زه خوښ یم
13. Ich weiß, du siehst .......... nicht gern im Spiegel an.
زه پوهېږم چې په هینداره کې ځان کتل ستا نه خوښیږي
14. Kümmerst du .......... um die Blumen, wenn wir im Urlaub sind?
کله چې مونږ په رخصتۍ تللي یو، ته د ګلانو غم خوري؟
15. Du solltest .......... von deinem Rivalen nicht immer alles gefallen lassen.
څه چې ستا سیال تا ته وایي، ته هر څه یې مه منه
16. Wolltest du .......... nicht um ein Stipendium bewerben?
تا نه غوښتل چې د یو بورس لپاره خپل نوم ورکړې؟
17. Ich will .......... den neuen Film im Kino ansehen.
زه غواړم چې دا نوی فلم په سینما کې وګورم
18. Ich wünsche .......... , dass du mich im Sommer in Berlin besuchst.
زما هیله ده چې ته په اوړي کې برلین ته زما لیدو ته راشې
19. Ich streite .......... wirklich nur ungern mit dir, aber du bist im Unrecht!
زما زړه په ریښتیا نکیږي چې له تا سره شخړه وکړم، خو ته ملامت یې
20. Ich rasiere .......... nicht mehr als einmal am Tag.
زه خپله ږیره د ورځې له یو ځل نه زیات نه خریم
21. Kannst du .......... nicht anständig benehmen? ته نشې کولی چې په ادب چلند وکړې؟
22. Ich entscheide .......... dafür, im Urlaub zu Hause zu bleiben.
زه دا فیصله کوم چې په رخصتۍ کې په کور کې پاتې شم
23. Ich habe .......... im April mit meiner Jugendliebe verlobt.
د اپریل په میاشت کې ما د خپلې ځوانۍ وختونو لالي سره کوژده وکړه
24. Bereitet .......... auf den Test nächste Woche gut vor!
تاسو د راتلونکې اونۍ ازموینې ته ځانونه ښه چمتو کړئ
25. Beruhigt .......... , es ist doch nichts passiert! تاسو ارام شئ، هیڅ شی خو ندي شوي
26. Ich habe .......... mit meinem Nachbarn angefreundet.
زه د خپل ګاونډي سره ملګری شوم
27. Ich wasche .......... morgens am ganzen Körper.
زه د سهار له مخې خپل ټول ځان پرېمینځم
28. Kannst du .......... etwas Geld borgen? ته کوی شې چې ما ته یو څه پیسې پور راکړې؟
29. Hast du .......... nach den Fahrplänen erkundigt?
تا د تګ د پلان په برخه معلومات واخیست؟
30. Du solltest .......... schämen, weil du auf meiner Party so betrunken warst.
ته باید وشرمیږې، ځکه چې ته زما په محفل کې ډېر نشه وې

**Lösungen:**
1. dich 2. dir 3. mich 4. mich 5. mir 6. mir 7. dich 8. mich 9. mir. 10. dich
11. mich 12. mich 13. dich 14. dich 15. dir 16. dich 17. mir 18. mir 19. mich
20. mich 21. dich 22. mich 23. mich 24. euch 25. euch 26. mich 27. mich
28. mir 29. dich 30. dich

## Possessivpronomen د خاوند ښودلو نومځری

د خاوند ښودلو نومځري ته په جرمني ژبه کې (besitzanzeigendes Fürwort) وايي. د خاوند ښودلو نومځری هغه ضمير دی چې د يو شي خاوند څرګندوي. د دي نومځري په مرسته غږېدونکی يا متکلم دا څرګندوي چې د يو شي خاوند څوك دی. هغه څوك چې يو شی ورپوری اړه لري، کېدی شي چې هغه يو نارينه، يوه ښځه او يا يو ماشوم واوسي. د جرمني ژبې د خاوند ښودلو نومځري دا دي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| mein زما | dein ستا | sein د هغه | ihr د هغې | unser زموږ | euer ستاسو | ihr د هغوی |

**1. Person Singular = ich** لومړی کس يا غږېدونکی، په مفرد حالت کې

| Singular مفرد | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
| Nominativ | mein Vater<br>زما پلار | meine Mutter<br>زما مور | mein Kind<br>زما ماشوم |
| Genitiv | meines Vaters<br>زما د پلار | meiner Mutter<br>زما د مور | meines Kindes<br>زما د ماشوم |
| Dativ | meinem Vater<br>زما پلار ته | meiner Mutter<br>زما مور ته | meinem Kind<br>زما ماشوم ته |
| Akkusativ | meinen Vater<br>زما پلار | meine Mutter<br>زما مور | mein Kind<br>زما ماشوم |

Beispielsätze:

1. Mein Vater ist zur Arbeit gegangen. — زما پلار کار ته تللی دی
2. Meine Mutter steht in der Küche. — زما مور په پخلنځي کې ولاړه ده
3. Mein Kind schläft in seinem Bett. — زما ماشوم پخپل کټ کې ويده دی
4. Das ist das Auto meines Vaters. — دا زما د پلار موټر دی
5. Hast du die Schrift meiner Mutter gesehen? — تا زما د مور ليك ليدلی دی؟
6. Was hast du meinem Vater gesagt? — تا زما پلار ته څه وويل؟
7. Das Buch gehört meiner Mutter. — دا کتاب زما د مور دی
8. Ich schenke meinem Kind ein Spielzeug. — زه خپل ماشوم ته د لوبو سامان ورکوم
9. Hast du meinen Vater gesehen? — تا زما پلار ليدلی دی؟
10. Ich hole meine Mutter vom Bahnhof ab. — زه خپله مور د اورګاډي له سټېشنه راولم

| **Plural** für alle Genera gleich جمع د ټولو جنسيتونو لپاره يو شان دی | | |
|---|---|---|
| Nominativ | meine Eltern | زما مور او پلار |
| Genitiv | meiner Eltern | زما د مور او پلار |
| Dativ | meinen Eltern | زما مور او پلار ته |
| Akkusativ | meine Eltern | زما مور او پلار |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| 1. Meine Eltern fahren morgen nach Berlin. | زما مور او پلار سبا برلین ته ځي |
| 2. Ich bin der Erbe meiner Eltern. | زه د خپل مور او پلار وارث یم |
| 3. Er gibt meinen Eltern keine Antwort. | هغه زما مور او پلار ته ځواب نه ورکوي |
| 4. Hast du meine Eltern schon gesehen? | تا زما مور او پلار لیدلي دي؟ |

**2. Person Singular = du** دوهم کس یا هغه څوک چي ورته خبره کیري ، په مفرد حالت کي

| **Singular مفرد** | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
| Nominativ | dein Vater<br>ستا پلار | deine Mutter<br>ستا مور | dein Kind<br>ستا ماشوم |
| Genitiv | deines Vaters<br>ستا د پلار | deiner Mutter<br>ستا د مور | deines Kindes<br>ستا د ماشوم |
| Dativ | deinem Vater<br>ستا پلار ته | deiner Mutter<br>ستا مور ته | deinem Kind<br>ستا ماشوم ته |
| Akkusativ | deinen Vater<br>ستا پلار | deine Mutter<br>ستا مور | dein Kind<br>ستا ماشوم |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Wo ist dein Vater? | ستا پلار چیرته دی؟ |
| Ist deine Mutter Schneiderin? | ستا مور گندونکي (خیاطه) ده؟ |
| Wie alt ist dein Kind? | ستا ماشوم د څومره عمر دی؟ |
| Ist das die Jacke deines Vaters? | دا کرتی ستا د پلار ده؟ |
| Fährst du mit dem Auto deiner Mutter? | ته د خپلي مور په موټر کي ځې؟ |
| Kennst du den Freund deines Kindes? | ته د خپل ماشوم ملگری پیژني؟ |
| Hast du es deinem Vater erzählt? | دا خبره تا خپل پلار ته کړیده؟ |
| Gehört das Auto deiner Mutter? | دا موټر ستا د مور دی؟ |
| Kaufst du deinem Kind ein Spielzeug? | ته خپل ماشوم ته د لوبي یو شی په بیه اخلې؟ |
| Ich habe deinen Vater noch nicht gesehen. | ستا پلار تر اوسه پوري ما ندی لیدلی |
| Deine Mutter schätze ich sehr. | ستا مور ته زه په ډیر لوړ نظر گورم |
| Du sollst dein Kind nicht allein lassen. | ته باید خپل ماشوم یوازي پري نږدي |

| **Plural** für alle Genera gleich جمع د ټولو جنسیتونو لپاره یو شان دی | |
|---|---|
| Nominativ | deine Eltern ستا مور او پلار |
| Genitiv | deiner Eltern ستا د مور او پلار |
| Dativ | deinen Eltern ستا مور او پلار ته |
| Akkusativ | deine Eltern ستا مور او پلار |

Beispielsätze:

1. Wo leben deine Eltern? ستا مور او پلار چېرته اوسيږي؟
2. Bist du der alleinige Erbe deiner Eltern? ته د خپل مور او پلار يوازينی وارث يې؟
3. Kannst du deinen Eltern schöne Grüße von mir bestellen?
ته کوی شي چې خپل مور او پلار ته زما له خوا ډېرډېر سلامونه ووايې؟
4. Grüß deine Eltern von mir. ته خپل مور او پلار ته زما له خوا سلام ووايه

**3. Person Singular = er** **دریم** کس، هغه څوك چې ورپورې خبرې کيږي (نارینه)

| **Singular مفرد** | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
| Nominativ | sein Vater<br>د هغه پلار | seine Mutter<br>د هغه مور | sein Kind<br>د هغه ماشوم |
| Genitiv | seines Vaters<br>د هغه د پلار | seiner Mutter<br>د هغه د مور | seines Kindes<br>د هغه د ماشوم |
| Dativ | seinem Vater<br>د هغه پلار ته | seiner Mutter<br>د هغه د مور | seinem Kind<br>د هغه ماشوم ته |
| Akkusativ | seinen Vater<br>د هغه پلار | seine Mutter<br>د هغه مور | sein Kind<br>د هغه ماشوم |

Beispielsätze:

1. Sein Vater ist schwer krank. د هغه پلار ډېر سخت ناروغ دی
2. Seine Mutter arbeitet als Sekretärin. د هغه مور د سکرتري په حيث کار کوي
3. Sein Kind geht zur Schule. د هغه ماشوم ښوونځي ته ځي
4. Er trägt den Anzug seines Vaters. هغه د خپل پلار دريشي اغوستي ده
5. Seine Mutter ist Ärztin. Er mag den Beruf seiner Mutter.
د هغه مور ډاکټره ده. د هغه د خپلي مور مسلك خوښيږي
6. Er vesteht die Sprache seines Kindes nicht. هغه د خپل ماشوم په ژبه نيوهيږي
7. Er überlässt alles seinem Vater. هغه هر څه خپل پلار ته پرېږدي
8. Seiner Mutter ist er sehr dankbar. هغه له خپلي مور نه ډېر منونکی دی
9. Er tut seinem Kind Unrecht. هغه د خپل ماشوم په حق کې بې عدالتي کوي
10. Seinen Vater kenne ich sehr gut. د هغه پلار زه ډېر ښه پيژنم
11. Er mag seine Mutter über alles. هغه ته خپله مور له هر څه نه ګرانه ده
12. Der Vater küsste sein Kind mehrmals. پلار خپل ماشوم ډېرځلي ښکل کړو

| **Plural جمع** | |
|---|---|
| für „er“ und „es“ gleich د هغه سړی او هغه ماشوم لپاره یو شان | |
| Nominativ | seine Eltern د هغه مور او پلار |
| Genitiv | seiner Eltern د هغه د مور او پلار |

| | | |
|---|---|---|
| Dativ | seinen Eltern | د هغه مور او پلار ته |
| Akkusativ | seine Eltern | د هغه مور او پلار |

Beispielsätze:

1. Seine Eltern leben in Italien. د هغه مور او پلار په ایټالیه کې اوسیږي
2. Er genießt den Schutz seiner Eltern. د هغه مور او پلار د هغه ساتنه کوي
3. Er vertraut seinen Eltern nicht. هغه پخپل مور او پلار اعتماد نلري
4. Er fährt seine Eltern zum Bahnhof. هغه خپل مور او پلار د اورګاډي سټېشن ته بيايي

**3. Person Singular = sie:** دريم کس، هغه څوک چې ورپورې خبرې کيږي (ښځينه)

| Singular مفرد | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
| Nominativ | ihr Vater<br>د هغې پلار | ihre Mutter<br>د هغې مور | ihr Kind<br>د هغې ماشوم |
| Genitiv | ihres Vaters<br>د هغې د پلار | ihrer Mutter<br>د هغې د مور | ihres Kindes<br>د هغې د ماشوم |
| Dativ | ihrem Vater<br>د هغې پلار ته | ihrer Mutter<br>د هغې مور ته | ihrem Kind<br>د هغې ماشوم ته |
| Akkusativ | ihren Vater<br>د هغې پلار | ihre Mutter<br>د هغې مور | ihr Kind<br>د هغې ماشوم |

Beispielsätze:

1. Ihr Vater ist sehr streng zu ihr. د هغې پلار د هغې په برخه کې ډېر سختګيره دی
2. Ihre Mutter ist sehr nett. د هغې مور ډېره مهربانه ده
3. Ihr Kind ist 2 Jahre alt. د هغې ماشوم دوه کلن دی
4. Der Bruder ihres Vaters ist ihr Onkel. د هغې د پلار ورور د هغې تره دی
5. Die Schwester ihrer Mutter ist ihre Tante. د هغې د مور خور د هغې ترور ده
6. Die Lippe ihres Kindes ist gespalten. د هغې د ماشوم شونډه چاودلې ده
7. Sie ist ihrem Vater gegenüber frech. د خپل پلار په وړاندې هغه بې احترامي کوي
8. Sie ähnelt ihrer Mutter sehr. هغه خپلې مور ته ډېره ورته ده
9. Sie ist ihrem Kind gegenüber gleichgültig. هغه د خپل ماشوم په وړاندې بې پروا ده
10. Sie kennt ihren Vater nicht. هغه خپل پلار نه پيژني
11. Sie wäscht ihre alte Mutter. هغه خپله زړه مور پرېمينځي
12. Sie stillt ihr Kind. هغه خپل ماشوم ته شوده ورکوي

| **Plural** für alle Genera gleich جمع د ټولو جنسیتونو لپاره یو شان دی | |
|---|---|
| Nominativ | ihre Eltern د هغې مور او پلار |
| Genitiv | ihrer Eltern د هغې د مور او پلار |
| Dativ | ihren Eltern د هغې مور او پلار ته |
| Akkusativ | ihre Eltern د هغې مور او پلار |

Beispielsätze:

1. Ihre Eltern sind vor 2 Jahren gestorben. د هغې مور او پلار دوه کاله مخکې مړه شویدي
2. Sie wohnt im Haus ihrer Eltern. هغه د خپل مور او پلار په کور کې اوسيږي
3. Sie hilft ihren Eltern immer. هغه خپل مور او پلار سره تل مرسته کوي
4. Sie kümmern sich um ihre Eltern. هغه د خپل مور او پلار غمخواري کوي

**1. Person Plural = wir** لومړی کس، غږېدونکي یا متکلم په ډله ایز ډول (جمع)

| **Singular مفرد** | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
| Nominativ | unser Vater<br>زمونږ پلار | unsere Mutter<br>زمونږ مور | unser Kind<br>زمونږ ماشوم |
| Genitiv | unseres Vaters<br>زمونږ د پلار | unserer Mutter<br>زمونږ د مور | unseres Kindes<br>زمونږ د ماشوم |
| Dativ | unserem Vater<br>زمونږ پلار ته | unserer Mutter<br>زمونږ مور ته | unserem Kind<br>زمونږ ماشوم ته |
| Akkusativ | unseren Vater<br>زمونږ پلار | unsere Mutter<br>زمونږ مور | unser Kind<br>زمونږ ماشوم |

Beispielsätze:

1. Unser Vater arbeitet täglich 8 Stunden. زمونږ پلار د ورځې اته ساعته کار کوي
2. Unsere Mutter bringt uns zur Schule. زمونږ مور مونږ ښوونځي ته بیايي
3. Unser Kind stottert. زمونږ د ماشوم ژبه په خبرو کې نښلي
4. Das Gedächnis unseres Vaters lässt nach. زمونږ د پلار حافظه مخ په کمزوريدو ده
5. Das Leben unserer Mutter war sehr hart. زمونږ د مور ژوند ډېر سخت و
6. Die Schrift unseres Kindes muss besser werden. زمونږ د ماشوم ليك بايد ښه شي
7. Niemand hat unserem Vater gedankt. هیڅ چا زمونږ له پلار نه مننه ونکړه
8. Sie glaubt unserer Mutter nicht. هغه زمونږ د مور په خبرو باور نکوي
9. Er spielt nicht mit unserem Kind. هغه زمونږ له ماشوم سره نه لوبيږي
10. Der Hund bellt unseren Vater an. سپی زمونږ پلار ته غاپي
11. Was hast du gegen unsere Mutter? ته زمونږ له مور سره څه مخالفت لرې؟
12. Das Gewitter erschreckte unser Kind. تالندې او برېښنا زمونږ ماشوم وډارو

| Plural für alle Genera gleich جمع د ټولو جنسيتونو لپاره يو شان دی | |
|---|---|
| Nominativ | unsere Eltern زمونږ مور او پلار |
| Genitiv | unserer Eltern زمونږ د مور او پلار |
| Dativ | unseren Eltern زمونږ مور او پلار ته |
| Akkusativ | unsere Eltern زمونږ مور او پلار |

Beispielsätze:

1. Unsere Eltern haben uns gut erzogen. زمونږ مور او پلار مونږ ته ښه روزنه راکړې ده
2. Das ist der Verdienst unserer Eltern. دا زمونږ د مور او پلار برکت دی
3. Wir reisen gemeinsam mit unseren Eltern. مونږ د خپل مور او پلار سره په ګډه سفر کوو
4. Sie laden unsere Eltern zum Essen. هغوی زمونږ مور او پلار ډوډۍ ته مېلمه کوي

**2. Person Plural = ihr** (جمع) دوهم کس، غوږ اېښودونکی یا مخاطب، په ډله ایز دول

| Singular مفرد | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
| Nominativ | euer Vater<br>ستاسو پلار | euere Mutter<br>ستاسو مور | euer Kind<br>ستاسو ماشوم |
| Genitiv | eueres Vaters<br>ستاسو د پلار | euerer Mutter<br>ستاسو د مور | eueres Kindes<br>ستاسو د ماشوم |
| Dativ | euerem Vater<br>ستاسو پلار ته | euerer Mutter<br>ستاسو مور ته | euerem Kind<br>ستاسو ماشوم ته |
| Akkusativ | eueren Vater<br>ستاسو پلار | euere Mutter<br>ستاسو مور | euer Kind<br>ستاسو ماشوم |

Beispielsätze:

1. Ist euer Vater heute krank? ستاسو پلار نن ناروغه دی؟
2. Wann kommt euere Mutter nach Hause? ستاسو مور کله کور ته راځي؟
3. Kann euer Kind laufen? ستاسو ماشوم په پښو ګرځېدلی شي؟
4. Ihr seid Kinder eueres Vaters. تاسو د خپل پلار اولاد یاست
5. Versteht ihr die Sprache euerer Mutter? تاسو د خپلې مور په ژبه پوهېږئ؟
6. Wie ist der Name eueres Kindes? ستاسو د ماشوم نوم څه دی؟
7. Das will ich mit euerem Vater besprechen.
په دې برخه کې زه غواړم چې ستاسو د پلار سره خبرې وکړم
8. Gefällt das neue Auto euerer Mutter? دا نوی موټر ستاسو د مور خوښیږي؟
9. Was schenkt ihr euerem Kind zum Geburtstag?
تاسو خپل ماشوم ته د هغه د کلیزې لپاره څه ورکوی
10. Kann ich eueren Vater sprechen? زه کوی شم چې ستاسو د پلار سره خبرې وکړم؟
11. Heute habe ich euere Mutter begrüßt. نن ما ستاسو مور ته ستړي مشي وويله
12. Sucht ihr ein Fahrrad für euer Kind? تاسو د خپل ماشوم لپاره یو بایسکل لټوئ؟

| Plural für alle Genera gleich جمع د ټولو جنسيتونو لپاره يو شان دى | |
|---|---|
| Nominativ | euere Eltern ستاسو مور او پلار |
| Genitiv | euerer Eltern ستاسو د مور او پلار |
| Dativ | eueren Eltern ستاسو مور او پلار ته |
| Akkusativ | euere Eltern ستاسو مور او پلار |

Beispielsätze:

1. Was sagen euere Eltern dazu? ستاسو مور او پلار په دې برخه کې څه وايي؟
2. Wollt ihr das Haus euerer Eltern verkaufen?
تاسو غواړئ چې د خپل مور او پلار کور خرڅ کړئ؟
3. Ich werde mich bei euren Eltern beschweren. زه به ستاسو مور او پلار ته شکايت وکړم
4. Respektiert ihr euere Eltern? تاسو خپل مور او پلار ته احترام کوئ؟

**3. Person Plural = sie** (جمع) دريم کس، هغه څوک چې ورپورې خبرې کيږي

| Singular جمع | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum ښځينه |
| Nominativ | ihr Vater<br>د هغوی پلار | ihre Mutter<br>د هغوی مور | ihr Kind<br>د هغوی ماشوم |
| Genitiv | ihres Vaters<br>د هغوی د پلار | ihrer Mutter<br>د هغوی د مور | ihres Kindes<br>د هغوی د ماشوم |
| Dativ | ihrem Vater<br>د هغوی پلار ته | ihrer Mutter<br>د هغوی مور ته | ihrem Kind<br>د هغوی ماشوم ته |
| Akkusativ | ihren Vater<br>د هغوی پلار | ihre Mutter<br>د هغوی مور | ihr Kind<br>د هغوی ماشوم |

Beispielsätze:

Ihr Vater starb im Alter von 80 Jahren. د هغوی پلار په اتيا کلنی کې ومړ
Ihre Mutter fuhr mit dem Zug zur Arbeit. د هغوی مور په اورګاډي کې کار ته ولاړه
Ihr Kind besucht den Kindergarten. د هغوی ماشوم وړکتون ته ځي
Sie verkauften das Haus ihres Vaters. هغوی د خپل پلار کور خرڅ کړو
Die Kinder sitzen auf dem Schoß ihrer Mutter. ماشومان د خپلې مور په غيږ کې ناست دي
Die Eltern machen sich Sorgen um die Gesundheit ihres Kindes.
مور او پلار د خپل ماشوم د روغتيا په برخه کې په انديښنه کې دي
Die Söhne sind ihrem Vater sehr ähnlich. زامن خپل پلار ته ډېر ورته دي
Morgen findet die Beerdigung ihrer Mutter statt. سبا د هغوی مور خاورو ته سپارل کيږي
Strenge Eltern schaden ihrem Kind. سختګيره مور او پلار خپل ماشوم ته تاوان رسوي
Die Söhne retten ihren Vater vor den Fluten. زامنو خپل پلار له سيلاب نه وژغورو
Sie trauern um ihre verstorbene Mutter. هغوی د خپلې مرحومې مور له امله ماتم کوي

Die Eltern tun alles für ihr Kind. مور او پلار خپل ماشوم ته هر څه کوي

| Plural für alle Genera gleich جمع د ټولو جنسيتونو لپاره يو شان دی | | |
|---|---|---|
| Nominativ | ihre Eltern | د هغوی مور او پلار |
| Genitiv | ihrer Eltern | د هغوی د مور او پلار |
| Dativ | ihren Eltern | د هغوی مور او پلار ته |
| Akkusativ | ihre Eltern | د هغوی مور او پلار |

Beispielsätze:

1. Die Kinder waren bereits im Bett, als ihre Eltern nach Hause kamen.
کله چې مور او پلار يې کور ته راغلل، ماشومان وخته په کټ کې پراته وو
2. Die Kinder leiden unter der Trennung ihrer Eltern.
ماشومان د خپل مور او پلار د بېلېدو له امله ډېر ځورېږي
3. Die Kinder erzählen alles ihren Eltern. ماشومان هرڅه خپل مور او پلار ته وايي
4. Die Kinder lieben ihre Eltern über alles.
په ماشومانو باندې خپل مور او پلار له هرڅه نه ګران دي

**Übungen**: Ergänzen Sie bitte die Possessivpronomen!

1. Sie erzählen oft von …….. Reise nach Spanien.
هغوی ډېر وخت هسپانيې ته د خپل سفر کيسې کوي
2. Die Schwester hilft …….. Bruder und räumt sein Zimmer auf.
خور د خپل ورور سره مرسته کوي او کوټه يې راټولوي
3. Ich bin so wütend auf …….. Freund. زه پخپل ملګري په قهر يم
4. Kinder! Wo sind …….. Eltern? ماشومانو، ستاسو مور او پلار چېرته دي؟
5. Nehmen Sie bitte …….. Jacken mit! تاسو خپلې کرتۍ له ځانه سره راواخلئ
6. Zum Geburtstag schenken wir …….. Mutter Blumen.
مونږ خپلې مور ته د هغې د کليزې لپاره ګلان ورډالۍ کوو
7. Paulina, ich finde …….. Frisur wirklich sehr gut
پاولينې، ما ته ستا د وېښتو ډول ډېر ښايسته ښکاري
8. Mein Opa schläft immer in …….. Sessel ein. زما نيکه تل پخپل کوچ کې ويده کيږي
9. Der Schüler sucht …….. Buch. زده کوونکی خپل کتاب لټوي
10. Ich telefoniere mit …….. Vater. زه خپل پلار سره ټيلفون کوم
11. …….. Frau will einen Roman schreiben. د هغه ښځه غواړي چې يو ناول وليکي
12. Du hast …….. Großvater sehr gern. ستا خپل نيکه ډېر خوښيږي
13. Wir treffen …….. Freund in der Stadt. مونږ د خپل ملګري سره په ښار کې ګورو
14. Schreibt …….. Opa eine Postkarte! تاسو خپل نيکه ته يو پوستکارټ وليکئ
15. Ihr begrüsst …….. Bekannten. تاسو خپلو اشنايانو ته ستړي مشي وايئ
16. Ich habe …….. Sommerferien am Meer mit …….. Familie verbracht.
ما خپله د اوړي رخصتي د بحر په غاړه د خپلې کورنۍ سره تېره کړه
17. Wir sind mit dem Wagen …….. Eltern gefahren.
مونږ د خپل مور او پلار په موټر کې ولاړو

18. Wir haben bei …….. Verwandten dort gewohnt.
مونږ هلته د خپلو خپلوانو په کور کې واوسېدلو

19. …….. Haus war sehr groß. د هغوی کور ډېر لوی و

20. Unser Nachbar hat mit …….. Vater das Auto repariert und ……..      Kinder haben in dieser Zeit mit …….. Bruder gespielt. زمونږ ګاونډي زما د پلار سره موټر جوړ کړو او د هغه ماشومانو زما له ورور سره لوبه وکړه

**Lösungen**:

1. Sie erzählen oft von ihrer Reise nach Spanien.
2. Die Schwester hilft ihrem Bruder und räumt sein Zimmer auf.
3. Ich bin so wütend auf meinen Freund.
4. Kinder! Wo sind eure Eltern?
5. Nehmen Sie bitte Ihre Jacken mit!
6. Zum Geburtstag schenken wir unserer Mutter Blumen.
7. Monika, ich finde deine Frisur wirklich sehr gut.
8. Mein Opa schläft immer in seinem Sessel ein.
9. Der Lehrer sucht sein Tagebuch.
10. Ich telefoniere mit meinem Vater.
11. Seine Frau will einen Roman schreiben.
12. Du hast deinen Großvater sehr gern.
13. Wir treffen unseren Freund in der Stadt.
14. Schreibt eurem Opa eine Postkarte!
15. Ihr begrüsst eure Bekannten.
16. Ich habe meine Sommerferien am Meer mit meiner Familie verbracht.
17. Wir sind mit dem Wagen meiner Eltern gefahren.
18. Wir haben dort bei unseren Verwandten gewohnt.
19. Ihr Haus war sehr groß.
20. Unser Nachbar hat mit meinem Vater das Auto repariert und seine Kinder haben in dieser Zeit mit meinem Bruder gespielt.

## Relativpronomen د تړاو ورکولو نومځری، ربطي ضمير

د تړاو ورکولو نومځري ته په جرمني ژبه کې (bezügliches Fürwort) وايي. د تړاو ضمير په فرعي جمله کې د هغه اسم په ځای راځي چې دمخه په اصلي جمله کې ياد شوی دی. که دا خبره نوره هم اسانه کړو، نو داسې به ووايو چې د يوې اصلي جملې په سر کې د يو چا نوم ياديږي. د دې لپاره چې په فرعي جمله کې دا نوم څوڅو ځلي بيا ياد نشي، نو د دې نوم په ځای يو نومځری ياديږي. بل دا چې دغه نوم چې په اصلي جمله کې تش په لنډ ډول ياد شوی دی، په فرعي جمله کې نور هم تشريح کيږي او حتی ځينې خصوصيات يې بيانيږي. د مثال په توګه که سړی په پښتو کې ووايي چې:

| Der Bauer ist nach Hause gegangen. | بزګر کور ته ولاړ |
| --- | --- |

نو په پورتنۍ جمله کې سړی نپوهیږي چې کوم بزگر کور ته ولاړ. که چیرته دا بزگر تشریح شي، نو په دې ډول مطلب به لږ څه واضح شي او دا جمله بیا داسي لیکل کیږي:

| |
|---|
| Der Bauer, der krank ist, ist nach Hause gegangen.<br>هغه بزگر چې ناروغ دی، کور ته ولاړ |

په پورتنۍ جمله کې (der krank ist) فرعي جمله ده، په دې ځای کې (der) د تړاو نومځری یا (Relativpronomen) دی. دا نومځری، یعني (der) په یوازې ځان باندې څه مطلب نشي بیانولی، نو ځکه باید ټوله جمله وکتل شي چې په دې نومځري باندې کوم نوم تشریح کیږي. اصلي او فرعي جملې د یوې کامې (,) په مرسته له یو بل نه بېلیږي . مثال:

| | |
|---|---|
| der Mann, der dort sitzt | هغه سړی چې هلته ناست دی |
| Leute, denen ich nicht vertraue | هغه کسان چې زه پرې اعتماد نشم کولی |

د تړاو نومځري زیاتره وخت د شخصي نومځرو سره معادل دي چې په پورتنیو مبحثونو کې مو زده کړل، خو لږ څه توپیر پکې شته او هغه دا دی:

| |
|---|
| په (Dativ Plural) او په (Genitiv) کې ورسره (- en) یوځای کیږي |

**د تړاو نومځري په مختلفو حالاتو کې:**

| Einzahl (Maskulinum, Femininum, Neutrum ) مفرد | | | | Mehrzahl جمع |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulinum | Femininum | Neutrum | |
| Nominativ | der | die | das | die |
| Genitiv | dessen | deren | dessen | deren |
| Dativ | dem | der | dem | denen |
| Akkusativ | den | die | das | die |

مثالونه:

| |
|---|
| Der Mann, dem ich noch Geld schulde, hat mir einen Brief geschickt.<br>هغه سړی چې زه د هغه د پیسو پوروړی یم، ما ته یې یو لیك واستو |

| | |
|---|---|
| تشریحات | په پورتنۍ جمله کې (سړی = der Mann) د اصلي جملې یو نوم دی چې اهمیت یې په فرعي جمله کې تشریح کیږي. د دې فرعي جملې د تړاو نومځری یا (Relativpronomen) دا دی : (dem). نو دا کلمه د هغه سړي تر مینځ چې د جملې په سر کې یاد شو، یعني (Mann) او د هغه مطلب تر مینځ چې په فرعي جمله کې یادیږي، یعني (dem ich noch Geld schulde) تړاو ورکوي. بشپړه فرعي جمله دا ده : |

| | |
|---|---|
| dem ich noch Geld schulde | چې زه یې د پیسو پوروړی یم |

یو بل مثال:

| |
|---|
| Die Wespe, die mich gestochen hat, ist jetzt tot.<br>هغه مچی چي زه يې چيچلی يم، اوس مړه ده |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | په پورتنی جمله کې کوم اسم تشريح کيږي؟ |
| ځواب | die Wespe = مچی |
| پوښتنه | د تړاو نومځری يا (Relativpronomen) کوم دی؟ |
| ځواب | هغه (die) دی، چې له کامې (,) نه وروسته راغلی دی |
| پوښتنه | بشپړه فرعي جمله (Relativsatz) کومه ده؟ |
| ځواب | die mich gestochen hat = چې زه يې چيچلی يم |

## Die Deklination der Relativpronomen: der – die – das Singular
## د ربطي ضمير گردان (مفرد)

| | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ | der Mann, der…<br>هغه سړی چې … | die Frau, die…<br>هغه ښځه چې … | das Kind, das…<br>هغه ماشوم چې … |
| Genitiv | der Mann, dessen…<br>هغه سړی چې د هغه … | die Frau, deren…<br>هغه ښځه چې د هغې … | das Kind, dessen…<br>هغه ماشوم چې د هغه … |
| Dativ | der Mann, dem…<br>هغه سړی چې هغه ته | die Frau, der…<br>هغه ښځه چې هغې ته | das Kind, dem..<br>هغه ماشوم چې هغه ته … |
| Akkusativ | der Mann, den…<br>هغه سړی چې … | die Frau, die…<br>هغه ښځه چې … | das Kind, das…<br>هغه ماشوم چې … |

Beispielsätze:

1. Der Mann, der dort steht, ist arbeitslos. هغه سړی چې هلته ولاړ دی، وزګار دی
2. Die Frau, die einen dicken Bauch hat, ist schwanger.
هغه ښځه چې ګېډه يې غټه ده، حامله داره ده
3. Das Kind, das andauernd schreit, hat Hunger. هغه ماشوم چې بې له دمې ژاړي، وږی دی
4. Der Mann, dessen Auto kaputt ist, geht zu Fuß nach Hause.
هغه سړی چې موټر يې خراب شوی دی، په پښو کور ته ځي
5. Die Frau, deren Kind krank ist, ist sehr traurig.
هغه ښځه چې ماشوم يې ناروغه دی، ډېره غمجنه ده
6. Das Kind, dessen Bauch wehtut, hat Würmer.
هغه ماشوم چې نس يې خوږيږي، چينجي لري
7. Der Mann, dem ich geholfen habe, grüßt mich nicht.
هغه سړی چې ما ورسره مرسته کړېده، له ما سره ستړي مشي نه کوي
9. Die Frau, der du ein Buch geben willst, ist selbst Buchautorin.
هغه ښځه چې ته ورته يو کتاب ورکول غواړې، هغه پخپله د کتاب ليکواله ده
10. Das Kind, dem seine Mutter ein Glas Wasser gab, hat keinen Durst.
هغه ماشوم چې مور يې ورته يو ګيلاس اوبه ورکړې، تږی ندی

12. Der Mann, den du gestern gesehen hast, ist heute verhaftet worden.
هغه سړی چې پرون تا ولید، نن بندي شویدی
13. Die Frau, die du gestern angefahren hast, hat keine Knochenbrüche.
هغه ښځه چې پرون تا په موټر ووهله، هډوکي يې مات ندي
14. Das Kind, das gestern viel Eis gegessen hat, hat die Zuckerkrankheit.
هغه ماشوم چې پرون يې ډېر ایسکریم وخوړ، د شکرې ناروغي لري

## Die Deklination der Relativpronomen: der – die – das Plural
## د ربطي ضمير گردان (جمع)

| | Maskulinum نارينه | Femininum ښځينه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ | die Männer, die… <br> هغه سړي چې ... | die Frauen, die… <br> هغه ښځې چې ... | die Kinder, die… <br> هغه ماشومان چې ... |
| Genitiv | die Männer, deren… <br> هغه سړي چې د هغوی ... | die Frauen, deren… <br> هغه ښځې چې د هغوی | die Kinder, deren… <br> هغه ماشومان چې د هغوی ... |
| Dativ | die Männer, denen… <br> هغه سړي چې هغوی ته ... | die Frauen, denen… <br> هغې ښځې چې هغوی ته | die Kinder, denen.. <br> هغه ماشومان چې هغوی ته ... |
| Akkusativ | die Männer, die… <br> هغه سړي چې ... | die Frauen, die… <br> هغه ښځې چې ... | die Kinder, die… <br> هغه ماشومان چې ... |

Beispielsätze:

1. Das sind die Männer, die gestern arm waren, aber heute reich sind.
دا هغه سړي دي چې پرون بې وزله وو، خو نن شتمن دي
2. Das sind die Frauen, die einst kinderlos waren, aber heute kinderreich sind.
دا هغه ښځې دي چې پخوا بې ماشومه وې، خو نن ډېر ماشومان لري
3. Das sind die Kinder, die früher ängstlich waren, jedoch heute Helden sind.
دا هغه ماشومان دي چې پخوا ډارن وو، خو نن اتلان دي
4. Die Männer, deren Geld gestohlen worden ist, haben heute gar kein Geld.
هغه سړي چې پيسې يې غلا شوي دي، نن هېڅ پيسې نلري
5. Die Frauen, deren Kinder früher schwach waren, sind heute stolze Mütter.
هغه ښځې چې پخوا ماشومان يې کمزوري وو، نن وياړلې ميندې دي
6. Die Kinder, deren Eltern gestorben sind, sind heute selbst Väter geworden.
هغه ماشومان چې مور او پلار يې مړه شوي دي، نن پخپله پلرونه شوي دي
7. Die Männer, denen du früher zugehört hast, hören dir heute nicht zu.
هغه سړي چې پخوا به تا هغوی ته غوږ ايښودو، نن تا ته غوږ نه ږدي
8. Die Frauen, denen du geholfen hast, sind dir ewig dankbar.
هغه ښځې چې تا ورسره مرسته کړېده، له تا نه تول عمر منونکې دي
9. Die Kinder, denen du den Weg gezeigt hast, sind zu Hause angekommen.
هغه ماشومان چې تا ورته لار وښودله، کور ته رسيدلي دي
10. Die Männer, die gestern verhaftet worden sind, sind heute auf freiem Fuß.
هغه سړي چې پرون بندي شوي وو، نن ازاده گرځي
11. Die Frauen, die du gestern im Flughafen gesehen hast, sind heute in Paris.
هغه ښځې چې پرون تا په هوايي ډګر کې وليدلې، نن په پاريس کې دي

12. Die Kinder, die gestern nicht spielen wollten, spielen heute umso lieber.
هغه ماشومان چي پرون نه لوبېدل، نن لاپسي ډېر په خوشحالی لوبيږي

**Übungen:** Bitte ergänzen Sie die Relativpronomen!

1. Ist das der Mann, …… du zu deinem Geburtstag eingeladen hast?
دا هغه سړی دی چي تا خپلې کليزې ته مېلمه کړی و؟
2. Wie heißt eigentlich das Restaurant, in …… man so gut essen kann?
هغه رستوران څه نوميږي چي سړي پکې ډېره ښه ډوډی خوړی شي ؟
3. Wie alt ist die hübsche Studentin, …… das Studium so schnell beendet hat?
هغه ښايسته محصله څو کلنه ده چي تحصيل يې دومره ژر پای ته ورسو؟
4. Kennst du die hübsche Frau, mit …… sich ihr Ehemann unterhält?
ته هغه ښايسته ښځه پيژني چي مېړه يې ورسره خبرې کوي؟
5. Warum sind die Aufgaben, …… uns unser Lehrer stellt, so schwierig?
هغه پوښتني چي زموږ ښوونکی يې له موږ نه کوي، ولي دومره سختي دي؟
6. Hast du den Wagen gesehen, …… bei Rot über die Ampel gefahren ist?
تا هغه موټر وليد چي له سرې اشارې نه تېر شو؟
7. Der Mann, …… keinen Führerschein hat, hatte gestern einen Verkehrsunfall.
هغه سړی چي لېسنس نلري، پرون يې يو ترافيکي ټکر وکړو
8. Der Patient, …… man gestern operiert hatte, ist heute Morgen verstorben.
هغه رنځور چي پرون عمليات شوی و، نن سهار مړ شو
9. Die Fotos, …… ich vor einem Jahr gemacht hatte, erhielten einen Preis.
هغه عکسونه چي ما يو کال مخکي اخيستي وو، ورته يوه جايزه ورکړل شوه
10. Das Auto, mit …… wir nach Italien gefahren waren, ist gestern gestohlen worden.
هغه موټر چي موږ پکي ايتاليې ته تللي وو، پرون غلا شو

**Lösungen:**
1. den 2. dem 3. die 4. der 5. die 6. der 7. der 8. den 9. die 10. dem

**Übungen:** Bitte bilden Sie Relativsätze.

Beispiel: Das Buch ist nicht interessant. Ich habe es zum Geburtstag geschenkt bekommen.
Das Buch, das ich zum Geburtstag geschenkt bekommen habe, ist nicht interessant.

1. Der Mann hat das Geld gestohlen. Er hat große finanzielle Schwierigkeiten.
دې سړي پيسې غلا کړې دي. هغه په ډېرو اقتصادي ستونځو کې پروت دی
2. Die Studentin wohnt erst seit kurzem im Wohnheim. Sie feiert heute ihren Geburtstag.
دا محصله د لنډ وخت راهيسې په ليليه کې اوسيږي. هغه نن خپله کليزه لمانځي
3. Ein Passant hat dem Kind geholfen. Es wurde von einem großen Hund angegriffen.
يو لاروي د ماشوم سره مرسته وکړه. په هغه باندې يو غټ سپي وروداننګل
4. Die Gäste waren mit dem Hotel unzufrieden. Sie verlangten ihr Geld zurück.
مېلمانه له هوټل نه ناراضه وو. هغوی خپلې پيسې بېرته وغوښتلې

5. Die Fotos sind von sehr guter Qualität. Man hat sie mit einer billigen Kamera gemacht. دا عکسونه ډېر ښه کیفیت لري. دا په یوې ارزان بیه کمرې باندې اخیستل شویدي
6. Unsere Mitarbeiterin ist sehr hübsch. Unser Minister hat sich in sie verliebt. زمونږ همکاره ډېره ښایسته ده. زمونږ وزیر په هغې مین شوی دی
7. Die Kinder wohnen am Ostpark. Unser Sohn spielt öfters mit ihnen Fußball. ماشومان په ختیځ پارك کې اوسیږي. زمونږ زوی ډېر وخت هغوی سره د فوټبال لوبه کوي
8. Unsere Großmutter ist schwer erkrankt. Schon seit Jahren sorgen wir für sie. زمونږ نیا سخته ناروغه ده. مونږ د کلونو راهیسې د هغې پالنه کوو
9. Das ist der alte Herr aus Australien. Sie können sich nicht mehr an ihn erinnern. دا هغه د اسټرالیا زوړ سړی دی. دی ستاسو اوس په یاد ندی
10. Die Prüfung ist sehr schwer. Wir müssen uns auf die Prüfung wochenlang vorbereiten. ازموینه ډېره ګرانه ده. مونږ باید ډېرې اونۍ ورته چمتووالی ونیسو

**Lösungen**:

1. Der Mann, der große finanzielle Schwirigkeiten hat, hat das Geld gestohlen.
2. Die Studentin, die heute ihren Geburtstag feiert, wohnt erst seit kurzem im Wohnheim.
3. Ein Passant hat dem Kind geholfen, das von einem großen Hund angegriffen wurde.
4. Die Gäste, die ihr Geld zurückverlangten, waren mit dem Hotel äußerst unzufrieden.
5. Die Fotos, die man mit einer billigen Kamera gemacht hat, sind von sehr guter Qualität.
6. Unsere Mitarbeiterin, in die unser Minister sich verliebt hat, ist sehr hübsch.
7. Die Kinder, mit denen unser Sohn öfters Fußball spielt, wohnen am Ostpark
8. Unsere Großmutter, für die wir schon seit Jahren sorgen, ist schwer erkrankt.
9. Das ist der alte Herr aus Australien, an den Sie sich nicht mehr erinnern können.
10. Die Prüfung, auf die wir uns wochenlang vorbereiten müssen, ist sehr schwer.

# Relativsätze د تړاو ورکولو جملې

په پورتنو څپرکو کې مو د تړاو ورکولو نومځري زده کړل. اوس به زده کړو چې د تړاو ورکولو جملې څنګه جوړیږي. پوښتنه دا ده چې د تړاو جملو ته څه اړتیا ده؟
ځواب به دا وي چې د تړاو ورکولو جملې هغه اسمونه یا ضمیرونه لاپسې ښه تشریح کوي چې دمخه په اصلي جمله کې یاد شویدي. بله پوښتنه چې دلته کېدی شي، هغه به دا وي چې د لومړۍ اصلي جملې اسمونه په یوه بله اصلي جمله کې هم تشریح کېدی شي، نو (Relativsatz) ته څه اړتیا ده؟ اوس به داسې یو مطلب وګورو چې په دوه اصلي جملو کې تشریح شوی دی:

Kennst du den Mann? Er ist seit gestern hier.
ته دا سړی پېژنې؟ هغه له پرون راهیسې دلته دی

په پورتنۍ جمله کې د یو سړي په برخه کې پوښتنه شوېده. دوهمه جمله د دې سړي په برخه کې معلومات ورکوي چې د پرون راهیسي دلته دی. نو دلته خو مونږ پخپلو سترګو ولیدل چې د لومړۍ جملې د (سړي) په برخه کې دوهمې جملې معلومات ورکړو، نو دلته بیا نو (Relativsatz) ته څه اړتیا ده؟
ځواب به دا وي چې د دوه اصلي جملو ترمینځ یو ټکی دی. کله چې د یوې جملې په پای کې یو ټکی وي، نو دا جمله پای ته ورسېدله. نو سړی باید مجبوراً په لوستلو کې د جملې په پای کې لږ څه دمه وکړي او وروسته نوې جمله ولولي. نو په دې ډول د دواړو جملو د لوستلو کې لږ څه دمه یا سکته راځي. خو که چېرته دا دوه اصلي جملې له یو بل سره د تړاو د نومځري له لارې ونښلول شي، نو بیا دا ستونځه پکې نشته. دلته بیا له دوه جملو نه یوه د تړاو جمله یا (Relativsatz) جوړېږي. لومړۍ جمله یې اصلي جمله ده او دوهمه جمله یې فرعي جمله او د دواړو تر مینځ یوه کامه (,) لیکل شوېده. کله چې یوه کامه (,) د دوه جملو په مینځ کې راشي، نو د دواړو جملو په لوستلو کې دمې کولو ته څه اړتیا نشته. نو په دې ډول د (Relativsatz) یوه موخه دا ده چې د جملو په لوستلو کې دمه یا سکته نه راځي او لوستل ښه په روان ډول کیږي. پورتنۍ جمله د (Relativsatz) په ډول به لاندې وګورو:

| |
|---|
| Kennst du den Mann, *der seit gestern hier ist?*<br>ته هغه سړی پېژنې چې له پرون راهیسي دلته دی؟ |

د تړاو جملې یا (Relativsatz) څنګه جوړیږي؟ په لاندې برخه کې به د جملې د جوړولو لار وګورو.

① هغه نوم چې تشریح کیږي نو سمدلاسه وروسته (Relativsatz) راځي چې دا نوم ښه تشریح کوي، مثال:

| |
|---|
| Ist das der Tisch? Du brauchst den Tisch nicht. دا هغه مېز دی؟ دا مېز ستا پکار ندی |

په پورتنو دوه جملو کې دوهمه جمله د لومړۍ جملې د (مېز) په برخه کې معلومات ورکوي. نو په دې وجه له دوهمې جملې نه یوه (Relativsatz) جوړېدی شي، په دې ډول د (Tisch) د لغت نه وروسته یوه کامه (,) لیکل کیږي او دوهمه جمله سمدلاسه وروسته راځي چې په دې ډول (der Tisch) تشریح کیږي، په لاندې ډول:

| |
|---|
| Ist das der Tisch, *den du nicht brauchst?* دا هغه مېز دی چې ستا پکار ندی؟ |

دا دوهمه جمله، یعنې *(den du nicht brauchst)* یوه د تړاو ورکولو جمله یا (Relativsatz) ده.
څنګه چې په پورتنې مثال کې لیدل کیږي، د یو (Relativsatz) د تشریح کولو لپاره ځانګړي نومځري پکاریږي چې دې ته (Relativpronomen) یا د تړاو ورکولو نومځري ویل کیږي چې په په پورتنېو څېرکو کې مو په مفصل ډول زده کړل.
② دا هم کېدی شي چې (Relativsatz) د اصلي جملې په مینځ کې ځای په ځای شي چې یو څه د جملې په مینځ کې تشریح کړي. لومړی به دوه بېلې بېلې اصلي جملې وګورو:

| |
|---|
| Der Polizist fragt einen Passanten, was passiert ist. Der Passant hat den Unfall gesehen. پولیس له یوه لاروي نه پوښتنه کوي چې څه پېښ شوي دي. لاروي د ټکر پېښه لیدلې ده |

دا دواړه پورتنۍ جملې اصلي جملې دي. دوهمه جمله د لومړۍ جملې یو اسم، یعنې (Passant) یا (لاروی) تشریح کوي. نو په دې ډول سړی کوی شي چې له دوهمې جملې نه یو (Relativsatz) جوړ کړي او د لومړۍ جملې په مینځ کې ورته ځای ورکړي:

| |
|---|
| Der Polizist fragt einen Passanten, *der den Unfall gesehen hat*, was passiert ist.<br>پولیس له یو لاروي نه *چې د ټکر پېښه یې لیدلې ده*، پوښتنه کوي چې څه پېښ شوي دي |

دلته دا جمله *(der den Unfall gesehen hat)* د تړاو جمله، یعني (Relativsatz) ده.

③ (Relativsatz) کېدی شي چې حتی په یوې بلې فرعي جملې کې وردننه کړی شي.

> Der Zeuge behauptet, dass der Fahrer, *der den Unfall verursacht hat*, zu schnell gefahren ist. شـاهد ادعا کوي چې، هغه ډرېـور، *چې د ټکر باعث کرځېدلی و*، خپل مـوټـر یې ډېر ګړندی چلولی دی

په پورتنۍ جمله کې (dass der Fahrer zu schnell gefahren ist) فرعي جمله ده او د تړاو جمله یا (Relativsatz) د دې جملې په مینځ کې ځای په ځای شوېده، چې هغه دا ده:
*(der den Unfall verursacht hat)*. دا په دې مانا چې پورتنۍ فرعي جمله دوه ټوټې شوېده او په مینځ کې یې (Relativsatz) یا د تړاو جمله لیکل شوېده.

④ (Relativsatz) کېدی شي چې په یوې مصدري جملې یا (Infinitivsatz) کې ځای په ځای شي.
مثال:

> Der Zeuge hofft, den Fahrer, *der den Unfall verursacht hat*, wiederzuerkennen.
> شاهد هیله لري چې هغه ډرېور، *چې د ټکر باعث کرځېدلی دی*، بیا وپېژني

پورتنۍ جمله پخوا داسې وه: (Der Zeuge hofft, den Fahrer wiederzuerkennen.) یعني شاهد هیله لري چې ډرېور بیا وپېژني. د دې جملې په مینځ کې (Relativsatz) ورواچول شو، چې هغه دا جمله ده: *(der den Unfall verursacht hat)* یعني چې هغه د ټکر باعث کرځېدلی دی

⑤ یو (Relativsatz) کېدی شي چې په یو بل (Relativsatz) کې وردننه شي. لومړی به دا جملې بېلې بېلې وګورو:

> Die Polizei sucht den Mann, *der den Unfall verursacht hat.*

په پورتنۍ جملې کې دوهمه برخه، یعني *(der den Unfall verursacht hat.)* یو (Relativsatz) دی. دغه جمله لاپسې اوږدېدلی او یوه بله جمله پکې وردننه کېدلی شي، په لاندې ډول:

> Die Polizei sucht den Mann, der den Unfall, *bei dem ein Auto beschädigt worden ist*, verursacht hat.
> پولیس هغه څوک لټوي، چې هغه د ټکر باعث شوی و، *او پکې یو موټر تاواني شوېدی*

په پورتنۍ جملې کې د ټکر (Unfall) په برخه کې لاپسې نور معلومات وړاندې شو چې هغه دا دی:
*(bei dem ein Auto beschädigt worden ist)* چې دا جمله هم یو (Relativsatz) دی. نو په دې ډول یو (Relativsatz) په بل (Relativsatz) کې وردننه کړی شو، فقط لکه چې په یوې غټې کوټۍ کې چې یوه وړه کوټۍ وردننه کړی شي. دغه شان جملو ته چې یوه جمله په بلې جملې کې او بله جمله په بلې جملې کې وردننه کړی شي، په جرمني ژبه کې په ریښتیا هم د کوټۍ په شان جملې یا (Schachtelsätze) وايي.
اوس به د ژبې مینه والو لپاره تش د معلوماتو لپاره داسې یوه جمله ولیکل شي چې لومړی ډېره لنډه ده او بیا په کراره کراه اوږدېږي. داسې جملې تش په دفترونو کې یا د لیکوالانو له خوا کارول کیږي.

په لومړۍ کوټۍ کې تش اصلي جملې یا (Hauptsatz) ته ځای ورکړل شوی دی:

> Das alte Haus wird morgen abgerissen. هغه زوړ کور سبا نړول کیږي

په دوهمه کوټۍ کې بیا یو څه نور زیات شویدي او هغه دا دي:

| |
|---|
| Das alte Haus, *das an der Straße liegt*, wird morgen abgerissen.<br>هغه زوړ کور *چې د سړك په غاړه پروت دی*، سبا نړول کیږي |

په دریمه کوټۍ کې بیا یو څه نور یکې زیات شویدي او هغه دا دي:

| |
|---|
| Das alte Haus, das an der Straße, *die nach Berlin führt*, liegt, wird morgen abgerissen. هغه زوړ کور *چې د برلین په لوري* سړك په غاړه پروت دی، سبا نړول کیږي |

## Bildung von Relativsätzen

د یو (Relativsatz) د جوړولو لپاره ډېر ضرور دا دي چې یو (Relativpronomen) یا د تړاو نومځری پیدا شي چې دي جملې سره ولګیږي. نو یو صحیح (Relativpronomen) هغه وخت پیدا کېدی شي چې سړی پوه شي چې دا اسم چې تشریح کیږي، نارینه دی که ښځینه، او که مخنث دی. بل دا چې سړی باید پوه شي چې دا اسم یو کس دی او که ډېر کسان دي، یعني مفرد دی او که جمع. بل دا مهمه ده چې دا اسم چې تشریح کیږي، په کوم حالت کې دی، یعنې د (Nominativ) یا (Akkusativ) یا (Dativ) او یا (Genitiv) په حالت کې دی. دا ځکه مهم دی چې هغه اسم چې تشریح کیږي که په (Nominativ) حالت کې وي، نو (Relativpronomen) یې هم په (Nominativ) حالت کې وي، که په (Akkusativ) حالت کې وي، (Relativpronomen) هم په (Akkusativ) حالت کې وي، که په (Dativ) حالت کې وي، نو (Relativpronomen) یې هم په (Dativ) کې وي، که په (Genitiv) کې وي، نو (Relativpronomen) هم د (Genitiv) په حالت کې وي. دا موضوع به په لاندې جدولونو کې په جملو کې ووینو.

| Nominativ (Singular) | |
|---|---|
| Maskulinum (der)<br>نارینه | Der Mann, der dort steht, kennt den Weg sehr gut.<br>هغه سړی چې هلته ولاړ دی، لاره ډېره ښه پیژني |
| Femininum (die)<br>ښځینه | Die Frau, die dort steht, kennt den Weg sehr gut.<br>هغه ښځه چې هلته ولاړه ده، لاره ډېره ښه پیژني |
| Neutrum (das)<br>مخنث | Das Kind, das dort steht, kennt den Weg nicht.<br>هغه ماشوم چې هلته ولاړ دی، لاره نه پیژني |

| Nominativ (Plural) | |
|---|---|
| Maskulinum<br>نارینه | Die Männer, die dort stehen, kennen den Weg sehr gut.<br>هغه سړي چې هلته ولاړ دي، لاره ډېره ښه پیژني |
| Femininum<br>ښځینه | Die Frauen, die dort stehen, kennen den Weg sehr gut.<br>هغه ښځې چې هلته ولاړې دي، لاره ډېره ښه پیژني |
| Neutrum<br>مخنث | Die Kinder, die dort stehen, kennen den Weg nicht.<br>هغه ماشومان چې هلته ولاړ دي، لاره نه پیژني |

| Akkusativ (Singular) | |
|---|---|
| Maskulinum (den)<br>نارینه | Der Mann, den ich gefragt habe, ist nicht von hier.<br>هغه سړی چې ما ورنه پوښتنه وکړه، له دې ځایه نه دی |
| Femininum (die)<br>ښځینه | Die Frau, die ich gefragt habe, ist nicht von hier.<br>هغه ښځه چې ما ورنه پوښتنه وکړه، له دې ځایه نه ده |

| | |
|---|---|
| Neutrum (das)<br>مخنث | Das Kind, das ich gefragt habe, ist nicht von hier.<br>هغه ماشوم چې ما ورنه پوښتنه وکړه، له دې ځايه نه دی |

| Akkusativ (Plural) | |
|---|---|
| Maskulinum<br>نارينه | Die Männer, die ich gefragt habe, sind nicht von hier.<br>هغه سړي چې ما ورنه پوښتنه وکړه، له دې ځايه نه دي |
| Femininum<br>ښځينه | Die Frauen, die ich gefragt habe, sind nicht von hier.<br>هغه ښځې چې ما ورنه پوښتنه وکړه، له دې ځايه نه دي |
| Neutrum<br>مخنث | Die Kinder, die ich gefragt habe, sind nicht von hier.<br>هغه ماشومان چې ما ورنه پوښتنه وکړه، له دې ځايه نه دي |

| Dativ (Singular) | |
|---|---|
| Maskulinum (dem)<br>نارينه | Der Mann, dem ich geantwortet habe, versteht mich nicht.<br>هغه سړی چې ما ورته ځواب ورکړو، زما په خبرونپوهيږي |
| Femininum (der)<br>ښځينه | Die Frau, der ich geantwortet habe, versteht mich nicht.<br>هغه ښځه چې ما ورته ځواب ورکړو، زما په خبرو نپوهيږي |
| Neutrum (dem)<br>مخنث | Das Kind, dem ich geantwortet habe, versteht mich nicht.<br>هغه ماشوم چې ما ورته ځواب ورکړو، زما په خبرو نپوهيږي |

| Dativ (Plural) | |
|---|---|
| Maskulinum<br>نارينه | Die Männer, denen ich geantwortet habe, verstehen mich nicht. هغه سړي چې ما ورته ځواب ورکړو، زما په خبرو نپوهيږي |
| Femininum<br>ښځينه | Die Frauen, denen ich geantwortet habe, verstehen mich nicht. هغه ښځې چې ما ورته ځواب ورکړو، زما په خبرو نپوهيږي |
| Neutrum<br>مخنث | Die Kinder, denen ich geantwortet habe, verstehen mich nicht. هغه ماشومان چې ما ورته ځواب ورکړو، زما په خبرو نپوهيږي |

| Genitiv (Singular) | |
|---|---|
| Maskulinum (des)<br>نارينه | Der Mann, dessen Hand gebrochen ist, muss operiert werden. هغه سړی چې لاس يې مات شوی دی، بايد عمليات شي |
| Femininum (der)<br>ښځينه | Die Frau, deren Hand gebrochen ist, muss operiert werden. هغه ښځه چې لاس يې مات شوی دی، بايد عملياته شي |
| Neutrum (des)<br>مخنث | Das Kind, dessen Hand gebrochen ist, muss operiert werden. هغه ماشوم چې لاس يې مات شوی دی، بايد عمليات شي |

| Genitiv (Plural) | |
|---|---|
| Maskulinum<br>نارينه | Die Männer, deren Hände gebrochen sind, müssen operiert werden. هغه سړي چې لاسونه يې مات شويدي، بايد عمليات شي |
| Femininum<br>ښځينه | Die Frauen, deren Hände gebrochen sind, müssen operiert werden. هغه ښځې چې لاسونه يې مات شويدي، بايد عمليات شي |
| Neutrum<br>مخنث | Die Kinder, deren Hände gebrochen sind, müssen operiert werden. هغه ماشومان چې لاسونه يې مات شويدي، بايد عمليات شي |

**Übungen**: Bilden Sie Relativsätze!

Beispiel: Ist das der Mann? Seine Frau ist neulich gestorben.
Ist das der Mann, dessen Frau neulich gestorben ist?

1. Ist das der Mann? Unsere Kinder haben mit seinem Hund gespielt.
دا هغه سړی دی؟ زمونږ ماشومانو د هغه سپي سره لوبې کړي دي
2. Ist das der Mann? In seinem Haus wurde neulich eingebrochen.
دا هغه سړی دی؟ لنډ وخت دمخه د هغه کور ته غله ورغلي و
3. Ist das der Mann? Unser Sohn geht mit seinem Sohn in die Schule.
دا هغه سړی دی؟ زمونږ زوی د هغه زوی سره ښوونځي ته ځي
4. Ist das der Mann? Die Schwester des Mannes hat im Lotto gewonnen.
دا هغه سړی دی؟ د دې سړي خور په لاتري کې جايزه ګټلې ده
5. Ist das die Frau? Ihr Hund hat ein Kind gebissen.
دا هغه ښځه ده؟ د هغې سپي يو ماشوم داړلی دی
6. Ist das die Frau? Ihr Auto ist gestohlen worden. دا هغه ښځه ده؟ د هغې موټر غلا شوېدی
7. Ist das die Frau? Ihr Mann ist sehr berühmt. دا هغه ښځه ده؟ د هغې مېړه ډېر مشهور دی
8. Ist das die Frau? Ihr gehören die beiden Geschäfte.
دا هغه ښځه ده؟ دا دواړه مغازې د هغې دي
9. Sind das die Leute? Man sollte sich um ihre Kinder kümmern.
دا هغه خلك دي؟ د هغوی په ماشومانو باندې بايد سړی پام ونيسي
10. Sind das die Leute? Mit diesen Leuten will niemand etwas zu tun haben.
دا هغه خلك دي؟ هېڅ څوك نه غواړي چې له دې خلکو سره څه اړيکې ولري

**Lösungen:**

1. Ist das der Mann, mit dessen Hund unsere Kinder gespielt haben?
2. Ist das der Mann, in dessen Haus neulich eingebrochen wurde?
3. Ist das der Mann, mit dessen Sohn unser Sohn in die Schule geht?
4. Ist das der Mann, dessen Schwester im Lotto gewonnen hat?
5. Ist das die Frau, deren Hund ein Kind gebissen hat?
6. Ist das die Frau, deren Auto gestohlen worden ist?
7. Ist das die Frau, deren Mann sehr berühmt ist?
8. Ist das die Frau, der die beiden Geschäfte gehören?
9. Sind das die Leute, um deren Kinder man sich kümmern sollte?
10. Sind das die Leute, mit denen niemand etwas zu tun haben will?

### Die Bildung von Relativsätzen mit Relativpronomen nach einer Präposition

کله چې له يو (Relativpronomen) سره يو د تړاو يو حرف يا (Präposition) يو ځای شي، نو په دې وخت کې (Relativpronomen) له (Präposition) نه وروسته راځي، مثال:

Ich kenne die Leute nicht, mit denen du gestern geredet hast.
هغه کسان چې تا پرون ورسره خبرې وکړې، زه يې نه پېژنم

| |
|---|
| Der Mann, von dem du gestern erzählt hast, ist heute im Gefängnis.<br>هغه سړی چې پرون تا په برخه کې یې خبرې وکړې، نن په زندان کې دی |
| Das Gebäude, in dem ich arbeite, hat eine Klimaanlage.<br>هغه ودانۍ چې زه پکې کار کوم، یو ایرکنډېشن لري |
| Jeder Tag, an dem du nicht lächelst, ist ein verlorener Tag.<br>هره ورځ چې ته پکې نه خاندې، یوه خوشې ورځ ده |
| Der Berg, über den kein Vogel fliegt, heißt Himalaya.<br>هغه غر چې له پاسه یې هېڅ مرغه نه الوزي، همالیا نومیږي |

**Übungen**: Bilden Sie bitte Relativsätze!

1. Er ist ein Mensch, ______ ______ ich großen Respekt habe.
دا یو سړی دی چې زه ورته ډېر احترام لرم
2. Das ist ein Tag ______ ______ ich nur ungern zurückdenke.
دا یوه ورځ ده چې زړه مې نکیږي چې هغه راپه یاد شي
3. Das ist endlich der Brief, ______ ______ wir so lange gewartet haben.
دا هغه لیك دی، چې مونږ ورته د ډېر وخت راهیسې په انتظار وو
4. Das ist eine Entdeckung, ______ ______ er sicher den Nobelpreis erhält.
دا یوه داسې اختراع ده چې د نوبل جایزه به ورته هرومرو ورکړل شي
5. Im Zug habe ich einen Mann getroffen, ______ ______ einmal in Amerika gesehen habe. په اورګاډي کې ما یو سړی ولیدو چې یو وخت مې په امریکې کې لیدلی و
6. Das ist eine Note, ______ ______ du zufrieden sein kannst.
دا یوه داسې نمره ده چې ته باید پرې راضې واوسې
7. Du hast einen Satz gesagt, ______ ______ ich immer wieder denken muss.
تا یوه جمله وویله چې زه باید تل ورته فکر وکړم
8. Das ist eine Nachricht, ______ ______ ich mich freue.
دا یو خبر دی چې زه ورته خوښ یم
9. Ich habe ein Angebot bekommen, ______ ______ ich noch nachdenken muss.
ما ته یو څه وړاندې شوي دي چې په برخه کې یې زه باید یو څه نور هم فکر وکړم
10. Du bist der einzige Freund, ______ ______ ich über diese Sache reden kann.
ته یوازینی ملګری یې چې زه په دې موضوع کې ورسره خبرې کولی شم

**Lösungen:**
1. vor dem 2. an dem 3. auf den 4. für die 5. den ich 6. mit der 7. an den 8. auf die 9. über das 10. mit dem

## Relativsätze mit: welcher, welche, welches

په پښتو کې ځینې جملې شته چې په هغو کې په اصلي جملو کې د یو چا نوم یادیږي، خو په فرعي جملو کې هغه نوم تشریح کیږي. د دې لپاره چې په فرعي جملو کې هغه نوم بیابیا یاد نشي، نو د نوم د یادولو په ځای ویل کیږي: (کوم چې ...) . مثال:

| |
|---|
| هغه سړی، کوم چې پرون روغ رمټ و، نن مړ شوی دی |

په پورتنی جمله کې (کوم چې ....) هغه سړی تشریح کوي چې د جملې په سر کې یاد شو. نو په جرمني ژبه کې هم لکه د پښتو په شان داسې الفاظ شته چې د یوې اصلي جملې په سر کې یاد شوی نوم په فرعي جملې کې پرې تشریح کیږي، او هغه دا دي:

| | | |
|---|---|---|
| welcher (کوم سړی) | welche (کومه ښځه) | welches (کوم ماشوم) |

داسې جملې اوس ډیرې مروجې ندي او دلته تش د بشپړتیا لپاره لیکل کیږي:

| Relativsatz | welcher, welche, welches als Relativum |
|---|---|
| Der Mann, der dem Zug nachlief, …<br>هغه سړی چې د اورګاډي پسې يې منډې وهلې | Der Mann, welcher dem Zug nachlief, …<br>هغه سړی، کوم چې د اورګاډي پسې يې منډې وهلې … |
| Die Frau, der das Haus gehört, …<br>هغه ښځه چې د کور خاونده ده، … | Die Frau, welcher das Haus gehört, …<br>هغه ښځه، کومه چې د کور خاونده ده، … |
| Das Kind, das den Ball suchte, …<br>هغه ماشوم چې توپ يې لټوه، … | Das Kind, welches den Ball suchte, …<br>هغه ماشوم، کوم چې توپ يې لټوه، … |

## Die Deklination der Relativpronomen welcher (Singular)
## د (کوم ، دا) ربطي ضمیر ګردان (مفرد)

| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ | der Mann, welcher…<br>هغه سړی، کوم چې … | die Frau, welche…<br>هغه ښځه، کومه چې … | das Kind, welches…<br>هغه ماشوم، کوم چې … |
| Genitiv | der Mann, dessen…<br>هغه سړی، د هغه چې… | die Frau, deren…<br>هغه ښځه، د هغې چې… | das Kind, dessen…<br>هغه ماشوم، د هغه چې… |
| Dativ | der Mann, welchem…<br>هغه سړی، کوم چا ته چې | die Frau, welcher…<br>هغه ښځه، کومې چاته چې | das Kind, welchem…<br>هغه ماشوم، کوم چا ته چې … |
| Akkusativ | der Mann, welchen…<br>هغه سړی، کوم چې … | die Frau, welche…<br>هغه ښځه، کومه چې … | das Kind, welches…<br>هغه ماشوم، کوم چې … |

| پاملرنه | ښکه چې پورته لیدل کیږي، د (Genitiv) په حالت کې د (welche) په ځای تل (dessen) او یا (deren) راځي<br>Die Endungen von „welche“ als Relativpronomen sind identisch mit den Endungen des bestimmten Artikels als Relativpronomen. Eine Ausnahme bildet der Genitiv. Hier heißt das Relativpronomen immer „dessen“ bzw. „deren“. |
|---|---|

Beispielsätze:

1. Der Mann, welcher dort steht, ist mein Vater.

هغه سړی، کوم چې هلته ولاړ دی، زما پلار دی

2. Die Frau, welche sonst viel arbeitet, ist heute sehr müde.

هغه ښځه، کومه چې په نورو وختو کې ډیر کار کوي، نن ډیره ستړې ده

3. Das Kind, welches keine Milch trinkt, hat dünne Knochen.
هغه ماشوم، کوم چي شوده نه څښي، هډوکي یې ډېر نري دي
4. Der Mann, welchem du ausführlich geantwortet hast, hat weitere Fragen.
هغه سړی، چا ته چي تا مفصل ځوابونه ورکړیدي، نورې پوښتني هم لري
5. Die Frau, welcher du eine Jacke verkauft hast, will noch eine Jacke kaufen.
هغه ښځه، کومي باندي چي تا یوه کرتی خرڅه کړېده، غواړي چي یوه بله کرتی په بیه واخلي
6. Das Kind, welchem du ein Medikament gegeben hast, ist wieder gesund.
هغه ماشوم، کوم ته چي تا یوه ګولی ورکړېده، بېرته ښه شوی دی
7. Der Mann, welchen die Polizei gesucht hat, ist verschollen.
هغه سړی، کوم چي پولیسو لټو، تري تم شوی دی
8. Die Frau, welche zur Problemlösung dringend benötigt wird, ist heute krank.
هغه ښځه، کومي ته چي د ستونځې د حلولو لپاره ډېره اړتیا ده، نن ناروغه ده
9. Das Kind, welches mit einer Medaille ausgezeichnet wird, hat heute Fieber.
هغه ماشوم، کوم ته چي نن یو مډال ډالی کیږي، نن یې تبه ده

## Die Deklination der Relativpronomen welcher (Plural)

| | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث |
|---|---|---|---|
| Nominativ | die Männer, welche<br>هغه سړي، کوم چي.. | die Frauen, welche<br>هغه ښځي، کومي چي ... | die Kinder, welche…<br>هغه ماشومان، کوم چي ... |
| Genitiv | die Männer, deren…<br>هغه سړي چي د هغوی | die Frauen, deren…<br>هغه ښځي چي د هغوی | die Kinder, deren…<br>هغه ماشومان چي د هغوی |
| Dativ | die Männer welchen<br>هغه سړی چي هغوی ته<br>هغه سړي، کومو ته چي | die Frauen, welchen<br>هغه ښځي چي هغوی ته<br>هغه ښځي، کومو ته چي | die Kinder, welchen…<br>هغه ماشومان، کومو ته چي |
| Akkusativ | die Männer, welche<br>هغه سړي، کوم چي ... | die Frauen,welche<br>هغه ښځي، کومي چي ... | die Kinder, welche…<br>هغه ماشومان،کوم چي.. |

Beispielsätze:
1. Die Männer, welche viel Sport treiben, sind sehr gesund.
هغه سړي، کوم چي ډېر سپورټ کوي، ډېر روغ دي
2. Frauen, welche rauchen, schaden ihren Kindern.
هغه ښځي، کومي چي سګرټ څکوي، خپلو ماشومانو ته تاوان رسوي
3. Die Kinder, welche fleißig lernen, haben gute Noten.
هغه ماشومان، کوم چي په درس لوستلو کي زيار وباسي، ښې نمرې اخلي
4. Die Männer, welchen Diebstahl nachgewiesen wird, werden bestraft.
هغه سړي، په کومو باندي چي غلا ثبوته شي، سزا مومي
5. Die Frauen, welchen Unrecht geschieht, werden entschädigt.
هغه ښځي، د کومو په هکله چي بې عدالتي کیږي، ورته بدیل ورکول کیږي
6. Die Kinder, welchen Faulheit vorgeworfen wird, müssen viel laufen.
هغه ماشومان، په کومو چي د لټی تور لګول کیږي، باید ډېرې منډې ووهي
7. Die Männer, welche mit dem Taxi gefahren werden, sind alle krank.
هغه سړي، کوم چي په ټکسي کي یوړل کیږي، ټول ناروغه دي

8. Die Frauen, welche viel Gutes geleistet haben, werden heute ausgezeichnet.
هغه ښځې، کومو چې ډېر نېک کارونه کړيدي، نن وياړل کيږي

9. Die Kinder, welche geschlagen werden, bekommen psychische Probleme.
هغه ماشومان، کوم چې وهل کيږي، په اروايي ستونځو اخته کيږي

## Relativsätze mit „wo, wohin, worin, worüber, woher, worunter“

د دې مبحث د پوهېدلو لپاره د پورتني ځېرکي تشريحات بالکل کفايت کوي، ځکه چې دواړه مبحثونه يو بل ته ډېر ورته دي. کوم توپير چې پکې پروت دی، هغه دا دی چې په دې برخه کې د (کوم = welcher) په ځای د (چېرته = wo + wohin) کلمه استعماليږي. بل دا چې د (in) په ځای (worin)، د (über) په ځای (worüber) او د (unter) په ځای (worunter) کارول کيږي.

| Relativsatz | Relativsatz mit „wo“ |
|---|---|
| Das Haus, in dem du geboren bist, existiert heute nicht mehr. هغه کور چې ته پکې زېږېدلی يې، نن شتون نلري | Das Haus, wo du geboren bist, existiert nicht mehr. هغه کور، په کوم کې چې ته زېږېدلی يې، نن شتون نلري |

په پورتنۍ جمله کې د (in dem) په ځای (wo) کارول شوی دی

| Relativsatz | Relativsatz mit „wohin“ |
|---|---|
| Die Stadt, in die wir gezogen sind, gefällt mir sehr gut. هغه ښار چې مونږ ورته کډه وکړه، زما ډېر خوښيږي | Die Stadt, wohin wir gezogen sind, gefällt mir sehr gut. هغه ښار، چېرته چې مونږ کډه کړېده، زما ډېر خوښيږي |

دلته د (in die) په ځای (wohin) کارول شوی دی. دا چې ولې په پورتنۍ جمله کې (wo) رانغی او په ځای يې (wohin) راغی، علت دا دی چې دلته د (ziehen) مصدر له (Akkusativ) سره استعمال شوی، يعنې (in die Stadt ziehen = ښار ته کډه کول). هر وخت کې چې يو فعل د يو ځای بدلېدل بيانوي، يعنې د يو ځای نه بل ځای ته تګ ښايي، نو بيا د (Akkusativ) سره استعماليږي او د (Akkusativ) پوښتنه په (wohin) کيږي. نور مثالونه:

| Relativsatz | Relativsatz mit „worüber“ |
|---|---|
| Das Thema, über das er spricht, ist sehr interessant. هغه موضوع چې هغه په برخه يې خبرې کوي، ډېره په زړه پورې ده | Das Thema, worüber er spricht, ist sehr interessant. هغه موضوع، د کومې په برخه کې چې هغه خبرې کوي، ډېره په زړه پورې ده |

په پورتنۍ جمله کې د (über das) په ځای (worüber) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „woher“ |
|---|---|
| Das Land, aus dem er kommt, liegt in Afrika. هغه هېواد چې هغه ورنه راځي، په افريقا کې دی | Das Land, woher er kommt, liegt in Afrika. هغه هېواد، له کومه چې هغه راځي، په افريقه کې دی |

په پورتنۍ جمله کې د (aus dem) په ځای (woher) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „woran“ |
|---|---|
| Er brachte vieles vor, an das bisher niemand gedacht hatte. هغه ډېر څه وړاندې کړل چې په دې برخه کې هېڅ چا فکر نه وو کړی | Er brachte vieles vor, woran bisher niemand gedacht hatte. هغه ډېرڅه وړاندې کړل د کومو په برخه کې چې چا تر اوسه فکر نه و کړی |

په پورتنۍ جمله کې د (an das) په ځای (woran) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „worunter“ |
|---|---|
| Der Ofen, unter den ich meine Schuhe legte, ist explodiert. هغه بخاری، چې لاندې یې ما خپل بوټان کېښودل، وچاودله | Der Ofen, worunter ich meine Schuhe legte, ist explodiert. هغه بخاری، د کومې لاندې چې ما خپل بوټان کېښودل، وچاودله |

په پورتنۍ جمله کې د (unter das) په ځای (worunter) کارول شوی دی

| Relativsatz | Relativsatz mit „wofür“ |
|---|---|
| Sie haben mir sehr geholfen. Dafür danke ich Ihnen vom Herzen. تاسو له ما سره ډېره مرسته وکړه. له دې مرستې نه زه له تاسو نه د زړه له کومې مننه کوم | Sie haben mir sehr geholfen, wofür ich Ihnen vom Herzen danke. تاسو ما سره ډېره مرسته وکړه ، له کومه پلوه چې زه د زړه له کومې مننه کوم |

په پورتنۍ جمله کې د (dafür) په ځای (wofür) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „wobei“ |
|---|---|
| Er verursachte mit seinem Auto einen Unfall, bei dem ein Schaden von 1000 Euro entstand. هغه پخپل موټر یو ټکر وکړو چې پرې د زر یورو تاوان پېښ شو | Er verursachte mit seinem Auto einen Unfall, wobei ein Schaden von 1000 Euro entstand. هغه پخپل موټر یو ټکر وکړو، په کوم چې د زرو یورو تاوان پېښ شو |

په پورتنۍ جمله کې د (bei dem) په ځای (wobei) کارول شوی دی

| Relativsatz | Relativsatz mit „womit“ |
|---|---|
| Die Waffe wurde gefunden, mit der der Schuss abgefeuert worden war. هغه وسله وموندل شوه، چې پرې ډز شوی و | Die Waffe wurde gefunden, womit der Schuss abgefeuert worden war. هغه وسله وموندل شوه، په کومې چې ډز شوی و |

په پورتنۍ جمله کې د (mit der) په ځای (womit) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „wonach“ |
|---|---|
| Der Bericht, nach dem er tot ist, trifft nicht zu. هغه رپوټ چې په اساس یې هغه مړ دی، واقعیت نلري | Der Bericht, wonach er tot ist, trifft nicht zu. هغه رپوټ، د کوم په اساس چې هغه مړ دی، واقعیت نلري |

په پورتنۍ جمله کې د (nach dem) په ځای (wonach) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „wodurch“ |
|---|---|
| Er ist viel krank gewesen. Dadurch ist kostbare Zeit verlorengegangen. هغه ډېر وخت ناروغ و، چې په دې وجه ډېر ګټور وخت له لاسه ولاړ | Er ist viel krank gewesen, wodurch kostbare Zeit verlorengegangen ist. هغه ډېر وخت په ناروغی االخته و، په کومې چې ډېر ګټور وخت له لاسه ولاړ |

په پورتنۍ جمله کې د (dadurch) په ځای (wodurch) کارول شوی دی

| Relativsatz | Relativsatz mit „wogegen“ |
|---|---|
| Dagegen habe ich nichts einzuwenden. د دې په خلاف زه څه اعتراض نه لرم | Es gibt nichts, wogegen ich etwas einzuwenden hätte. داسي څه نشته، د کومو په خلاف چې زه څه اعتراض ولرم |

په پورتنۍ جمله کې د (gegen den) په ځای (wogegen) کارول شوی دی.

| Relativsatz | Relativsatz mit „wovon“ |
|---|---|
| Es gibt vieles, von dem ich nichts verstehe. ډېر څه شته، چې په برخه کې یې زه هېڅ نیوهیږم | Es gibt vieles, wovon ich nichts verstehe. ډېر څه شته، د کومو په برخه کې چې زه هېڅ معلومات نه لرم |

په پورتنۍ جمله کې د (von dem) په ځای (wovon) کارول شوي دی

| Relativsatz | Relativsatz mit „wovor“ |
|---|---|
| Alles, vor dem er sich fürchtete, erwies sich als völlig harmlos. ټول هغه څه چې هغه ورڅخه ډارېدو، بې خطره ثابت شول | Alles, wovor er sich fürchtete, erwies sich als völlig harmlos. ټول هغه څه، له کومو نه چې هغه ډارېدو، بې خطره ثابت شول |

په پورتنۍ جمله کې د (vor dem) په ځای (wovor) کارول شوي دی

| Relativsatz | Relativsatz mit „wozu“ |
|---|---|
| Ich muss heute noch Briefe schreiben. Dazu hatte ich gestern keine Zeit. زه باید نن هغه لیکونه ولیکم چې پرون مې ورته وخت نه درلود | Ich muss heute noch Briefe schreiben, wozu ich gestern keine Zeit hatte. زه باید نن هغه لیکونه ولیکم، د کومو لپاره چې پرون مې وخت نه درلود |

په پورتنۍ جمله کې د (dazu) په ځای (wozu) کارول شوی دی.

**Übungen:**

Bilden Sie Relativsätze mit wo, wohin, worin, worüber, woher, worunter usw.

1. Das Thema, _______ wir uns unterhielten, geht dich nichts an.
هغه موضوع، د کومي په برخه کي چي مونږ خبري وکړي، تا پوري څه اړه نلري
2. Es gibt nichts, _______ er keine Meinung hätte.
داسي څه نشته، د کوم په برخه کي چي هغه به کوم نظر ونلري
3. Es gab nichts, _______ man sich hätte beklagen können.
داسي څه نه وو، د کومو په برخه کي چي سړي پریاد کړی وای
4. Ich habe nichts, _______ ich diesen Ring sicher aufbewahren könnte.
زه هېڅ داسي یو شی نلرم، په کوم کي چي زه دا ګوته په ډاډه ډول وساتلی شم
5. Das Gebäude, _______ ich arbeite, hat eine Klimaanlage.
هغه ودانی، په کومي کي چي زه کار کوم، یو ایرکنډېشن لري
6. Ich finde den Witz, _______ ihr lacht, gar nicht lustig.
هغه ټوکه، په کومي باندي چي تاسو خاندئ، ما ته هېڅ خندوره نده
7. Das Haus, _______ Goethe gewohnt haben soll, ist abgerissen worden.
هغه کور، په کوم کي چي ویل کیږي کي ګویتي به ژوند کړی وي، نړول شوی دی
8. Das ist ein Punkt, _______ ich anderer Meinung bin.
دا یو ټکی دی، په کوم کي چي زه په بل نظر یم
9. Ich folge dir, _______ du auch gehst. زه له تا پسي یم، هره خوا چي ته ځي
10. Er eilte ins Zimmer, _______ ihm die anderen folgten.
هغه کوټي ورودانګل، کوم ځای ته چي نور ورپسي شول
11. Ihr könnt gehen, _______ ihr wollt.
تاسو کولی شئ چي ولاړ شئ، کوم ځای ته چي زړه مو کیږي
12. Sie fahren ins Gebirge, _______ auch wir fahren.
تاسو غرنیو سیمو ته ځئ، کوم ځای ته چي مونږ هم ځو
13. Hier ist der Ort, _______ er geboren wurde.
دا هغه ځای دی، په کوم کي چي هغه زیږېدلی دی
14. An dem Tag, ________ am meisten zu tun war, wurde er krank.
په هغه ورځ، په کومي کي چي ډېر کار و، هغه ناروغ شو
15. Die Stelle, _______ der Unfall passiert ist, will ich sehen.
هغه ځای، په کوم کي چي ټکر شوی دی، زه غواړم چي ویې ګورم
16. Überall, _______ viele Menschen wohnen, gibt es Konflikte.
هره خوا، چېرته چي انسانان اوسیږي، لانجي پرتي وي
17. Bleib, _______ du bist! چېرته چي ته یې، همغلته پاتي شه!
18. _______ immer er auch sein mag, ich werde ihn finden.
هرچېرته چي هغه وي، زه به یې ومیندم
19. _______ ich auch hinblickte, es wimmelte von Ameisen.
هري خوا ته چي ما وکتل، هلته د میږګانو غوبل و
20. In dem Augenblick, ______ er hier ankam, ... .. په کومه شېبه کي چي هغه دلته ورسېدو
21. Wir gingen dorthin zurück, ________ wir eben gekommen waren.
مونږ بېرته هلته ولاړو، له کومه ځایه چي مونږ راغلي وو
22. Geh hin, ________ du gekommen bist. ته هلته ولاړ شه، له کومه ځایه چي ته راغلی یې

23. Der Laden, _______ die Sachen stammen.
هغه هټی، له کومه ځایه چې دا شیان راغلي دي
24. Er kommt von dort, _______ auch seine Frau stammt.
دی له هغه ځایه دی، له کومه چې د ده ښځه هم ده
25. Es gab nichts, ________ man sich hätte verstecken können.
داسې هېڅ شی نه و، د کوم لاندې چې سړي ځان پټولی شو
26. Etwas, _______ sie sich gar nichts vorstellen konnte.
داسې یو څه، د کوم په برخه کې چې هغې هېڅ تصور نشو کولی
27. Briefe, ________ etliche Mahnungen waren.
هغه لیکونه، د کومو په ډله کې چې ډېر اخطارونه وو
28. Das ist etwas, _______ ich überhaupt kein Verständnis habe.
دا هغه څه دي، د کوم لپاره چې زه هېڅ تفاهم نشم درلودلی
29. Sie behauptet etwas, _______ sie keine Beweise hat.
هغه داسې ادعاګانې کوي، د کومو لپاره چې هغه هېڅ ثبوتونه نلري
30. Er kam schon eine Stunde früher, _______ ich nicht gerechnet hatte.
هغه یو ساعت دمخه راغی، چې زما هېڅ توقع نه وه (چې هغه به وخته راشي)
31. Er tat etwas, _______ ich nicht einverstanden war.
هغه یوڅه وکړل، د کوم سره چې زه هېڅ موافق نه وم
32. Geld war nicht das Einzige, _______ er sie unterstützte.
پیسې یوازینی شی نه و چې هغه پرې له هغې سره مرسته کوله
33. Etwas, ______ sie großes Verlangen hatten. هغه څه، کوم ته چې د هغه ډېر زړه کېدو
34. Es gab nichts, _______ sie sich mehr sehnte.
داسې څه نه وو، کوم ته چې به د هغې له هرڅه نه ډېر زړه کېدو
35. Ein neues Gesetz, _______ verboten ist, dass …
یو نوی قانون، د کوم په اساس چې منع دي چې ...
36. Er ist viel krank gewesen, ________ kostbare Zeit verlorengegangen ist.
هغه ډېر وخت ناروغه و، چې پرې ارزښتناکه وخت له لاسه ولاړ
37. Er vermied alles, ________ es zu Missverständnissen hätte kommen können.
هغه له هرڅه نه ډډه وکړه، د کوم په وجه چې سؤتفاهم راپېښېدی شو
38. Es gibt nichts, ________ ich etwas einzuwenden hätte.
داسې څه نشته ، په کوم باندې چې زه به اعتراض وکړم
39. Er konnte die neue Aufgabe nicht übernehmen, _______ keiner Einspruch erhob. هغه دا نوې دنده په غاړه نشوه اخیستلی، چې پرې کوم چا هېڅ اعتراض ونکړو
40. Es gibt einige Dinge, _______ wir niemals reden.
ځینې شیان شته، د کومو په برخه کې چې مونږ هېڅ نه غږېږو
41. Etwas, _______ man ins Schwitzen kommt.
یو څه، په کوم باندې چې په سړي خوله راماته شي
42. Es gibt vieles, _______ ich nichts verstehe.
ډېر څه شته، چې په برخه کې یې زه هېڅ معلومات نلرم
43. Alles, _______ er sich fürchtete, erwies sich als völlig harmlos.
ټول هر هغه څه بې خطره ثابت شول، له کوم نه چې هغه ډارېده
44. Es passierte genau das, ________ ich ihn gewarnt hatte.
کټ مټ هغه څه پېښ شول، د کومو په برخه چې ما مخکې له مخکې هغه ته غږ کړی و

45. Das Einzige, _______ sie sich immer fürchtete, ….
يوازينى شى، له کوم نه چې هغه تل ډاريدله ...

**Lösungen:**
1. worüber 2. worüber 3. worüber 4. worin 5. worin 6. worüber 7. worin 8. worin 9. wohin 10. wohin 11. wohin 12. wohin 13. wo 14. wo 15. wo 16. wo 17. wo 18. wo 19. wo (umgangsprachlich: wohin :په اصطلاحي ډول). 20. wo 21. woher 22. woher 23. woher 24. woher 25. worunter 26. worunter 27. worunter 28. wofür 29. wofür 30. womit 31. womit 32. womit 33. wonach 34. wonach 35. wonach 36. wodurch 37. wodurch 38. wogegen 39. wogegen 40. wovon 41. wovon 42. wovon 43. wovor 44. wovor 45. wovor

## Relativsätze mit „wer, wen, wem, wessen“

د دې لغاتو مانا به د تکرار په توګه يو ځل بيا وګورو:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wer څوك | wen څوك، څوك | wem چا ته | wessen د چا |

کله چې سرى په پښتو کې وايي چې :

| |
|---|
| څوك چې داسې يو بد کار کوي، نو يوه ورځ به خپله سزا ويني |

په پورتنى پښتو جمله کې د جملې په سر کې (څوك) ياد شوىدى چې يو کار کوي، بيا په دوهمه جمله کې د دې کار عاقبت ياد شوىدى (چې يوه ورځ به خپله سزا وګوري). دلته د پښتو (څوك) د جرمني د (Nominativ) په حالت کې دى، ځکه چې يو څوك پخپله په فعال ډول يو څه کوي. بل مثال:

| |
|---|
| چا ته چې تا زما کتاب ورکړيدى، له همغه نه به يې بېرته اخلې |

په پورتنى پښتو جمله کې د جملې په سر کې (چا ته) ياد شوى دى. په دې جمله کې د پښتو (چا ته) د جرمني ژبې د (Dativ) په حالت کې دى. نو داسې جملې په جرمني ژبه کې هم جوړيږي چې دې ته (Relativsätze) وايي. د داسې جملې په سر کې لکه د پښتو جملو په شان (څوك، چاته، له چا نه) يعنې (wer, wen, wem, wessen) راځي چې دې ته (Relativpronomen) وايي. له دې نه وروسته په اصلي جمله کې د جملې په سر کې (der, den, dem, dessen) راځي. مثال:

| Relativsatz mit „wer“ |
|---|
| *Wer* zuerst kommt, (*der*) mahlt zuerst. (*Sprichwort*)<br>ژرنده که د پلار ده هم په وار ده (جرمني متل) |
| *Wer* dreimal lügt, *dem* glaubt man nicht.<br>څوك چې درې ځلې دروغ وايي، د هغه په خبرو سرى باور نه کوي |

| Relativsatz mit „wen“ |
|---|
| *Wen* man gut kennt, *dem* kann man vertrauen.<br>هغه څوك چې سرى يې ښه پيژني، په هغه باندې سرى باور کوى شي |

| Relativsatz mit „wem“ |
|---|
| *Wem* der Film nicht gefällt, *der* kann ja rausgehen.<br>د کوم چا چې دا فلم نه خوښيږي، هغه کوى شي چې بهر ولاړ شي |

| Relativsatz mit „wessen“ |
| --- |
| *Wessen* Herz für die Freiheit schlägt, *den* nenne ich einen edlen Mann.<br>د کوم چا چې د ازادۍ سره د زړه مينه ده، هغه ته زه نجيب انسان وايم |

| Relativsatz mit „mit wem“ |
| --- |
| *Mit wem* man zur Schule geht, *mit dem* hat man oft noch lange Kontakt.<br>له کوم چا سره چې سړی ښوونځي ته ځي، له هغه سره سړی ډېر وخت اوږدې اړيکې لري |

**Übungen:** Bilden Sie Sätze mit „wer, wen, wem, wessen“

1. _______ das behauptet, (der) lügt. څوك چې دا ادعا کوي، هغه دروغ وايي
2. _______ das tut, hat die Folgen zu tragen.
څوك چې دا کار کوي، عاقبت يې د هغه په غاړه دی
3. _______ man bedurfte, der wurde gerufen. چا ته چې اړتيا وه، هغه ته غږ وشو
4. _______ es nicht gefällt, der soll es bleiben lassen.
د چا چې دا نه خوښيږي، نو دا دې پرېږدي
5. _______ man in seine Wohnung lässt, dem muss man auch vertrauen können.
څوك چې سړی خپل کور ته پرېږدي، نو په هغه بايد سړی اعتماد هم وکړي شي
6. _______ Brot ich esse, dessen Lied singe ich.
د چا ډوډۍ چې زه خورم، د هغه سندره هم وايم
7. _______ den Pfennig nicht ehrt, ist den Taler nicht wert.
څوك چې د لږو پيسو په قدر نپوهيږي، هغه د ډېرو پيسو لايق ندی (جرمنی متل)
8._______ Sport nicht interessiert, der sollte spazieren gehen.
څوك چې له سپورټ سره علاقه نلري، نو چکر دې ووهي
9. _______ das nicht gefällt, sollte nach Hause gehen.
د چا چې دا نه خوښيږي، نو کور ته دې ولاړ شي
10._______ zuerst kommt, mahlt zuerst. ژرنده که د پلاړ ده، هم په وار ده (جرمنی متل)

**Lösungen**:
1. wer 2. wer 3. wessen 4. wem 5. wen 6. wessen 7. wer 8. wen 9. wem 10. wer

## Relativsätze mit „jeder, alle“

کله چې سړی په پښتو کې ووايي چې :

| | |
| --- | --- |
| هر چا چې په ځوانۍ کې زحمت وېستلی دی، نو په زړښت کې به هوسا وي | هر څوك چې د شپې له مخې خپله دروازه نه کلپوي، نو کور ته به يې غل ورشي |

د پورتنو جملو په سر کې (هر څوك) او (هر چا) راغلی دی چې يو کار يې کړی دی او په دوهمه جمله کې بيا د دې کار نتيجه يا عاقبت ښودل کيږي. دا شان جملې په جرمني ژبه کې د جملې په سر کې په (jeder, jede, jedes) باندې پيليږي، وروسته کامه (,) او له هغې نه وروسته (Relativpronomen) راځي او بيا د دې کس د کړنو په برخه کې معلومات راځي، وروسته بيا کامه (,) راځي او له کامې نه وروسته د دې کار نتيجه يا عاقبت ياديږي، ، مثال:

| Relativsatz mit „jeder“ | |
|---|---|
| *Jeder*, *der* müde ist, kann ins Bett gehen. هر څوك چې ستړى دى، كوى شي چې ويده شي | *Jeder, der* mitmacht, ist willkommen. هر څوك چې پكې برخه اخلي، هر كله دي راشي |

كله چې د يو كس په ځاى ډېر كسان ياد شي، نو د هغوى لپاره د (ټول = alle) كلمه كارول كيږي، مثال:

| Relativsatz mit „alle“ | |
|---|---|
| Alle, die die Sonne lieben, sind hier willkommen. د هر چا چې لمر خوښيږي، دلته دې هركله راشي | Dank an *alle, die* uns unterstützt haben. له ټولو هغو كسانو نه مننه چې زمونږ ملاتړ يې كړېدى |

## Relativsätze mit „was“

كله چې سرى په پښتو كې ووايي چې:

| |
|---|
| هغه په خپلې ګناه اعتراف وكړو، د څه شي توقع چې هېڅ چا له هغه نه درلودله |

په پورتنى جمله كې د (د څه شي) كلمه يو اوږد مطلب تشريح كوي او هغه دا دى چې (هغه په خپلې ګناه اعتراف وكړو). نو په جرمني ژبه كې هم داسي الفاظ شته چې يو اوږد مطلب په يوې كلمې تشريح كوي. دا كلمه (was) ده، مثال:

| |
|---|
| Er rief gestern uns an, *was* wir nicht erwartet hatten. پرون هغه مونږ ته ټيلفون وكړو، د څه شي توقع چې مونږ له ده نه هېڅ نه درلودله |

په پورتنى جمله كې (was) په لنډ ډول هغه څه بيانوي چې له كامې (,) نه په مخكې جمله كې ياد شول، او هغه دا جمله ده (Er rief gestern uns an) چې مانا يې ده: هغه پرون مونږ ته ټيلفون وكړو. نورې جملې به په جدول كو وګورو.

| Relativsatz mit „was“ | |
|---|---|
| Das, was dort interessant ist, ist die Kultur. هغه څه چې هلته په زړه پورې دي، كلتور دى | Ein eigener Laden ist das, was ich mir schon lange wünsche. يو خپل دكان هغه څه دى چې زه يې له پخوا راهيسي ارماني يم |
| Er hat nur kurz von dem gesprochen, *was* er plant. هغه په لنډ ډول په دې برخه كې خبرې وكړې چې هغه څه پلان لري | Von dem, *was* er plant, hat er nur kurz gesprochen. څه چې د هغه په پلان كې دي، هغه په لنډ ډول ياد كړل |
| Das war das Einzige, was ich hören wollte. هغه يوازينى څه چې ما اورېدل غوښتل، همدا وو | Es gibt vieles, was man wissen muss. ډېر څه شته چې سړى بايد پرې پوه شي |
| Alles, *was* sie gesagt haben, war erlogen. هر هغه څه چې هغوى ويلي دي، دروغ وو | Ich sehe etwas, was du nicht siehst. زه هغه څه وينم چې ته يې نه ويني |

**Übungen:** Bilden Sie Relativsätze!

1. Das ist alles, ………… zählt. هر څه چې په حساب کې راځي، هغه ټول همدا دي
2. …………, der hier arbeitet, wird gut bezahlt.
هر څوک چې دلته کار کوي، ښه معاش ورته ورکول کیږي
3. Alles, ………… Sie dafür brauchen, ist eine Kamera.
هر هغه څه چې ستاسو د دې لپاره پکاریږي، هغه یوه کمره ده
4. …………, die nicht arbeiten wollen, werden nicht bezahlt.
ټول هغه کسان چې کار کول نه غواړي، پیسې ورته نه ورکول کیږي
5. …………, was du sagst, ist wahr. هیڅ شی له دې نه چې ته وایې، واقعیت نلري
.6Du hast dich sehr gesteigert, ………… mich sehr gefreut hat
د پخوا په پرتله ته اوس ډیر ښه شوی یې، په څه شي چې زه ډیر خوښ شوم
.Nicht …………, der gut sprechen kann, ist ein Genie 7
هر څوک چې ښې خبرې کولی شي، نابغه نه دی
ډیر څه چې هغه وایي، واقعیت نلري.Vieles, ………… er erzählt hat, ist unzutreffend .8
Der Gesundheitszustand des Kindes wird jeden Tag besser, ………… seine .9
د ماشوم روغتیایي وضع ورځ په ورځ ښه کیږي، په څه باندې چې.Mutter besonders freut
هغه مور ډیره خوښه ده
10. …………, der krank ist, soll sich behandeln lassen
هر څوک چې ناروغه دی، باید خپله درملنه وکړي

**Lösungen**:
1. was 2. jeder 3. was 4. alle 5. nichts 6. was 7. jeder 8. was 9. was
10. jeder

# Demonstrativpronomen د اشارې نومځرى یا ضمیر

د اشارې نومځري ته په جرمني ژبه کې (hinweisendes Fürwort) وایي. دا هغه ضمیر دی چې یو د پخوا راهیسې څرګند کس او یا یو شي ته ګوته نیسي او هغه یو ځل بیا یادوي. بل دا چې د اشارې ضمیرونه د یو کس، د یو شي او یا د یوې خبرې اهمیت ښکاره کوي. د دې لپاره چې اهمیت یې لاپسې مهم ښکاره شي، نو دا ضمیرونه د جملې په سر کې راځي. په خبرو کې او یا په لوستلو کې دا ضمیرونه نسبتاً په لوړ غږ او په فشار لوستل کیږي. د اشارې له نومځرونو نه هدف دا دی چې په جملو کې یو نوم څوځو واره تکرار نشي. په بل عبارت د دې لپاره چې یو نوم، یو شی، یوه جمله او یا یو مفهوم بیابیا ونه ویل شي، نو په ځای یې تش د اشارې نومځرى یادیږي. د اشارې نومځري دا دي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| der | die | das | dieser<br>دی، دغه سړی | jener<br>هغه، هغه سړی | derjenige<br>هغه یو کس چې |
| derselbe<br>همغه کس | selbst<br>خپله | selber<br>پخپله | derlei<br>دا شان | dergleichen<br>د دې په شان | diejenigen<br>هغه کسان چې |

| Fragesatz | Demonstrativpronomen „die“ |
|---|---|
| Wie findest du die Schuhe?<br>دا بوټان ستا په نظر ښکاره دي؟ | *Die* finde ich sehr hübsch.<br>زما په نظر دا ډیر ښایسته دي |

دلته په دوهمه جمله کې له (die) نه مطلب (die Schuhe) یعني بوټان دي او د دې لپاره چې بوټان یا (die Schuhe) تکرار نشي نو په ځای یې تش د اشارې نومځرى یا (die) یاد شوی دی. بل مثال:

| Fragesatz | Demonstrativpronomen „denen“ |
|---|---|
| Was hälst du von Josef und Meriam? د یوسف او د مریم په برخه کې ستا نظر څه دی؟ | Mit *denen* will ich nichts zu tun haben. زه نه غواړم چې له دوي سره څه سر او کار ولرم |

دلته په دوهمه جمله کې د دې لپاره چې (Josef und Maria) تکرار نشي، نو په ځای یې د اشارې نومځرى او یا (denen) یاد شوى چې البته د (Dativ) په حالت کې دی. بل مثال:

| Fragesatz | Demonstrativpronomen „dies“ |
|---|---|
| Warum hast du zu meinem Freund gesagt, dass ich dumm bin? تـا ولـې زمـا ملګري ته ویلي دي چې زه احمق یم؟ | *Dies* habe ich nicht gesagt دا مې ندي ویلي |

دلته په دوهمه جمله کې (dies) د اشارې نومځرى دی چې د پورتنۍ جملې ټول مفهوم بیانوي. که چېرته (dies) یاد نشي، نو ضرور په ځای به یې دا نیمه جمله (Dass du dumm bist) یادیږي.

کله کله د اشارې نومځرى د اسم نه مخکې راځي، مثال:

| Demonstrativpronomen „diejenigen“ |
|---|
| *Diejenigen*, die schon gestern anwesend waren, können heute nach Hause gehen. هغه کسان چې پرون حاضر وو، هغوى کوى شي چې نن کور ته ولاړ شي |

دلته د اشارې نومځرى، یعني (diejenigen) د جملې په سر کې راغی او وروسته د فرعي جملې په مرسته تشریح شو.

| Demonstrativpronomen „denjenigen“ |
|---|
| Wir gratulieren *denjenigen*, die die Prüfung bestanden haben. مونږ هغه چا ته مبارکي وایو چې په ازموینه کې بریالي شوي دي |

دلته (denjenigen) چې مانا یې ده (هغه چا ته چې) د اشارې نومځرى دی، خو په (Dativ) کې په (Plural) یا د جمعې په حالت کې دی.

کله کله د اشارې نومځرى د جملې په پای کې راځي، سره له دې چې اسم بالکل غیب دی. مثال:

| Demonstrativpronomen „dasselbe“ |
|---|
| Warum fragst du mich jeden Tag *dasselbe*? ته له ما نه ولې هره ورځ همدغه یوه پوښتنه کوې؟ |

دلته د اشارې نومځرى (dasselbe) دی, چې مانا یې ده (همدغه یو شی). په لوستلو کې دغه نومځرى په ډېر فشار او تاکید لوستل کیږي. دا په دې هدف چې د یو کس او یا د یو شي اهمیت څرګند شي. دغه ضمیر کېدى شي چې د یو اسم په ځای یاد شي. کله چې یو ضمیر په تاکید لوستل کیږي نو هغه وخت د جملې په سر کې لیکل کیږي. مثال:

| Fragesatz | Demonstrativpronomen „den“ | |
|---|---|---|
| Kennst du diesen Mann dort?<br>هلته هغه سړی ته یې پېژنې؟ | *Den* habe ich noch nie gesehen.<br>هغه مې هېڅکله ندی لیدلی | |

څنګه چې په پورتني مثال کې لیدل کیږي، (den) د اشارې ضمیر دی چې د جملې په سر کې راغلی دی او په فشار لوستل کیږي. د دې حالت (Akkusativ) دی. د اشارې نومځري په هر حالت کې، یعنې په (Nominativ, Genitiv, Dativ Akkusativ) کې راتلی شي چې ګردان یې په لاندیني جدولونو کې لیکل شوی دی.

## Deklination der Demonstrativpronomen

der – die – das          **د اشارې د ضمیر ګردان**

| | Singular مفرد | | | Plural جمع |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulinum<br>نارینه | Femininum<br>ښځینه | Neutrum<br>مخنث | für alle Genera gleich د ټولو جنسیتونو<br>لپاره همغه یو ضمیر |
| Nominativ | der دا، دی | die دا، دغه | das دا، دی | die دوی |
| Genitiv | dessen د ده | deren د دې | dessen د ده | deren/derer د دوی |
| Dativ | dem ده ته | der دې ته | dem ده ته | denen دوي ته |
| Akkusativ | den دا، دی | die دا، دغه | das دا، دی | die دوی |

اوس به مثالونه په جملو کې وګورو:

| | Beispielsätze mit Demonstrativpronomen: |
|---|---|
| Nominativ | Sind *das* deine Kinder? Ja, *das* sind meine Kinder.<br>دا ستا ماشومان دي؟ هو دا زما ماشومان دي |
| Genitiv | Ich bin mir *dessen* noch nicht sicher. زه په دې لا متیقن نه یم<br>Wir können uns *dessen* nicht erinnern. دا زمونږ په یاد ندي |
| Dativ | Gib *denen* kein Geld! ته هغوی ته پیسې مه ورکوه |
| Akkusativ | Wer ist der Mann? *Den* kenne ich auch nicht.<br>دا سړی څوک دی؟ زه یې هم نه پېژنم |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | (der, die, das) خو د جنسیت ښودلو (Artikel) دي. دلته پوښتنه کیږي چې د (Artikel) او د (Demonstrativpronomen) توپیر څه دی؟ |
| ځواب | یو (Artikel) هېڅکله په یوازې ځان نشي استعمالېدلی او تل باید په څنګ کې یې یو اسم وي. که بې له اسمه استعمال شي نو سړی نپوهیږي چې مطلب یې څه دی. خو کله چې (der, die), das) د (Demonstrativpronomen) په توګه استعمال شي، نو کېدی شي چې په یوازې ځان بې له اسمه راشي. علت یې دا دی چې اسم یې دمخه په یوه بله جمله کې یاد شوی او هر څوک پرې پوهېدی شي چې (der, die, das) له نه مطلب څه دی |

## **Deklination der Demonstrativpronomen**:

dieser – diese – dieses + jener – jene – jenes

| | Singular مفرد | | | Plural جمع |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulinum<br>نارینه | Femininum<br>ښځینه | Neutrum<br>مخنث | für alle Genera gleich د ټولو جنسیتونو لپاره یو ضمیر |
| Nominativ | dieser دا، دغه | diese دغه | dieses دا، دغه | diese دغه ټول |
| Genitiv | dieses د دغه | dieser د دغې | dieses د دغه | dieser د دغو ټولو |
| Dativ | diesem دە ته، دغه ته | dieser دغې ته | diesem دغه ته | diesen دغه ټولو ته |
| Akkusativ | diesen دا ، دغه | diese دغه | dieses دا، دغه | diese دغه ټول |

Beispielsätze:

| Demonstrativpronomen „diese“ | Demonstrativpronomen „jene“ |
|---|---|
| *Dieses* Buch ist interessant.<br>دا کتاب په زړه پورې دی<br>*Dieses* ist interessant. دا په زړه پورې دی<br>*Diesen* Saft mag ich nicht.<br>دا شربت زما نه خوښیږي<br>*Diesen* mag ich nicht. دا زما نه خوښیږي<br>Schließe die Tür mit *diesem* Schlüssel.<br>ته دروازه په دې کیلي خلاصه کړه<br>Schließe die Tür mit *diesem*.<br>ته دروازه په دې خلاصه کړه | *Jenes* Buch ist langweilig.<br>هغه کتاب زړه تنګوونکی دی<br>*Jenes* ist langweilig. هغه زړه تنګوونکی دی<br>Ich ziehe *jenen* Saft vor. زه هغه بل خوښوم<br>Ich ziehe *jenen* vor. زه هغه بل خوښوم<br>Mit *jenem* Schlüssel geht es nicht.<br>په هغه بله کیلي نکیږي<br>Mit *jenem* geht es nicht. په هغې بلې نکیږي |
| Das Rätsel kann mit Hilfe *dieser* und *jener* Hinweise gelöst werden.<br>دا کیسی یا معما د دې او د هغو نښو په مرسته حل کېدلی شي | |

| | |
|---|---|
| یادونه | څنګه چې پورته په لمړی جمله کې لیدل کیږي، (dieses) د یو اسم سره راځي چې هغه (Buch) دی. په دوهمه جمله کې بیا اسم ورسره نشته، خو بیا هم سړی په مطلب پوهېدی شي ځکه چې په پورتنی جمله کې نوم یې یاد شویدی. په وروستی جمله کې (dieser) او (jener) دواړه په یوه جمله کې کارول شوي چې مانا یې ده (د دې او د هغو).<br>خو کله کله د (dieses) په ځای په لنډ ډول (dies) ویل کیږي او په فرعي جمله کې بې له اسمه یادیږي. د دې علت دا دی چې دمخه په جمله کې یو مطلب یاد شوی وي نو ځکه (dies) د مخکینی جملې نه مطلب وي. |

مثال:

Wen hat er bei sich? *Dies* ist seine Mutter. د هغه سره څوك دي؟ دا يې مور ده
Und *jenes* sind seine Kinder. او هغه يې ماشومان دی
*Dies/jenes* ist mein Wagen. دا ـ هغه زما ګاډی دی
Ich wollte euch besuchen, aber *dies* war mir leider nicht möglich.
ما غوښتل چې ستاسو ليدو ته درشم، خو له بده مرغه دا شونی نه و
Wir haben ihm den Eintritt verweigert. *Dies* kann er nicht verstehen.
موږ هغه ته رادننه کېدل منع کړيدي. دی پرې نشي پوهېدلی چې ولې

خو کله چې د (Genitiv) حالت راشي، نو بيا (dieses/jenes) بې له اسمه نشي راتلی. مثال:

Die Einwohner *dieses* Dorfes kenne ich nicht. د دې کلي اوسېدونکي زه نه پېژنم
falsch غلطه جمله = Die Einwohner dieses kenne ich nicht. د دې اوسېدونکي زه نه پېژنم
کومه جمله چې راتلی شي، هغه به په دا شان وي:

پاملرنه (dieser/jener) داسې ګردانيږي لکه (Adjektiv ohne Artikel) . مثال :

Bei schlechtem Wetter bleiben wir zu Hause. په خرابې هوا کې موږ په کور کې پاتې کيږو
Bei *diesem* Wetter bleiben wir zu Hause. په دې هوا کې موږ په کور کې پاتې کيږو

خو که چېرته بيا د (Genitiv) حالت راشي، نو بيا د (dies) سره د (-en) په ځای (-es) يوځای کيږي.
مثال:

Trotz schönen Wetters bleiben wir zu Hause. د ښې هوا سره سره موږ په کور کې پاتې کيږو
Trotz *dieses* Wetters bleiben wir zu Hause. د دې هوا سره سره موږ په کور کې پاتې کيږو

څنګه چې په پورتنيو جملو کې ليدل کيږي، په لومړۍ جمله کې د (Genitiv) په وجه (schön+en) ليکل شوی، خو په دوهمه جمله کې د (dies) سره د (-en) په ځای (-es) راغلي، يعنې (dieses)

**Übungen**:

1. Wenn Kinder krank sind, soll man ihnen interessante Geschichten erzählen. ________ hilft oft mehr als die beste Medizin.
کله چې ماشومان ناروغ وي، نو هغوی ته په زړه پورې کيسې بايد ولوستل شي.
دا له بهترين درمل نه هم لاپسې ډېره ګټه کوي
2. _______ war traurig, dass der Sportler nie Erfolg gehabt hatte.
دا د خواشينی ځای و چې سپورټمين هيڅکله بری نه درلود
3. _______ ist erstaunlich ruhig hier. دلته په حيرانوونکي ډول چوپه چوپيا ده
4. _______ waren Zeiten damals. په هغه وخت کې څه ښه وختونه وو
5. _______ war nicht nett von dir. دا ستا ښه کار نه وو
6. _______ ist gar nicht möglich, was du behauptest. څه چې ته ادعا کوې، دا ناممکنه ده
7. _______ hat mich gewundert, dass er nicht da war. ما تعجب وکړو چې هغه حاضر نه و

8. Bitte ruf mich ruhig öfter an. _______ freut mich sehr, wenn ich von dir höre.
ته ما ته ډېر وخت ټېلفوني زنګونه وهه. زه په دې خوشحالېږم چې ستا له احواله خبر شم

9. Aber eine Tasse Tee wirst du doch trinken dürfen. ______ macht doch nichts.
ته خو به يوه پياله چاى وڅښلی شې. دا خو څه پروا نکوي

**Lösungen**:

1. das 2. es 3. es 4. das 5. das 6. das 7. es 8. es 9. das

**Übungen:**

1. _______ Fahrrad ist wertvoller als_______. دا بايسکل له هغه بل نه ارزښتناکه دی

2. _______ Mantel dort gefällt mir besser als _______ hier.
دا بالاپوش چې هلته دی، له هغه بالاپوش نه چې دلته دی، زما ډېر خوښيږي

3. In welchen Raum sollen wir gehen, in ______ oder_______ ?
مونږ کومې خونې ته ولاړ شو؟ دې ته او يا هغې ته؟

4. In _______ Tüte ist mehr Platz als in _______ dort.
په دې کڅوړه کې ځای ډېر دی نسبت هغې کڅوړې ته هلته

5. Auf welchem Stuhl möchtest du sitzen, auf ______ hier oder auf _______ dort? ته په کومې چوکۍغواړې چې کښنې؟ دلته په دې او که هلته په هغې؟

**Lösungen**:

1. dieses, jenes 2. der, dieser 3. diesen, jenen 4. dieser, jener 5. diesem, dem

**Übungen:** Wählen Sie das richtige Demonstrativpronomen aus.

1. Kannst du dich noch an Herrn Marx erinnern? ______ habe ich gestern im Supermarkt getroffen. ښاغلی مارکس ستا په ياد دی؟ هغه ما پرون په مارکېټ کې وليدو

2. Hast du mal wieder was von den beiden Brüdern gehört? Bei ______ war ich neulich zu Besuch.
تا د دې دواړو ورونو نه څه اورېدلي دي؟ لنډ وخت مخکې زه د هغوی په کور کې وم

3. Wo sind die neuen Tassen? ______ habe ich schon in den Schrank gestellt.
دا نوې پيالې چېرته دي؟ هغه ما په الماری کې ايښې دي

4. Warum bist du nicht mit dem Auto gekommen? _______ ist kaputt.
ته ولې په موټر کې رانغلې؟ هغه خراب دی

5. Der Unterricht fällt heute aus. Hat Michael dir das nicht gesagt? – Doch, aber ______ habe ich es nicht geglaubt.
نن درس نشته. ميکايل تا ته دا ندي ويلي؟ ولې نه، خو ما د هغه په خبرو باور ونکړو

**Lösung:**

1. den 2. denen 3. die 4. das 5. dem

**Übungen:**

Wählen Sie das richtige Demonstrativpronomen aus.

1. Jakob trägt heute ________ Pullover wie gestern.
يعقوب نن همغه بنېن اغوستی دی چي پرون يي اغوستی و
2. Im Kino läuft schon seit Wochen ________ Film.
په سينما کي د اونيو راهيسي همغه يو فلم وړاندي کيږي
3. Das sind alles Produkte ________ Unternehmens. دا د همغي يوې موسسي توليدات دي
4. Wenn zwei das Gleiche tun, ist es noch lange nicht________ .
که چېرته دوه کسه يو شان کار وکړي، دا په دي مانا نده چي دا همغه يو کار دی
1. Das Kind will immer ________ Geschichte hören.
دا ماشوم غواړي چي تل همغه يوه کيسه واوري

**Lösungen:**
1. denselben 2. derselbe 3. desselben 4. dasselbe 5. dieselbe

## Deklination der Demonstrativpronomen:
Relativsätze mit „derjenige“

د پورتنی برخي تشريحات په لاندي برخه کي هم کارول کېدی شي. کله چي سړی په پښتو کي ووايي چي:

هر چا چي دا کار کړی دی، ځان دي راښکاره کړي

په پورتنی جمله کي د جملي په سر کي (هر چا) راغلی دی، د هر چا په ځای (هر څوک) هم راتلی شي. په جرمني ژبه کي هم همدا شان جملي جوړېدی شي چي د جملي په سر کي د يو کس د ښودني ضمير يا (Demonstrativpronomen) راځي. (هر چا) يا (هر څوک) ته په جرمني ژبه کي ويل کيږي (derjenige). دا جمله په دي ډول ژباړل کيږي:

Derjenige, der das getan hat, soll sich melden.

**Das Demonstrativpronomen derjenige, diejenige, dasjenige**

| | Singular | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulinum | Femininum | Neutrum | |
| Nominativ | derjenige<br>همغه څوک چي | diejenige<br>همغه څوک چي | dasjenige<br>همغه څوک چي | diejenigen<br>همغه کسان چي |
| Genitiv | desjenigen<br>د همغه چا چي | derjenigen<br>د همغي چا چي | desjenigen<br>د همغه چا چي | derjenigen<br>د همغو کسانو چي |
| Dativ | demjenigen<br>همغه چا ته چي | derjenigen<br>همغي چا ته چي | demjenigen<br>همغه چا ته چي | denjenigen<br>همغو کسانو ته چي |
| Akkusativ | denjenigen<br>همغه څوک چي | diejenige<br>همغه څوک چي | dasjenige<br>همغه څوک چي | diejenigen<br>همغه کسان چي |

نور مثالونه په جملو کي:

| | |
|---|---|
| Nominativ | *Derjenige*, *der* oft Sport treibt, lebt gesünder.<br>هغه څوك چې ډېر وخت سپورټ کوي، هغه روغ ژوند کوي<br>Gerade diejenige Frau, die mir geholfen hat, ist verschwunden.<br>هغه ښځه چې له ما سره يې مرسته کړې وه، اوس ورکه شوې ده |
| Akkusativ | Ich habe *denjenigen* gesehen, der gestern zwei Tore geschossen hat. ما هغه څوك وليد چې پرون يې دوه گولونه وهلي وو |
| Dativ | Das musst du *demjenigen* zurückgeben, von dem du das genommen hast.<br>ته بايد دا شی هغه چا ته بېرته ورکړې، له چا نه چې دې اخيستی دی |
| mit Präposition | Ich fahre nicht mit demjenigen, der keinen Führerschein hat.<br>زه له هغه چا سره نه ځم چې لېسنس نه لري |
| Plural | Diejenigen, die mir helfen, sind meine besten Freunde.<br>هغه کسان چې له ما سره مرسته کوي، زما د ټولو نه ښه ملګري دي<br>Diejenigen, die keinen Pass dabei haben, werden nicht reingelassen. هغه کسان چې پاسپورټ ورسره نشته، دننه نه پرېښودل کيږي |

مثالونه په جملو کې ګورو

| | |
|---|---|
| Sie ist *diejenige* Frau, die angerufen hat. | دا هغه ښځه ده چې ټېلفون يې کړی و |
| Sie ist *diejenige*, die angerufen hat. | دا هغه يوه ده چې ټېلفون يې کړی و |
| Er verkauft zuerst *diejenigen* Früchte, die noch frisch aussehen.<br>هغه لومړی هغه مېوې خرڅوي چې لا تازه ښکاري | |
| Er verkauft zuerst *diejenigen*, die noch frisch aussehen.<br>هغه لومړی هغه څه خرڅوي چې تازه ښکاري | |
| mit *derjenigen* faulen Ausrede, die mich am meisten irritiert<br>په هغه ناوړه بانه چې زما ماغزه له ټولو نه ډېر ګډوډوي | |
| mit *derjenigen*, die mich am meisten irritiert. په هغه يوه چې زما ماغزه له ټولو نه ډېر ګډوډوي | |
| das Gewissen *desjenigen* Menschen, der schuldig ist. | د هغه انسان وجدان چې پړ دی |
| das Gewissen *desjenigen*, der schuldig ist. | د هغه چا وجدان چې پړ دی |

**Übungen**: Wählen Sie das richtige Demonstrativpronomen aus!

1. _______ , der etwas kaputt macht, muss es bezahlen.
هغه څوك چې يو شی ماتوي، نو تاوان به يې ورکوي
2. Ihre Tochter ist_______ , die immer viele Fragen stellt.
د هغوی لور هغه يوه ده چې تل پوښتنې کوي
3. ________ , der meine Tasche findet, gebe ich eine Belohnung.
هغه چا ته چې زما بکس يې پيدا کړو، زه يو انعام ورکوم
4. Das Geschenk ist für________ , der heute Geburtstag hat.
دا سوغات د هغه چا لپاره دی چې نن کليزه يې ده
5. Wir dürfen nur die Bilder _________ veröffentlichen, der uns die Zustimmung dafür gegeben hat.
مونږ ته د هغه چا د انځورونو د خپرولو اجازه ده چې مونږ ته يې خپله موافقه راکړې وه

**Lösungen:**

1. derjenige 2. diejenige 3. demjenigen 4. denjenigen 5. desjenigen

**Übungen**:

1. (Maskulinum)___________, der das getan hat, soll sich melden.
هغه چا چې دا کار کړی دی، ځان دې راوښايي
2. Gerade (Femininum)_________ Frau, die mir geholfen hat, ist verschwunden.
بل ځوك نه، هغه ښځه چې له ما سره يې مرسته کړېده، ورکه شوې ده
3. (Neutrum) _________, was er am liebsten tut.
هغه څه چې هغه يې له ټولو نه په ډېره خوښه کوي
4. (Plural) _________ Ereignisse, die meine Situation veränderten.
هغه پيښې چې زما حالت يې رابدل کړو
5. (Maskulin, Dativ) Ich habe das Geld ________ gegeben, der zuerst gekommen ist.
ما پيسې هغه چا ته ورکړې دي چې له ټولو نه لومړی راغلی دی
6. (Plural) Ich möchte auf die Fragen _________Abgeordneten eingehen, die noch anwesend sind.
زه د هغو وکيلانو پوښتنو ته ورځم چې حاضر وو
7. Der Staatspräsident spricht allen Bürgern, _______ Familienangehörige ums Leben gekommen sind, sein Beileid aus.
ولسمشر هغه ټولو وګړو ته تسليت وايي چې د هغوی د کورنۍ غړي مړه شويدي
8. Es muss (Dativ, Plural) ___________ schnelle Hilfe zuteil werden, die ihrer bedürfen.
هغه چا ته دې ژر مرسته ورسيږي چې ورته اړتيا لري
9. Er wurde ausgerechnet von (Dativ, Plural)___________ umgebracht, die ihn an die Macht gebracht haben.
هغه د هغه چا له خوا ووژل شو چې دی يې قدرت ته رسولی و
10. Ich habe den Namen ___________ gefunden, den du gestern gesucht hast.
ما د هغه چا نوم پيدا کړو چې پرون تا لټوه
11. Man kann den Wert__________ , der das Dokument ausgearbeitet hat, nicht hoch genug schätzen. سړی د هغه چا ارزښت چې دا سند يې جوړ کړی دی، که هر ځومره لوړ وارزوي، بيا هم کافي به نه وي
12. Die Zahl der gesunden Männer entspricht ___________ der Frauen, die normal-gewichtig sind. د روغو نارينو شمېره د هغو ښځو سره يو شان ده چې وزن يې نورمال دی
13. (Neutrum, Singular)_________ Kind, das die richtige Lösung hat, bekommt einen Preis. هغه ماشوم ته انعام ورکول کيږي چې صحيح ځواب ورسره دی
14. Während dieses Gesprächs stand (Feminin, Singular) ________ , von der die Rede war, am Fenster.
د دې خبرو اترو په لړ کې، هغه ځوك چې په برخه کې يې خبرې کېدلې، په کړکۍ کې ولاړه وه
15. (Feminin, Singular) ________, die gestern ein Fahrrad haben wollte, fährt heute mit einem Auto. هغه يوه چې پرون يې يو بايسکل غوښتو، نن په يو موټر کې ګرځي

**Lösungen:**

1. derjenige 2. diejenige 3. dasjenige 4. diejenigen 5. demjenigen
6. derjenigen 7. derjenigen 8. denjenigen 9. denjenigen 10. desjenigen
11. desjenigen 12. derjenigen 13. dasjenige 14. diejenige 15. diejenige

## Deklination der Demonstrativpronomen:

derselbe – dieselbe – dasselbe

| Kasus حالت | Maskulinum نارینه | Femininum ښځینه | Neutrum مخنث | Plural جمع |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ | derselbe<br>همدا شی، همدا څه | dieselbe<br>همدا شی، همدا څه | dasselbe<br>همدا شی | dieselben<br>همدا شیان |
| Genitiv | desselben<br>د همده شي | derselben<br>د همدې شي | desselben<br>د همدې شي | derselben<br>د همدو شیانو |
| Dativ | demselben<br>همده شي ته | derselben<br>همدې شي ته | demselben<br>همدې شي ته | denselben<br>همدو شیانو ته |
| Akkusativ | denselben<br>همدا شی | dieselbe<br>همدا شی | dasselbe<br>همدا شی | dieselben<br>همدا شیان |

مثالونه به په جملو کې وګورو

| | |
|---|---|
| Es ist *dieselbe* Frau, die schon einmal angerufen hat. | دا همغه ښځه ده چې پخوا یو ځل یې ټیلفون کړی و |
| Es ist *dieselbe*, die schon einmal angerufen hat. | دا همغه ده چې یو ځل یې زنګ وهلی و |
| Er trägt heute *denselben* Anzug wie gestern. | هغه نن همغه دریشي اغوستي ده چې پرون یې اغوستي وه |
| Er trägt heute *denselben* wie gestern. | هغه نن همغه یوه اغوستي چې پرون یې اغوستي وه |
| mit *derselben* Ausrede wie das letzte Mal | لکه د وروستي ځل په شان په همغه یوه بانه |
| mit *derselben* wie das letzte Mal | لکه د وروستي ځل په شان په همغه یوې |

پوښتنه د (denselben) او د (den gleichen) توپیر په څه کې دی؟ اوس به یوه جمله وګورو.

Sie fahren denselben Wagen = Sie teilen sich einen Wagen.
هغوی همغه یو موټر چلوي = همغه یو موټر دی چې دوی پخپلو مینځو کې په ګډه ورنه کار اخلي

Sie fahren den gleichen Wagen = Jeder hat einen eigenen Wagen, die beide vom selben Typ sind. = هغوی هر یو ځان ته بیل بیل موټرونه لري
هغوی همغه یو شان موټر چلوي، خو دواړه د همغه یو ماډل موټرونه دي

دې ته هم پام ونیسئ:

| | | |
|---|---|---|
| am selben Ort = | په همغه یو ځای کې | = an demselben Ort |
| im selben Team = | په همغه یوې ډلې کې | = in demselben Team |

| | | |
|---|---|---|
| vom selben Laden = | له همغي يوې هټۍ نه | = von demselben Laden |
| zur selben Zeit = | په همغه يو وخت کې | = zu derselben Zeit |

**ein und derselbe**

| | |
|---|---|
| ein und dieselbe Ursache | همغه يو علت |
| aus ein und derselben Quelle | له همغي يوې چينې نه |
| mit ein und demselben Lehrer | له همغه يو ښوونکي سره |

په پورتنو جملو کې (ein) د ډېر ټينګار لپاره کارول کيږي، يعني بل کس يا بل شی نه بلکې همغه يو کس يا يو شی.

**Übungen:**

1. Es ist genau _______ Mann, den wir vorhin schon einmal gesehen haben.
دا همغه سړی دی چې دمخه مو يوځل ليدلی و
2. _______ Rat billigte eine Gehaltserhöhung. همدغي شورا د معاشونو لوړېدل منظور کړل
3. Es war _______ Hund. دا همغه يو سپی و
4. In der Tat handelt es sich um etwas Anderes, obwohl der Name _______ ist.
په واقعيت کې دا بل شی دی، سره له دې چې نوم يې همغه يو دی
5. Es war ein und _______ Dieb. دا همغه يو غل و
6. Sie hatte _______ Kleid an wie am Vortag.
د هغې په تن کې همغه جامې وې چې يوه ورځ دمخه يې اغوستې وې
7. Dort ist die _______ Situation wie vor zwei Jahren.
هلته وضع همغه ده چې دوه کاله دمخه وه
8. Beide Türen führen in ein und _______ Zimmer.
دواړه دروازې همغه يوې کوټې ته ورځي
9. Ich selbst bin am Abend vorher genau _______ Strecke gefahren.
ما پخپله يو ماښام دمخه په همدغه لار کې موټر چلولی دی
10. Ich finde, dass die Umstände _______ sind wie damals in Afrika.
زما په نظر حالات همغه دي چې پخوا په افريقه کې وو
11. Er ist darüber besorgt, dass noch immer _______ Fehler auftreten.
هغه دې ته په انديښنه کې دی اوس هم همغه غلطۍ بيا راپيښيږي
12. Ich vertrete ihn als Mitglied _______ Ausschusses und _______ Partei.
زه د هغه د همغه يو کميسيون او د همغه يو ګوند استازيتوب کوم
13. Es handelt sich um verschiedene Aspekte ein und _______ Problems.
دا د همغې يوې ستونځې مختلف اړخونه دي
14. Das Abkommen wurde im Juli _______ Jahres unterzeichnet.
دا تړون د همغه کال د جولای په مياشت کې لاسليک شو
15. _______ gilt für die Pressefreiheit. همدغه څه د مطبوعاتو د ازادۍ لپاره هم ارزښت لري
16. Sie können innerhalb _______ Dokuments widersprüchliche Behauptungen feststellen. تاسو کوی شئ چې په همدې يو سند کې ضدي او نقيضي ادعا ګاني ووينئ
17. Die Schulleitung steht vor _______ Problem.
د ښوونځي اداره د همغه يوې ستونځې سره مخامخ ده

18. Andere Untersuchungen kamen zu _______ Schluss.
نوري پلټنې همغې يوې نتيجې ته ورسېدلې
19. Das misslang aus _______ Grund. دا په همدغه دليل له ناکامۍ سره مخامخ شو
20. Die Steine werden so verteilt, dass alle ________ Abstand voneinander haben. دا تيږې داسې وېشل کيږي چې ټولې به په همغه يوه فاصله له يو بل نه ليرې وي
21. Wie sollen wir mit ________ Finanzmitteln größere Erfolge an den Tag legen? مونږ په همدغه مالياتو باندې څه شان لوړ برياليتوبونه لاس ته راوړو؟
22. Das kann nur mit ________ Worten bestätigt werden.
دا تش په همدغه الفاظو تصديقېدلی شي
23. Wir bewohnen alle _______ Planeten. مونږ ټول په همدغه يو ګرځنده ستوري کې اوسيږو
24. Es dürfen nicht ________ Fehler gemacht werden. همدغه غلطۍ بايد بيا ونشي
25. ________ Probleme tauchen Jahr für Jahr immer wieder auf.
همدغه ستونځې کال په کال بيا بيا راپيښيږي
26. Wir arbeiteten alle am ______ Projekt. مونږ ټول په همغه يوه پروژه کار کوو
27. Wir sind immer noch am ________ Punkt, an dem der Philosoph auch war.
مونږ اوس هم په همغه يو ټکي کې پاتې يو چې فيلسوف هم پرې پاتې و
28. Im _______ Jahr ereigneten sich viele Unfälle. په همدغه کال کې ډېر ټکرونه وشول
29. Wie kann man nur so etwas im ______ Satz nebeneinander schreiben?
داسې يو څه په همغه يوه جمله کې څنګه يو ځوك خوا په خوا ليکلی شي؟
30. Im ______ Sinne unterstützen wir den Bericht der Kommission.
په همدغه موخه مونږ د کميسيون د رپوټ ملاتړ کوو
31. Die Bestätigung kann nur vom ______ Platz aus erfolgen.
د دې تصديق تش له همدغه يو ځای نه کېدی شي
32. Du kannst nicht im ______ Moment stark und schwach sein.
ته نشې کولی چې په همغه يوه شېبه کې قوي او کمزوری واوسې
33. Im ______ Moment fuhr ein Auto an und erfasste das Kind!
په همدغه شېبه کې يو موټر روان شو او ماشوم يې ووهو
34. vom ______ Stern له همغه يو ستوري نه
35. Man kann Klatschmohn und Tulpen alle zur _____ Zeit blühen lassen.
سړی کولی شي چې رېدی ګل او غاټول په همغه يو وخت کې غوټۍ کولو ته پرېږدي
36. Und die sind alle zur ______ Zeit aktiv. او هغوی ټول په همدغه يو وخت کې فعال دي
37. Zur _______ Zeit ereignete sich anderenorts etwas ganz anderes.
په همدغه وخت کې په بل ځای کې بالکل نورې پېښې وشوې
38. Die beiden Krankheiten gehören zur _______ Familie.
دا دواړه ناروغۍ د همدغې يوې کورنۍ ناروغۍ دي

**Lösungen**:
1. derselbe 2. derselbe 3. derselbe 4. derselbe 5. derselbe 6. dasselbe 7. dieselbe 8. Dasselbe 9. dieselbe 10. dieselben 11. dieselben 12. desselben, derselben 13. desselben 14. desselben 15. dasselbe 16. desselben 17. demselben 18. demselben 19. demselben 20. denselben 21. denselben 22. denselben 23. denselben 24. dieselben 25. dieselben 26. selben 27. selben 28. selben 29. selben 30. selben 31. selben 32. selben 33. selben 34. selben 35. selben 36. selben 37. selben 38. selben

**Deklination der Demonstrativpronomen:**
solcher, solche, solches **د اشارې ضمير ګردان (له دا شان کلمې سره)**

wie das Adjektiv ohne Artikel داسې ګردانيږي لکه بې ارتيکله صفت

## Ohne Artikel بې له ارتيکله

| Kasus حالت | Maskulin نارينه | Feminin ښځينه | Neutrum مخنث | Plural جمع |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ | solcher<br>دا شان | solche<br>دا شان | solches<br>دا شان | solche<br>دا شان |
| Genitiv | solchen<br>د دې شان | solcher<br>د دې شان | solchen<br>د دې شان | solcher<br>د دا شان |
| Dativ | solchem<br>دې شان ته | solcher<br>دې شان ته | solchem<br>دې شان ته | solchen<br>دا Duش ان ته |
| Akkusativ | solchen<br>دا شان | solche<br>دا شان | solches<br>دا شان | solche<br>دا شان |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Wer solches behauptet, … | خوک چې دا شان ادعا کوي ... |
| Wir hatten solche Angst! | مونږ داسې ډېر ډارېدلو |
| Rede nicht solchen Unsinn! | داسې چټيات مه وايه |
| Das macht solchen Spaß! | په دې کې د سړي دومره ډېر ساعت تېرېږي |
| Wer würde solchem Mann glauben? | د داسې سړي په خبرو به څوک باور وکړي |

## Bestimmter Artikel له ځرګند ارتيکل سره

| Kasus حالت | Maskulinum | Femininum | Neutrum | Plural |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ | der solche<br>دغه شان | die solche<br>دغه شان | das solche<br>دغه شان | die solchen<br>دغه شان |
| Genitiv | des solchen<br>د دغه شان | der solchen<br>د دغې شان | des solchen<br>د دغه شان | der solchen<br>د دغو شان |
| Dativ | dem solchen<br>دغه شان ته | der solchen<br>دغې شان ته | dem solchen<br>دغه شان ته | den solchen<br>دغو شان ته |
| Akkusativ | den solchen<br>دغه شان | die solche<br>دغه شان | das solche<br>دغه شان | die solchen<br>دغه شان |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| keine solchen Ausreden | دا شان بانې نه |
| einige solche Ideen | څو داسې مفکورې |
| Ein Staat, der solche Gesetze hat, hat hier keinen Platz.<br>يو دولت چې دا شان قانونونه لري، په دې ټولنه کې ورته ځای نشته | |
| Wer liest denn solchen Schwachsinn? | داسې چټيات څوک لولي ؟ |
| Das tun alle, die solche Zeiten erleben. | دا ټول هغه کسان کوي، چې داسې وختونه لري |

## Unbestimmter Artikel ناڅرګنده ارتیکل سره

| | Maskulinum | Femininum | Neutrum | Plural |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ | ein solcher<br>یو دغه شان | eine solche<br>یوه دغه شان | ein solches<br>یو دغه شان | keine solchen<br>هیڅ دغه شان |
| Genitiv | eines solchen<br>د یو دغه شان | einer solchen<br>د یوې دغې شان | eines solchen<br>د یو دغه شان | keiner solchen<br>د هیڅ دغو شانو |
| Dativ | einem solchen<br>یو دغه شان ته | einer solchen<br>یوې دغې شان ته | einem solchen<br>یو دغه شان ته | keinen solchen<br>هیڅ دغو شانو ته |
| Akkusativ | einen solchen<br>یو دغه شان | eine solche<br>یوه دغه شان | ein solches<br>یو دغه شان | keine solchen<br>هیڅ دغه شان |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ein solches Verhalten ist seltsam. | دا شان یو چلند عجیب و غریب دی |
| Ein solcher Unfall genügt. | داسې یو ټکر کفایت کوي |
| Wir sollten uns eines solchen Verrats schämen. | په داسې خیانت باندې باید مونږ وشرمیږو |
| Was wären die Folgen eines solchen Vorgehens? | د داسې چلند پایلې به څه وي؟ |
| Einem solchen Bericht kann ich nicht zustimmen. | له داسې یو رپوټ سره زه موافقه نشم کولی |
| Wir wollen, dass einem solchen Betrug ein Ende gesetzt wird. | مونږ غواړو چې داسې درغلی ته د پای ټکی کېښودل شي |
| Einen solchen Weg sollten wir nicht einschlagen. | داسې لار باید مونږ ونه نیسو |
| Diese Richtlinie ist Teil einer solchen Politik. | دا اصول د داشان سیاست یوه برخه ده |
| Worin besteht der Nutzen einer solchen Maßnahme? | د داسې اقدام ګټه به څه وي؟ |
| Persönlich habe ich keine solchen Geschenke erhalten. | دا شان سوغاتونه شخصا ما ته ندي راکړل شوي |

**Übungen**:

1. Ich habe viele ________ Kinder vorm Ertrinken gerettet.
ډېر داسې ماشومان ما په اوبو کې له ډوبېدو نه ژغورلي دي
2. Die Kosten _________ Reparaturen sind hoch. د داسې ترمیماتو لګښت ډېر جګ دی
3. Ich verbitte mir ________ Ausdrücke! زه داسې الفاظ نشم اورېدی
4. Er hat ________ Möglichkeiten nicht genutzt. هغه له داسې امکاناتو نه استفاده ونکړه
5. Wer unterzeichnet ein _________ Abkommen? داسې یو تړون څوک لاسلیکوي؟
6. Die Verwendung eines __________ Geräts ist hier verboten.
د داسې یوې آلې استعمال دلته منع دی
7. Der Minister hat sich zu einer _________ Unterstützung bereit erklärt.
وزیر د داسې یو ملاتړ لپاره خپل چمتووالی ښودلی دی
8. Der Staatsanwalt kann zu einem __________ Verbrechen nicht schweigen.
د یو داسې جنایت لپاره څارنوال غلی پاتې کېدی نشي
9. Einen __________ Satz kann man auch überhören.
داسې یوې جملې ته سړی ځان کوڼ نیولی نشي

10. Der Präsident hat keinen __________ Vorschlag erhalten.
رئيس داسي يو وړانديز لاس ته راوړی ندی
11. Ich möchte keine ___________ Ausreden hören. زه نه غواړم چي داسي بانې واورم
12. Es sind keine __________ Verträge vorgesehen.
دا شان قراردادونه په نظر کې نيول شوي ندي
13. Persönlich habe ich keine _________ Geschenke erhalten.
ماته شخصاً داسي سوغاتونه راکړل شوي ندي
14. Der Vertrag bedurft keiner __________ Prüfung. د دي قرارداد ازمايلو ته اړتيا نشته
15. Es darf nicht zu einer __________ Diskriminierung kommen.
دا شان تبعيض بايد رانه‌پيښ نشي

**Lösungen**:
1. solcher 2. solcher 3. solche 4. solche 5. solches 6. solches 7. solchen
8. solchen 9. solchen 10. solchen 11. solchen 12 solchen 13. solchen
14. solchen 15. solchen

## Demonstrativpronomen, die nicht dekliniert werden
## د اشارې هغه ضميرونه چې نه ګردانيږي

(selbst) او (selber) دا هغه ضميرونه دي چې نه ګردانيږي. مثالونه:

| | |
|---|---|
| Er musste sich selbst helfen. | هغه مجبور شو چې له ځان سره پخپله مرسته وکړي |
| In einem Kurs kann man sehr viel über sich selbst lernen. | په يو کورس کې سړی کوی شي چې د ځان په هکله ډېر معلومات لاس ته راوړي |
| Mein Sohn hat selbst das Radio repariert. | زما زوی دا راډيو پخپله جوړه کړه |
| Dass du dir wehgetan hast, bist du selber schuld. | دا چې ته ژوبل شوي، دا ستا خپله ګناه ده |
| Der Fahrer selbst blieb unverletzt. | ډريور پخپله ټپي نشو |
| die Importe aus dem Land selbst | له همدې هېواد نه واردات |
| Kleinigkeiten repariert man selber. | واړه شيان سړی پخپله ترميموي |
| Das hat er sich selbst zuzuschreiben. | د دي ګناه په هغه راځي |
| Er ist selber schuld. | ګناه د هغه خپله ده |

Beispielsätze mit Demonstrativpronomen: dergleichen und derlei

| | |
|---|---|
| Aber nichts dergleichen geschieht. | خو هېڅ داسي کار نکيږي |
| Nichts dergleichen ist geschehen. | هېڅ داسي کار ندی شوی |
| Bislang hatten wir nichts dergleichen. | تر اوسه پورې مونږ هېڅ داسي څه نه درلودل |
| Dergleichen kommt immer wieder vor. | داسي څه هر وخت راپېښيږي |
| Derlei Unsinn hört man oft. | داسي چټيات ډېر وخت اورېدل کيږي |
| Er stellt häufig derlei Fragen. | دا شان پوښتني هغه ډېر وخت کوي |
| Offiziell ist von derlei Aktionen nichts bekannt. | په رسمي ډول داسي اقدامونه څرګند نه دي |

**Übungen**:

1. ………… Dinge kommen immer wieder vor. داسې شيان بيا بيا راپېښېږي
2. Er hat immer einen Apfel oder ………… in der Tasche.
هغه سره تل يوه مڼه يا داسې بل څه په جيب کې وي
3. ………… Worte muss man sich öfter anhören.
سړی مجبور دی چې ډېر وخت داسې الفاظ واوري
4. Auch in anderen Ortschaften gibt es ………… Plätze.
په نورو سيمو کې داسې ځايونه شته
5. ………… Fragen schätzt er gar nicht. داسې پوښتنو ته هغه هېڅ ارزښت نه ورکوي

**Lösungen**:
dergleichen 2. dergleichen 3. derlei 4. derlei 5. dergleichen

## Interrogativpronomen سواليه ضميرونه

سواليه ضمير ته په جرمني ژبه کې (fragendes Fürwort) وايي. دغه نومځری د يو کس، د يوې موضوع او يا د يو خيالي مفهوم په برخه کې پوښتنه کوي چې دا څوک دی، دا د چا دی، دا چاته دی، او يا د چا لپاره دی. لکه د نورو نومځرو په ډول دا ضمير په ټولو حالاتو کې کارول کيږي، يعنې په (Nominativ, Genitiv, Dativ, Akkusativ) کې.

| Nominativ | Genitiv | Dativ | Akkusativ |
|---|---|---|---|
| wer oder was | wessen | wem | wen oder was |

مثالونه به په جملو کې وګورو:

| | |
|---|---|
| Wer war das? | دا څوک و |
| Wessen Hund ist das? | دا د چا سپی دی؟ |
| Wem soll ich helfen? | زه له چا سره مرسته وکړم |
| Wen kennst du in dieser Stadt? | ته په دې ښار کې څوک پيژنې؟ |

**Übungen:**: Wählen Sie das passende Interrogativpronomen aus.
1. ________ hat den Brief geschrieben? دا ليک چا ليکلی دی؟
2. ________ Schuhe stehen vor der Tür? د چا بوټان د دروازې په مخکې پراته دي؟
3. ________ willst du anrufen? ته چا ته غواړې چې ټيلفون وکړې؟
4. ________ esst ihr normalerweise zum Frühstück?
د سبانارې لپاره تاسو په عادي حالت کې څه شی خورئ؟
5. ________ sollen wir gratulieren? مونږ چا ته مبارکي ووايو؟

**Lösungen:**
1. wer 2. wessen 3. wen 4. was 5. wem

**Übungen:**

Schreiben Sie Fragen. Ersetzen Sie dabei den unterstrichenen Teil durch ein Interrogativpronomen.

1. Die Polizei kennt *den Dieb*. → ……………………………………
پولیس غل پیژني (پوښتنه: پولیس څوك پیژني)

2. Er hat *die Tür* zugemacht. → ……………………………………
هغه دروازه پورې کړه (پوښتنه: هغه څه شی پورې کړو)

*3. Sein* Computer ist kaputt. → ……………………………………
د هغه کمپیوټر خراب دی (پوښتنه: د چا کمپیوټر خراب دي؟)

4. Die Schüler antworten *dem Lehrer*. → ……………………………………
زده کوونکی ښوونکي ته ځواب وايي (پوښتنه: چا ته زده کوونکی ځواب وايي)

*5. Meine Cousine* besucht uns. → ……………………………………
زما د ترور لور زمونږ لیدو ته راځي (پوښتنه: څوك زمونږ لیدو ته راځي؟)

*6. Das Wetter* ist schön. → ……………………………………
هوا ښه ده. (پوښتنه: څه شی ښه ده؟)

7. Sie haben *den Sänger* getroffen. → ……………………………………
هغوی له سندرغاړی سره ولیدل (پوښتنه: له چا سره یې ولیدل؟)

8. Das Kind hat *ein Gedicht* gelernt. → ……………………………………
ماشوم یو شعر زده کړو (پوښتنه: ماشوم څه شی زده کړو؟)

9. Wir können *der Polizei vertrauen*. → ……………………………………
مونږ په پولیس اعتماد کوی شو (پوښتنه: مونږ په چا اعتماد کوی شو)

10. *Meine Freunde* sind nach Berlin gefahren. → ……………………………
زما ملګري برلین ته تللي دي (پوښتنه: څوك برلین ته تللي دي؟)

**Lösungen:**

1. Die Polizei kennt den Dieb → *Wen* kennt die Polizei?
2. Er hat die Tür zugemacht. → *Was* hat er zugemacht?
3. Sein Computer ist kaputt. → *Wessen* Computer ist kaputt?
4. Die Schüler antworten dem Lehrer. → *Wem* antworten die Schüler?
5. Meine Cousine besucht uns. → *Wer* besucht uns?
6. Das Wetter ist schön. → *Was* ist schön?
7. Sie haben den Sänger getroffen. → *Wen* haben sie getroffen?
8. Das Kind hat ein Gedicht gelernt. → *Was* hat das Kind gelernt?
9. Wir können der Polizei *vertrauen.* → *Wem* können wir vertrauen?
10. Meine Freunde sind nach Berlin gefahren. → *Wer* ist nach Berlin gefahren?

# Indefinitpronomen ناڅرګند ضمیرونه، مجهول ضمیرونه

ناڅرګند نومځري يا ضمير ته په جرمني ژبه کي (unbestimmtes Fürwort) وايي. ناڅرګند يا مجهول نومځرى هغه ضمير دى چي اشخاص او يا شيان په ناڅرګند ډول يادوي. كه چېرته مطلب يو كس نه وي، نو دا ضمير نه ځرګندوي چي د دي كس نوم څه دى، د كسانو شمېره څومره ده؟. دا ضمير دومره يادوي چي يو كس، يو څا، هر يو، هر كس، ځيني كسان، ټول كسان، هېڅ څوك نه او داسي نور. ناڅرګند نومځري دا دي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| all<br>ټول | alle<br>ټول | allesamt<br>ټول په ګډه | andere<br>نور | beide<br>دواړه |
| einer<br>يو كس | einige<br>يو څو كسه | etliche<br>ډېر شمېر كسان | ein bisschen<br>ډېر لږ | ein wenig<br>لږ غوندي |
| ein paar<br>يو څو | etwas<br>يو څه | irgendetwas<br>يو څه نه يو څه | irgendein<br>يو تن نه يو تن | irgendwelche<br>كوم كسان |
| Irgendwas<br>كوم شى | irgendwer<br>كوم كس | jeder<br>هر يو | jedweder<br>هر يو | jeglicher<br>هر شان |
| jedermann<br>هر څوك | jemand<br>يو څوك | irgendjemand<br>يو څوك نه يو څوك | kein<br>هېڅ يو | man<br>سړى |
| manch<br>ځيني | mancher<br>ځيني كس | mehrere<br>ډېر كسان، ډېر څه | meinesgleichen<br>زما په شان كس | nichts<br>هېڅ نه |
| niemand<br>هېڅ څوك نه | sämtlich<br>ټول | welche<br>كوم | wer<br>څوك | was<br>څه، څه شى |
| Sie werden substantivisch oder adjektivisch gebraucht.<br>ځيني د اسم په توګه او ځيني د صفت په توګه كارول كيږي | | | | |

**jemand – niemand –** دغه ضميرونه ګردانيږي

| | | |
|---|---|---|
| Nominativ | jemand يو كس، يو چا | niemand هېڅ څوك، هېڅ چا |
| Genitiv | jemandes د يو كس، د يو چا | niemandes د هېڅ چا |
| Dativ | jemandem يو كس ته، يو چا ته | niemandem هېڅ چا ته نه |
| Akkusativ | jemanden يو كس، څو څوك | niemanden هېڅ څوك نه |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Hat dir jemand geholfen?<br>له تا سره چا مرسته كړېده؟ | Niemand hat mir geholfen.<br>له ما سره هېڅ چا مرسته نده كړي |
| Bist du jemandes Diener?<br>ته د كوم چا مزدور يې_ | Ich bin niemandes Diener.<br>زه د هېڅ چا مزدور نه يم |
| Hast du jemandem geholfen?<br>تا له كوم چا سره مرسته كړېده؟ | Ich habe niemandem geholfen.<br>ما له هېڅ چا سره مرسته نده كړي |
| Hast du hier jemanden gesehen?<br>دلته كوم څوك تا ليدلى دى؟ | Ich habe hier niemanden gesehen.<br>دلته هېڅ څوك ما ندى ليدلى |

**jedermann – jemand anderer** **په دغه ضمیرونو کې تش په (Genitiv) کې بدلون راځي**

| | | |
|---|---|---|
| Nominativ | jedermann<br>هر یو کس، هر یو چا | jemand anders یو بل څوك، کوم بل څوك |
| Genitiv | jedermanns<br>د هر یو کس، د هر چا | jemandes anderen د یو بل چا ، د کوم بل چا |
| Dativ | jedermann<br>هر یو چا ته | jemand anderem یو بل کس ته، یو بل چا ته |
| Akkusativ | jedermann<br>هر یو کس، یو بل څوك | jemand anderen/jamand anders یو بل څوك |

Beispiele:

| jedermann | jemand ander … |
|---|---|
| Hier ist jedermann willkommen.<br>دلته هرچاته ښه راغلی ویل کیږي | Da steht jemand anders vor der Tür.<br>دلته د دروازې په مخکې کوم بل څوك ولاړ دی |
| Das ist nicht jedermanns Sache.<br>دا د هرهر چا کار ندی، هر څوك دا نشي کوی | Das ist jemandes anderen Behauptung.<br>دا د کوم بل چا ادعا ده |
| Das wird von jedermann genutzt.<br>له دی نه هر څوك کار اخلي | Heute gehe ich zu jemand anderem.<br>زه نن کوم بل چا ته ځم |
| Das ist für jedermann sichtbar.<br>دا هرچا ته ښکاري | Sie liebt jemand anderen.<br>هغه د کوم بل چا سره مینه لري |

**Übungen:**

1. __________ weiß, wie schwierig das ist. هر څوك په دې پوهیږي چې دا څومره ګران دی
2. __________ ist bei dem Fest willkommen. دې محفل ته هر چا ته ښه راغلی ویل کیږي
3. Das ist nicht __________ Sache. (دا د هر هر چا کار ندی (هر څوك یې نشي کولی
4. Das ist für ___________ einsichtig. دا هر چا ته څرګنده ده، هر څوك پرې پوهیږي
5. Ich werde Gerechtigkeit gegen __________ üben.
زه به د هرچا په وړاندې له عدالت نه کار واخلم

**Lösungen:**

1. jedermann 2. jedermann 3. jedermanns 4. jedermann 5. jedermann

Beispielsätze mit „all, alle, aller, allem, alles, allesamt“

| | |
|---|---|
| Das verdanken wir all diesen Menschen. | دا ټول د دې سړي برکت دی |
| Aller Anfang ist schwer. | د هر څه پیل سخت وي |
| Alle Flaschen sind leer. | ټول بوتلونه تش دي |
| Alle wollen die Ausstellung sehen. | ټول غواړي چې ننداړتون وګوري |
| Sie haben alles mitgenommen. | هغوی هر څه له ځانه سره یوووړل |

| | |
|---|---|
| Bei allem Respekt, aber Sie haben Unrecht. | په دومره احترام چې تاسو ته دی، ستاسو خبره ناسمه ده |
| Ihr habt an allem etwas auszusetzen. | تاسو په هر څه نیوکې کوئ |
| Wir werden aber trotz allem für das Abkommen stimmen. | څه چې شویدي، د دی ټولو سره سره به مونږ د ې تړون ته موافقه رآی ورکړو |
| Die Pässe aller Passagiere wurden kontrolliert. | د ټولو مسافرینو پاسپورټونه کنټرول شول |
| Ich tue dies im Interesse aller. | دا کار زه د ټولو په ګټه کوم |
| All ihre Bemühungen führten zu nichts. | د هغوی ټول کوښښونه بې ګټې پاتې شول |
| Trotz all seines Geldes war er unglücklich. | هغه سره د دومره پیسو نیکمرغه نه و |
| Alles geht einmal zu Ende. | یو وخت هر څه پای ته رسیږي |
| Er will immer alles für sich alleine haben. | هغه هر څه یوازې د خپل ځان لپاره غواړي |
| Die Proteste der Nachbarn sind allesamt verstummt. | د ګاونډیانو ټول اعتصابونه غلي شول |
| Die Schüler erzielten allesamt gute Noten. | ټولو زده کوونکو ښې نمرې واخیستلې |

Beispielsätze mit „anders, andere“

| | |
|---|---|
| Nominativ | Jemand anders weiß das auch nicht. کوم بل څوك په دی هم نپوهیږي<br>Niemand anders als du kann mir helfen.<br>له تا نه پرته بل هیڅ څوك له ما سره مرسته نشي کولی |
| Dativ | von jemand anders له یو بل چا نه<br>mit niemand anders als mit dir بل هیڅ چا سره نه پرته له تا نه<br>wem anders als dir? له تا نه پرته بل چا ته؟ |
| Genitiv | auf Kosten jemandes anderen د یو بل چا په لګښت<br>Es geht um deine und niemandes anderen Rechte.<br>ستا د حقوقو نه مطلب دی او بل د هیچ چا نه نه |
| Akkusativ | für jemand anders د یو بل چا لپاره<br>über niemand anders د بل هیڅ چا په برخه کې نه<br>für wen anders? د کوم چا لپاره؟ |

**Übungen:**

1. Die Proteste der Nachbarn sind _________ verstummt.
د ګاونډیانو اعتصابونه ټول غلي شول
2. Die Schüler erzielten __________ gute Noten. زده کوونکو ټولو ښې نمرې واخیستلې
3. ________ Anfang ist schwer. د هر څه پیل سخت وي
4. In __________ Seelenruhe... په ډېر استقامت، ډېر په کراره (چې اصلاً بیړه په کار وي)
5. _________ guten Dinge sind drei.
که یو شی په دوهم ځل ونشو، نو په دریم ځل هرو مرو کیږي
6. In _________ Herrgottsfrühe… سهار ډېر وختي، ډېر دوخته، چربانګ، ملابانګ
7. In _________ Stille… ډېر په پټه، چې څوك پرې پوه نشي
8. Das verdanken wir _________ diesen/jenen Menschen.
دا د دغو ـ هغو انسانانو برکت دی
9. Wozu dient ________ dieser Aufwand? دا ټول لګښت د څه لپاره دی؟
10. ________ ihre Bemühungen führten zu nichts. د هغوی دې ټولو خواریو هیڅ ګټه ونکړه

11. Trotz ________ seines Geldes war er unglücklich.
هغه د خپلو ټولو پیسو سره نیکمرغه نه و
12. Durch _______ den Stress wurde er krank.
هغه په دې ډېرې نارامی (سترس) باندې ناروغ شو
13. _______Leute wussten es früher. نور کسان ورنه پخوا خبر وو
14. Die ________ Leute wussten es früher. دا نور کسان ورنه پخوا خبر وو
15. Ihre ________ Bekannten wussten es früher. د هغوی نور اشنایان ورنه پخوا خبر وو
16. Wir wollen das ________ Brot. مونږ دا بله ډوډی غواړو
17. Wir wollen ein _________ Brot. مونږ یوه بله ډوډی غواړو

**Lösungen:**
1. allesamt 2. allesamt 3. aller 4. aller 5. aller 6. aller 7. aller 8. all 9. all 10. all
11. all 12. all 13. andere 14. anderen 15. anderen 16. andere 17. anderes

**Indefinitpronomen „beide“**

nur starke Flexion, nur als Stellvertreter eines Substantivs
کله چې (beides) د یو اسم په ځای راشي

| | Singular | Plural | | |
|---|---|---|---|---|
| | ohne Artikel | mit bestimmtem Artikel | mit Possessiv-pronomen | ohne Artikel |
| Nominativ | beides دواړه | die beiden دا دواړه | meine beiden زما دواړه | beide دواړه |
| Genitiv | | der beiden د دې دواړو | meiner beiden زما د دواړو | beider د دواړو |
| Dativ | beidem دواړو ته | den beiden دې دواړو ته | meinen beiden زما دواړو ته | beiden دواړو ته |
| Akkusativ | beides دواړه | die beiden دا دواړه | meine beiden زما دواړه | beide دواړه |

مثالونه په جملو کې:

| Singular (ohne Artikel) | |
|---|---|
| Nominativ | Beides ist richtig. دا دواړه صحیح دي<br>Rot oder Schwarz? Beides! سور او یا تور؟ دواړه ! |
| Genitiv | - |
| Dativ | Er hat sich in beidem geirrt. هغه په دواړو کې اشتباه وکړه<br>Ich bin mit beidem zufrieden. زه له دواړو نه راضي یم<br>Nichts von beidem ist wahr. د دې دواړو نه یو یې هم ریښتیا ندی<br>Zu beidem hier einige Beispiele: د دواړو لپاره یو څو مثالونه |
| Akkusativ | Erfolg und Spaß bei der Arbeit? Man kann nicht immer beides haben.<br>بری او ساعت تیري د کار په وخت کې ـ دواړه تل لپاره د سړي لاس ته نه راځي<br>Du kannst nicht beides haben. ته دواړه نشي اخیستی |

| Plural (ohne Artikel) | |
|---|---|
| Nominativ | Beide Antworten sind korrekt. دواړه ځوابونه صحيح دي<br>beide zusammen دواړه په ګډه<br>beide wohnen in Berlin دواړه په برلين کې اوسيږي<br>Die Briefe sind beide angekommen. ليکونه دواړه رسېدلي دي |
| Genitiv | die Regierungschefs beider Länder د دواړو هېوادو د حکومت مشران<br>Man bedarf aller beider. دواړو ته اړتيا ده |
| Dativ | Ich habe mit beiden Brüdern gesprochen.<br>ما د دواړو ورونو سره خبرې وکړې<br>Man muss beiden Seiten gerecht werden.<br>سړي بايد د دواړو اړخونو مراعات وکړي<br>Damit ist beiden nicht geholfen. په دې باندې د دواړو سره مرسته نکيږي<br>Willst du Tee oder Milch? – Keins von beiden!<br>ته چای غواړې يا شوده ؟ د دواړو نه يو يې هم نه! |
| Akkusativ | Sie haben beide Eltern verloren.<br>هغوی مور او پلار دواړه له لاسه ورکړيدي<br>Ich habe beide gefragt. ما له دواړو نه پوښتنه وکړه |

| Plural (mit bestimmten Artikel) | |
|---|---|
| Nominativ | Die beiden Antworten sind korrekt. دا دواړه ځوابونه سم دي<br>Die beiden sind gerade weggegangen. هغوی دواړه همدا اوس ولاړل |
| Genitiv | die Regierungschefs der beiden Länder د دواړو هېوادو د حکومت مشران<br>Das Gespräch der beiden hat lange gedauert.<br>د دواړو خبرو اترو ډېر وخت دوام وکړو |
| Dativ | Ich habe mit den beiden Brüdern gesprochen.<br>ما د دواړو ورونو سره خبرې وکړې<br>Sie hat den beiden Fremden den Weg gezeigt.<br>هغې دې دواړو پردو ته لار وښودله |
| Akkusativ | die beiden ersten Strophen des Gedichts lernen<br>د شعر دواړه لومړنی مصرې زده کول<br>Diese beiden möchte ich kaufen. زه غواړم چې دا دواړه په بيه واخلم |

| Plural (mit Possessivpronomen) | |
|---|---|
| Nominativ | Ihre beiden Antworten sind korrekt. ستاسو دواړه ځوابونه سم دي |
| Genitiv | die Regierungschefs unserer beiden Länder<br>زمونږ د دواړو هېوادو د حکومت مشران |
| Dativ | Ich habe mit deinen beiden Brüdern gesprochen.<br>ما ستا د دواړو ورونو سره خبرې وکړې<br>Euch beiden danke ich sehr. ستاسو دواړو نه زه منندوی يم<br>Uns beiden wurde gar nicht geholfen. مونږ دواړو سره هيڅ مرسته ونشوه |
| Akkusativ | Euch beide jungen Leute kennt hier niemand. |

| | |
|---|---|
| | تاسو دواړه زلمیان دلته هېڅ څوک نه پېژني<br>Ich habe Sie beide gestern im Kino gesehen.<br>تاسو دواړه ما پرون په سینما کې ولیدلئ |

## Indefinitpronomen „einer“

دا نومځری د یو نوم ځایناستی دی، دا په دې مانا چې کله چې یو نوم په یوې جملې کې یاد شي او په بله جمله کې یاد نشي، نو په ځای یې بیا دا نومځری (einer) یادیږي. د یادولو لاړ یې دا ده چې لومړی باید لومړنی کس یا شی څرګند وي. دا څرګند کس یا څرګند شی په دوهمه جمله کې د یو ناڅرګند کس یا ناڅرګند شي په ډول یادیږي. مثال:

| |
|---|
| Du hast so viele Kaugummis in der Tasche. Gibst du mir einen ab?<br>تا سره په جب کې دومره ډېرې ژاولې دي. ته ما ته یوه راکوې؟ |

په لومړۍ جمله کې (ژاولې = Kaugummis ) یادې شوېدی، خو په دوهمه جمله کې بیا د هغې په ځای تش (یوه = einen) یاد شوېدی چې مطلب له همدې (ژاولې = Kaugummis) نه دی.

| Singular | | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| Kasus | Maskulinum | Femininum | Neutrum | |
| Nominativ | einer یو، یو تن | eine یو تن ښځینه | eins یو تن | welche کوم |
| Genitiv | eines د یو | einer د یو ښځینه | eines د یو | welcher د کومو |
| Dativ | einem یو ته | einer یو ښځینه ته | einem یو ته | welchen کومو ته |
| Akkusativ | einen یو | eine یوه ښځینه | eins یو | welche کوم |

څنګه چې په پورتني جدول کې لیدل کیږي، د جمعې په حالت کې د (ein) په ځای (welch) کارول کیږي.

Beispielsätze:

| |
|---|
| Wenn *einer* Gesundheitsprobleme hat, sollte er zum Arzt gehen.<br>کله چې یوتن روغتیایي ستونځې ولري، هغه باید ډاکټر ته ولاړ شي |
| Nach der Meinung *eines* der Kunden war das Essen sehr schlecht.<br>د مشتریانو د ډلې نه د یوتن په نظر ډوډۍ ډېره خرابه وه |
| Wenn man kein Deutsch versteht, kann das *einem* viele Probleme machen.<br>که چیرته یو تن په جرمني ژبه پوه نشي، سړي ته دا ډېرې ستونځې وړپېښولی شي |
| Wenn die Deutschen *einen* nicht kennen, sind sie oft distanziert.<br>کله چې جرمنیان یو تن ونه پېژني، نو ډېر وخت هغوی ځان له سړي نه لیرې ساتي |

کله چې د (ein) په ځای د هغې برعکس، یعني (هېڅ نه) یاد شي، نو دې ته (kein) وایي چې دا هم لکه د (ein) په شان ګردانیږي، په دې ډول:

| Singular | | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| Kasus | Maskulinum | Femininum | Neutrum | |
| Nominativ | keiner هېڅ یو | keine هېڅ یوه | keins هېڅ یو | keine هېڅ کوم |
| Genitiv | keines د هېڅ یو | keiner د هېڅ یوې | keines د هېڅ یو | keiner د هېڅ کومو |
| Dativ | keinem | keiner هېڅ یوې ته | keinem | keinen |

| | هېڅ يو نه | | هېڅ يو نه | هېڅ کومو نه |
|---|---|---|---|---|
| Akkusativ | keinen هېڅ يو | keine هېڅ يوه | keins هېڅ يو | keine هېڅ کوم |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | (ein) او (kein) خو په لاندې ډول هم ګردانېدی شي، نو پوښتنه دا ده چې د دې دواړو جدولونو توپير څه دی؟ ولې په پورتني جدول کې په (Nominativ) کې (einer/keiner) راغلي دي او په لاندينې جدول کې (ein/kein) راغلي دي؟ |
| ځواب | په پورتني جدول کې (ein/kein) د نومځري يا (Pronomen) په توګه ګردان شوی دی او په لاندې جدول کې د (unbestimmter Artikel) په توګه ګردان شوی دی. |

| Singular | | | |
|---|---|---|---|
| Kasus | Maskulinum | Femininum | Neutrum |
| Nominativ | ein/ kein<br>يو/ هېڅ يو نه | eine/keine<br>يوه/ هېڅ يوه نه | ein/keine<br>يو/ هېڅ يو نه |
| Genitiv | eines/keines<br>د يو/ د هېڅ يو نه | einer/keiner<br>د يوې/ د هېڅ يوې نه | eines/keines<br>د يو/ د هېڅ يو نه |
| Dativ | einem/keinem<br>يو ته/ هېڅ يو ته نه | einer/keiner<br>يوې ته/ هېڅ يوې ته نه | einem/keinem<br>يو ته/ هېڅ يو ته نه |
| Akkusativ | einen/keinem<br>يو/ هېڅ يو نه | eine/keine<br>يوه/ هېڅ يوه نه | ein/kein<br>يو/ هېڅ يو نه |

Beispiele مثالونه

| |
|---|
| In der ganzen Stadt war kein Zimmer mehr frei.<br>په دې غونډ ښار کې هېڅ يوه کوټه تشه نه وه |
| Wir suchten ein Zimmer, aber es war keines mehr frei.<br>مونږ يوه کوټه لټوله، خو هېڅ يوه هم تشه نه وه |
| Es gibt keine mehr. نورخه نشته، نور نشته |
| Es gibt keine Mistkäfer mehr. ګونګټې نورې نشته |
| Ich kenne keinen besseren Zahnarzt. زه کوم لاپسې ښه ډاکټر نه پېژنم |
| Ich kenne keinen besseren. زه له دې نه کوم بل ښه نه پېژنم |
| Sie kann in keinem anderen Land leben. هغه په کوم بل هېواد کې ژوند نشي کولی |

که چېرته (kein) بې له کوم اسمه د نارينه مفرد (Maskulin Singular) په توګه وکارول شي نو مانا يې زياتره وخت (هېڅ څوک = *niemand*) وي. مثال:

| |
|---|
| Keiner (= niemand) wollte uns helfen. هېڅ چا نه غوښتل چې له مونږ سره مرسته وکړي |
| Sie verließ die Sitzung schnell, denn sie kannte dort keinen (= niemanden).<br>هغه ژر له غونډې ووتله، ځکه چې هغې هلته هېڅ څوک نه پېژندل |
| Trau keinem über dreißig (= Traue niemandem, der älter als dreißig ist)!<br>ته له دېرشو نه پورته په هېڅ چا اعتماد مه کوه |

د (Pronomen) او د (unbestimmter Artikel) ترمنځ د توپير لپاره به يوه جمله وګورو :

| Pronomen | unbestimmter Artikel |
| --- | --- |
| Er wollte einen Wagen kaufen, hat aber keinen gekauft. هغه غوښتل چې يو موټر په بيه واخلي، خو کوم يې په بيه وانخيستو | Er hat keinen Wagen gekauft. هغه کوم موټر په بيه وانخيستو |

مثالونه په جملو کې:

| |
| --- |
| Mein Vater hat ein schönes Auto. Hat dein Vater auch eins? زما پلار يو ښايسته موټر لري. ستا پلار هم يو لري؟ |
| Es ist doch immer wieder dasselbe. Ist etwas wichtig, weiß keiner Bescheid. تل همدا يو شی کيږي. کله چې يو شی مهم وي، هيڅ څوك ترينه خبر نه وي |
| Mein Opa kann einem stundenlang Geschichten erzählen. زما نيکه کوی شي چې يو چا ته په ساعتو ساعتو کيسي ووايي |
| Nur einer ist gekommen, die anderen blieben zu Hause. تش يو کس راغلی دی، دا پاتي کسان په کور کې پاتي شول |

| | |
| --- | --- |
| ډير وخت له (einer, eine, eines) ضميرونو نه وروسته يو اسم د (Genitiv) په حالت کې او يا (von + Dativ) سره راځي. نو په داسې حالت کې دا نومځري د يوې ډلې د کسانو يا شيانو نه تش يو کس او يا يو شی ښکاره کوي. مثال: | پاملرنه |

| |
| --- |
| Das ist *eine der größten* Schwierigkeiten. له تولو نه سختو ستونځو له ډلې نه يوه ستونځه دا ده |
| Er ist *einer der bekanntesten* Physiker. له ډيرو مشهورو فزيکپوهانو له ډلې نه يو کس دا دی |

کله کله د يو مطلب د ډيرنامعلوم ښودلو لپاره له (einer, eine, eines) سره (irgend) يوځای کيږي چې ورنه (irgendein) جوړيږي، يعني (د ډيرو شيانو له ډلې نه يو، کوم يو نه کوم يو). مثال:

| | |
| --- | --- |
| aus *irgendeinem* Grund | د يو نه يو علت په وجه، يو نه يو علت به وي نو، کوم علت به وي نو |
| auf *irgendeine* Weise | په يو ډول نه يو ډول، په کوم ډول به وي نو |
| *Irgendeiner* wird immer etwas daran auszusetzen haben. يو څوك نه يو څوك به وي چې تل به په دې نيوکه کوي | |

د (einer) په ځای د (Nominativ) په حالت کې (man) هم کارول کيدی شي، په دې ډول:

| | |
| --- | --- |
| Was kann *einer* in diesem Fall tun? په دې حالت کې يو کس څه کوی شي؟ | Was kann *man* in diesem Fall tun? په دې حالت کې سړی څه کوی شي؟ |

**Unterschiede zwischen „kein“ und „nicht“** **د (kein) او د (nicht) تر مينځ توپير**

د دواړو په مانا کې څه توپير نشته، ځکه دواړه د منفي ځواب ورکولو لپاره کارول کيږي. خو داسې نشي کيدلی چې څه چې د چا خوښ وي، هر چيرته به هغه همغه استعمالوي. د هر يو استعمال ځان ته ځای لري چې په لاندې برخه کې واضح کيږي:

① (nicht) يو فعل ته د منفي ځواب ورکولو لپاره کارول کيږي. مثال:

| |
| --- |
| Gehst du heute spazieren? Nein, ich gehe heute nicht spazieren. |

ته نن چکر وهي؟ نه، زه نن چکر نه وهم.

په پورتنۍ جمله کې فعل (spazieren gehen) دی، نو ځکه ځواب یې به (nicht) ورکړل شو. دلته د (kein) استعمال غلط دی.

falsch = غلط  Nein, ich gehe kein.  falsch-falsch-falsch  غلط - غلط - غلط

② یو اسم ته د منفي ځواب ورکولو لپاره له (kein) نه کار اخیستل کیږي. مثال:

Ist das ein Hund? Nein, das ist kein Hund. Das ist eine Katze.
دا یو سپی دی؟ نه، دا یو سپی نه دی. دا یوه پیشو ده

په پورتنۍ جمله کې (سپی = Hund) یو اسم دی، نو ځکه د منفي ځواب لپاره (kein) استعمال شو. دلته د (nicht) استعمال غلط دي.

falsch = غلط  Nein, das ist nicht Hund.  falsch- falsch-falsch  غلط - غلط - غلط

③ کله کله د (kein) په ځای (nicht ein) استعمالیدلی شي. خو بیا په مانا کې یې لږ څه توپیر شته او هغه دا دی چې:

❶ بې طرفه یا بې تآکیده خبره = Neutrale Aussage :

کله چې یوه خبره تش د یو خبر په توګه بې له طرف بنودلو او بې له تآکید کولو کیږي، نو د منفي ځواب ورکولو لپاره (kein) استعمالیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Er hat einen Fehler gemacht.<br>هغه یوه غلطي کړېده | | Er hat keinen Fehler gemacht.<br>هغه هیڅ غلطي نده کړي |
| Sie haben ein Tor geschossen.<br>هغي یو ګول ووهو | | Sie haben kein Tor geschossen.<br>هغي هیڅ ګول ندی وهلی |
| Einer von ihnen versteht mich.<br>د هغه کسانو له ډلې نه یو کس زما په حال پوهیږي | | Keiner von ihnen versteht mich.<br>له هغوي نه هیڅ څوك زما په حال نپوهیږي |

❷ د طرف بنودلو یا د ټینګار کولو خبره (kein einziger) = Verstärkung, Betonung :

کله چې په یوه خبره کې یو طرف بنکاره شي، د یوې خبرې زیات او کم بنکاره شي او یا ډېر ټینګار پکې وشي، نو په دې جمله کې د (kein) په ځای (nicht ein) استعمالیږي. مثال:

| |
|---|
| Er hat im Diktat nicht einen Fehler gemacht (= keinen einzigen Fehler).<br>هغه په املاً کې هیڅ یوه غلطي هم ونکړه (حتی یوه غلطي یې هم ونکړه) |
| Sie haben nicht ein Tor geschossen (= kein einziges Tor).<br>هغوی هیڅ یو ګول هم ونه وهو (حتی یو ګول یې هم ونه وهو) |
| Nicht einer von ihnen versteht mich (= kein einziger von ihnen).<br>د هغوی له ډلې نه هیڅ یو تن هم زما په خبرو نه پوهیږي (حتی یو تن یې هم زما په خبرو نپوهیږي) |

③ د توپير ښکاره کولو جمله = Kontrastierende Verneinung :
کله چې په يوه جمله کې د يوې بلې ادعا په خلاف يوه خبره په لوړ غږ او يا په ټينګار وشي، نو په دې جمله کې د (kein) په ځای له (nicht ein) نه کار اخيستل کيږي.

| |
|---|
| Sie hat nicht **ein** Auto gekauft (sondern zwei). هغې **يو** موټر ندی اخيستی (بلکې دوه موټرونه يې اخيستې دي) |

④ په جمع کې بې ارتيکله نومونه، هغه اسمونه چې په سترګو نه ليدل کيږي (Abstrakta)

| artikellose Nomen | kein |
|---|---|
| Er hat Autos gekauft. هغه موټرونه په بيه اخيستي دي | Er hat keine Autos gekauft. هغه موټرونه په بيه ندي اخيستي |
| Nachts hat er Angstträume. د شپې له مخې هغه د ډار خوبونه ويني | Nachts hat er keine Angstträume. د شپې له مخې هغه د ډار خوبونه نه ويني |
| Sie hat Sorgen. هغه غمونه لري | Sie hat keine Sorgen. هغه غمونه نه لري |

④ په ځينو حالاتو کې (nicht ein) او (kein) دواړه استعمالېدی شي. مثال:

| nicht ein | kein |
|---|---|
| Sie hat nicht ein Auto gekauft (sondern ein Motorrad). هغې يو موټر په بيه نـدی اخيستی (بلکې يو موټرسيکل يې په بيه اخيستی دی) | Sie hat kein Auto gekauft (sondern ein Motorrad). هغې يو موټر په بيه ندی اخيستی (بلکې يو موټرسيکل يې په بيه اخيستی دی) |
| Nicht einer von ihnen hat mir geholfen. د هغوی د ډلې نه يو تن هم له ما سره مرسته نده کړې | Keiner von ihnen hat mir geholfen (sondern einer von euch). د هغوی د ډلې نه يو تن هم له ما سره مرسته نده کړې (بلکې ستسو له ډلې نه يو تن) |

**Übungen:**

1. _________ Autos sind kaputt. دواړه موټرونه خراب دي
2. Die _________ Autos sind kaputt. دا دواړه موټرونه خراب دي
3. Kennst du diese ________ ? ته دا دواړه پيژنې؟
4. ____________ schwarze Katzen دواړه توري پيشوګانې
5. Hier werden _________ Möglichkeiten angeboten. دلته دواړه امکانات وړاندې کيږي
6. Man kann _________ benutzen. سړی له دواړو نه کار اخيستی شي
7. Mach ________ . ته دا دواړه کارونه وکړه
8. Ich glaube, dass ____________ möglich ist. زه باور لرم چې دواړه کېدی شي
9. _________ war nicht leicht festzustellen. د دواړو معلومول اسان نه وو
10. Seinen Hut und seine Jacke hatte er nicht dabei, ___________ hatte er im Zug vergessen. له هغه سره د هغه خولۍ او کرتی نه وو، دواړه ورنه په اورګاډي کې هېر شوي وو
11. Das kann schon _________ leid tun. په دې باندې د سړي زړه خوږيږي
12. Sie traten im Programm _________der populärsten Bands auf. هغوی د موزيك د يوې ډېرې محبوبې ډلې سره په يو پروګرام کې راښکاره شول
13. _________ muss es ja tun. يو څوك يې بايد وکړي
14. Wir erwarten den Besuch _________ Ihrer Herren. مونږ ستاسو ښاغلو د يو تن راتګ ته په تمه يو

15. Wir warten auf den Bus und hoffen, dass noch ________ kommt.
مونږ سروېس ته په تمه ولاړ یو او هیله کوو چې یو یې راشي

16. Du suchst ein neues Hemd. Du wirst schon noch ________ finden, das dir gefällt.
ته یو نوی کمیس لټوې. ته به کوم یو پیدا کړې چې خوښ دې شي

17. Ich mag keine Zigaretten, und ich habe auch noch nie ________ geraucht.
زما سګرټ نه خوښیږي او هېڅکله مې یو هم ندی څکولی

18. Ich hatte nie Geld für ein Auto. Ich habe aber immer von ________ geträumt.
ما د یو موټر لپاره هېڅکله پیسې نه درلودلې خو یو موټر مې تل په خوب کې لیدو

19. Gedichte? Ich kann nur ________ auswendig. شعرونه؟ زما تش یو له یاده زده دی

20. Besuchen Sie ________ unserer Filialen in Ihrer Nähe.
تاسو زمونږ یوې څانګې ته چې تاسو ته نږدې ده، راشئ

**Lösungen**:
1. beide 2. beiden 3. beiden 4. beide 5. beide 6. beides 7. Beides 8. beides 9. beides 10. beides 11. einem 12. einer 13. einer 14. eines 15. einer 16. eines (= eins) 17. eine 18. einem 19. eines (= eins) 20. eine

## Indefinitpronomen „einige یو څو und etliche ګڼ شمېر "

Die Pronomen *einige* und *etliche* werden gleich flektiert wie Adjektive, die ohne Artikel vor einem Nomen stehen.
دا ضمیرونه داسې ګردانیږي لکه بې ارتیکله صفتونه چې د یو اسم په مخ کې وي.

| | Singular | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulin | Feminin | Neutrum | Mask./Fem./Neutr. |
| Nominativ | einiger<br>ځینی، یو څو | einige<br>ځینې، یو څو | einiges<br>ځینې، یو څو | einige<br>ځینې، یو څو |
| Genitiv | einigen<br>د ځینو، د یو څو | einiger<br>د ځینو، د یو څو | einigen<br>د ځینو، د یو څو | einiger<br>د ځینو، د یو څو |
| Dativ | einigem<br>ځینو ته | einiger<br>ځینو ته | einigem<br>ځینو ته | einigen<br>ځینو ته |
| Akkusativ | einigen<br>ځینې، یو څو | einige<br>ځینې، یو څو | einiges<br>ځینې، یو څو | einige<br>ځینې، یو څو |

مثال:

| | |
|---|---|
| Von einigen wird behauptet, dass das nicht stimmt. | د ځینو له خوا دا ادعا کیږي چې دا حقیقت نلري |
| Einiges, was er verschwiegen hat, ist … | ځینې شیان چې هغه ندي ویلي، ... دي |
| Sie wusste einiges. | هغه په ډېر څه خبره وه |
| Einiges muss geändert werden. | یو څه ته باید بدلون ورکړل شي |
| Ich möchte einiges bemerken. | زه غواړم چې یو څه تبصره پکې وکړم |
| Er hat noch einige Hoffnung. | هغه یو څه هیله لري |

| | |
|---|---|
| mit einigem guten Willen | په یو څه ښه اراده |
| Er war einige Wochen verreist. | هغه یو څو اونۍ په سفر تللی و |
| die Taten einiger guter Menschen | د یو څو ښو انسانانو کړنې یا اعمال |
| Einige von uns wussten das. | زمونږ له ډلې نه ځینې کسان له دې نه خبر وو |
| Es wird einigen Ärger geben. | یو څه خپگان به راپیښ شي |
| Einige der Leute waren mir unbekannt. | د دې کسانو نه ځینې ما نه پیژندل |
| Einige standen noch herum. | ځینې کسان گرچاپیر ولاړ وو |
| Denen fehlt einiger politischer Sinn. | په دوی کې یو څه سیاسي احساس نشته |

| | Singular | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| Kasus | Maskulin | Feminin | Neutrum | Mask./Fem./Neutr. |
| Nominativ | etlicher<br>ګڼ شمېر | etliche<br>ګڼ شمېرې | etliches<br>ګڼ شمېر | etliche<br>ګڼ شمېر ، ګڼ شمېرې |
| Genitiv | etlichen<br>د ګڼ شمېر | etlicher<br>د ګڼ شمېرو | etlichen<br>د ګڼ شمېرو | etlicher<br>د ګڼ شمېرو |
| Dativ | etlichem<br>ګڼ شمېرو ته | etlicher<br>ګڼ شمېرو ته | etlichem<br>ګڼ شمېرو ته | etlichen<br>ګڼ شمېرو ته |
| Akkusativ | etlichen<br>ګڼ شمېر | etliche<br>ګڼ شمېرې | etliches<br>ګڼ شمېر | etliche<br>ګڼ شمېر ، ګڼ شمېرې |

مثالونه په جملو کې:

| | |
|---|---|
| Seither sind etliche Tage vergangen. | له هغه وخت راهیسې ګڼ شمېر ورځې تېرې شوېدي |
| Ich weiß etliches darüber zu erzählen. | په دې برخه کې له ما سره ګڼ شمېر د ویلو څه شته |
| die Taten etlicher guter Menschen | د ګڼ شمېرو ښو انسانانو کړنې یا اعمال |
| Sie braucht hierfür noch etliche Zeit. | د دې لپاره د هغې ډېر وخت پکار دی |
| Das hat etlichen Wirbel verursacht. | په دې کې ګڼ شمېر اړودوړ (شوروغوغا) راپیښ شو |

**د (einige, etliche) د ضمیر نه په کوم وخت کې کار اخیستل کیږي؟**

① په (Singular) یا په مفرد کې د (ډېر) په مانا استعمالیږي، لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| einiges/etliches Geld | ډېرې پیسې | einiger/etlicher Mut | ډېره زړورتیا |

② په (Plural) یا په جمع کې د (یو څو ، محدود تعداد) په مانا استعمالیږي، لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| einige/etliche Bedenken | یو څو شکونه | einige/etliche Nachbarn | یو څو گاونډیان |

③ په (Singular + Plural) کې د (لږ څه، یو څو) په مانا استعمالیږي، لکه :

| | |
|---|---|
| Es war noch einiges Geld übrig. | لږ څه پیسې لا پاتې وې |
| Sie erzählte einiges. | هغې یو څو (یعنې لږې) خبرې وکړې |
| Wir feierten mit einigen Freunden trotz einiger Bedenken.<br>مونږ د یو څو ملګرو سره محفل ولمانځو د یو څو (لږو) شکونو سره سره | |

④ (einige/etliche) د (ډېر، زښت ډېر، لږ نه، ګڼ شمېر) په مانا هم استعمالیږي، لکه:

| | |
|---|---|
| Das hat mir einigen/etlichen Ärger bereitet (= ziemlich viel Ärger). | دي ما لپاره ډېره شخړه رامينځ ته کړه |
| Das wird einiges/etliches kosten (= ziemlich viel). | د دې بيه به ډېره جګه وي |
| Wir haben noch einige/etliche Kilometer vor uns (= ziemlich viele Kilometer). | ډېر کيلومتره لار لا زمونږ په مخ کې ده |
| Es ist mir trotz etlicher Versuche nicht gelungen (= trotz ziemlich vieler Versuche). | زه سره له ډېرو کوښښونو په دې ونه توانيدم |

weitere Beispielsätze: نور مثالونه

| | |
|---|---|
| einige meiner besten Freunde | زما د ښو ملګرو نه يو څو تنه |
| Er wusste einiges zu erzählen. | هغه سره ډېرې کيسې وې، ډېرې کيسې يې کولی شوې |
| Die Hütte liegt in einiger Höhe über dem Tal. | جونګړه د درې نه ډېرڅه پورته پرته ده |
| Es blieb uns noch etliches zu tun. | مونږ ته ډېر کار په مخه پاتې شو |
| mit etlichem Aufwand | په ډېرې خوارۍ او لګښت باندې |
| entgegen der Meinung etlicher gescheiter Leute | د ډېرو هوښيار خلکو د مفکورې په خلاف |

**Übung:**

1. Scheinbar haben ________ von euch den Ernst der Lage noch nicht verstanden.
داسې ښکاري چې ستاسو له ډلې نه ځينې کسان د حالاتو په جديت پوه شوي ندي
2. Bis morgen muss ich noch mit ________ ein ernstes Wörtchen reden.
زه بايد سبا د ځينو سره جدي خبرې وکړم
3. __________ Stunden später… يو څو ساعته وروسته
4. von _________ wird behauptet … د ځينو په برخه کې داسې ادعا کيږي چې ....
5. _________ Mühe haben… ډېرې ستونځې درلودل
6. sie wusste _________ هغې ته ډېرڅه معلوم وو
7. bei _________ guten Willen… د ښې ارادې سره، په ښې ارادې
8. die Taten _________ guter Menschen… د يو څو ښو انسانانو کړې وړې
9. _________ Tausend Schüler… يو څو زره زده کوونکي
10. __________ der Leute waren mir unbekannt… د دې خلکو نه يو څو کسه مې نه پيژندل
11. _________ Tage, ________ Stunden sind vergangen.
ډېرې ورځې، ډېر ساعتونه تېر شوي دي
12. Ich weiß __________ darüber zu erzählen. په دې برخه کې زه ډېر څه ويلی شم
13. Es war schon 12 Uhr, aber _________ Leute kamen dennoch zu spät.
ډېر وخته دولس بجې شوې وې، خو ډېر خلک بيا هم ناوخته راغلل
14. Ist mit dem Beitritt _________ Länder das Problem behoben?
د ډېرو هېوادو په ګډون کولو دا ستونځه حله ده؟
15. Im Bereich der Umwelt ist _________ zu tun. د چاپېريال په برخه کې ډېرڅه د کولو دي

**Lösungen:**
1. einige 2. einigen 3. einige 4. einigen 5. einige 6. einiges 7. einigem 8. einiger 9. einige 10. einige 11. etliche 12.etliches 13. etliche 14. etlicher 15. etliches

## Indefinitpronomen „ein bisschen, ein wenig, ein paar“
## ډېر لږ، یو څه، یو څو

دا ضمیرونه لکه د (Artikel) په شان چې د یو اسم په مخ کې راځي او یا تش د یو ضمیر په شان کردانیږي.
**له (ein bisschen, ein wenig, ein paar) د ضمیر نه په کوم وخت کې کار اخیستل کیږي؟**

① (ein bisschen, ein wenig) په مفرد ډول یا په (Singular) کې د (لږ، ډېر لږ، محدود) په مانا استعمالیږي، لکه:

| | |
|---|---|
| Ein bisschen/ein wenig Vertrauen wäre nicht schlecht. | لږ څه اعتماد به بد نه وي |
| Wir haben noch ein bisschen/ein wenig Geld übrig. | له مونږ سره یوڅه پیسې پاتې دي |
| Wir haben noch ein bisschen/ein wenig übrig. | له مونږ سره لږ څه پاتې دي |
| Ich möchte mich ein bisschen/ein wenig ausruhen. | زه غواړم چې لږ څه استراحت وکړم |
| Ich bin ein bisschen/ein wenig müde. | زه لږڅه ستړی یم |

② (ein wenig) په (Dativ/Akkusativ/Genitiv) کې څه تغیر نکوي، مثال:

| | | |
|---|---|---|
| richtig صحیح : | mit ein wenig Geduld | د لږ څه حوصلې سره |
| falsch غلط: | mit einem wenig Geld | |
| richtig صحیح : | wegen ein wenig Schnee | د لږ څه واورې په وجه |
| falsch غلط : | wegen ein wenigem Schnee | |

③ له (ein bisschen) نه کېدی شي چې (ein) هیسته کړی شي او په ځای یې (kein, dieses, das) واچول شي. دا څرګنده ده چې مانا یې بیا بدلیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| Er hat kein bisschen Respekt vor seinen Lehrern (= gar keinen Respekt). | هغه خپلو ښوونکو ته هیڅ احترام نلري |
| Es tut kein bisschen weh (= überhaupt nicht). | دا هیڅ درد نکوي |
| Das bisschen Geld wird nicht reichen. | دا لږې پیسې به بسې نه شي |
| Mit dem bisschen Geld können wir nicht viel kaufen. | په دې لږو پیسو مونږ ډېرڅه نشو اخیستلی |
| Du wirst mit deinem kleinen bisschen Verstand nicht weit kommen. | ته به پخپل لږ تعقل ډېر پرمخ ولاړ نشې |
| Wegen dieses bisschen Schnees gehst du nicht zur Arbeit? | د دې لږې واورې په وجه ته کار ته نه ځې؟ |

④ (ein paar) د (ډېر لږ، لږ شمېر، یو څو) په مانا استعمالیږي او (ein) یې نه کردانیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| Ein paar Freunde hatten mich besucht. | یو څو تنه ملګري زما لیدو ته راغلي وو |
| Ein paar Schritte gehen. | یو څو قدمه تلل |

| | |
|---|---|
| Du kannst mich in ein paar Minuten anrufen. | ته کوی شي چې یو څو دقیقې وروسته ماته ټیلفون وکړې |
| Wir wollen für ein paar kurze Tage verreisen. | مونږ غواړو چې د یو څو لنډو ورځو لپاره په سفر ولاړ شو |

⑤ (die paar, diese paar) هم د (ډېر لږ، لږ شمېر، یو څو) په مانا استعمالیږي، خو د (ein paar) په پرتله په ټیټه سترګه یادول کیږي. بل دا چې په دې کې (die) او (diese) په مختلفو حالاتو کې ګردانیږي. دا شان بېلګې به په جملو کې وګورو:

| | |
|---|---|
| Die paar Euro werden nicht reichen. | دا څو یورو به بس نشي (یعنې دا ډېرې لږې پیسې دي) |
| Du solltest dich wegen der paar Mückenstiche nicht so anstellen. | ته تش یو څو ماشو چیچلې یې او ځان خومره په عذاب مه ښکاره کوه |
| Ich möchte in diesen paar Sekunden fragen, warum er geflohen ist. | زه غواړم چې په دې څو ثانیو کې پوښتنه وکړم چې هغه ولې وتښتېدو |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | د (ein paar) او (ein Paar) تر مینځ توپیر څه دی؟ |
| ځواب | د دې دواړو تر مینځ لوی توپیر دی. (Paar) (جوړه) ته وایي، یعنې غبرګ. نو په دې ډول (ein Paar) (یو جوړه)، (drei Paar) (درې جوړه) ته وایي. |

**Übungen:**

1. Er hat kein _________ Zeit für mich. هغه له ما لپاره یو پوتسکی وخت هم نلري
2. Das _________ Geld kann uns nicht weiterhelfen. دا لږې پیسې مونږ سره څه مرسته نشي کولی
3. Ich will ein _________ spazieren gehen. زه غواړم چې لږ غونډې چکر ووهم
4. Mit ein _________ Geduld kann man es besser ertragen. په لږ څه حوصله دا سړی ښه زغملی شي
5. Ich reise für ein ________ Tage nach Hamburg. زه د یو څو ورځو لپاره همبورګ ته ځم

**Lösungen**:
bisschen 2. bisschen 3. bisschen 4. bisschen 5. paar

## Indefinitpronomen und Artikelwörter: „etwas, irgendetwas“
## یوڅه، یو څه نه یو څه

دا ضمیرونه د (یو څه، یو څه نه یو څه) په مانا استعمالیږي. دا ضمیرونه د یو اسم په مخکې راتلی شي او بې له کوم اسمه د یو صفت او یا د یو فعل سره هم. مثال:

| | |
|---|---|
| Hast du etwas von ihm gehört? | تا له هغه نه څه اورېدلي دي؟ |
| Sie ging fort, ohne etwas zu sagen. | بې له دې چې څه ووایي، هغه ولاړه |
| sich etwas Neues kaufen | ځان ته څه نوي شیان په بیه اخیستل |
| Etwas Salz schadet dir nicht. | لږ څه مالګه تا ته څه تاوان نه رسوي |
| Gib mir etwas Geld! | ته ما ته لږ څه پیسې راکړه |
| Sie sah etwas müde aus. | هغه لږ څه ستړې ښکارېدله |

کله چي له (etwas) سره (irgend) یوځای شي، یعني (irgend etwas) شي، نو شمېره یا کچه یې لاپسې نور هم ناڅرګنده شي، مثال:

| | |
|---|---|
| Irgendetwas stimmt hier nicht! | دلته کوم شی سم ندی، دلته کومه خبره ګډه وډه ده |
| Er muss irgendetwas gehört haben. | هغه هرومرو کوم شی اورېدلي دي |
| Bring mir irgendetwas Schönes von der Reise mit! | ته ما ته له سفر نه کوم ښه شی راوړه |

**Übungen:**

1. Hast du ________ von ihm gehört? تا د هغه په برخه کي کې څه اورېدلي دي؟
2. Er ist so _______ wie ein Dichter. هغه داسي یو څه دی لکه شاعر
3. ________ Erfreuliches hören یو څه چي زړه خوشحالوي، اورېدل
4. ________ von dem Geld gehört mir. د دي پیسو نه یو څه یې زما دي
5. So ________ kann schon mal vorkommen. داسي کوم څه کله ناکله پېښېدلی شي
6. Zieh dir rasch _________ über! د دې دپاسه ژر غوندي یو څه واغونده
7. __________ war nicht in Ordnung. کوم څه ټیك نه وو
8. Haben Sie in dieser Hinsicht _________ unternommen? په دې برخه کي تاسو څه اقدام کړی دی؟
9. Hat er _________ gesagt? هغه کوم څه ویلي دي؟
10. Fällt dir dazu _________ ein? په دې برخه کي ستا په فکر کي کوم څه ګرځي؟

**Lösungen:**

1. etwas 2. etwas 3. etwas 4. etwas 5. etwas 6. irgendetwas 7. irgendetwas 8. irgendetwas 9. irgendetwas 10. irgendetwas

## Indefinitpronomen und Artikelwort: „irgendein“ یو نه یو

دا ضمیر یو ناڅرګند کس او یا یو ناڅرګند شی بیانوي. (irgendein) د یو اسم په ځای راتلی شي او د یو اسم په مخکي د یو (Artikel) په توګه هم. (irgendein) په مختلفو حالاتو کي ګردانیږي چي ګردان یې په لاندیني جدول کي وینو.

| Artikelwort (vor einem Nomen) | | | |
|---|---|---|---|
| Kasus | Maskulin | Feminin | Neutrum |
| Nominativ | irgendein یو نه یو | irgendeine یوه نه یوه | irgendein یو نه یو |
| Genitiv | irgendeines د یو نه د یو | irgendeiner د یوي نه د یوي | irgendeines د یو نه د یو |
| Dativ | irgendeinem یو نه یو ته | irgendeiner یوي نه یوي ته | irgendeinem یو نه یو ته |
| Akkusativ | irgendeinen یو نه یو | irgendeine یوه نه یوه | irgendein یو نه یو |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| Wir geben euch irgendein Buch. | مونږ تاسو ته یو کتاب نه یو کتاب درکوو |
| Er ist aus irgendeinem Grund heute nicht da. | په یو نه یو علت هغه نن دلته نشته |

| |
|---|
| Du kannst mit irgendeinem der hier stehenden Fahrräder fahren.<br>هغه بایسکلونه چې دلته ولاړ دي، ته کوی شې چې په یو نه یو بایسکل ولاړ شې |
| Irgendeiner wird immer etwas daran auszusetzen haben.<br>یو څوك نه یو څوك به تل په دې نیوکه کوي |
| Wenn Sie irgendeinen Wunsch haben, gehen Sie dorthin.<br>که تاسو کومه هیله نه کومه هیله لرئ، نو هلته ولاړ شئ |
| Er müsste es besser wissen als irgendein anderer *(jeder andere)*.<br>له هر کوم بل چا نه به هغه په دې ښه پوهیږي |

| stellvertretend (für ein Nomen) د یو نوم په ځای | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulin | Feminin | Neutrum |
| Nominativ | irgendeiner<br>یو څوك نه یو څوك | irgendeine<br>یوه ښځه نه یوه ښځه | irgendeines<br>irgendeins<br>یو څوك نه یو څوك |
| Genitiv | irgendeines<br>د یو چا نه د یو چا | irgendeiner<br>د یوې ښځې نه یوې ښځې | irgendeines<br>د یو چا نه یو چا |
| Dativ | irgendeinem<br>یو چا ته یو چا ته | irgendeiner<br>یوې ښځې ته نه یوې ښځې ته | irgendeinem<br>یو چا ته نه یو چا ته |
| Akkusativ | irgendeinen<br>یو څوك نه یو څوك | irgendeine<br>یوه ښځه نه یوه ښځه | irgendeines<br>irgendeins<br>یو څوك نه یو څوك |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| Irgendeiner hat das Bild gestohlen. | کوم چا دا عکس غلا کړی دی |
| Wir geben euch irgendeines unserer Bücher.<br>مونږ د خپلو کتابونو نه کوم کتاب نه کوم کتاب تاسو ته درکوو (مقصد یو کتاب نه یو کتاب به وي نو) | |
| Man könnte irgendeinen anderen Mitarbeiter damit beauftragen.<br>سړی کوی شي چې یو نه یو همکار د دې لپاره مؤظف کړي | |
| Wir haben es hier nicht mit irgendeiner Frau zu tun, sondern immerhin mit der Prinzessin. دلته له مونږ سره کومه یوه عادي ښځه نده، بلکي هیڅ چې نه وي، نو شهزادګی خو ده | |
| Irgendeiner gab mir diesen Tipp. | یو چا نه یو چا ماته دا چل راوښود |

**د (irgendeiner) له ضمیر نه په کوم وخت کي کار اخیستل کیږي؟**

① کېدی شي چې د یو اسم په ځای استعمال شي. د (einer) په پرتله (irgendeiner) د یو شي ناخرګندتیا لاپسي نوره هم زیاتوي. مثال:

| | |
|---|---|
| Wir warten auf den Bus und hoffen, dass noch irgendeiner kommt.<br>مونږ سرویس ته په تمه ولاړ یو او هیله لرو چې کوم یو یې راشي | |
| Du suchst ein neues Hemd. Du wirst schon noch irgendeins finden, das dir gefällt. ته یو نوی کمیس لټوې؟ ته به آخر کوم یو پیدا کړې چې خوښ به دې شي | |
| irgendeins seiner Lieblingsbücher | د هغو کتابونو له ډلي نه کوم یو چې د هغه خوښیږي |
| mit irgendeinem von uns | زمونږ له ډلي نه د کوم یو سره |

② کېدی شي چي (irgendein) له کوم اسم سره په ګډه د اسم نه مخکې راشي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich will nicht irgendein Kleid, ich will genau dieses!<br>زه کوم یو کمیس نه غواړم، زه ټیك همدغه غواړم | |
| Er ist mit irgendeinem Freund ausgegangen.<br>هغه د خپلو ملګرو له ډلې نه کوم یو سره بهر وتلی دی | |

## Indefinitpronomen: „welche, irgendwelche“ کوم یو، کوم یو نه کوم یو

دا ضمیرونه په ورځینۍ ژبه کې په اصطلاحي ډول د یو اسم په ځای کارول کیږي. په مفرد کې د (welche) مانا ده (یو څو، لږ څه، لږ و ډېر)، په جمع کې (یو شمېر، یوه اندازه) مانا کیږي. که چېرته ورسره (irgend) یوځای شي، یعني (irgend + welche = irgendwelche) نو ناڅرګندتوب یې لاپسې زیاتیږي. دا ضمیرونه لکه بې (Artikel) صفت په شان ګردانیږي. د دې ضمیر (Dativ) ډېر لږ دی او (Genitiv) یې هېڅ نشته. (irgendwelche) په جمله کې داسې ګردانیږي لکه یو بې (Artikel) اسم. لاندینی جدول به وګورو:

| | Singular | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulin | Feminin | Neutrum | Mask/Neutr/Fem |
| Nominativ | welcher کوم یو<br>irgendwelcher<br>کوم یو نه کوم یو | welche<br>کومه یوه<br>irgendwelche<br>کومه یوه نه کومه یوه | welches کوم یو<br>irgendwelches<br>کوم یو نه کوم یو | welche (ډېر) کوم<br>irgendwelche<br>کوم (ډېر څه) |
| Genitiv | - | - | - | - |
| Dativ | welchem<br>کوم یو ته<br>irgendwelchem<br>کوم یو ته نه کوم یو ته | welcher<br>کومې یوې ته<br>irgendwelcher<br>کومې یوې ته نه کومې یوې ته | welchem<br>کوم یو ته<br>irgendwelchem<br>کوم یو ته نه کوم یو ته | welchen کومو ته<br>irgendwelchen<br>کومو ته |
| Akkusativ | welchen کوم یو<br>irgendwelchen<br>کوم یو نه کوم یو | welch کومه یوه<br>irgendwelche<br>کومه یوه نه کومه یوه | welches کوم یو<br>irgendwelches<br>کوم یو نه کوم یو | welche (ډېر) کوم<br>irgendwelche<br>کوم (ډېرڅه) |

Beispiele mit „welch…“ مثالونه

| | |
|---|---|
| Der Tee ist gut. Ist noch welcher da? دا چای خوندور دی. لږڅه نور هم شته؟ | |
| Bananen? Ich habe gestern noch welche gekauft. کېلې؟ پرون ما یو څه په بیه واخیستلې | |
| Ich habe gestern Milch gekauft. Es müsste noch welche im Kühlschrank stehen.<br>ما پرون شوده په بیه واخیستل. په یخچال کې به یو څه ایښې وي | |
| Wir haben keine Eier mehr. Frag die Nachbarn, ob sie noch welche haben!<br>مونږ نوري هګۍ نلرو. ته له ګاونډیانو نه پوښتنه وکړه چي هغوی یو څو لري او که نه | |

يوځل بيا يادونه: دا شان جملې تش په اصطلاحي ډول په ويل شوي ژبه، يعني په خبرو کې کارول کېږی شي. په ادبي ژبه او په ليکلو کې دا شان جملې ناسمې دي.

**Übungen:**

1. Diejenigen, _________ die beste Arbeit geleistet hatten.
هغه کسان چې له ټولو نه ښه کار يې کړی دی
2. Er ist derjenige, _________ angerufen hat. دا هغه څوك دی، کوم يو چې ټيلفون کړی و
3. Wo ist Salz? Dort in der Büchse ist_________ مالګه چېرته ده؟ هلته په کوټی کې څه شته
4. Mit den Gegenständen der Kunst kann nur derjenige spielen, _________ ihnen gewachsen ist. د هنر په وسايلو هغه څوك چلند کوی شي، کوم چې ورتيا يې ولري
5. Im Kühlschrank ist kein Käse mehr. Haben wir noch __________ ?
په يخچال کې نور پنير نشته، مونږ څه نور لرو؟
6. Die Trauben sind aber sehr lecker. Hast du noch_________ ?
دا انګور ډېر خوندور دي، تا سره څه نور شته؟
7. Wie heißt der Mann, _________ die Trauung einer Hochzeit durchführt?
د هغه سړی نوم څه دی، کوم چې د واده نکاح تړي؟
8. Meine Nachbarin, __________ immer gut zu mir war, ist nun gestorben.
زما هغه ګاونډی، کومې چې ما سره تل ښه چلند کوو، اوس مړه شوې ده
9. Ist noch Butter im Kühlschrank oder soll ich __________ mitbringen?
په يخچال کې کوچ شته او که زه يو څه له ځانه سره راوړم؟
10. Wenn du Gläser suchst: Da stehen __________ im Regal.
که ته ګيلاسونه لټوې: هلته په الماری کې څه شته
11. Kannst du mir sagen, was das für __________ sind?
ته ما ته ويلی شې چې دا کوم ډول شی دي؟
12. Ich kann mich nicht entscheiden, was für __________ ich nehmen soll.
زه فيصله نشم کولی چې زه له دې نه کوم ډول يې واخلم
13. Das Gebäude, in __________ sich ein Laden befand, ist gestern abgerissen worden. هغه ودانی، په کومې کې چې يو دکان و، پرون ونړول شوه

**Lösungen:**

1. welche 2. welcher 3. welches 4. *w*elcher 5. welchen 6. welche 7. welcher 8. welche 9. welche 10. welche 11. welche 12. welche 13. welchem

Beispiele mit „irgendwelch …“ مثالونه

| | |
|---|---|
| Besteht irgendwelches Interesse? | لږ شانتې علاقه شته؟ |
| aus irgendwelchem billigen Stoff | له کومې ارزان بيې ټوټې نه |
| Hast du eine Antwort auf irgendwelche dieser Fragen? ته د دې پوښتنو له ډلې نه کومې يوې ته څه ځواب لرې؟ | |

**له (irgendwelcher) له ضمير نه په کوم وخت کې کار اخيستل کيږي؟**

د (welche) په پرتله (irgendwelcher) د يو شي ناڅرګندتيا لاپسې نوره زياتوي. مثال:

In diesem Haus wohnen irgendwelche neuen Mieter.
په دي كور كې څه نوي ګاونډيان اوسيږي (چې څوك يې نه پيژني)

Sie kommen aus irgendwelchem Grund nicht. د كوم نه كوم علت په وجه هغوى نه راځي

Ich will nicht mit irgendwelchen Leuten zusammenwohnen.
زه نه غواړم چې د كومو ناڅرګندو خلكو سره په ګډه واوسيږم

**Übungen:**

1. ___________ Junge hat gerufen. يو هلك نه يو هلك تيلفوني زنګ وهلی و
2. Nenne mir ____________ Flussnamen! ته ما ته د يو نه يو سيند نوم واخله
3. Du kannst mit ____________ der hier stehenden Fahrräder fahren.
هغه بايسكلونه چې دلته ولاړ دي، ته كوى شي چې په يو نه په يو يې ولاړ شي
4. Kann mir bitte ___________ helfen? دلته كوم څوك له ما سره مرسته كوى شي؟
5. Ich benutze __________ Ausrede. زه له يوې باني نه يوې باني نه كار اخلم
6. Hast du ___________ Wunsch? Ich erfülle ihn.
ته به خو كومه هيله نه كومه هيله لري؟ زه يي تر سره كوم
7. Er wollte dich aus irgendeinem Grund sprechen.
هغه غوښتل چې په يو علت نه په يو علت له تا سره خبرې وكړي
8. ____________ muss es ihm doch sagen! يو څوك نه يو څوك خو بايد دا خبره ورته وكړي
9. Gab es ____________ Ärger? كوم خپګان نه كوم خپګان راپيدا شوى دى؟
10. Wenn aus _____________ Grund das Konzert nicht stattfindet, wird das Geld zurückgegeben. كه چېرته په كوم علت نه په كوم علت كنسرت صورت ونه مومي ، نو پيسې بېرته ورکول کيږي
11. Haben Sie ____________ Fragen? تاسو كومې پوښتنې نه كومې پوښتنې لرئ؟
12. Habt ihr heute ___________ der 10 Tabus gebrochen?
هغه لس شيان چې حرام دي، تاسو له كوم يو نه كوم يو نه يې سرغړونه كړې ده؟
13. Wir haben überhaupt nicht vor, ____________ Trick anzuwenden.
مونږ هيڅ داسې څه نيت نه لرو چې له كوم چل نه كار واخلو
14. Glauben Sie, dass Ihre Frau __________ Verdacht hat?
ستاسو دا باور دى چې ستاسو مېرمن به كوم شك نه كوم شك ولري؟
15. In Irland gehen die Menschen häufiger ins Kino als in ___________ anderen EU-Land. په آيرلند كې خلك د اروپايي ټولنې د نورو هېوادو په پرتله ډېر وخت سينما ته ځي

**Lösungen:**
1. irgendein 2. irgendeinen 3. irgendeinem 4. irgendeiner 5. irgendeine
6. irgendeinen 7. irgendeinem 8. irgendeiner 9.irgendwelchen 10. irgendwelchem
11. irgendwelche 12. irgendeines 13. irgendeinen 14. irgendeinen 15. irgendeinem

## Indefinitpronomen: „irgendwer , irgendwas“ كوم څوك، كوم څه

دا هغه ضميرونه دي چې په تېرو مبحثونو كې د (wer + was) په توګه ورانديز شول. خو كله چې له دې دواړو ضميرونو سره (irgend) يوځاى شي، نو ناڅرګندتيا يې لاپسې ډېره شي. دا ضميرونه تل مفرد دي او جمع نه لري. (irgendwer) د يو نامعلوم كس لپاره راځي او (irgendwas) د نامعلوم شي، يوې نامعلومې مفكورې او داسې نورو لپاره راځي.

| | Personen اشخاص | | Dinge usw. شیان او داسي نور | |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ | wer<br>څوک | irgendwer<br>یو څوک نه یو څوک | was څه | irgendwas<br>یو څه نه یو څه |
| Genitiv | (wessen)<br>د چا | irgendwessen<br>د یو چا نه د یو چا | (wessen)<br>د څه شي | irgendwessen<br>د یو شي نه د یو شي |
| Dativ | wem<br>یو چا ته | irgendwem<br>یو چا ته نه یو چا ته | was څه شي ته | irgendwas<br>یو شي ته نه یو شي ته |
| Akkusativ | wen څوک | irgendwen<br>یو څوک نه یو څوک | was څه شی | irgendwas<br>یو شی نه یو شی |

Beispielsätze:

Dort drüben steht irgendwer. هلته کوم څوک نه کوم څوک ولاړ دی
Ich möchte jetzt irgendwas Süßes. اوس زما زړه یو خوږ غوندې شي ته کیږي
Er hat dort irgendwen getroffen. هغه هلته د کوم چا سره نه کوم چا سره لیدلي دي
Ich glaube nicht, dass das irgendwem auffällt. زه ګمان نکوم چې دی ته د کوم چا پام وشي
Sie redeten von irgendwas anderem. هغوی د کوم بل شي په برخه کي خبري کولي
Er lässt sich nicht vor irgendwessen Karren spannen.
له هغه نه هیڅ څوک د خپلي ګټي لپاره کار اخیستی نشي (اصطلاح)
Er redet ständig über irgendwessen Krankheiten.
هغه تل د یو چا نه د یو چا د ناروغیو په برخه کي خبرې کوي

| یادونه | (irgendwer + irgendwas) په اصطلاحي ډول یا په ساده ژبه استعمالیري. په لیکلي ډول یا په کتابي ډول د دې په ځای (irgendjemand + irgendetwas) کارول کیږي. مثال: |
|---|---|

| Umgangssprache اصطلاحي ژبه | Standardsprache کتابي ژبه |
|---|---|
| Dort drüben steht irgendwer.<br>= Dort steht wer. هلته کوم څوك ولاړ دی | Dort drüben steht irgendjemand.<br>هلته کوم څوك ولاړ دی |
| Sie reden von irgendwas anderem.<br>= Sie reden von was anderem.<br>تاسو د کوم بل شي په برخه کي غږیږئ | Sie reden von irgendetwas anderem.<br>تاسو د کوم بل شي په برخه کي غږیږئ |

**Übungen:**

1. __________ gab mir neulich diesen Tipp. کوم چا نه کوم چا راته په دې لنډو کي دا چل وښود
2. An __________ musste er seine Wut auslassen.
په یو چا نه په یو چا باید هغه خپل قهر کړی وای
3. Er war schließlich nicht __________ هغه نو هسي کوم وړوکی کس نه و (مهم کس و)
4. Das kann dein Bruder machen oder __________ aus eurer Familie
دا کار ستا ورور او یا کوم بل څوك ستا له کورنۍ نه کوی شي
5. Ich bin nicht _________. زه کوم وړوکی سړی نه یم، زه کوم معمولي سړی نه یم)
6. ___________ stimmt hier nicht. دلته یو شی نه یو شی صحیح ندی
7. Lass uns heute __________ unternehmen!
راځه چي نن ځان ته کوم د ساعت تیری پروګرام جوړ کړو

| | |
|---|---|
| 8. Du bist so blass, ist _________ passiert? | ستا رنګ ډېر ژېړ دی، کومه پېښه شوې؟ |
| 9. Bei der Sache ist __________ faul. | په دې کار کې کوم ورانی پروت دی |
| 10. Ist___________ ? | څه خبره ده؟ څه کیسه ده؟ |

**Lösungen:**
1. irgendwer 2. irgendwem 3. irgendwer 4. irgendwer 5. irgendwer
6. irgendwas 7. irgendwas 8. irgendwas 9. irgendwas 10. irgendwas

## Indefinitpronomen: „jeder, jedweder, jeglicher“
## هر يو، هر شان چې وي، هر يو چې وي

دا ضميرونه د (Artikel) په توګه له یو اسم نه مخکې او یا د اسم په ځای کارول کیږي او د یوې ډلې او یا د یو ګروپ ټول عناصر ښکاره کوي. د دې ضمیرونو او د (ټول = alle) توپیر په دې کې دی چې (alle) په مجموعي ډول هر څه یادوي. (jeder, jeglicher, jedweder) هرڅه نه یادوي بلکې د یو شي بېلې بېلې برخې یادوي. د دې درې ضمیرونو نه (jeder) ډېر مروج دی. دا دواړه نور ضمیرونه، یعني (jeglicher + jedweder) د ډېر ټینګار او تآکید لپاره او په ادبي ژبه کې کارول کیږي. دا درېواړه ضمیرونه تش په مفرد ډول استعمالیږي. په ادبي ژبه کې (jedweder + jeglicher) په جمع کې هم استعمالېدی شي.

| | Singular | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum | Femininum | Neutrum |
| Nominativ | jeder, jedweder, jeglicher<br>هر يو، هر راز، هر ډول | jede, jedwede, jegliche<br>هره يوه، هره ډوله | jedes, jedwedes, jegliches<br>هر يو، هر راز، هر ډول |
| Genitiv | jedes, jedwedes, jegliches, jeden, jedweden, jegliche<br>د هر يو، له هر راز، له هر شان | jeder, jedweder, jeglicher<br>د هرې يوې، له هر شانې | jedes, jedwedes, jegliches, jeden, jedweden, jeglichen<br>د هر يو، له هر راز، له هر شان |
| Dativ | jedem, jedwedem, jeglichem هر يو ته، هر راز ته، هر شان ته | jeder, jedweder, jeglicher هرې يوې ته، هرې يوې شانې ته | jedem, jedwedem, jeglichem هر يو ته، هر راز ته، هر شان ته |
| Akkusativ | jeden, jedweden, jeglichen<br>هر يو، هر راز، هر ډول | jede, jedwede, jegliche<br>هره يوه، هر ډوله | jedes, jedwedes, jegliches<br>هر يو، هر راز، هر ډول |

| | |
|---|---|
| Beispiele<br>Ihm fehlt jeglicher Mut. | مثالونه<br>په هغه کې هيڅ شان جرآت نشته |
| Nach seinem Unfall war ihm jegliche Freude am Motorradfahren vergangen.<br>له ټکر نه وروسته په هغه کې د موټرسيکل چلولو هر راز خوشحالي ورکه شوې وه | |
| Dies ist abseits von jedweder Vernunft. | دا له هر راز تعقل نه لیرې کار دی |
| Jedweder Bürger hat das Recht, frei zu sprechen.<br>هر تن وګړی دا حق لري چې ازادې خبرې وکړي | |

| | |
|---|---|
| Jedweder Kontakt ist untersagt. | هر راز اړيکي منع دي |
| Die Eltern möchten ihre Kinder vor jedwedem Schaden bewahren. | مور او پلار غواړي چې خپل اولادونه له هر راز تاوان نه وساتي |
| Sie meidet jedweden Blick nach vorn. | هغه له هر راز وړاندې کتلو نه ډډه کوي |
| Das weiß jedes Kind. | په دې باندې هر ماشوم پوهيږي |
| Die Polizei befragte jeden einzeln. | پوليس په بيل بيل ډول له هر يو نه پوښتني وکړې |
| Du bist ohne jede Chance. | ته هيڅ شان چانس نلرې |
| Jedem das Seine. | هر څوك دې خپل كار كوي |
| im Interesse jedes und jeder einzelnen | د هر نارينه کس او د هر ښځينه کس په ګټه |
| ohne jeglichen/jedweden Zweifel | بې له هيڅ شان شکه |
| Kauf und Verkauf von Antiquitäten jeder/jeglicher Art. | د هر او هر شان انتيك شيانو په بيه اخيستنه او خرڅونه |

| | |
|---|---|
| کله چې له (jeder + jeglicher) سره (ein) يوځای شي، يعني داسي ياد شي چې (ein jeder) او (ein jeglicher) نو مانا يې همغه شان پاتي كيږي چې پخوا وه، يعني (هر يو - هر شان) . خو که ګرادان شي، نو داسي ګردانيږي لکه (Adjektiv nach dem unbestiimten Artikel) . | توضيحات |

| Singular | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulinum | Femininum | Neutrum |
| Nominativ | ein jeder هر يو | eine jede هره يوه | ein jedes هر يو |
| Genitiv | eines jeden د هر يو | einer jeden د هرې يوې | eines jeden د هر يو |
| Dativ | einem jeden هر يو ته | einer jeden هرې يوې ته | einem jeden هر يو ته |
| Akkusativ | einen jeden هر يو | eine jede هره يوه | ein jedes هر يو |

Beispiele مثالونه

| | |
|---|---|
| Damit war eine jede zufrieden. | له دې نه هره يوه راضي وه |
| Ein jeder Mensch hat Enttäuschung in der Liebe erfahren. | هر يو انسان په مينه کې له مأيوسي سره مخامخ شوی دی |
| Die Bibliothek ist das Herzstück einer jeden Universität. | کتابتون د هر پوهنتون د زړه ټوټه ده |

| | |
|---|---|
| د (Genitiv) په حالت کې (jedwedes, jegliches) بې له اسمه په يوازې ډول نشي کارول کېدی: | پاملرنه |

falsch = غلط ~~Der Beitrag jedes, der daran teilnimmt.~~
richtig = صحيح Der Beitrag eines jeden, der daran teilnimmt.
د هر چا ونډه چې يکې برخه اخلي
richtig = صحيح Die Beiträge aller, die daran teilnehmen. (Plural جمع)
د ټولو ونډه چې پکې برخه اخلي

**Übungen:**

1. Wir begrüßen ___________ Engagement. مونږ هر شان هلوځلو ته هرکلی وایو
2. Deine Argumentation entbehrt ___________ Grundlage!
ستا استدلال هېڅ شان اساس نلري
3. Das ist zu _________ Zeitpunkt verboten. دا په هر وخت کې منع دی
4. Im Kampf gegen ____________ Unrecht darf das Recht nicht gebrochen werden. د بې عدالتۍ په وړاندې جګړه کې باید عدالت د پښو لاندې نشي
5. So sehen Verlierer aus, frei von ____________ Selbstbewusstsein.
بایلونکي داسې ښکاري، بې له په ځان اعتماد

**Lösungen:**
1. jedwedes 2. jedweder 3. jedwedem 4. jedwedes 5. jedwedem

## Indefinitpronomen: „jemand, irgendjemand, niemand"

دا ضمیرونه د مفرد په توګه د یو اسم په ځای کارول کیږي. (jemand) یو ناڅرګند کس ته ګوته نیسي چې جنسیت یې نارینه، ښځینه او یا مخنث کېدی شي. که چېرته (irgend) ورسره یو ځای شي، یعني (irgend + jemand = irgendjemand) ورنه جوړ شي, نو ناڅرګندتوب یې لاپسې زیاتیږي. (niemand) د (jemand) برعکس دی، یعني (هېڅ څوک، یو تن هم نه) .

| Singular | | | |
|---|---|---|---|
| Nominativ | jemand یو څوک | irgendjemand<br>یو څوک نه یو څوک | niemand<br>هېڅ څوک نه |
| Genitiv | jemands<br>jemande د یو چا | irgendjemands<br>irgendjemandes<br>د یو چا نه د یو چا | niemands<br>niemandes<br>د هېڅ چا نه |
| Dativ | jemand<br>jemandem یو چا ته | irgendjemand<br>irgendjemandem<br>یو چا ته نه یو چا ته | niemand<br>niemandem<br>هېڅ چا ته نه |
| Akkusativ | jemand<br>jemanden یو څوک | irgendjemand<br>irgendjemanden<br>یو څوک نه یو څوک | niemand<br>niemanden<br>هېڅ څوک نه |

Beispiele مثالونه

| | |
|---|---|
| Jemand hat die Tür geöffnet. | کوم چا دروازه پرانیستې ده |
| Irgendjemand muss es getan haben. | کوم چا نه کوم چا به دا کار کړی وي |
| Niemand sollte sich seiner Sache allzu sicher sein. | هېڅ څوک باید پخپل کار دومره مطمئن ونه اوسي |
| Wie kann man jemands/jemandes Charakter beurteilen? | سړی د یو چا د کرکټر په برخه کې څنګه قضاوت کوی شي؟ |
| Er ist niemands Feind. | هغه د هېڅ چا دښمن نه دی |
| Ich habe niemand anders gesehen. | ما کوم بل څوک ندی لیدلی |

| | |
|---|---|
| Er arbeitet für niemand Unbekannten. | هغه د هیڅ نامعلوم کس لپاره کار نه کوي |
| Sprich mit niemand Unbekanntem. | ته د هیڅ نامعلوم کس سره خبرې مه کوه |

دا ضمیرونه په (Dativ + Akkusativ) کې بې له ګردانه هم کارول کېدی شي. مثال:

| | |
|---|---|
| Kennst du hier irgendjemand? | ته دلته کوم څوك پیژني؟ |
| Er schenkt niemand sein Vertrauen. | هغه په هیڅ چا اعتماد نکوي |
| Er hat jemand getroffen. | هغه له یو چا سره ولیدل |
| Ich habe niemand gesehen. | ما هیڅ څوك ندي لیدلي |
| Habt ihr es irgendjemand erzählt? | تاسو دا خبره کوم چا ته کړي ده؟ |
| Wir haben es niemand erzählt. | مونږ دا خبره هیڅ چاته نده کړي |

ځیني اسمونه شته چي هغه له صفت نه جوړ شويدي، لکه (پردی) (fremd =). له دی نه (der Fremde) یعني (پردی سړی) جوړېدی شي. که چېرته له داسي اسمونو نه مخکې (irgendjemand) او(anders) راشي، نو بیا (jemand + anderes) نه ګردانیږي او پخپل حال پاتي کیږي. مثال:

| |
|---|
| Für jemand Fremden hätten wir das nicht getan. |
| د یو پردي کس لپاره به مونږ دا کار نه وای کړی |
| (falsch = Für jemanden Fremden)　　په پورتنی جمله کې دا غلطه ده چې ویل شي چې |

له صفت نه جوړ شوي اسمونه لکه (Unbekanntes) چې د مخه یې (jemand/niemand) راځي، زیاتره وخت په مخنث ډول استعمالیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Jemand Unbekanntes kam herein. | کوم پردی کس راننوت |
| Er arbeitet für jemand Unbekanntes. | هغه د یو نامعلوم کس لپاره کار کوي |

**Übungen:**

1. ____________ hätte es tun können, aber Niemand tat es.
یو چا نه یو چا دا کار کوی شو، خو هیڅ چا ونکړو
2. ____________wusste, wohin er gereist war.
هیڅ څوك په دې نه پوهېدو چې هغه چېرته په سفر تللی دی
3. Jeder war sicher, dass sich __________ darum kümmert.
هر څوك متیقن و چې یو څوك به د دې غم وخوري
4. Kann mir ___________ sagen, wo wir hier sind?
کوم څوك ما ته ویلی شي چې مونږ دلته چېرته یو؟
5. Es war nicht ____________ , sondern der König von Schweden.
دا نو کوم عادي کس نه و بلکې د سویډن باچاه و
6. Kann mir ___________ beim Abspülen helfen?
کوم څوك له ما سره په لوښو مینځلو کې مرسته کولی شي؟
7. Sind Sie von __________ anderem dazu berechtigt worden?
تاسو ته کوم چا په دې برخه کې څه حق درکړی دی؟
8. Dürfen Sie für __________ anderen unterschreiben?
تاسو ته اجازه ده چې د یو بل لپاره لاسلیك وکړئ
9. Das habe ich von __________ Unbekanntem gehört.
دا خبره ما د یو نامعلوم کس له خوا اورېدلي ده

10. Sie denkt an ___________ anders. هغه د يو بل چا په فکر کې ده
11. Ich habe ihn mit _________ anders spazieren gehen sehen.
هغه ما وليدو چې له يو بل چا سره په چکر تلو
12. Sie sprach mit__________ . هغې له کوم چا سره خبرې وکړې
13. Haben Sie mit ___________ darüber gesprochen?
تاسو په دې برخه کې له کوم چا سره خبرې کړې دي؟
14. Für die Welt bist du nur__________ , aber für ___________ bist du die ganze Welt. د نړۍ لپاره ته هسې يو څوک يې، خو د يو چا لپاره ته ټوله نړۍ يې
15. Sie interessiert sich nicht für __________ anders. هغه کوم بل چا سره علاقه نلري

**Lösungen**:

1. irgendjemand 2. niemand 3. jemand 4. irgendjemand 5. irgendjemand 6. irgendjemand 7. jemand 8. jemand 9. jemand 10. Jemand 11. jemand 12. irgendjemand 13. irgendjemand 14. irgendjemand, irgendjemand 15. irgendjemand

## Indefinitpronomen: „man“ خلك ،سړى

دا ضمير د يو يا د ډېرو نامعلومو اسمونو په ځای په مفرد فاعل ډول (Nominativ Singular) استعماليږي. په پښتو کې داسې ضميرونه دوه دي. کله چې يو نامعلوم کس يو تن وي، نو ورته (سړی) ويل کيږي. نو کله چې نامعلوم کسان ډېر وي، نو ورته (خلك) ويل کيږي. په جرمني ژبه کې دواړو ته (man) ويل کيږي. اوس به دوه بېلګې په پښتو کې وګورو. کله چې يوه مور خپلې لور ته وايي چې:

| |
|---|
| ته ډېر تود چاى مه څښه. ډېر تود چاى د سړي خوله سوځوي<br>خلك داسې خبرې نکوي چې ته يې کوې |

په پورتنو جملو کې يوه مور چې ښځينه ده خپلې لور ته چې هغه هم ښځينه ده وايي چې (... د سړي خوله سوځوي) او په دوهمه جمله کې وايي چې (خلك داسې نکوي). دې مور داسې ونه ويل چې ډېر تود چاى د (ښځې) خوله سوځوي. په دوهمه جمله کې يې ونه ويل چې (ښځې داسې خبرې نکوي). په پښتو کې کله چې وويل شي چې (د سړي ...) او يا (خلك داسې ...). دلته له (سړي) نه مطلب له نارينه جنسيت نه ندى بلکې له دواړو جنسيتونو نه دى، يعني له (نارينه او ښځې) نه. او همدا شان کله چې وويل شي چې (خلك داسې ...). له دې نه مطلب هم له دواړو جنسيتونو نه دى. داسې مطلب په جرمني ژبه کې تش په يو نومځري، يعني په (man) بيانيږي چې ورته (Indefinitpronomen) وايي. په پښتو کې دوه نومځري (سړی او خلك) ورته شته. لاندينی جدول وګورئ:

| Nominativ Singular<br>Paschto پښتو | Nominativ Plural<br>Paschto پښتو | Nominativ Singular + Plural<br>Deutsch |
|---|---|---|
| سړی | خلك | man |

| Nominativ Singular (man)<br>مفرد فاعل (سړی) | Nominativ Plural (man)<br>جمع فاعل (خلك) |
|---|---|
| So etwas tut man nicht.<br>سړی داسې کار نه کوي | Man lacht über ihn.<br>په هغه باندې خلك خاندي |

| | |
|---|---|
| Wenn man krank ist, bleibt man zu Hause. کله چي سړی ناروغ وي، نو په کور کې پاتې کیږي | Man denkt heute anders darüber. په دې برخه کې خلك نن بل څه فکر لري |
| Man wird verrückt, wenn man niemanden hat. کله چي سړی څوك ونلري، نوسړی لېونی کیږي | Man sagt, dass du krank seist/seiest. خلك وايي چې ته ناروغ يې |

## Indefinitpronomen und Artikelwort: „manch , mancher"

### کوم يو، کوم کوم

په لغوی مانا (manch + mancher) په پښتو کې (کوم کوم ، کوم يو ، ځیني ځینې) ته وايي. دا ضمیرونه د (Artikel) په توګه له يو اسم په مخکې او هم د اسم په ځای استعمالیږي. دا نومځری د انسانانو يوه نامعلومه ډله او يا د يو شي يا د يو جنس يوه نا څرګنده کورنی يادوي چې دا ډله يا دا کورنی ډېر اهمیت لري. د (manch) ضمیر بې ګردانه استعمالېدی شي او ګردانېدلی هم شي.

① بې ګردانه ضمیر (manch) . مثالونه

| | |
|---|---|
| Wir haben *manch* gutes Buch gelesen. | مونږ کوم کوم ښه کتاب لوستی دی |
| in *manch* schwerer Stunde | په کوم کوم سخت حالت کي |
| *Manch* anderer hätte nicht so reagiert. | کوم بل چا به داسې غبرګون نه وای ښودلی |
| Wir waren damit und mit *manch* anderem nicht zufrieden. | مونږ نه له دې نه او نه له کومو نورو نه راضي وو |
| *Manch* ein Mensch lernt es nie. | کوم کوم انسان يي په ژوند کې هم نشي زده کولی |
| Das mag *manch* einem Zuhörer bekannt sein. | دا به کوم کوم اوريدونکي ته څرګنده وي |

② ګردان شوی ضمیر

| | Singular | | | Plural |
|---|---|---|---|---|
| | Maskulin | Feminin | Neutrum | Mask./Neutr./Fem |
| Nominativ | mancher<br>کوم کوم | manche<br>کومه کومه | manches<br>کوم کوم | manche<br>کوم کوم |
| Genitiv | manches<br>manchen<br>د کوم کوم | mancher<br>د کومې کومې | manches<br>manchen<br>د کوم کوم | mancher<br>د کومو کومو |
| Dativ | manchem<br>کوم کوم ته | mancher<br>کومې کومې ته | manchem<br>کوم کوم ته | manchen<br>کومو کومو ته |
| Akkusativ | manchen<br>کوم کوم | manche<br>کومه کومه | manches<br>کوم کوم | manche<br>کوم کوم |

Beispiele مثالونه

| | |
|---|---|
| Manche Menschen lernen es nie. | ځیني انسانان يي په ژوند کې هم نشي زده کولی |
| Mir war noch manches unklar. | ما ته ځیني شیان څرګند نه وو |
| Er hat schon so manchen betrogen. | هغه ځینوځینو کسانو سره درغلي کړېده |
| Ich habe es schon von manchem gehört. | دا خبره ما له ځینوځینو کسانو نه اورېدلې ده |

| | |
|---|---|
| Das mag manchen Zuhörern bekannt sein. | دا به ځینو اورېدونکو ته څرګنده وي |
| Der Preis mancher ihrer Produkte ist zu hoch. | د هغوی د ځینو تولیداتو نرخ جګ دی |
| An manchen Tagen geht es besser, an manchen schlechter. | په ځینو ورځو کې دا ښه وي، په ځینو کې خراب |
| Nach Meinung mancher Experten trifft das nicht zu. | د ځینو متخصصینو په نظر دا واقعیت نلري |

**Übungen**:

1. __________ Problem kann nur der Fachmann lösen.
ځیني مشکلات تش متخصص حلولی شي
2. __________ Fehler werden immer wieder gemacht. ځیني غلطی بیا بیا کیږي
3. __________ böses/_________ böse Wort hätte vermieden werden können.
د ځینو ځینو بدو الفاظو مخه نیول کېدی شوه
4. So __________ spricht dafür, dass … له ځینو نه داسي ښکاري چي ...
5. __________ einem ist egal, was für Zigaretten er raucht.
ځیني کسانو ته بې تفاوته ده چي هغه کوم شان سګرټ څکوي
6. __________ wollte das alles nicht glauben. ځینو نه غوښتل چي په دې باور وکړي
7. Ich werde __________ Dinge vermutlich nie lernen.
ځیني شیان به زه هېڅکله زده نکړم
8. In __________ Ländern ist die Situation besonders gravierend.
په ځینو هیوادو کې وضع ډېره سخته ده
9. In ____________ hatte sie Recht. په ځینو حالاتو کې د هغې خبره ریښتیا وه
10. ____________ ist kein Weg zu weit. ځینو کسانو ته هېڅ لاره اوږده نده

**Lösungen:**
1. manches 2. manche 3. manch/manches 4. manches 5. manch 6. mancher
7. manche 8. manchen 9. manchem 10. manchem

## Indefinitpronomen und Artikelwort: „mehrere“ ډېر، یو څو

دا ضمیر د (Artikel) په توګه د یو اسم په مخکي استعمالیږي او د یو نامعلوم شمېر کسانو یا شیانو ښکارندوی دی چي مانا یې ده: یو څو، یو څه. دا ضمیر د یو صفت په شان په جمع کې کارول کیږي.

| Singular | | |
|---|---|---|
| | Mask/Neutr/F | Beispielsätze |
| Nominativ | mehrere<br>ډېر، یو څو | Ich war mehrere Stunden dort. زه ډېر ساعته هلته وم |
| Genitiv | mehrerer<br>د ډېرو، د یو څو | auf Bitten mehrerer Leute د ډېرو کسانو په هیله |
| Dativ | mehreren<br>ډېرو ته، یو څو ته | mit mehreren älteren Leuten له ډېرو زړو کسانو سره |
| Akkusativ | mehrere<br>ډېر، یو څو | Noch haben wir mehrere Möglichkeiten. مونږ اوس هم لا ډېر امکانات لرو |

**Übungen:**

1. Das hat __________ Stunden gedauert. دې يو څو ساعته دوام وکړ
2. __________ Nachbarn haben sich über den Lärm beschwert.
د شورماشور له پلوه ډېرو ګاونډيانو شکايت وکړو
3. Noch haben wir __________ Möglichkeiten. تر اوسه لا مونږ يو څو نور امکانات لرو
4. Familien mit _________ Kindern يو څوماشومان لرونکي کورنۍ
5. die Wahl _________ Abgeordneter د يو څو وکيلانو ټاکنه
6. __________ von ihnen waren dort anwesend. له هغوی نه يو څو کسان هلته حاضر وو
7. Sie kamen zu__________ . هغوی څو تنه راغلل
8. Sie war _________ Wochen verreist. هغه څو اونۍ په سفر تللي وه
9. Sie sind über _________ Ecken miteinander verwandt.
هغوی له يو بل سره ډېر ليرې خپلوان دي
10. an _________ Fronten kämpfen په څو جبهو کې جنګېدل، په څو اړخونو کې فعاليت کول

**Lösungen:**

1. mehrere 2. mehrere 3. mehrere 4. mehreren 5. mehrerer 6. mehrere
7. mehreren 8. mehrere 9. mehrere 10. mehreren

## Indefinitpronomen: „meinesgleichen, deinesgleichen“

دا نومځرى له دوه برخو نه جوړ شوی دی. لومړی برخه يې ده (meines) او يا (deines) چې مانا يې ده (زما) او يا (ستا). دوهمه برخه يې ده (gleichen)، چې مانا يې ده (په شان). کله چې دواړه برخې له يو بل سره يوځای شي، نو ورنه جوړيږي (meinesgleichen, deinesgleichen) چې مانا يې ده (زما په شان، ستا په شان). د دې ضمير د ګردان په وخت تش لومړی برخه يې، يعنې (meines, deines) بدليږي او دوهمه برخه يې، يعنې (gleichen) پخپل حال پاتې کيږي. په لاندې برخه کې د هرکس لپاره د لومړی برخې بدلون په بېل بېل ډول وګورو.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | meinesgleichen | = | *wie ich* | لکه زه، زما په شان |
| du | deinesgleichen | = | *wie du* | لکه ته، ستا په شان |
| er | seinesgleichen | = | *wie er* | لکه هغه، د هغه (سړي) په شان |
| sie | ihresgleichen | = | *wie sie* | لکه هغه ښځه، د هغې ښځې په شان |
| es | seinesgleichen | = | *wie es* | لکه هغه ماشوم، د هغه ماشوم په شان |
| wir | unseresgleichen | = | *wie wir* | لکه مونږ، زمونږ په شان |
| ihr | euresgleichen | = | *wie ihr* | لکه تاسو، ستاسو په شان |
| sie | ihresgleichen | = | *wie sie* | لکه هغوی، د هغوی په شان |
| Sie | Ihresgleichen | = | *wie Sie* | لکه تاسو، ستاسو (محترم کس) په شان |

Beispielsätze:

Meinesgleichen werdet ihr dort nicht antreffen. لکه زما په شان کس به هلته تاسو ونه وينۍ
Euresgleichen ist hier nicht willkommen. ستاسو غونډې خلکو ته دلته ځوک ښه راغلی نه وايي
Das müssen Josef, Jakob, David und ihresgleichen wissen.
په دې باندې بايد يوسف، يعقوب، داؤد او له هغوی په شان نور کسان پوه شي

| | |
|---|---|
| Das sind Erfolge, die ihresgleichen suchen. | دا بې ساري برياليتوبونه دي (اصطلاح) |
| Jeder Mensch braucht Kontakt mit seinesgleichen. هر څوك د يو چا سره اړيكو ته اړتيا لري چې د ده په شان وي | |
| für Sie und für viele Ihresgleichen | ستاسو او ستاسو په شان نورو انسانانو لپاره |

**Übungen**:

1. Ich war dort unter___________ . زه هلته زما په شان كسانو په ډله كې وم
2. ___________ kann sich das nicht leisten. زما په شان كسان د دې توان نلري
3. Er trifft sich mit__________ . هغه د ځان په شان كسانو سره ناسته ولاړه كوي
4. du und __________ ته او لكه ستا په شان كسان
5. Für dich und __________ ist das doch kein Problem! تا او لكه ستا په شان كسانو لپاره خو دا څه ستونځه نه ده
6. (*Sing*., jemand wie sie) Sie unterhält sich nur mit___________ . هغه تش د هغې په شان كسانو سره خبرې كوي
7. (*Plur*. jemand wie sie) Gegenüber Leuten wie ___________ sollte man vorsichtig sein. لكه د هغوی په شان خلكو په وړاندې سړی بايد پام وكړي
8. Sie und _________ können jetzt gehen. تاسو او لكه تاسو په شان كسان كوی شي چې ولاړ شي
9. Guter Mann, mit ___________ möchte ich nichts zu schaffen haben. ای سړيه، لكه ستا په شان كسانو سره زه نه غواړم چې ناسته پاسته وكړم
10. (*Sing*. *Od*. *Plur*.): Ich kenne sie und_____________ . زه هغه او لكه د هغې په شان كسان پېژنم
11. wir und ____________ مونږ او لكه مونږ په شان كسان
12. Hier sind wir unter____________ . دلته مونږ لكه زمونږ په شان كسانو سره پخپلو مينځو كې يو
13. Hier seid ihr unter___________. دلته تاسو لكه تاسو په شان كسانو سره پخپلو مينځو كې ياست
14. Ihr und ___________ seid hierher gekommen, um unsere schöne Welt zu zerstören. تاسو او لكه ستاسو په شان كسان دلته راغلي ياست چې زمونږ ښايسته نړی ړنګه كړئ
15. Ich kenne euch und___________ ! زه تاسو او لكه ستاسو په شان كسان پېژنم

**Lösungen:**

1. meinesgleichen 2. meinesgleichen 3. seinesgleichen 4. deinesgleichen 5. deinesgleichen 6. ihresgleichen 7. ihresgleichen 8. ihresgleichen 9. ihresgleichen 10. ihresgleichen 11. unseresgleichen 12. unseresgleichen 13. euresgleichen 14. euresgleichen 15. euresgleichen

## Indefinitpronomen: „nichts“ هيڅ شی، هيڅ شی نه، هيڅ نه

د (nichts) لغوي مانا ده (هيڅ نه، هيڅ شی نه). د دې ضمير نه په څو ډولونو كار اخيستل كېدی شي:

① په يوازې ځان (خو دا ضمير هيڅكله نه ګردانيږي)

② د يو (Artikel) په توګه له يو ضمير نه مخكې

③ له يو اسم نه مخكې، خو په دې شرط چې دا اسم مخنث وي او له يو صفت نه جوړ شوي وي او مفرد وي، لكه (Gutes, Schlechtes, Besonderes) او داسې نور.

د دې ضمير متضاد لغت دی (etwas, alles) يعني (يو څه، هر څه) . نو له دې کبله کله چې د (يو څه، هر څه) يا (etwas, alles)، برعکس ځواب ورکول کيږي، نو (هيڅ نه) يا (nichts) استعماليږي.

Beispiele مثالونه

| etwas, irgendetwas, alles | nichts |
|---|---|
| Wird daraus etwas Gutes entstehen?<br>له دې نه به کوم ښه شی جوړ شي؟ | Nein, daraus wird nichts Gutes entstehen.<br>نه، له دې نه به هيڅ ښه شی جوړ نشي |
| Hast du etwas von ihm gehört?<br>تا له هغه نه څه اورېدلي دي؟ | Nein, ich habe nichts von ihm gehört.<br>نه، ما له هغه نه هيڅ ندي اورېدلي |
| Hat er irgendetwas gemerkt?<br>هغه په کوم څه باندې پوه شو؟ | Nein, er hat nichts gemerkt.<br>نه، هغه په هيڅ شي پوه نشو |
| Habt ihr irgendetwas gesehen?<br>تاسو کوم څه نه کوم څه وليدل؟ | Nein, wir haben nichts gesehen.<br>نه، مونږ هيڅ شی ونه ليدل |
| Weiß er alles? هغه په هر څه پوهيږي؟ | Nein, er weiß nichts.<br>نه، هغه په هيڅ شي نه پوهيږي |
| Ist dein Geschenk etwas Besonderes?<br>ستا سوغات کوم خاص شی دی؟ | Nein, es ist nichts Besonderes.<br>نه، هغه هيڅ کوم خاص شی ندی |
| Hat er etwas Neues erzählt?<br>هغه کوم نوی څه وويل | Nein, er hat nichts Neues erzählt.<br>نه، هغه هيڅ څه نوی ونه ويل |
| Glaubst du alles, was er erzählt?<br>ته په هر څه باور کوی چې هغه وايي؟ | Nein, ich glaube nichts, was er erzählt.<br>نه، زه په هيڅ شي باور نکوم چې هغه وايي |

## Indefinitpronomen und Artikelwort: „sämtlich“ هرڅه

د (sämtlich) لغوي مانا ده (مجموعآ هرڅه، څه چې دي ټول په ګډه). له دې ضمير نه د يو (Artikel) په توګه له يو اسم په مخکې کار اخيستل کيږي. دا ضمير په مختلفو حالاتو په دوه ډولو استعماليږي. په يو ډول کې دا ضمير نه ګردانيږي، په بل ډول کې ګردانيږي.

① دا ضمير هغه وخت نه ګردانيږي چې د قيد په توګه وکارول شي. مثال:

| | |
|---|---|
| Die Gäste waren sämtlich alte Leute. | مېلمانه ټول زاړه خلك وو |

② کله چې دا ضمير ګردان شي، نو په هر حالت کې بدليږي چې په لاندينو جدولونو کې به يې وګورو.

| Ohne Artikel | | | | |
|---|---|---|---|---|
| | Singular | | | Plural |
| | Maskulin | Feminin | Neutrum | Mask./Neutr./Fem |
| Nominativ | sämtlicher<br>ټول | sämtliche<br>ټولې | sämtliches<br>ټول | sämtliche<br>ټول |
| Genitiv | sämtlichen<br>د ټولو | sämtlicher<br>د ټولو | sämtlichen<br>د ټولو | sämtlicher<br>د ټولو |
| Dativ | sämtlichem<br>ټولو ته | sämtlicher<br>ټولو ته | sämtlichem<br>ټولو ته | sämtlichen<br>ټولو ته |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Akkusativ | sämtlichen<br>ټول | sämtliche<br>ټولې | sämtliches<br>ټول | sämtliche<br>ټول |

Beispiele مثالونه

| | |
|---|---|
| Sämtliche Freunde ließen uns im Stich. | ټولو ملګرو موږ یوازې پرېښودلو |
| Sämtliches Geld war verschwunden. | ټولې پیسې ورکې شوې وې |
| Sämtlicher aufgehäufte Sand wurde verbraucht. | ټوله امبار شوې شګه وکارول شوه |
| Sämtliches beschlagnahmte Eigentum wurde zurückgegeben.<br>ټول ضبط شوی ملکیت بېرته ورکړل شو | |
| Die Nutzung sämtlicher vorhandener Energie ist erlaubt.<br>د ټولې موجوده انرژۍ نه کار اخیستنې ته اجازه ده | |
| Mit sämtlichem verfügbaren Material wurde das Haus renoviert.<br>په ټول موجوده مواد باندې دا کور وتنډل شو، بېرته ورغول شو | |
| Die Kleidung sämtlicher Gefangener wurde gewaschen.<br>د ټولو بندیانو جامې پرېمینځل شوې | |

**Mit Possessivpronomen**
**Singular**

| | Maskulin | Feminin | Neutrum |
|---|---|---|---|
| Nominativ | ihr sämtlicher<br>ستاسو ټول | ihre sämtliche<br>(ښځینه) ستاسو ټول | ihr sämtliches<br>ستاسو ټول |
| Genitiv | ihres sämtlichen<br>ستاسو د ټولو | ihrer sämtlichen<br>(ښځینه) ستاسو د ټولو | ihres sämtlichen<br>ستاسو د ټولو |
| Dativ | ihrem sämtlichen<br>ستاسو ټولو ته | ihrer sämtlichen<br>(ښځینه) ستاسو ټولو ته | ihr sämtliche<br>تاسو ټولو ته |
| Akkusativ | ihren sämtlichen<br>ستاسو ټول | ihre sämtliche<br>ښځینه (ستاسو ټول) | ihr sämtliches<br>ستاسو ټول |

**Mit Possessivpronomen**
**Plural**

| | Mask./Neutr./Fem | Beispielsätze |
|---|---|---|
| Nominativ | ihre sämtlichen | Ihre sämtlichen Häuser blieben verschont. |
| Genitiv | ihrer sämtlichen | د هغوی ټول کورونه بچ پاتې شول |
| Dativ | ihren sämtlichen | Ihre sämtlichen Freunde ließen uns im |
| Akkusativ | ihre sämtlichen | Stich. ټولو ملګرو موږ یوازې پرېښودلو |

**Übungen:**

1. Er hat sein __________ Vermögen verloren. هغه خپله ټوله پانګه له لاسه ورکړه
2. Schillers __________ Werke د جرمني شاعر شیله ټول آثار
3. mit __________ zur Verfügung stehenden Mitteln
په هغو ټولو وسایلو باندې چې په اختیار کې دي
4. Er schrieb seine Bücher __________ im Exil. هغه خپل ټول کتابونه په کډوالیتوب کې ولیکل

5. Ihre Vorschläge wurden __________ abgelehnt. د هغوی ټول وړاندیزونه رد شول
6. Er verlor sein _________ Geld. هغه ټولې پیسې له لاسه ورکړې
7. Eine Maßnahme, die den Interessen __________ Beteiligter gerecht wird. داسې یو اقدام چې د ټولو ګډونوالو علایق په نظر کې ونیسي
8. Die Kleidung _________ Gefangener ist schmutzig. د ټولو بندیانو جامې ناولې دي
9. Senden Sie die Maschine mit __________ Zubehör an uns zurück. تاسو دا ماشین له ټولو سامانونو او وسایلو سره مونږ ته بېرته راواستوئ
10. Ich habe ihre _________ Bücher zurückgebracht. ما ستاسو ټول کتابونه بېرته راوړل

**Lösungen:**
1. sämtliches 2. sämtliche 3. sämtlichen 4. sämtlich 5. sämtlich 6. sämtliches
7. sämtlicher 8. sämtlicher 9. sämtlichem 10. Sämtlichen

## Reziprokpronomen (Wechselseitige Fürwörter)

## دوه اړخیزه یا متقابل ضمیر

کله چې سړی یو کار په یوازې ځان ونکړي بلکې په دې کار کې بل څوك هم ښکېل وي، خو په دې ډول چې هغه بل څوك له بل اړخ نه متقابل اقدام وکړي، لکه یو بل وهل ټکول، یو بل ژغورل، له یو بل سره مینه درلودل، یو بل وژل، له یو بل سره مرسته کول، نو دا ډول چلند په ګرامر کې په متقابل نومځري یا په (Reziprokpronomen) بیانیږي او هغه دا دي: (einander/gegenseitig) . مثال:

| Aussagesätze | Sätze mit Reziprokpronomen |
|---|---|
| Adam liebt Eva und Eva liebt Adam.<br>آدم د هوا سره مینه لري او هوا د آدم سره | Adam und Eva lieben einander .<br>آدم او هوا له یوبل سره مینه لري |
| Adam und Eva lieben sich.<br>آدم د هوا سره مینه لري او هوا د آدم سره | Adam und Eva lieben sich gegenseitig.<br>ادم او هوا په متقابل ډول د یو بل سره مینه لري |

په دې چې په داسې جملو کې لږ تر لږه دوه اړخه شتون لري، نو له دې کبله په دې جملو کې هېڅکله یو فاعل په یوازې ځان او یو فعل په مفرد ډول نه استعمالیږي، بلکې فعل او فاعل تل په جمع یا په (Plural) کې کارول کیږي.
متقابل ضمیرونه اصلاً د نورو ضمیرونو په شان نومځري دي، خو د پورتني کتار نومځري نه بلکې د لاندې کتار. سړی کولی شي چې ورته د (Reflexivpronomen) یا منعکسه ضمیر په سترګو وګوري چې هغه په (sich) باندې ګردانیږي. نو له دې کبله (sich) د (Reziprokpronomen) په توګه هم کارول کېدی شي. مثال:

| |
|---|
| Die beiden ehemaligen Feinde haben sich nun verbrüdert.<br>هغو دواړو پخوانو دښمنانو اوس له یو بل سره وروروګلوي وکړه |

| | |
|---|---|
| (sich + uns) خو په (Reflexivpronomen) کې هم کارول کیږي، نو سړی څه پوه شي دا (Reflexivpronomen) دی او که (Reziprokpronomen)؟ | پوښتنه |
| کله چې (sich + uns) د (Reziprokpronomen) په توګه استعمال شي، نو د خپل ځان په مانا نه بلکې د هغه مخامخ کس په مانا استعمالیږي. د دې مطلب د ښه واضح کولو لپاره به یوه جمله ووینو: | ځواب |

| Die Katzen kratzen sich die Augen aus. | پیشوګانې خپلې سترګې راوباسي |
|---|---|

له دې جملې نه دا مطلب اخيستل کېدی شي چې:

| 1. Die Katzen kratzen einander die Augen aus. | يوه پيشو د بلې پيشو سترګې راوباسي |
|---|---|

دلته (sich) د دوه اړخيز ضمير يا (Reziprokpronomen) په توګه استعمال شوی دی، ځکه چې دوي په متقابل ډول د يو بل سترګې وباسي. له بلې خوا فعل او فاعل په مفرد ډول نه بلکې په جمع کې استعمال شوي دي.

| 2. Die eine Katze kratzt sich die Augen aus und die andere kratzt sich ebenfalls die Augen aus. يوه پيشو خپلې سترګې را وباسي او هغه بله پيشو هم همدا شان خپلې سترګې را وباسي |
|---|

دلته (sich) د منعکسه ضمير يا (Reflexivpronomen) په توګه کارول شوی دی، ځکه هيڅ پيشو د بلې پيشو سره څه کار نلري او خپلې سترګې وباسي. له بلې خوا په دې جمله کې فعل او فاعل دواړه په مفرد کې راغلي دي. بل مثال:

| Wir schnitten uns die Haare (Meriam und ich). | (مريم او ما) خپل وېښته بياتي کړل |
|---|---|

له دې نه دا مانا اخيستل کېدی شي :

| Wir schnitten uns gegenseitig die Haare. | ما د مريم او مريم زما وېښته بياتي کړل |
|---|---|

په پورتنۍ جملې کې (uns) د (Reziprokpronomen) په توګه استعمال شوی دی.

| Meriam schnitt sich die Haare und ich schnitt mir auch die Haare. مريم خپل وېښته بياتي کړل او ما خپل وېښته بياتي کړل |
|---|

په پورتنۍ جملې کې (uns) د (Reflexivpronomen) په توګه استعمال شوی دی. دريم مثال:

| Die Hunde beißen sich. | سپي يو بل داړي او يا يو بل چيچي |
|---|---|

| | |
|---|---|
| په پورتنۍ جمله کې سرې نيوهيږي چې د دې جملې مانا څه ده؟ هر يو سپی بېل بېل ځان پخپله داړي او که يو سپی په بل سپي وردانګي او داړي يې؟ | پوښتنه |
| که چېرته (sich) د (Reflexivpronomen) په توګه کارول شوی وي، نو مانا يې همدا ده چې هر يو سپی ځان پخپله داړي او بل سپی ورسره څه غرض نلري. | ځواب |

که چېرته (sich) د ( Reziprokpronomen) په توګه کارول شوی وي، نو مانا يې دا ده چې:
يو سپی په بل سپي باندې وردانګي او داړي يې.
څنګه چې پورته ياده شوه، د (Reziprokpronomen) لپاره له (sich) او له (einander) نه کار اخيستل کيږي. په لاندې برخه کې به د (einander) ګردان په مختلفو حالاتو کې زده کړو:

| | Plural | | |
|---|---|---|---|
| | wir | ihr | sie |
| Nominativ | - | - | - |
| Genitiv | einander زمونږ د يو بل | einander ستاسو د يو بل | einander د هغوی د يو بل |
| Dativ | einander مونږ يو بل ته | einander تاسو يو بل ته | einander هغوی يو بل ته |
| Akkusativ | einander مونږ يو بل | einander تاسو يو بل | einander هغوی يو بل |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Wir trafen einander am Bahnhof. | مونږ یو بل د اورګاډي په تمځي کي ولیدل |
| Ihr verachtet einander. | تاسو یو بل ته په ټیټه سترګه ګورئ |
| Sie gaben einander die Hand. | هغوی یو بل ته لاس ورکړو |

ډېر وخت د (einander) په ځای (Reflexivpronomen) یعني (sich) استعمالیږي، د دې لپاره چې مطلب لاپسي ښه واضح شي، نو په جمله کي ورسره (gegenseitig) یا د (متقابل) لغت ورزیاتېدی شي. لاندي مثالونه وګورئ:

| | |
|---|---|
| Wir trafen uns am Bahnhof. | مونږ یو بل د اورګاډي په تمځي کي ولیدل |
| Ihr verachtet euch (gegenseitig). | تاسو یو بل ته متقابلتاً په ټیټه سترګه ګورئ |
| Sie gaben sich (gegenseitig) die Hand. | هغوی یو بل ته متقابلاً لاس ورکړو |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | هېڅکله (sich) او (einander) او همدارنګه (gegenseitig) او (einander) په یوه جمله کي یو ځای نشي کارول کېدلی. خو (sich) او (miteinander) له یو بل سره یو ځای راتلی شي. لاندینو جملو ته وګورئ. |

| | |
|---|---|
| falsch غلط | ~~Wir trafen einander gegenseitig am Bahnhof.~~<br>مونږ یو بل متقابلتاً د اورګاډي په تمځي کي ولیدل |
| falsch غلط | ~~Ihr verachtet einander gegenseitig.~~<br>تاسو یو بل ته متقابلتاً په ټیټه سترګه ګورئ |
| falsch غلط | ~~Sie gaben sich einander die Hand~~. هغوی یو بل ته یو بل ته لاس ورکړو |
| richtig صحیح | Sie verkrachten sich miteinander. هغوی له یو بل سره په شخړه کي شول |
| richtig صحیح | Sie haben sich miteinander angefreundet.<br>هغوی د یو بل سره ملګري شول |

## Präposition + *einander*

کله چې له (einander) سره یو (Präposition) یو ځای شي، نو دا یو ځای لیکل کیږي. لکه :

| | |
|---|---|
| von + einander = voneinander | auf + einander = aufeinander |

| | |
|---|---|
| Sie warten aufeinander. | هغوی یو بل ته انتظار وباسي |
| Wir gingen miteinander aus. | مونږ د یو بل سره یو تفریحي ځای ته ولاړو |
| Ihr wisst nicht viel voneinander. | تاسو د یو بل په برخه کي ډېر معلومات نلرئ |
| Die Pferde trabten nebeneinander her. | آسونه د یو په څنګ کي په کراره کراره روان وو |
| Sie dachten viel aneinander. | هغوی د یو بل په برخه کي ډېر فکرونه وکړل |

## Reziproke Verben

ځینې فعلونه شته چې هغه په (Reziprok) ډول کارول کیږي او ځانګړتیا یې دا ده چې تل په جمع کې راځي. دا شان فعلونه په لاندینۍ برخه کې لیکل شوي دي:

| Reziproke Verben | |
|---|---|
| sich gegenseitig ärgern یو بل خپه کول | sich achten یو بل ته په درنه سترګه کتل |
| sich anfreunden له یو بل سره ملګري کېدل | sich umarmen له یو بل سره غاړه په غاړه کېدل |
| sich begrüßen یو بل ته سلام اچول | sich aussprechen له یو بل سره تر پایه غږېدل |
| sich einigen له یو بل سره یوې موافقې ته رسېدل | sich helfen له یو بل سره مرسته کول |
| sich kennen یو بل پېژندل | sich treffen له یو بل سره لېدل |
| sich lieben له یو بل سره مینه درلودل | sich begegnen له یو بل سره مخامخېدل |
| sich sehen یو بل لېدل | sich hassen له یو بل نه کرکه کول |
| sich streiten له یو بل سره شخړه کول | sich erkennen یو بل پېژندل |
| sich verbrüdern له یو بل سره وروروليي کول | sich ähnlich sehen یو بل ته ورته اوسېدل |
| sich verfeinden له یو بل سره دښمنېدل | sich vertragen له یو بل سره ګوزاره کول |
| sich verkrachen له یو بل سره جګړه کول | |

**Übungen**:

1. Mein Vater und mein Onkel halfen __________.
زما پلار او زما تره له یو بل سره متقابلتآ مرسته وکړه
2. Meine Schwester und meine Cousine sehen __________ sehr ähnlich.
زما خور او زما د ترور لور یو بل ته په څېره کې ډېرې ورته دي
3. Der Direktor und der Lehrer haben __________ erst nicht erkannt.
مدیراو ښوونکي لومړي یو بل ونه پېژندل
4. Sie töten und sie lieben__________ . هغوی یو بل وژني او له یو بل سره مینه لري
5. Sie wünschten __________ guten Morgen. هغوی یو بل ته سهار په خېر وویل
6. Der Minister und der Präsident begrüßen________ ___.
وزیر او رییس یو بل سره ستړي مشي کوي
7. Die Kinder vertragen __________ wieder. ماشومان له یو بل سره بېرته پخلا شول
8. Jakob und Josef hassen ___________ . یعقوب او یوسف د یو بل نه کرکه کوي
9. Wir sind __________ gestern begegnet. مونږ پرون یو بل ولیدل، د یو بل سره مخامخ شولو
10. Wir treffen __________ dort. مونږ له یو بل سره هلته وینو
11. Wir kämmen __________ gegenseitig. مونږ د یو بل سرونه ږمنځوو
12. Ihr schminkt __________ gegenseitig. تاسو متقابلتآ د یو بل سینګار کوئ
13. Sie achten__________ . هغوی یو بل ته په درنه سترګه ګوري
14. Die beiden Brüder umarmten ___________ .
دواړو ورونو د یو بل سره غاړه په غاړه شول
15. Sie sprachen sich aus. هغوی له یو بل سره اوږدې خبرې وکړې

**Lösungen**:

1. einander 2. einander 3. einander 4. sich 5. sich 6. sich 7. sich 8. einander/ sich 9. uns 10. uns 11. uns 12. euch 13. einander 14. sich 15. sich

# Die Zahlwörter د عددونو لغات

د عددونو لغات په جمله کې داسي دنده او دريځ لري لکه يو صفت. نو ځکه دا عددونه د صفتونو په شان کارول کيږي. د عددونو لغات په څو ډولو دي:

| | | |
|---|---|---|
| Kardinalzahlen<br>شمېره ښودونکی عددونه | eins, zwei, drei … | يو، دوه، دري |
| Ordinalzahlen<br>د درجي ښودونکی عددونه | erste, zweite, dritte … | لومړی، دوهم، دريم |
| Bruchzahlen ماتي عددونه | ein drittel, ein viertel … | يو پر دري، يو پر څلور |
| Vervielfältigungszahlwörter<br>د څو چنده کولو عددو لغات | zweifach, dreifach, vierfach... | دوه چنده، دري چنده، څلور چنده |
| Gattungszahlwörter<br>د ډول ښودنکو عددو لغات | einerlei, zweierlei, dreierlei | يو ډول، دوه ډوله، دري ډوله |
| unbestimmte Zahladjektive<br>نامعلومه شمېره ښودونکي عددونه | viel, wenig, zahlreich usw. | ډېر، لږ، ګڼشمېر او داسي نور |

**Kardinalzahlen**

| ohne Artikel | mit Artikel |
|---|---|
| nach der Aussage zweier Männer<br>د دوه سړو د خبرو په اساس | nach der Aussage der zwei Männer<br>د دوه سړو د خبرو په اساس |
| mit Hilfe dreier Schrauben<br>د دري پېچونو په مرسته | mit Hilfe dieser drei Schrauben<br>د دې دري پېچونو په مرسته |
| der Inhaber zweier kleiner Firmen<br>د دوه وړو کمپنيو خاوند | der Inhaber der zwei kleinen Firmen<br>د دوه وړو کمپنيو خاوند |

کله چي (eins) له يو (bestimmter Artikel) سره استعمال شي، نو د صفت په شان ګردانيږي. مثال:

| |
|---|
| Nach dem Spiel sprach der eine Trainer nicht mehr mit dem anderen.<br>د لوبې نه وروسته يو روزونکي له بل روزونکي سره خبرې ونکړې |

که چېرته (2-12) عددونه بې له اسمه په (Dativ) کې وکارول شي، نو د دې عددونو په پای کې (-en) راځي. دا په دې ډول:

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| drei | + | en | = | dreien | zwölf | + | en | = | zwölfen |
| دري | | | | درېواړه | دولس | | | | د دې دولس کسانو |

مثال:

| | |
|---|---|
| Viele Grüße von uns dreien. | زمونږ د درېواړو سلامونه |
| Einer von den zwölfen hat ihn verraten. | د دې دولس کسانو نه يو تن د هغه راز ويلی دی |

(zwei) او (drei) تش په (Genitiv + Dativ) کې ګردانيږي. مثال:

Die Ausstellungen zweier/dreier Maler wurden gleichzeitig eröffnet.
د دوه و ـ درېو هنرمندانو نندارتونونه په عين وخت کې پرانيستل شول

عددونه د اسم په توګه هم کارول کېدی شي، خو په دې وخت کې بيا د اسم په شان لوی ليکل کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Auf die Neun folgt Zehn. | د نهو نه وروسته لس راځي |

د مليونونو، ميلياردونو او بيليونونو عددونه هم لوی ليکل کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Bei dem Geschäft hat er eine Million verdient. | په دې سوداګرۍ کې هغه يو مليون وګټلې |
| Tausend Millionen sind eine Milliarde. | زر مليونه يو ميليارده کيږي |

داسې عددونه لکه (Hunderte, Tausende …) د فاعل يا مفعول په شان ګردانيږي. مثال:

Nach dem Erdbeben lebten Hunderte von Menschen in Holzbaracken.
د زلزلې نه وروسته په سلګونو کسان د لرګو په کوټو کې واوسېدل

## Feste Wendugen اصطلاحات

| | |
|---|---|
| auf allen *vieren* kriechen | په څلورو (لاس او پښو) خاپوړې کول |

## Ordinalzahlen د درجې ښودلو عددونه

| | |
|---|---|
| Das Gespräch fand am 8. (= am achten) April statt. | خبرې اترې د اپريل په اتمه وشوې |
| Berlin, den 8. (den achten) April 2000 | برلين، د اپريل اتمه، ۲۰۰۰ کال |
| Gestern war Freitag, der 8. (= der achte) April. | پرون د جمعې ورځ اپريل اتمه وه |
| Wir kommen Montag, den 8. September. | مونږ د دوشنبې په ورځ، د سپټامبر په اتمه راځو |
| bis nächsten Montag, den 8. September | تر بلې دوشنبې، د سپټامبر تر اتمې پورې |
| | |

کله چې د اونۍ ورځ په (Dativ) کې راشي، نو عدد هم په (Dativ) کې راځي. مثال:

Das Gespräch fand am Freitag, dem 8. (= dem achten) April statt.
خبرې اترې د جمعې په ورځ، د اپريل په اتمه نېټه وشوې

| | |
|---|---|
| bis zum Freitag, dem 8. (= dem achten) März | د جمعې ورځې، د مارچ تر اتمې پورې |

په پورتنيو جملو کې (Freitag) د (Dativ) په حالت کې دی، ځکه چې دمخه يې (am) ليکل شويدی، نو ځکه د عدد (8) په مخکې هم (Dativ) راغلی دی چې هغه (am) دی.

## Bruchzahlen ماتې عددونه

| | |
|---|---|
| ein viertel Kilogramm | د يو کيلو ګرام يو پر څلور يا د کيلو ګرام څلورمه برخه |
| mit einem viertel Kilogramm | د يو کيلو ګرام په يو پر څلورمې |
| in einer zehntel Sekunde | د يوې ثانيې په لسمه برخه کې |
| drei viertel Millionen Menschen | د يو مليون درې پر څلورمه برخه انسانان |
| in zwei drittel Jahren | په دوه پر درې کلونو کې |

| | |
|---|---|
| mit drei zehntel Sekunden Abstand | د درې پر لس ثانیوفاصلې سره |
| ein Hundertstel dessen, was gemessen wurde | څه چې اندازه شوي، دهغې يو پر سلمه برخه |
| eineinhalb Liter/ anderthalb Tonnen | يو نيم ليتر- يو نيم ټنه |
| mit zweieinhalb Meter Stoff | په دوه نيم متره ټوټه |

**Vervielfältigungszahlwörter د څو چنده کولو عدد ښودلو لغات**

| | |
|---|---|
| der zweifache Weltmeister | د نړۍ دوه ځلې اتل |
| ein zweifacher Weltmeister | د نړۍ يوتن دوه ځلې اتل |
| trotz der viermaligen Wiederholung | سره له څلور ځلې تکراره |
| trotz viermaliger Wiederholung | سره له څلور ځلې تکراره |

د (zweifach) په ځای (doppelt) هم ویل کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| ein zweifacher Mord = ein doppelter Mord | د دوه کسانو قتل |

**Gattungszahlwörter د ډول ښودنکو عددو لغات**

| | |
|---|---|
| Wir haben zweierlei Fragen. | مونږ دوه ډوله پوښتنې لرو |
| Es gibt tausenderlei Möglichkeiten. | په زرګونو امکانات شته |
| aus mehrerlei Gründen | په ډيرو علتونو |
| mit vielerlei guten Speisen | په ډيرو ښو غذا ګانو |

**unbestimmte Zahladjektive نامعلومه شمیره ښودونکي عددونه**

| | |
|---|---|
| mit wenigen Ausnahmen | په لږو استثناآتو |
| Ich mache mir nicht viele Gedanken. | زه ډير سوچونه نه وهم |
| Ich mache mir nur wenige Gedanken. | زه ډير لږ سوچونه وهم |
| Er besitzt nur wenige Bücher. | هغه ډير لږ کتابونه لري |
| Nach Ansicht vieler Leute. | د ډيرو خلکو په فکر |

# Verben فعلونه

فعل يوه عربي کلمه ده چې په پښتو کې ورته (چاره) یا (د یوې چارې یا د يو کار ترسره کوونه) وايي. په ګرامر کې فعل هغه کلمه ده چې د وخت یا د زماني په چوکاټ کې یوه پېښه څرګندوي. د (Verb) کلمه له لاتیني (Verbum) نه اخیستل شوېده چې په جرمني ژبه کې ورته مختلف لغات یاد شيدي، لکه (Tuwort) یعني (د کړنې یا د کارکولو کلمه)، (Zeitwort) یعني د وخت کلمه، (Tätigkeitswort) یعني د کارکولو یا د یو عمل کولو کلمه. مصدرونه د فعلونو لومړني یا بنيادي شکلونه دي. د هر مصدر په پای کې (en) راځي ، لکه (gehen) یعني (تلل). ډیر لږ مصدرونه شته چې د هغو په پای کې تش (n) راځي لکه (اصلاح کول = verbessern) . څرنګه چې یوه ونه له مينځينۍ برخې يا د ونې ډډ او له خاښونو نه جوړه شوېده، نو هر فعل هم لکه د ونې په شان شکل لري، د منځنۍ برخې یا د فعل له ډډ نه او د فعل د وروستۍ برخې نه. مثال: (خندل) ته وايي (lachen). دا فعل جوړ شوی د فعل له منځنۍ برخې یا د فعل له ډډ نه چې هغه (lach) او د فعل له وروستۍ برخې یا ښاخ نه چې هغه (en) دی.

| | |
|---|---|
| فعل څه وظیفه لري؟ | د فعل اصلي وظیفه دا ده چې فعل د یوې جملې مفهوم بیانوي. که فعل نه وي نو تش د نومونو یا اسمونو په یادولو د یو مطلب پوهېدل هېڅ امکان نلري. د مثال په توګه که ووېل شي چې: |

| | |
|---|---|
| په جاپان کې یوه سخته زلزله | ein schweres Erdbeben in Japan |

په دې جمله کې کوم فعل نشته نو ځکه مفهوم یې هم څرګند ندی. دا څرګنده نشوه چې په جاپان کې زلزه وشوه او که ونشوه، زلزله کیږي او که نکیږي، زلزله به وشي او که ونشي. که فعل ورسره راشي نو مطلب به څرګند شي لکه په لاندینۍ جمله کې:

| | |
|---|---|
| په جاپان کې یوه سخته زلزله وشوه | Es gab ein schweres Erdbeben in Japan. |

دلته د (es gab) مانا ده (وشوه). هغه فعل چې په جمله کې استعمال شوی وي او یو مطلب بیانوي، هغې ته (das Prädikat) وایي، یعنې (Prädikat) د یوې جملې فعل دی.

## د فعل ګردان

د فعل ګردان په دې ډول کیږي چې د فعل منځنۍ برخه د هغو ځانګړو تورو سره یوځای کیږي چې د شخصي ضمیرونو لپاره ټاکل شویدي. په بل عبارت د فعل منځنۍ برخه د هر هر چا خپلو تورو سره یوځای کیږي. هر کس یعنې (زه) (ته) (هغه) (مونږ) (تاسو) (هغوی) ځان ته بېل توري لري چې د فعل د ډډ یا د منځنۍ برخې سره یوځای کیږي. دا ځانګړي توري د پایلي یا وروستیو تورو په نامه هم یادیږي. د شخصي ضمیرونو د پایلي یا وروستي توري دا دي:

| | | | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د | (er, sie, es) | لپاره | (t) | | د | (du) | لپاره | (st) | | د | (ich ) | لپاره | (e) |
| د | ( sie) | لپاره | (en) | | د | (ihr) | لپاره | (t) | | د | (wir ) | لپاره | (en) |

که دا موضوع لږ څه نوره هم اسانه تشریح شي، نو هغه به دا وي چې د یو مصدر لکه (lachen) منځنۍ برخه، یعنې (lach) که له (e) سره یو ځای شي، یعنې ورنه (lach + e = lache) جوړ شي، دا په دې مانا چې زه خاندم یا (ich lache). همدا شان که (st) ورسره یوځای شي (lach + st = lachst) ولیکل شي، نو دا په دې مانا چې ته خاندې یا (du lachst). د نورو شخصي ضمیرونو توضیحات په لاندې جدول کې وګورو.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ich: | -e | (lach + -e) = lache | wir: | -en | (lach + -en) = lachen |
| du: | -st | (lach + -st) = lachst | ihr: | -t | (lach + -t) = lacht |
| er, sie, es: | -t | (lach + -t) = lacht | sie: | -en | (lach + -en) = lachen |

## د فعلونو ډولونه

فعلونه په دوه ډولو دي:

| | |
|---|---|
| قوي فعلونه starke Verben | کمزوري فعلونه schwache Verben |

کمزورو فعلونو ته منظم فعلونه او یا (regelmäßige Verben) هم وایي او قوي فعلونو ته غیرمنظم یا (unregelmäßige Verben) هم وایي (توضیحات به یې لاندې وګورو).

## Schwache Verben کمزوري يا منظم فعلونه

کمزوري يا منظم فعلونه يا (schwache Verben) هغه فعلونه دي چې د ګردان په وخت څه بدلون پکې نه راځي، يعني نه د فعل په منځنۍ برخ

(wohne) زه اوسېږم. (du wohnst) ته اوسېږې.
استثنا:

① هغه فعلونه چې د فعل له منځنۍ برخې نه وروسته او د (-en) نه مخکې يې (d, t) راشي، نو په (du, er, sie, es, ihr) کې د پايلي تورو نه مخکې د (e) توری پکې اضافه کيږي. مثال: د (arbeiten) يا د کارکولو د فعل منځنۍ برخه (arbeit) کيږي. که چېرته (e) ورسره يوځای نشي نو د (هغه کارکوي) لپاره بايد وويل شي چې:

| | |
|---|---|
| falsch: ~~er arbeit + t = arbeitt)~~ غلط | richtig: er arbeit + e + t = arbeitet |
| falsch: ~~du arbeit + t + st = arbeitst~~ غلط | richtig: du arbeit + e + st = arbeitest |

نور فعلونه چې د ګردان په وخت (e) پکې اضافه کيږي:

| **meiden** له يو کار نه ډډه کول | **rechnen** شمېرل، حسابول |
|---|---|
| du meid + e + st = meidest | du rechn + e + st = rechnest |
| er meid + e + st = meidet | er rechn + e + t = rechnet |
| ihr meid + e + t = meidet | ihr rechn + e + t = rechnet |
| **vervollkommnen** بشپړول، تکميلول | **öffnen** پرانيستل |
| du vervollkommn + e + st = vervollkommnest | du öffn + e + st = öffnest |
| er vervollkommn + e + t = vervollkommnet | er öffn + e + t = öffnet |
| ihr vervollkommn + e + t = vervollkommnet | ihr öffn + e + t = öffnet |

② هغه فعلونه چې په اصلي يا په منځنۍ برخه کې يې (s, ss, ß, x, z) راشي نو د هغوی په ګردان کې دا لاندې تغيرات راځي. مثال:

| verb فعل | falsch غلط | richtig صحيح |
|---|---|---|
| rasen په بېړه منډې وهل | ~~du ras + st = rasst~~ | du ras + t = rast |
| heißen نومېدل، نوم درلودل | ~~du heiß + st = heißst~~ | du heiss + t = heißt |
| feixen په يو چا خندل، ملنډې وهل | ~~du feix + st = feixst~~ | du feix + t = feixt |
| tanzen ګډېدل، ګډا کول، نڅا کول | ~~du tanz + st = tanzst~~ | du tanz + t = tanzt |

③ هغه فعلونه چې په پای کې يې (eln, ern) راځي نو د دې فعلونو ګردان په دې ډول کيږي چې له (eln) نه (e) له مينځه وځي او د فعل په پای کې تش (ln) پاتې کيږي، مثال:

| Verb فعل | falsch غلط | richtig صحيح |
|---|---|---|
| bügeln اوتو کول | ~~ich bügel + e = bügele~~<br>~~wir bügel + en = bügelen~~ | ich bügl + e = bügle<br>wir bügel + n = bügeln |
| ändern يو شي ته بدلون ورکول | ~~wir änder + en = änderen~~ | wir änder + n = ändern |
| ähneln شباهت درلودل | ~~wir ähnel + en = ähnelen~~ | wir ähnel + n = ähneln |
| lächeln مسکا کول ، مسکېدل | ~~sie ähnel + en = ähnelen~~ | sie lächel + n = lächeln |

**Übungen:** Setzen Sie richtige Endungen der Verben im Präsens ein.

| | |
|---|---|
| 1.Ich lern… Deutsch. | زه جرمني ژبه زده کوم |
| 2. Josef lern… auch Deutsch. | یوسف هم جرمني ژبه هم زده کوي |
| 3. Meriam arbeit… schon. | مریم وخته کار پیل کړی دی |
| 4. Sie (Singular) studier… an der Universität. | هغه په پوهنتون کې تحصیل کوي |
| 5. Sie komm… (Plural) aus Deutschland. | هغوی د جرمني وګړي دي، له جرمني نه راځي |
| 6. Er leb… in Bonn und komm… aus Italien. | هغه د ایتالیې دی او په بن کې اوسیږي |
| 7. Er leb… in Rom und wir leb… in Bonn. | هغه په روم کې او مونږ په بن کې اوسیږو |
| 8. Ich besuch… dich oft. | زه ډېر وخت ستا لیدو ته درځم |
| 9. Er sprich… Französisch. | هغه فرانسوي غږیږي |
| 10. Wir lern… Englisch. | مونږ انګلیسي زده کوو |
| 11. Er arbeit… am Morgen. | هغه د سهار له مخې کار کوي |
| 12. Ihr mach… Fehler. | تاسو غلطی کوئ |
| 13. Der Lehrer prüf… die Hausaufgabe. | ښوونکی کورنی وظیفه کنټرولوي |
| 14. Der Student antwortet… richtig. | محصل صحیح ځواب ورکوي |
| 15. Die Schüler schreib… einen Aufsatz. | زده کوونکي یوه مقاله لیکي |
| 16. Das Mädchen lacht… überhaupt nicht. | نجلی هېڅ نه خاندي |
| 17. Wann komm… du zum Unterricht? | ته درس ته کله راځې؟ |
| 18. Der Professor grüß… die Studenten. | پروفیسر محصلینو ته ستړي مشي وایي |
| 19. Arbeit… ihr heute gar nicht? | تاسو نن هېڅ کار نکوئ؟ |
| 20. Lern… Sie Deutsch? | تاسو جرمني ژبه زده کوئ؟ |
| 21. Was mach… ihr heute Abend? | تاسو نن ماښام څه کوئ؟ |
| 22. Was frag… er den ganzen Tag? | هغه دا ټوله ورځ څه پوښتي کوي؟ |
| 23. Wann beginn… das Spiel? | لوبه کله پیلیږي؟ |

**Lösungen:**
1. -e 2. -t 3. -et 4. -t 5. -en 6. -t 7. -t, -en 8. -e 9. -t 10. -en 11. -et 12. -t 13. -t 14. -t 15. -en 16. -et 17. -st 18. -t 19. -et 20. -en 21. -t 22. -t 23. -t

## Starke Verben قوی یا غیر منظم فعلونه

قوي فعلونو ته په دې علت غیرمنظم فعلونه هم وایي چې د ګردان په وخت بدلون پکې راځي، یعني په (du, er, sie, es) حالت کې د فعل لیکدود بدلیږي. مثالونه یې په لاندې برخه کې لیکل شویدي:

① هغه غیرمنظم فعلونه چې په منځنی برخه کې یې (e) راځي، نو د ګردان په وخت (e) په (i) بدلیږي.
مثال: (sprechen) یعني خبرې کول.

| falsch غلط | richtig صحیح |
|---|---|
| ~~du sprech + st = sprechst~~ | du sprich + st = sprichst |

په پورتنۍ جمله کې د (sprechen) د فعل (e) د ګردان په وخت په (i) بدله شوه.

| Person<br>شخص | sprechen<br>غږېدل | treffen<br>یو ځوک لیدل، لګېدل | fahren<br>په موټر کې تلل |
|---|---|---|---|
| ich | spreche غږېږم | treffe وینم | fahren په موټر کې ځم |
| du | sprichst غږېږې | triffst وینې | fährst په موټر کې ځې |
| er/es/sie | spricht غږېږي | trifftویني | fährt په موټر کې ځي |
| wir | sprechen غږېږو | treffen وینو | fahren په موټر کې ځو |
| ihr | sprecht غږېږئ | trefft وینئ | fahrt په موټر کې ځئ |
| sie | sprechen غږېږي | treffen ویني | fahren په موټر کې ځي |

نور هغه فعلونه چې د ګردان په وخت (e) په (i) بدلیږي، دا دي:

| Verb | | du | | er, sie, es | |
|---|---|---|---|---|---|
| geben | ورکول | gibst | ته ورکوې | gibt | هغه ورکوي |
| essen | خوړل | isst | ته خورې | isst | هغه خوري |
| helfen | مرسته کول | hilfst | ته مرسته کوې | hilft | هغه مرسته کوي |
| treffen | له یو چا سره لیدل | triffst | ته که یو چا سره وینې | trifft | هغه له یو چا سره ویني |

Bei einigen Verben ändert sich zudem die Schreibung: د ځینو فعلونو لیکدود بدلیږي

| **Person شخص** | **nehmen اخیستل** | **lesen لوستل** | **sehen لیدل** |
|---|---|---|---|
| ich زه | nehme اخلم | lese لولم | sehe وینم |
| du ته | nimmst اخلې | liest لولې | siehst وینې |
| er/es/sie هغه | nimmt اخلي | liest لولي | sieht ویني |
| wir مونږ | nehmen اخلو | lesen لولو | sehen وینو |
| ihr تاسو | nehmt اخلئ | lest لولئ | seht وینئ |
| sie هغوی | nehmen اخلي | lesen لولي | sehen ویني |

څنګه چې لیدل کیږي، د درېواړو فعلونو لیکدود د (du, er, sie, es) په حالت کې بدل شوېدی. د (nehmen) په فعل کې د (h) توری له مینځه تللی دی. د (lesen) او (sehen) په فعلونو کې د (e) توری په (ie) بدل شوېدی.

② هغه فعلونه چې په منځنۍ برخه یې (a, o, au) راځي نو د (du, er, sie, es) د ګردان په وخت د دې تورو په سر دوه ټکي لیکل کیږي یا په بل عبارت په (Umlaut) بدلیږي. مثال: (schlafen) یعني خوب کول، (stoßen) یعني په یو شي لګېدل، (laufen) یعني ځغستل.

| Person شخص | schlafen ویده کېدل | stoßen لګېدل | laufen ځغستل |
|---|---|---|---|
| ich زه | schlafe ویده کېږم | stoße لګېږم | laufe ځغلم |
| du ته | schläfst ویده کېږې | stößt لګېږې | läufst ځغلې |
| er, sie, es هغه | schläft ویده کېږي | stößt لګېږي | läuft ځغلي |
| wir مونږ | schlafen ویده کېږو | stoßen لګېږو | laufen ځغلو |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ihr | تاسو | schlaft | ویده کېږئ | stoßt | لګېږئ | lauft | ځغلئ |
| sie | هغوی | schlafen | ویده کیږي | stoßen | لګیږي | laufen | ځغلي |

فعلونه په درې ډولو دي:

| 1. Tätigkeitsverben<br>د عمل کولو فعلونه | 2. Vorgangsverben<br>د يو جريان د بيانولو فعلونه | 3. Zustandsverben<br>د يو حالت د بيانولو فعلونه |
|---|---|---|
| Er schreibt einen Brief.<br>هغه يو ليك ليکي | Die Sonne geht auf.<br>لمر راخيژي . | Berlin liegt in Deutschland<br>برلين په جرمني کي پروت دی |
| Sie singt ein Lied.<br>هغه يوه سندره وايي | Die Blumen erblühen.<br>ګلان غوړيږي | In London ist es heute kalt.<br>نن په لندن کي هوا سړه ده |
| Die Kinder spielen mit dem Hund.<br>ماشومان له سپي سره لوبيږي | Das Telefon läutet seit fünf Minuten. د پنځه دقيقو راهيسي د ټيلفون زنګ راځي | Wir wohnen außerhalb der Stadt.<br>مونږ له ښار نه بهر اوسيږو |

**Übungen:** Setzen Sie die fehlenden Verben ein.

**I. lesen**: لوستل

1. Ich .......... heute ein interessantes Buch. — زه نن يو په زړه پوري کتاب لولم
2. .......... du auch ein interessantes Buch? — ته هم يو په زړه پوري کتاب لولې؟
3. Wir .......... nächste Woche einen Roman. — مونږ راتلونکي اونۍ يو ناول لولو
4. Er .......... die Nachrichten in der Tageszeitung. — هغه په ورځپاڼي کي خبرونه لولي
5. .......... ihr politische Tageszeitungen? — تاسو سياسي ورځپاڼي لولئ؟

**II. empfehlen:** توصيه کول، سپارښت کول

1. Ich ............... dir ein Restaurant. — زه تا ته د يو رستوران سپارښتنه کوم
2. ............... du mir auch ein Restaurant? — ته ما ته هم د يو رستوران سپارښتنه کوې؟
3. Ein Freund ............... mir einen Film. — يو ملګری ما ته د يو فلم سپارښتنه کوي
4. ............... ihr dem Freund auch einen Film? — تاسو هم ملګري ته د يو فلم سپارښتنه کوئ؟

**III. befehlen:** امر کول

1. Der General ............... den Soldaten. — جنرال عسکرو ته امر کوي
2. ............... du auch deinen Kollegen? — ته هم خپلو همکارانو ته امر کوې؟
3. Wie Sie ............... ! — څنګه چې ستاسو امر دی!
4. Was immer du ..............., werde ich tun. — هر امر چي ته کوې، زه به همغسي وکړم

**IV. sehen**: ليدل

1. Ich .......... einen Kater. — زه يوه نره پيشی وينم
2. .......... du auch einen Kater? — ته هم يوه نره پيشو وينې؟
3. Meine Nachbarin ...... heute Abend ihren Onkel. — زما ګاونډی نن ماښام خپل ماما ويني
4. .......... du auch die Maus? — ته هم موږك وينې؟

**V. stehlen:** غلا کول

1. Der Dieb .......... das schöne Fahrrad. — غل دا ښايسته بايسکل غلا کوي
2. Dieser unerzogene Junge .......... das Geld. — دا بې ادبه هلك پيسي غلا کوي

3. …........... du immer noch Bücher? ته اوس هم کتابونه غلا کوې؟
4. …........... ihr nach wie vor? تاسو لکه د پخوا په شان غلا کوئ ؟

**VI. essen** خوړل
1. ………. du heute Mittag Fisch? ته نن غرمه کب خورې؟
2. ………. das Kind Brot mit Butter? ماشوم ډوډۍ له کچو سره خوري؟
3. Was …...... wir heute Abend? مونږ نن څه شی خورو؟
4. …............ ihr keine Tomaten? تاسو باتینګړ (رومي بانجان) نه خورئ؟
5. Ich ….......... zum Frühstück eine Schnitte Brot mit Käse.
زه په سباناري کې یوه مړۍ ډوډۍ له پنیر سره خورم
6. …........... du zum Frühstück auch eine Scheibe Brot mit Marmelade?
ته هم د سباناري لپاره یوه مړۍ ډوډۍ د مربا سره خورې؟

**VII. nehmen** نیول، اخیستل، په یوه نقلیه وسیله کې یو چیرته تلل، د خوړلو لپاره غوره کول
1. ….......... du einen Zug? ته اورګاډی نیسي (په اورګاډی کې ځې)؟
2. Der Minister …………… ein Taxi. وزیر یو ټکسي نیسي
3. Die Krankenschwester …………… die U-Bahn. روغتیاپاله نن په مترو کې ځي
4. Ich …………… einen Tee. زه چای غواړم، چای څښل غواړم، چای غوره کوم
5. Mein Vater ….......... einen Apfel und ich …........... eine Apfelsine.
زما پلار یوه منه اخلي او زه یوه سنتره اخلم

**VIII. geben** ورکول
1. …........... du mir heute deinen Wagen? ته ماته نن خپل موټر راکوې؟
2. Meine Mutter ….......... meinem Vater eine Tasse Kaffee.
زما مور زما پلار ته یوه پیاله قهوه ورکوي
3. Ich ….......... keinen Cent dafür. زه د دې لپاره یو سنټ هم نه ورکوم
4. Wenn man ihm den kleinen Finger …..........., nimmt er gleich die ganze Hand. که چیرته هغه ته یو چا ډېره لږه موقع ورکړه، نو هغه بیا د سړي په اوږو خېژي، یعني له موقع نه بده استفاده کوي او بیا په لږ شي قناعت نکوي (متل)
5. In diesem Fluss ….......... es viele Fische. په دې سیند کې ډېر کبان دي
6. Oh, dich ….......... es also auch noch? او، ته خو لادرکه وې، بېرته پیدا شوې؟

**IX. helfen** مرسته کول
1. ….......... dein Onkel dem Nachbarn? ستا تره له ګاونډي سره مرسته کوي؟
2. Nein, er ….......... dem Nachbarn nicht. نه هغه له ګاونډي سره مرسته نه کوي؟
3. ….......... ihr dem Nachbarn heute? تاسو نن له ګاونډي سره مرسته کوئ؟
4. Ja, wir ….......... dem Nachbarn heute. هو مونږ له ګاونډي سره نن مرسته کوو

**X. sprechen** خبرې کول، غږېدل، په یوه ژبه پوهېدل، په یوه ژبه غږېدل
1. ….......... du gut Deutsch? ته په جرمني ژبه ښه پوهېږې؟
2. ….......... ihr überhaupt kein Deutsch? تاسو په جرمني ژبه هېڅ نه پوهېږئ؟
3. ….......... er ein bisschen Deutsch? هغه لږ څه په جرمني ژبه پوهېږي؟

**XI. treffen** د يو چا سره ليدل، د يو چا سره ليده كاته كول
1. Wen .............. du heute Abend? ته نن ماښام د چا سره ګوري؟
2. Heute Abend .............. ich meinen Kameraden. نن ماښام زه خپل انډيوال سره ګورم
3. .............. ihr den Dichter heute? تاسو نن شاعر وينئ؟
4. Nein, wir .............. den Dichter heute nicht. نه، مونږ نن شاعر نه وينو

**XII. heiraten** له يو چا سره واده كول
1. .............. Adam und Eva heute? نن آدم او هوا له يو بل سره واده كوي؟
2. Nein, sie .............. heute nicht. نه هغوی نن واده نه كوي
3. Wer .............. heute? نن څوك واده كوي؟
4. Heute .............. mein Bruder. نن زما ورور واده كوي
5. Heute .............. meine Verlobte und ich. نن زما كوژدنه او زه واده كوو

**XIII. sein** (بودن) اوسېدل، شتون درلودل
1. Wer .............. du eigentlich? ته اصلاً څوك يې؟
2. Ich .............. ein Zauberer. زه يو مداري يم
3. Wer .............. dieser Fremde? دا پردی څوك دی؟
4. .............. da jemand? دلته څوك شته، دلته څوك دی؟
5. Ich glaube, da ............. jemand an der Tür. زه فكر كوم چې په دروازه كې كوم څوك دی
6. Wer .............. alles dabei gewesen? په دې كې څوك څوك حاضر وو؟
7. Wer .............. ihr? تاسو څوك ياست؟
8. Wir .............. eure Feinde. مونږ ستاسو دښمنان يو
9. .............. oder Nichtsein, das ist hier die Frage. پوښتنه دا ده چې دا دې وشي او كه
ونشي دا د انګليسي شاعر شېكسپير د هغه مشهورې جملې جرمنی ژباړه ده چې په انګليسي كې په
دې ډول ويل شوېده : *To be, or not to be, that is the question*

**XIV. werden** كېدل
1. Wie alt .............. du heute? ته نن څو كلن كېږې؟
2. Ich .............. heute 20 Jahre alt. زه نن شل كلن كېږم
3. Wie alt ........... unser Lehrer dieses Jahr? زمونږ ښوونكی په دې كال كې څو كلن كيږي؟
4. Eines Tages .............. wir alle sterben. يوه ورځ به مونږ ټول مړه شو
5. Was .............. aus ihm? له هغه نه به څه جوړ شي؟
6. Vater .............. ist nicht schwer, Vater sein dagegen sehr.
پلار كېدل كوم سخت كار ندی، خو پلار اوسېدل ډېر سخت دي
7. In wenigen Minuten .............. es 10 Uhr. په يو څو دقيقو كې لس بجې كيږي
8. Was nicht ist, kann noch .............. كوم شی چې ندی شوی، كېدی شي چې وشي (متل)
9. alt, müde, ohnmächtig, blind .............. زړېدل، ستړی كېدل، بې هوښه كېدل، ړندېدل
10. Aus Kindern .............. Leute له ماشومانو نه سم خلك جوړيږي (متل)
11. Aus der Heirat .......... nichts mehr. له دې واده نه څه نه جوړيږي (دا واده نه كېدونكی دی)

**Lösungen**:

**I. lesen**
1. Ich lese ein Buch.
2. Liest du auch ein Buch?
3. Wir lesen einen interessanten Roman.

4. Er liest die Nachrichten in der Tageszeitung.
5. Lest ihr politische Tageszeitungen?

**II. empfehlen**
1. Ich empfehle dir ein Restaurant.
2. Empfiehlst du mir auch ein Restaurant?
3. Ein Freund empfiehlt mir einen Film.
4. Empfehlt ihr dem Freund auch einen Film?

**III. befehlen**
1. Der General befiehlt den Soldaten.
2. Befiehlst du auch deinen Kollegen?
3. Wie sie befehlen!
4. Was immer du befiehlst, werde ich tun.

**IV. sehen**
1. Ich sehe einen Kater.
2. Siehst du auch einen Kater?
3. Meine Nachbarin sieht heute Abend ihren Onkel.
4. Siehst du auch die Maus?

**V. stehlen**
1. Der Dieb stiehlt das Fahrrad.
2. Dieser unerzogene Junge stiehlt das Geld.
3. Stiehlst du immer Bücher?
4. Stehlt ihr nach wie vor?

**VI. essen**
1. Isst du heute Mittag Fisch?
2. Isst das Kind Brot mit Butter?
3. Was essen wir heute Abend?
4. Esst ihr keine Tomaten?
5. Ich esse zum Frühstück eine Schnitte Brot mit Käse.
6. Isst du zum Frühstück eine Scheibe Brot mit Marmelade?

**VII. nehmen**
1. Nimmst du einen Zug?
2. Der Minister nimmt ein Taxi.
3. Die Krankenschwester nimmt heute die U-Bahn.
4. Ich nehme einen Tee.
5. Mein Vater nimmt einen Apfel und ich nehme eine Apfelsine.

**VIII. geben**
1. Gibst du mir heute deinen Wagen?
2. Meine Mutter gibt meinem Vater eine Tasse Kaffee.

3. Ich gebe keinen Cent dafür.
4. Wenn man ihm den kleinen Finger gibt, nimmt er gleich die ganze Hand.
5. In diesem Fluss gibt es viele Fische.
6. Oh, dich gibt es also auch noch?

**IX. helfen**
1. Hilft dein Onkel dem Nachbarn?
2. Nein, er hilft dem Nachbarn nicht.
3. Helft ihr dem Nachbarn heute?
4. Ja, wir helfen dem Nachbarn heute.

**X. sprechen**
1. Sprichst du Deutsch?
2. Sprecht ihr überhaupt kein Deutsch?
3. Spricht er ein bisschen Deutsch?

**XI. treffen**
1. Wen triffst du heute Abend?
2. Heute Abend treffe ich meinem Kameraden.
3. Trefft ihr den Dichter heute?
4. Nein, wir treffen den Dichter heute nicht.

**XII. heiraten**
1. Heiraten Adam und Eva heute?
2. Nein, sie heiraten heute nicht.
3. Wer heiratet heute?
4. Heute heiratet mein Bruder.
5. Heute heiraten meine Verlobte und ich.

**XIII. sein**
1. Wer bist du eigentlich?
2. Ich bin ein Zauberer.
3. Wer ist dieser Fremde?
4. Ist da jemand?
5. Ich glaube, da ist jemand an der Tür.
6.Wer ist alles dabei gewesen?
7. Wer seid ihr?
8. Wir sind eure Feinde.
9. Sein oder Nichtsein, das ist hier die Frage.

**XIV. werden**
1. Wie alt wirst du heute?
2. Ich werde heute 20 Jahre alt.
3. Wie alt wird unser Lehrer dieses Jahr?
4. Eines Tages werden wir alle sterben.

5. Was wird aus ihm?
6. Vater werden ist nicht schwer, Vater sein dagegen sehr.
7. In wenigen Minuten wird es 10 Uhr.
8. Was nicht ist, kann noch werden.
9. alt, müde, ohnmächtig, blind werden.
10. Aus Kindern werden Leute.
11. Aus dieser Heirat wird nichts mehr.

# Partizip I und Partizip II

له (Partizip) نه په ورځيني ژوند کي کار نه اخيستل کيږي. په عادي خبرو کي هېڅ ځوك (Partizip) نه استعمالوي. له (Partizip) جملو نه په ادبي ژبه کي، په پوهنيزو او حقوقي مبحثونو کي او په دفتري ليکونو کي کار اخيستل کيږي. (Partizip I) د پښتو په ادبياتو کي هم کارول کيږي، لکه د خوشحال خان ختك د زوی، عبدالقادر خان ختك په دي پښتو شعر کي:

| چي يې تللم په خندا خندا ديدار ته | اوس يې دروموم په ژړا ژړا مزار ته |
|---|---|

په پورتنی پښتو شعر کي ليکل شوي چي (په خندا خندا) او (په ژړا ژړا). دا په دي مانا چي يو ځوك د (خندلو) او د (ژړلو) په حالت کي دی. د جرمني په ګرامر کي دي حالت ته (Partizip I) وايي. (Partizip) له يو فعل نه جوړيږي او په دوه ډولو دی: (Partizip I + Partizip II) . د دي دواړو حالاتو نه د صفت په توګه کار اخيستل کيږي.

## Partizip I = Partizip Präsens

(Partizip I) په دي ډول جوړيږي چي د يو مصدر په پای کي (d) ليکل کيږي :

| lachen خندل | + | d | = | lachend | په خندا ، د خندا په حالت کي، له خندا نه ډک |
|---|---|---|---|---|---|

نور مثالونه:

| | | |
|---|---|---|
| weinen + d = weinend<br>په ژړا، د ژړا په حالت کي | laufen + d = laufend<br>په منډه، د منډي په حالت کي | schlafen + d = schlafend<br>د خوب په حالت کي |
| singen + d = singend<br>سندره په خوله، په سندرو | kommen + d = kommend<br>د راتلو په حالت کي | schreien + d = schreiend<br>په چيغه، د چيغي په حالت کي |

مثالونه په جملو کي:

| |
|---|
| Mein Bruder ging aus dem Zimmer und lachte. زما ورور له کوټي نه ووت او و يې خندل |
| Mein Bruder ging lachend aus dem Zimmer. زما ورور په خندا له کوټي نه ووت |
| Meine Mutter kocht Suppe und telefoniert dabei.<br>زما مور ښوروا پخوي او په دي وخت کي په ټيلفون کي خبري کوي |
| Meine telefonierende Mutter kocht Suppe. زما ټيلفون کي خبري کوونکي مور ښوروا پخوي |

| |
|---|
| Der Vogel saß auf einem Ast. Dabei zwitscherte er.<br>مرغه په یو ښاخ ناسته و. په دې وخت کې چونیده |
| Der zwitschernde Vogel saß auf einem Ast. چونېدونکی مرغه په ښاخ ناسته و |

| | |
|---|---|
| (Partizip I) د یو کس دوه کاره ښایي چې په عین وخت کې کیږي، یعني دا چې په عین وخت کې چې یو کس یو څه کوي، بل کار هم کوي. خو دا کار لا پای ته ندی رسېدلی او جریان لري.<br>کله چې یو (Partizip I) جوړ شو، نو هغه د صفت حیثیت لري او د صفت په شان گردانیږي. نو په دې ډول (Partizp I) د (Artikel) او د اسم تر مینځ لیکل کیږي. مثال: (der schlafende Mann)، یعني (په خوب ویده سړی). کله کله بیا دا (Partizip I) له یو بل صفت او یا قید سره یوځای کیږي، په دې وخت کې نو بیا صفت او یا قید له (Partizip I) نه مخکې راځي. | توضیحات |

مثال:

| |
|---|
| Der Mann ging aus dem Zimmer. Dabei lachte er laut. سړی له کوټې نه ووت او له کوټې نه د وتلو په وخت یې په زوره وخندل |
| Der laut lachende Mann ging aus dem Zimmer.<br>لوړه خنداکوونکی سړی له کوټې نه ووت |
| Das Kind fürchtet sich stets im Dunkeln. Es geht nachts immer ins Elternbett.<br>ماشوم په تیاره کې تل ډارېږي. هغه په تیاره کې د مور او پلار کټ ته ځي |
| Das sich stets im Dunkeln fürchtende Kind geht nachts immer ins Elternbett.<br>په تیاره کې تل ډارېدونکی ماشوم د شپې له مخې د مور او پلار کټ ته ځي |
| Die Vögel, die fröhlich vor sich hinzwitschern, sitzen auf den Bäumen.<br>هغه مرغی چې په خوشحالی چونیږي، په ونو کې ناستي دي. |
| Die fröhlich vor sich hinzwitschernden Vögel sitzen auf den Bäumen.<br>په خوشحالی چونېدونکي مرغی په ونو کې ناستي دي. |

**Übungen:**

1. Sie sucht eine (passen) ………… Hose zu ihrer neuen Jacke.
هغه د خپلې نوې کرتی لپاره جوخت پطلون لټوي
2. Der Stoff hat (leuchten) ………… Farben. دا ټوټه پرکېدونکي رنګونه لري
3. (schlafen) ………… Hunde soll man nicht wecken. ویده سپي باید سړی ویښ نکړي
4. Der aus USA (kommen)………… Student spricht gut Deutsch.
هغه له امریکې نه راغلی محصل په جرمني ژبه ښه غږیږي
5. Er hat die Prüfung bestanden. Er steigt (strahlen) ……… aus dem Auto aus.
هغه په ازموینه کې بریالی شو. له موټر نه چې هغه ښکته کیږي، له مخ نه یې نور راځي
6. Das ist eine (anstecken) ………… Krankheit. دا یوه تېرېدونکي ناروغي ده
7. Kinder lernen oft (spielen) ………… ماشومان ډېر څه په لوبو لوبو کې زده کوي
8. Das Zimmer hat kein (fliesen) ………… Wasser. دا کوټه رواني اوبه نلري
9. Die nicht sehr gut (sehen) ………… Patientin benötigt eine Brille.
هغه رنځوره چې ښه نشي لیدلی، هغې ته عینکې پکار دي
10. Der sieben Jahre lang (währen) ………… Krieg forderte viele Opfer.
هغه جګړه چې اوه کاله یې دوام وکړو، ډېر کسان پکې قرباني شول

11. Der Hund liegt vor seiner Hundehütte und knurrt. Der ………… Hund liegt vor seiner Hundehütte. سپی د سپو د کوټنی په مخکې پروت دی او خرېږي. سپی په خرېدو د خپلې کوټنی په مخکې پروت دی

12. Der Chef ging aus dem Zimmer und lachte. Der Chef ging ………… aus dem Zimmer. آمر له کوټې نه ووت او ویې خندل. آمر په خندا له کوټې نه ووت

13. Der Vogel saß auf einem Ast und zwitscherte. Der ………….. Vogel saß auf einem Ast. مرغه په یو ښاخ ناست و او چنېدو. چنېدونکی مرغه په ښاخ ناست و

14. Du musst den (tropfen) ……………… Wasserhahn endlich reparieren lassen! ته باید د اوبو څڅېدونکي نل بېرته جوړ کړې

15. Sie spricht (fließen) ……………… Deutsch und Französisch. هغه روانه جرمني او فرانسوي غږېږي

**Lösungen:**

1. passend 2. leuchtend 3. schlafend 4. kommend 5. strahlend 6. ansteckende 7. spielend 8. fließendes 9. aussehende 10. währende 11. knurrend 12. lachend 13. zwitschernde 14. tropfendes 15. fließend

**Übung:** Wandeln Sie bitte folgende Sätze in Partizip I um.

1. Die Vorlesung beginnt pünktlich. لکچر پخپل وخت کې پیل کیږي
   Das ist eine ……….. ……….. Vorlesung. دا هغه لکچر دی چې پخپل وخت کې پیل کیږي
2. Die Farben leuchten hell. دا رنګونه روښانه بړکېدونکي دي
   Das sind ……….. ……….. Farben. دا هغه رنګونه دي چې روښانه بړکیږي
3. Der Zug fährt langsam. دا اورګاډي سست روان دی
   Das ist ein ……….. ……….. Zug. دا یو سست تلونکی اورګاډی دی
4. Das Parfüm riecht gut. دا عطر ښه بوي کوي
   Das ist ein ……….. ……….. Parfüm. دا یو ښه بوي کوونکی عطر دی
5. Die Suppe schmeckt gut. دا ښوروا ښه خوند کوي
   Das ist eine ……….. ……….. Suppe. دا یوه خوندوره ښوروا ده

**Lösungen:**
1. pünktlich beginnende 2. hell leuchtende 3. langsam fahrender 4. gut riechendes 5. gut schmeckende

## Partizip II = Partizip Perfekt

(Partizip II) د یو کس یو کار ښایي چې له دې کار سره یو بل کار تړلی دی چې هغه په کوم بل وخت کې کیږي، او دا بل کار په بشپړ ډول پای ته رسېدلی وي. (Partizip II) په جمله کې لکه د یو صفت په شان استعمالیږي. (Partizip II) هم له یو فعل نه جوړیږي خو جوړول یې لږ څه مغلق دي. دا دې پورې اړه لري چې هغه فعل چې ورنه (Partizip II) جوړیږي، په قاعده او یا بې قاعده فعل دی. بله پوښتنه دا ده چې یو فعل یو مختاړی لري او که نه، لکه (an-, auf-, be-, ver-, zer-) .

**له باقاعده فعلونو نه د (Partizip II) جوړونه:**

① په دې حالت کې له هر فعل نه (-en) وېستل کيږي او په ځاى يې (-t) ليکل کيږي او د فعل په سر کې (-ge) ليکل کيږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| 1. putzen – en = putz<br>پاکول | 2. putz + t = putzt | 2. ge- + putzt = geputzt<br>پاك شوى |

مثال:

| | |
|---|---|
| Dort liegen die geputzten Schuhe. | هلته پاك شوي بوټان پراته دي |

**② له بېلېدونکو فعلونو نه چې مختاړي لري، د (Partizip II) جوړونه:**

په دې حالت کې له هر فعل نه (-en) وېستل کيږي او په ځاى يې (-t) ليکل کيږي او د فعل په سر کې د فعل او د فعل د مختاړي ترمينځ (-ge) ليکل کيږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| 1. abmalen – en = abmal<br>د يو شي له مخې رسم کول | 3. ab + ge- + mal = abgemal | 3. abgemal + t = abgemalt<br>د يو شي له مخې رسم شوى |

مثال:

| |
|---|
| Er hat alle abgemalten Bilder teuer verkauft.<br>هغه ټول هغه انځورونه چې د يو بل شي له مخې رسم شوي وو، په ډېرو پيسو خرڅ کړل |

**③ د نه بېلېدونکو فعلونو نه چې مختاړي لري، د (Partizip II) جوړونه:**

په د غه شان فعلونو کې لکه د باقاعده فعلونو په شان چلند کيږي خو (-ge) په سر کې يې نه راځي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| 1. befragen – en = befrag<br>له يو چا نه پوښتنه کول | 2. befrag + t = befragt | 3. (ohe ge-) = befragt<br>له يو چا نه پوښتنه شوى |

مثال:

| |
|---|
| Die befragte Person gab keine Antwort.<br>هغه څوك چې پوښتنه ورنه شوې وه، ځواب يې ورنکړو |

**④ له هغو فعلونو نه چې په پاى کې (-ieren) راځي، د (Partizip II) جوړونه:**

| | | |
|---|---|---|
| 1. studieren – en = studier<br>تحصيل کول | 2. studier + t = studiert | 3. (ohne ge-) = studiert<br>تحصيل کړى |

مثال:

| | |
|---|---|
| Sie hat drei studierte Söhne. | هغه درې تحصيل کړي زامن لري |

**⑤ له هغو فعلونو نه چې په پاى کې (-d, -t, -m, -n) راځي، د (Partizip II) جوړونه:**

له دې فعلونو سره هغه شان چلند کيږي لکه د باقاعده فعلونو په شان، خو د (-t) په ځاى (-et) ورسره يوځاى کيږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| 1. atmen – en = atm<br>تنفس کول، ساه اخیستل | 2. atm + et = atmet | 3. ge + atmet = geatmet<br>تنفس کړی شوی |

مثال:

Bei körperlicher Arbeit steigt die geatmete Luftmenge erheblich an.
په جسماني کار باندې د تنفس شوې هوا کچه زښته ډېره زیاتیږي

**له بې قاعده فعلونو نه د (Partizip II) جوړونه:**

د بې قاعده فعلونو (Partizip II) په هغه ډول جوړیږي چې د هغوی لنډ پخوانی وخت یا (Perfekt) جوړیږي. د دې لپاره تاسو د نږدې پخواني مبحث یا (Perfekt) وګورئ.
① د ځینو فعلونو (Partizip II) په دې ډول جوړیږي چې د (Partizip II) په سر کې (-ge) او په پای کې یې (-en) راځي. مثال:

| Verb | Partizip II | Verb | Partizip II | Verb | Partizip II |
|---|---|---|---|---|---|
| fahren په موټر کې تلل | gefahren په موټر کې تللی | schreiben لیکل | geschrieben لیکل شوی | essen خوړل | gegessen خوړل شوی |

مثال:

Der Direktor konnte den handgeschriebenen Brief nicht lesen.
په لاس لیکل شوی لیك مدیر ونشو لوستلی

② هغه فعلونه چې بېلېدونکي دي، نو د (Partizip II) د جوړولو په وخت د مختاړي او د اصلي فعل تر مینځ (-ge) لیکل کیږي. مثال:

| Verb | Partizip II | Verb | Partizip II | Verb | Partizip II |
|---|---|---|---|---|---|
| abfahren د ګاډي تلل | abgefahren تللی (ګاډی) | abschreiben نقل کول | abgeschrieben نقل شوی | aufessen تول خوړل | aufgegessen تول خوړل شوی |

مثال:

Ich kann das zu Mittag nicht aufgegessene Brot abends verzehren.
زه کولی شم چې هغه ډوډۍ چه غرمه خوړل شوې نده، د شپې له مخې وخورم

③ هغه فعلونه چې بېلېدونکي نه دي، نو د (Partizip II) د جوړولو په وخت (-ge) پکې نه لیکل کیږي.
مثال:

| Verb | Partizip II | Verb | Partizip II | Verb | Partizip II |
|---|---|---|---|---|---|
| vergessen هېرېدل | vergessen هېر شوی | zerreißen شکول | zerissen شکېدلی | verlieren ورکېدل | verloren ورك شوی |

مثال:

Er fand den verlorenen Schatz wieder. هغه ورکه شوې خزانه بېرته ومونده

④ له ګډوله فعلونو (gemischte Verben) نه د (Partizip II) د جوړولو په وخت (-ge) پکې ليکل کيږي. که مختاړي ولري نو بيا (-ge) پکې نه ليکل کيږي، مثال:

| Verb | Partizip II | Verb | Partizip II | Verb | Partizip II |
|---|---|---|---|---|---|
| bringen<br>راوړل | gebracht<br>راوړل شوی | beibringen<br>يوچاته ښودل | beigebracht<br>ښودل شوی | verbringen<br>تېرول | verbracht<br>تېر شوی |

مثال:

| |
|---|
| Ich erinnere mich gut an unsere gemeinsam verbrachte Zeit.<br>هغه وخت چې مونږ په ګډه سره تېر کړو، هغه زما ښه په ياد دی |

### د (Partizip II) مانا او اهميت

د (Partizip II) مانا په دې کې ده چې (Partizip II) د يو صفت په شان استعماليږي او تل يو کار ښايي چې په بشپړ ډول پای ته رسېدلی وي. مثال:

| Partizip II | Bedeutung |
|---|---|
| der gebackene Kuchen پوخ شوی کېك | Der Kuchen ist schon gebacken.<br>کېك وخته پوخ شوی دی |
| der geschriebene Artikel<br>ليکل شوی مضمون | Der Artikel ist schon geschrieben.<br>مضمون وخته ليکل شوی دی |
| die aufgeblühte Rose. غوړېدلی ګلاب | Die Rose ist schon aufgeblüht.<br>ګلاب وخته غوړېدلی دی |

يو (Partizip II) د يو (Relativsatz) په ځای راتلی شي او برعکس د يو (Partizip II) په ځای يو (Relativsatz) راتلی شي. اوس به يو څو جملې وګورو چې دواړه په يوې جملې کې راغلي دي:

| |
|---|
| Ein gefangener Fisch ist ein Fisch, der gefangen worden ist.<br>يو نيول شوی کب يو کب دی چې نيول شوی دی |
| Ein gestorbener Dichter ist ein Dichter, der gestorben ist.<br>يو مړ شوی شاعر نو شاعر دی چې مړ شوی دی. |

### د (Partizip I) او (Partizip II) له يو بل سره مقايسه:

| Partizip I بهير، يوڅه پېښيږي | Partizip II پايله، يو څه پای ته رسېدلی |
|---|---|
| Prozess – etwas passiert gerade | Resultat – etwas ist abgeschlossen |
| das sinkende Schiff ډوبېدونکې بېړۍ | das gesunkene Schiff ډوبه شوې بېړۍ |
| der vergehende Winter تېرېدونکی ژمی | der vergangene Winter تېر شوی ژمی |
| der sterbende Wolf مړ کېدونکی لېوه | der gestorbene Wolf مړ شوی لېوه |
| das fließende Wasser بهېدونکې اوبه | das geflossene Wasser بهېدلې اوبه |

څرنګه چې پورته څرګنده شوه، په (Partizip I) کې يو کار يا يوه پېښه د کېدلو په حالت کې ده، خو بالکل بشپړه شوې نده.په پورتنی لومړي مثال کې ليدل کيږي چې بېړۍ د ډوبېدو په حالت کې ده، خو په بشپړ ډول ډوبه شوې نده، کېدی شي چې مخه يې لا ونيول شي او بېړۍ له ډوبېدو نه وژغورل شي. په بل مثال کې ژمی هم د تېرېدو په حالت کې دی خو په بشپړ ډول تېر شوی ندی، او دا دوه نور مثالونه په همدې شان

په بشپړ ډول پای ته ندي رسېدلي. خو هر څه چې په (Partizip II) کې لیکل شویدي، ټول په بشپړ ډول تېر شویدي او مخه یې نور نشي نیول کېدی. د مثالونو په ښي اړخ کې لیدل کېدی شي چې بېړۍ بالکل ډوبه شوېده، نور نو د ډوبېدو مخه یې نشي نیول کېدی.

**Übungen:**

1.Heute wurde mein (stehlen) …….. Fahrrad wieder gefunden.
نن زما غلا شوی بایسکل بېرته وموندل شو

2. Am (vergehen) ….............. Wochenende hat es stark geschneit.
په تېره اونۍ کې ډېره واوره وشوه

3. Ich schicke Ihnen die (korrigieren) ……............ Texte per E-Mail.
زه اصلاح شوی مضمونونه د برېښنالیك له لارې تاسو ته بېرته لیږم

4. Der in vielen Sprachen (übersetzen) ………… Roman ist 500 Jahre alt.
هغه ناول چې ډېرو ژبو ته اړول شوی دی، ۵۰۰ کاله زوړ دی

5. Die immer noch nicht (erledigen) ………… Arbeiten machen mich wütend.
هغه کارونه چې لا تر اوسه پورې ندي شوي، ما په قهروي

6. Die von ihm (veröffentlichen)………… Erzählung beeindruckte mich tief.
هغه کیسه چې د هغه له خوا خپره شوېده، په ما ژوره اغېزه وکړه

7. Die (unterstreichen)…………… Wörter müssen die Schüler zuerst lernen.
هغه لغات چې لاندې یې کرښه راښکل شوېده زده کوونکی باید هغه لومړی زده کړي

8. Das an der Fahrertür (beschädigen)…………… Auto konnte nicht verkauft werden.
هغه موټر چې د ډریور اړخ یې تاواني شوی و، خرڅول کېدی ونشو

9. Die von ihm (nennen) ……………. Zahlen waren alle falsch.
هغه ټولې د هغه له خوا یادې شوې شمېرې غلطې وي

10. Das bei dem Geschäft (einnehmen) ……………. Geld deckt kaum die Kosten.
په سوداګرۍ کې لاس ته راغلي پیسې د خپل لګښت پیسې نه پورې کوي

11. Der von den Kritikern (empfehlen) ……………. Film war ein finanzieller Misserfolg.
هغه د کره کتونکو له خوا سپارښتل شوی فلم د اقتصاد له اړخه یوه ناکامي وه

12. Die von einem Wirbelsturm (zerstören) …………….. Häuser wurden wieder aufgebaut.
هغه کورونه چې په طوفاني بورېوکۍ باندې ویجاړ شوي وو، بېرته ورغول شول

13. Der von Interpol (suchen) …………… Verbrecher lebt jetzt in Italien.
هغه د نړیوال پولیس له خوا لټول شوی جنایتکار اوس په ایټالیا کې ژوند کوي

14. Der von einem Passanten (erkennen) ………… Terrorist flüchtete aus dem Bahnhof.
هغه تروریست چې د یو لاروي له خوا پېژندل شوی و، د اورګاډي د سټېشن نه وتښتېدو

15. Der in Berlin (vergessen) …………….. Koffer wurde von der Polizei gefunden.
هغه بکس چې په برلین کې هېر شوی و، د پولیسو له خوا وموندل شو

**Lösungen:**

1. gestohlenes 2. vergangenen 3. korrigierten 4. übersetzte 5. erledigten
6. veröffentlichte 7. unterstrichenen 8. beschädigte 9. genannten
10. eingenommenen 11. empfohlene 12. zerstörten 13. Gesuchte 14. erkannte
15. vergessene

# Partizipialsätze

په پورتنۍ برخه کې مو زده کړل چې (Partizip I + Partizip II) څنګه جوړيږي. په دې برخه کې به زده کړو چې د (Partizip I + Partizip II) په مرسته څنګه (Partizipialsätze) جوړيږي.
(Partizipialsätze) هغه شان جملې دي چې هغه تش فرعي جملې (Nebensätze) دي. په عادي حالتو کې اصلي جمله او فرعي جمله دواړه ځانته يو فاعل لري. د (Partizipialsätze) ځانګړتيا دا ده چې په فرعي جملې يا په (Nebensatz) کې فاعل په سترګو نه ليدل کيږي، سره له دې چې دا جمله فاعل لري.
پوښتنه دا ده چې دا جملې چې فاعل لري، خو فاعل يې په سترګو نه ليدل کيږي، نو فاعل يې چېرته پټ دی؟ ځواب دا دی چې فاعل يې هغه فاعل دی چې په اصلي جملې يا په (Hauptsatz) کې په څرګند ډول په سترګو ليدل کيږي. مثال:

| |
|---|
| Vo dner Hitze geplagt, schliefen wir erst gegen Morgen ein.<br>د ګرمۍ د عذاب له لاسه موږ ته ايله په ايله د سهار په مهال خوب راغی |

په پورتنۍ جمله کې لومړۍ برخه، يعنې (von der Hitze geplagt) فرعي جمله ده چې فاعل پکې په نظر نه راځي. فاعل يې هغه فاعل دی چې په اصلي جمله کې ياد شوېدی او هغه (wir) دی.

**(Partizipialsatz) د څه لپاره پکاريږي؟**

کله چې جملې ډېرې اوږدې وي او سرې وغواړي چې هغه لنډې کړي، بې له دې چې محتوی يې بدله شي، نو د جملو د لنډولو لپاره له (Partizipialsatz) نه کار اخيستل کيږي. دا شان جملې په ناولونو، په کيسو، په دفتري ليکونو او په شعر او ادب کې کارول کيږي. زياتره اوږدې جملې (Relativsätze) او (Adverbialsätze) دي. په بل عبارت، کله چې سړی وغواړي چې يو اوږد (Relativsatz) لنډ کړي، نو بيا هغه په (Partizipialsatz) بدلوي. په لاندې برخه کې به يو (Relativsatz) او وروسته يو (Adverbialsatz) وګورو چې په (Partizipialsatz) بدليږي:

| Relativsatz | Partizipialsatz |
|---|---|
| Eine Gruppe, die aus erfahrenen Bergsteigern zusammengesetzt ist, plant eine Bergtour. يوه ډله چې هغه له تجربه کارو غره ختونکو نه جوړه شوې ده، د غره ختلو يو پروګرام جوړوي | Eine Gruppe, aus erfahrenen Bergsteigern zusammengesetzt, plant eine Bergtour. يوه له تجربه کارو غره ختونکو نه جوړه شوې ډله د غره ختلو يو پروګرام جوړوي |

| Adverbialsatz | Partizipialsatz |
|---|---|
| Während er sich kämmte, schaute er aus dem Fenster. په هغه وخت کې چې هغه خپل ويښته ږمنځول، له کړکۍ نه يې بهر کتل | Sich kämmend schaute er aus dem Fenster. د ويښتو د ږمنځولو په وخت کې هغه له کړکۍ نه بهر کتل |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | کله له (Partizip I) او کله له (Partizip II) نه کار اخيستل کيږي؟ |
| ځواب | کله چې دوه کاره په عين وخت کې کيږي، نو له (Partizip I) نه کار اخيستل کيږي. کله چې يو کار يا يوه پېښه چې په (Partizipialsatz) کې بيانيږي، که چېرته دا پېښه له اصلي جملې نه پخوا شوې وي، نو په دغه حالت کې له (Partizip II) نه کار اخيستل کيږي. مثال |

| Partizip I (2 Handlungen zur selben Zeit) په عين وخت کې دوه پېښې |
|---|
| Den Spiegel in der linken Hand haltend, schnitt Meriam sich rechts die Haare ab.<br>هنداره په کيڼ لاس نيولې، مريم په ښي لاس خپل ويښته بياتي کړل |

په پورتنۍ جمله کې مریم په همغه یو وخت کې چې هنداره یې لاس کې نیولې ده، خپل وېښته هم بیاتي کوي. نو په دې وجه دلته له (Partizip I) نه کار اخیستل کیږي چې هغه (haltend) دی

| |
|---|
| Partizip II (2 Handlungen zu unterschiedlichen Zeiten) په مختلفو وختونو کې دوه پېښې |
| Die Haare eine Stunde zuvor gewaschen, griff Meriam zum Kamm.<br>وېښته یې یو ساعت دمخه پرېمینځل شوي وو چې بیا مریم ږمنځ ته لاس کړو |

په پورتنۍ جمله کې په (Partizipialsatz) کې ویل شوي چې مریم خپل وېښته یو ساعت دمخه پرېمینځلي دي او اوس ږمنځ ته لاس کوي، نو ځکه دلته له (Partizip II) نه کار واخیستل شو چې (gewaschen) دی.

نور مثالونه:

| |
|---|
| Gerade angekommen, musste er schon wieder los.<br>په همدغه شېبه کې چې هغه راورسېدو، سمدلاسه مجبور شو چې بېرته ولاړ شي. |
| په پورتنۍ جمله کې (gerade angekommen) یو (Partizipialsatz) دی چې فاعل پکې ورك دی. (musste er schon wieder los) اصلي جمله ده چې فاعل یې (er) دی، نو په دې وجه د فرعي جملې، یعنې د (Partizipialsatz) فاعل هم په پټ ډول (er) دی. |
| Den Kopf in den Nacken gelegt, schaute er zum Himmel. |
| خپل سر یې تر څټه پورې ورجګ کړی و چې هغه اسمان خوا ته کتل |
| په پورتنۍ جمله کې (Den Kopf in den Nacken gelegt) یو (Partizipialsatz) دی چې فاعل پکې نه لیدل کیږي. (schaute er zum Himmel) اصلي جمله ده چې فاعل یې (er) دی، نو په دې وجه د (Partizipialsatz) فاعل هم (er) دی |

| |
|---|
| Gerade angekommen, musste er schon wieder los.<br>که چېرته دا جمله (Adverbialsatz) په توګه وویل شي، نو داسې به وویل شي چې: |
| Als er gerade angekommen war, musste schon wieder los.<br>په همدې شېبه کې، کله چې هغه ورسېدو ، هغه مجبور شو چې بېرته ولاړ شي |
| Den Kopf in den Nacken gelegt, schaute er zum Himmel.<br>که چېرته دا جمله د (Attributsatz) په توګه وویل شي، نو داسې به وویل شي چې: |
| Während er zum Himmel schaute, hatte er den Kopf in den Nacken gelegt.<br>کله چې هغه اسمان ته کتل، د هغه سر تر څټه پورې راتاو شوی و |

**Partizipialsätze als Adverbialsätze**

Die Partizipialsätze, die als Adverbialsätze fungieren, haben folgende Bedeutung:

① **modal** په کوم ډول یا په کوم شان د یو کار کولو جمله

| |
|---|
| Auf den Knopf drückend, löschte er alle Dateien.<br>د تنۍ په ځبېښلو یې ټول فایلونه پاك (هیسته) کړل<br>په پورتنۍ جمله کې (auf den Knopf drückend) یوه (Partizipial) جمله ده. که چېرته له دې نه یوه (Adverbial) جمله جوړه شي، نو داسې به وویل شي: |
| Er löschte alle Dateien, indem er auf den Knopf drückte.<br>په دې چې هغه تنۍ وځبېښله، نو ټول فایلونه یې هیسته کړل |

② **temporal** د یو وخت یا حالت ښودلو جمله

Ein Kaugummi kauend, entschuldigte er sich bei seinem Lehrer.
د ژاولې په ژوولو یې له خپل ښوونکي نه ښننه وغوښته.
په پورتنۍ جمله کې (ein Kaugummi kauend) یوه (Partizipial) جمله ده. که چېرته له دې نه یوه (Adverbial) جمله جوړه شي، نو داسې به وویل شي:
Während er ein Kaugummi kaute, entschuldigte er sich bei seinem Lehrer.
په داسې وخت کې چې هغه ژاوله ژووله، له خپل ښوونکي نه یې ښننه وغوښتله

③ **kausal** د علت ښودلو جمله

Von seiner Ehrlichkeit überzeugt, lieh er ihm das Geld.
د هغه د صداقت په اعتماد هغه ورته پیسې امانت ورکړې.
په پورتنۍ جمله کې (Von seiner Ehrlichkeit überzeugt) یوه (Partizipial) جمله ده. که چېرته له دې نه یوه (Adverbial) جمله جوړه شي، نو داسې به وویل شي:
Weil er von seiner Ehrlichkeit überzeugt war, lieh er ihm das Geld.
په دې چې هغه د هغه په صداقت اعتماد درلود، نو پیسې یې ورته امانت ورکړې

④ **konditional** د شرط ښودلو جمله

Mit Italien verglichen, ist das Wetter in Deutschland kälter.
د ایتالیې په پرتله په جرمني کې هوا سړه ده.
په پورتنۍ جمله کې (mit Italien verglichen) یو (Partizipialsatz) دی. که چېرته له دې نه یو (Adverbialsatz) جوړ شي، نو داسې به وویل شي:
Wenn das Wetter in Italien mit dem in Deutschland verglichen wird, ist es in Deutschland kälter. که چېرته د ایتالیې هوا د جرمني هوا سره پرتله شي، نو د جرمني هوا پرې سړه ده

⑤ **konzessiv** د اعتراف کولو جمله

Obwohl gut vorbereitet, fiel er durch. له ډېر چمتووالي سره سره هغه پاتې راغی
په پورتنۍ جمله کې (obwohl gut vorbereitet) یو (Partizipialsatz) دی. که چېرته له دې نه یو (Adverbialsatz) جوړ شي، نو داسې به وویل شي:
Obwohl er sich gut vorbereitet hat, fiel er durch.
سره له دې چې هغه ښه چمتووالی نیولی و، بیا هم هغه ناکام شو

⑥ **Partizipialsätze als Attributsätze**

(Partizipialsätze) د (Attributsätze) په توګه هم کارول کېدی شي چې په دې وخت کې د صفت وضیفه په غاړه اخلي. دا جملې کېدی شي چې له اسم نه مخکې او یا له اسم نه وروسته راشي. که چېرته دا (Partizipialsatz) له اسم نه وروسته راشي، نو د صفت په شان نه ګردانیږي. مثال:

| Partizip I / Partizip II: das Partizip ist nicht veränderlich |
|---|
| Die Kinder, laut lachend, betraten das Zimmer.<br>ماشومان، په لوړ غږ د خندا په حالت کې، کوټې ته ننوتل |

| |
|---|
| Die Freunde, zur Party eingeladen, kauften Geschenke.<br>هغه ملګري چې محفل ته رابلل شوي وو. هغوی سوغاتونه واخیستل |

په پورتنۍ لومړۍ جملې کې (laut lachend) له (Partizip I) سره یو (Partizipialsatz) دی چې له اسم، یعني له (die Kinder) نه وروسته راغلي دی، نو ځکه نه ګردانیږي.
په دوهمې جملې کې (zur Party eingeladen) له (Partizip II) سره یو (Partizipialsatz) دی چې له اسم، یعني له (die Freunde) نه وروسته راغلي دی، نو ځکه نه ګردانیږي.

که چیرته دا (Partizipialsatz) له اسم نه مخکې راشي، نو د صفت په شان ګردانیږي. مثال:

| Partizip I / Partizip II: das Partizip ist veränderlich |
|---|
| Die laut lachenden Kinder betraten das Zimmer.<br>په لوړ غږ خندېدونکي ماشومان کوټې ته ننوتل |
| Die zur Party eingeladenen Freunde kauften Geschenke.<br>محفل ته بلل شوو مېلمنو سوغاتونه واخیستل |

په پورتنۍ لومړۍ جملې کې (laut lachend) د (die) او (Kinder) ترمینځ راغلی دی، نو ځکه د صفت په شان ګردانیږي او ورته راغلي دي چې (laut lachenden) .
همدا شان په دوهمه جمله کې چې له (Partizip II) نه جوړه شوې (zur Party eingeladen) د (die) او (Freunde) ترمینځ راغلی دی، نو ځکه د صفت په شان ګردانیږي او ورته راغلي دي چې (zur Party eingeladenen) .

| پاملرنه | له (haben + sein) نه (Partizip I) جوړېدی شي چې (habend + seiend) کیږي. خو له دې نه (Partizipialsatz) نشي جوړېدی. په یوې (Partizipialsatz) کې که د (درلودونکي habend) او یا (اوسېدونکی seiend) مطلب یادېدلو ته ضرورت وي، نو بیا هم (habend + seiend) له جملې نه هیسته کیږي. |
|---|---|

مثال:

| |
|---|
| Der Zuschauer, den Hut in der Hand, bedankte sich für den schönen Abend.<br>دې ننداړچي، خولۍ یې په لاس، له دې ښایسته ماښام له پلوه مننه وکړه<br>(falsch = ~~den Hut in der Hand habend~~ په دې جمله کې به غلطه وي چې وویل شي چې) |
| Die Geschwister, ein Herz und eine Seele, besuchten dieselbe Universität.<br>دې خور او ورور، په زړه کې یو بل ته ډېر نږدې، همغه یو پوهنتون ولوست<br>(falsch = ~~ein Herz und eine Seele seiend~~ دا به غلطه وي چې وویل شي چې) |

**Übungen:** Bilden Sie Partizipialsätze nach folgendem Muster:
Beispiel: Der Sprecher forderte größere Anstrengungen zum Schutz der Natur.
(Er bezog sich auf Aussage von Wissenschaftlern). ویـاند د طبیعت د ساتلـو لپاره ډېر کوښښونه وغوښتل. (هغه د پوهانو په خبرو باندې اتکا وکړه)
*Sich auf Aussagen von Wissenschaftlern beziehend, forderte der Sprecher größere Anstrengungen zum Schutz der Natur.*
د پوهانو په خبـرو متکي، ویاند د طبیعت ساتلو لپاره کوښښونه وغوښتل

1. Der Minister bahnte sich den Weg zum Rednerpult. (Er wurde von Fotografen umringt). وزیر د خبرو کولو ستېج ته د ځان لپاره د تګ لار ازاده کړه. (د هغه له ګرچاپېر نه عکاسان راتاو شول )
2. Er begann seinen Vortrag. (Er war von den Blitzlichtern der Kameraleute unbeeindruckt). هغه خپل کنفرانس پیل کړو. (د عکاسانو د عکس اخیستلو د برېښنا پړك پړك په هغه څه اغېز ونکړو)
3. Der Redner begründete die Notwendigkeit strenger Gesetze zum Klimaschutz. (Er wies auf eine Statistik der UNO hin) وياند د چاپېريال ساتني لپاره د سختو قوانينو د ضرورت دلايل راوړل. (هغه د ملګرو ملتو يوې احصايي ته ګوته ونيوله)
4. Der Minister gab noch weitere Auskünfte. (Er wurde von interessierten Zuhörern befragt). وزير نور معلومات‌ونه هم وړاندې کړل. (له هغه نه د علاقه لرونکو اورېدونکو له خوا پوښتنې وشوې)
5. Die Gäste verließen den Saal. (Sie diskutierten lebhaft). مېلمانه له سالون نه ووتل. (هغوی تودې خبرې اترې کولې)
6. Der Redner beantwortete abschließende Fragen. (Er wurde von zahlreichen Pressevertretern umlagert). وياند وروستيو پوښتنو ته ځواب ورکړو. (د هغه له ګرچاپېر نه ګڼ شمېر مطبوعاتي استازي راټول شول).
7. Lawinen richten jährlich Schäden in Millionenhöhe an. (Sie bringen Tausende Tonnen von Schnee in Bewegung.) راشي (د واورې ښويېدنه) په کال کې په ميليونو تاوانونه مينځ ته راوړي . (هغوی په زرګونو ټنه واوره له ځايه ښوځوي)
8. Lawinen entstehen oft um die Mittagszeit. (Sie werden meist durch Erwärmung hervorgerufen.) راشي (د واورې ښويېدنه) زياتره وخت د غرمې په مهال راپيښيږي. (هغه د تودېدلو په وجه مينځ ته راځي)
9. Lawinen begraben alles unter sich. (Sie rasen mit großer Gewalt vom Berg ins Tal.) راشي هرڅه د خپل ځان رالاندې کوي. (هغه په ډېر شدت له غره نه درې ته وردرومي)
10. Die Bewohner mancher Bergdörfer müssen ihre Häuser verlassen. (Sie werden vom Wetterdienst vor der Lawinengefahr gewarnt.) د ځينو غرنيو کلو اوسېدونکي مجبور دي چې خپل کورونه خوشې کړي. (هغوی ته د هوا حالاتو له دفتر نه د راشي د خطر اخطارونه ورکول کيږي.

**Lösungen:**

1. Von Fotografen umringt, bahnte sich der Minister den Weg zum Rednerpult. عکاسان يې ګرچاپېر تاو شوي وو چې وزير د خبرو کولو ستېج ته ځان لپاره لار ازاده کړه
2. Unbeeindruckt vom Blitzlicht der Kameraleute, begann er seinen Vortrag. د عکاسانو د کمرو برك برك بربښنا پرې بې اغېزه پاتې شوه چې هغه پخپل کنفرانس پيل وکړو
3. Auf eine Statistik hinweisend, begründete der Redner die Notwendigkeit strenger Gesetze. يوې احصـايي ته پـه ګوتو نيولو وياند د سختو قوانينو د اړتيا لپاره دلايل وړاندې کړل
4. Von Zuhörern befragt, gab der Minister noch weitere Auskünfte. د اورېـدونـکـو پوښتنو ته د ځواب ورکولو سره وزير نور معلوماتونه هم وړاندې کړل
5. Lebhaft diskutierend, verließen die Gäste den Saal. په تودو خبرواترو مېلمانه له سالون نه ووتل

6. Von Pressevertretern umlagert, beantwortete der Redner die Fragen. د مطبوعاتو استازي یې ګرچاپېر راتول شوي وو چې وياند پوښتنو ته ځوابونه ورکړل
7. Tausende Tonnen von Schnee in Bewegun bringend, richten Lawinen jährlich Schäden in Millinonenhöhe an. په زرګونو ټنه واورې خوځولو باندې په کال کې راشي په میلیونونو تاوانونه مينځ ته راوړي
8. Meist durch Erwärmung hervorgerufen, entstehen Lawinen oft um die Mittagszeit. زیاتره وخت د ګرمی په وجه رابرسېره شوی، د واورې ښويېدنه ډېر وخت د غرمي په مهال راپېښيږي
9. Vom Berg ins Tal rasend, begraben Lawinen alles unter sich له غره نه درې ته په ورډرومېدلو باندې راشي هر څه خپل ځان رالاندې کوي
11. Vom Wetterdienst gewarnt, müssen die Bewohner mancher Bergdörfer ihre Häuser verlassen د هوا حالاتو له دفتر نه د اخطار په وجه د ځينو کلو اوسېدونکي خپل کورونه خوشې کوي.

# Deutsche Tempusformen
# د جرمني ژبې د مهال يا وخت ډولونه

په جرمني ژبه کې د وخت شپږ مختلف ډولونه شته او هغه دا دي:

| Lateinischer Name | لاتيني نوم | Deutscher Name | جرمني نوم |
|---|---|---|---|
| 1. Präsens | حال، اوسنی وخت | Gegenwart | اوسنی وخت |
| 2. Futur I | مستقبل، آينده | Zukunft | راتلونکی وخت |
| 3. Präteritum | مطلقه ماضي | Vergangenheit | مطلق پخوانی وخت |
| 4. Perfekt | نږدې ماضي | Vorgegenwart | نږدې پخوانی وخت |
| 5. Plusquamperfekt | بعيده ماضي | Vorvergangenheit | ليرې پخوانی وخت |
| 6. Futur II | مستقبل، آينده | Vorzukunft | راتلونکی وخت |

## Präsens (Gegenwart) اوسنی وخت، ، اوسمهال، حال

له اوسني وخت يا حال نه په دغه حالاتو کې کار اخيستل کيږي.
① یوه چاره چې همدا اوس، په دغه شيبه کې، په همدغه مهال کې وشي. مثال:

| |
|---|
| Es regnet. باران وريږي . Er schläft. هغه ويده دی . Sie liest ein Buch. هغه يو کتاب لولي |

② يو څه چې همدا اوس او تول عمر اعتبار ولري او د وخت په تېرېدو سره په هغه کې څه بدلون رانشي. مثال:

| | |
|---|---|
| Die Kuh gehört zu den Säugetieren. | غوا د غولانځي لرونکو ځاروېو د کورنی پورې اړه لري |
| Der Mond ist 384000 km von der Erde entfernt. | سپوږمی له مځکې څخه ۳۸۴۰۰۰ کيلو متره ليرې ده |
| Wasser fließt nicht bergauf. | اوبه مخ په پورته نه بهيږي |

③ يوه چاره يا پېښه چې تل په همدې ډول بيابيا وشي او د اوسني وخت پورې محدوده نه وي. مثال:

| | |
|---|---|
| Jeden Morgen geht die Sonne auf. | هر سهار لمر راخيژي |
| Nachts leuchten die Sterne am Himmel. | د شپې له مخې ستوري په اسمان کې ځليږي |
| Im Frühling blühen die Blüten. | په پسرلي کې غوټۍ غوړيږي |

④ کله چې يو تېر وخت د ادبي اوسني مهال په توګه بيان شي چې اورېدونکی داسې تصور وکړي چې دا پېښه همدا اوس کيږي، سره له دې چې دا پېښه پخوا شوې وي. مثال:

Plötzlich steht der Einbrecher vor mir und bedroht mich mit der Pistole.
يوناڅاپه جنايتکار زما مخ ته راودريږي او ماته يې په تمانچې ګواښ کوي

⑤ کله چې يو فعل د تېرو سترو لرغونو پېښو لپاره د اوسني وخت په توګه استعمال شي. مثال:

Am 12. Oktober 1492 landet Kolumbus auf der Insel San Salvador.
د ۱۴۹۲ کال د اکتوبر د مياشتې په دولسمه نېټه کولومبوس د San Salvador په ټاپو کې پلی کيږي

⑥ کله چې په اصطلاحي ډول د راتلونکي وخت لپاره اوسنی وخت وکارول شي، مثال:

| | |
|---|---|
| Nächstes Jahr besuche ich dich. | په راتلونکي کال کې زه ستا ليدو ته درځم |
| Ich kaufe mir morgen ein neues Radio. | زه سبا ته د ځان لپاره يوه نوې راډيو په بيه اخلم |
| Wir fahren in einer Stunde in den Urlaub. | يو ساعت وروسته مونږ د رخصتۍ په سفر ځو |

⑦ د هغو چارو يا پېښو لپاره چې په راتلونکي کې پای ته رسيږي

| | |
|---|---|
| Ich bin gleich wieder zurück. | زه ژر بېرته راځم |

⑧ د هغو پېښو لپاره کارول کيږي چې پخوا پيل شوې وي، خو لا تر اوسه پای ته نه وي رسېدلې. مثال:

Ich warte schon acht Stunden auf meinen Flug.
دا اته ساعته کيږي چې زه د خپلې الوتنې په تمه يم

Wir kommen mit dem Bau des Hauses gar nicht voran.
د کور په ودانولو کې مونږ هېڅ پر مخ نه ځو

هغه څوك چې د لوړې سويې ګرامر زده کوي، دا دې هم زده کړي چې يو شان پخوانۍ حالت شته چې په اوسني وخت کې بيانيږي. دې شان پخواني حالت ته ويل کيږي:

## Historisches Präsens = تاريخي اوسنی وخت

په لاتيني کې دې ته وايي: (praesens historicum) . د تاريخي اوسني وخت نه مطلب دا دی:

يوه پېښه سره له دې چې په لرغوني زمانه کې شوېده، د غږېدونکي له خولې نه داسې تمثيل شي، لکه چې دا پېښه همدا اوس کيږي. په بل عبارت اورېدونکي ته يوه پخوانۍ پېښه داسې وربريښي، فقط لکه چې هغه يې همدا اوس پخپلو سترګو په سينما کې ګوري. اوس به يو څو مثاله وګورو:

Gestern gehe ich auf der Straße spazieren. Plötzlich springt da ein großer Hund mich an. پرون په سرك باندې په چکر روان يم. يو ناڅاپه دلته يو غټ سپی په ما راداڼګي

Ein Mann lag am Strand. Plötzlich hört er ein lautes Geräusch. Er sieht, dass eine große Welle kommt. هغه یو سړی د بحر په غاړه پروت و. هغه یوناڅاپه یو جګ غږ اوري. هغه ګوري چې د اوبو یوه لویه څپه راځي

له (historisches Präsens) نه د پښتو په ادبیاتو کې د پښتو فلسفي شاعر، غني خان په دې شعر کې کار اخیتی دی.

| | |
|---|---|
| خوب وینم عالمه که یې څوک راکړي مانا | پروت یم سر مې ایښی د خپل یار په زنګانه |
| خوب وینم چې باغ دی د ګلونو او مابښام دی | سرې سترګې ساقي د ساقي سرو ګوتو کې جام دی |

په پورتني شعر کې سره له دې چې خوب پخوا لیدل شوی خوب تېر شوېدی، غني خان ونه ویل چا (ما خوب ولید)، هغه په اوسنی زمانه کې وویل چې (خوب وینم)، چې دې ته (historisches Präsens) یا تاریخي اوسنی وخت وایي.

## Vergangenheit پخوانی وخت، تېرمهال

په جرمني ژبه کې پخوانی پېښې په درې وختونو کې بیانېدلی شي.

1. das Präteritum *(vergangene Zeit)* – einfache Vergangenheit
مطلقه ماضي یا عادي پخوانی وخت
2. das Perfekt *(vollendete Zeit)* – vollendete Gegenwart
نږدې پخوانی وخت، بشپړ وخت
3. das Plusquamperfekt *(mehr als vollendete Zeit)* – vollendete Vergangenheit
لیرې پخوانی وخت، لا زیات پخوانی وخت، بشپړ پخوانی وخت

## Perfekt (vollendete Gegenwart)
## نږدې پخوانی وخت یا بشپړ تېرمهال

په لاتیني ژبه کې (Perfekt) بشپړ شوی یا په بشپړ ډول پای ته رسېدلي ته وایي. دا البته د (Perfekt) لغوي مانا ده چې له واقعیت سره څه تړا ونلري. نږدې پخوانی وخت یا (Perfekt) یوه تېره شوې پخوانی پېښه یادوي، خو دا په دې مانا نه چې دا پېښه لنډ وخت دمخه شوېده. دا پېښه کېدی شي چې یوه دقیقه دمخه شوې وي او یا کېدی شي چې دا پېښه میلیونونه میلونونه کلونه پخوا شوې وي. او دا هم کېدی شي چې یوه پېښه هېڅ پای ته رسېدلې نه وي او نور هم لا پرمخ ځي. اوس به درې مثالونه وګورو چې دا مطلب پکې څرګندېږي.

① Ich habe vor einer Minute an dich gedacht.یوه دقیقه مخکې ته زما په فکر کې وګرځېدلې

څنګه چې لیدل کیږي، دا پېښه یا په فکر کې ګرځېدل ډېر لنډ وخت مخکې، یعني یوه دقیقه مخکې شوېده.

② Auch vor hundert Millionen Jahren haben Menschen auf der Welt gelebt.
سل میلیونه کاله مخکې هم انسانانو په نړۍ کې ژوند کوو

څنګه چې په پورتنۍ جمله کې لیدل کیږي، دا پېښه سل میلیونه کلونه دمخه وه.

③ Der Kampf gegen die Ungerechtigkeit hat jetzt seinen Anfang genommen.
د بې عدالتۍ په وړاندې مبارزه اوس پیل شوه

ښنګه چې په پورتنۍ جمله کې لیدل کیږي، دا پېښه په پخواني وخت کې نه، بلکې اوس پیل شوه او لا پای ته رسېدلې نده.، پای ته رسېدل يې کېدی شي چې لسیزې او یا پیړۍ پیړۍ وغځيږي.

له پورتنو جملو نه مونږ دې نتیجې ته رسیږو چې (Perfekt) د ګرامر په اساس یوه پخوانۍ پېښه بیانوي، خو د مانا او مفهوم په اساس کېدی شي چې دا پېښه ډېر لنډ مخکې شوې وي او یا همدا اوس پیل شوې وي او لا تر اوسه پورې هېڅ پای ته رسېدلې نه وي. په لاندې برخه کې به دا زده کړو چې (Perfekt) ښنګه جوړيږي.

**د نږدې ماضي او یا د (Perfekt) جوړونه :**

نږدې ماضي یا (Perfekt) په دې ډول جوړيږي چې لومړی د یو فعل (Partizip Perfekt) جوړيږي او بیا (haben) او یا (sein) ورسره یوځای کیږي او ګردانیږي. تاسو به اوس دا پوښتنه وکړئ چې پخپله (Partizip Perfekt) ښنګه جوړيږي؟ لومړی به په لاندې برخه کې د (Partizip Perfekt) جوړول زده کړو.

① د کمزورو فعلونو یا د (schwache Verben) د (Partizip Perfekt) جوړونه:
ښنګه چې په لومړنیو برخو کې لیکل شوي، هر فعل یا د کمزورو فعلونو (schwache Verben) او یا د قوي فعلونو (starke Verben) پورې اړه لري. د کمزورو فعلونو (Partizip Perfekt) ډېر اسانه دی او په دې ډول جوړيږي: له هر فعل نه د وروستۍ برخې (en) هیسته کیږي چې په دې ډول د هر فعل منځنۍ برخه یا د فعل ډډ پاتې کیږي . او بیا په سر کې يې (ge) او په پای کې ورسره (t) او یا (et) یوځای کیږي، په دې ډول:

| |
|---|
| Partizip Perfekt = Verb Minus (en), Plus Präfix (ge), Puls Endung (t) oder (et) |

مثال : که د ویلو (sagen) له فعل نه (en) ووېستل شي نو پاتې کیږي (sag). نو بیا په سر کې يې (ge) او په پای کې ورسره (t) یوځای کیږي، یعنې (ge + sag + t = gesagt) ورنه جوړيږي چې (gesagt) یو (Partizip Perfekt) دی.

| |
|---|
| sagen – (en) = (sag) + (ge) = (gesag) + (t) = gesagt |

د ګردان په وخت دې فعل سره بیا (haben) ګردانیږي. مثال: که سړی غواړي چې ووایي چې ما ویلي دي، نو دې ویل کیږي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ich habe gesagt. | Du hast gesagt. | Er hat gesagt. | Wir haben gesagt. |

د نورو کسانو لپاره یا نورو ضمیرونو لپاره تش (haben) او یا (sein) ګردانیږي، په لاندې ډول:

| haben | | sein | |
|---|---|---|---|
| Du *hast gesagt*. | تا ویلي دي | Du *bist gegangen*. | ته تللی يې |
| Er, sie, es *hat gesagt*. | هغه، هغې ویلي دي | Er, sie, es *ist gegangen*. | هغه تللی دی، ده |
| Wir *haben gesagt*. | مونږ ویلي دي | Wir *sind gegangen*. | مونږ تللي یو |
| Ihr *habt gesagt*. | تاسو ویلي دي | Ihr *seid gegangen*. | تاسو تللي یاست |
| Sie *haben* gesagt. | هغوی ویلي دي | Sie *sind gegangen*. | هغوی تللي دي |
| Sie *haben gesagt*. | تاسو ویلي دي | Sie *sind gegangen*. | تاسو تللي یاست |

یادونه : هغه فعلونه چې د منځنی برخې وروستی توری یې (t) او یا (d) دی، نو که د (Partizip Perfek) په جوړولو کې په وروستی برخه کې یې (t) ولیکل شي نو د دې تلفظ بیا ډېر ګران وي او د انسان ژبه په عذابوي. مثال:
کار کولو ته وایي (arbeiten). نو که د دې فعل نه وروستي توري یعنې (-en) راووېستل شي، نو پاتې کیږي (arbeit) . نو که د (arbeit) په پای کې چې هسې هم یو بې غږه (t) توری دی، یو بل توری (t) ولیکل شي، نو دوه (tt) به شا په شا راشي، په دې ډول:

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (ge | + | arbeit | + | t | = | ~~gearbeitt~~ | = | falsch) | غلط |

نو په دې چې دوه (tt) نه لوستل کیږي، نو له دې کبله د (Partizip Perfekt) په جوړولو کې (-et) ورسره یوځای کیږي:

| | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ge | + | arbeit | + | et | = | gearbeitet | = | richtig | صحیح |

همدا شان هغه فعل چې په منځنی برخه یا ډډ کې یې (d) دی:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| bilden | تشکیلول | ge | + | bild | + | et | = | gebildet |

| | |
|---|---|
| استثنآ | د هر فعل په سر کې (ge) نه یوځای کیږي. هغه فعلونه چې (ge) په سر کې یې نه راځي، دا دي: |

① که چېرته د یو فعل په پای کې (-ieren) راشي، لکه (kopieren) . د دې فعل (Partizip Perfekt) بیا کیږي: (kopiert) . (kopieren) کاپي کولو ته وایي. ما کاپي کړېده ته ویل کیږي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ich habe kopiert. | ما کاپي وکړه | Ich habe fotografiert. | ما عکاسي وکړه |

② هغه فعلونه چې په سر کې یې (zer-) ،(ver-) ، (unter-) ، (ge-)،(über-) ، (ent-)،(er-) ،(be-) راشي، نو په (Partizip Perfekt) کې یې (ge-) نه راځي، مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| bezahlen | پیسي ورکول | Ich habe bezahlt. | ما پیسي یې ورکړې |
| entschuldigen | بښنه غوښتل | Ich habe mich entschuldigt. | ما بښنه وغوښتله |
| erzählen | کیسه کول | Ich habe erzählt. | ما کیسه وکړه |
| gewöhnen | عادت کېدل | Ich habe mich daran gewöhnt. | زه له دې سره عادت شوم |
| übersetzen | ژباړل | Ich habe übersetzt. | ما ژباړه وکړه |
| unterrichten | خبرول | Ich habe ihn unterrichtet. | هغه ما خبر کړو |
| verkaufen | خرڅول | Ich habe verkauft. | ما خرڅ کړو |
| zerstören | تخریبول | Du hast alles zerstört. | تا هر څه تخریب کړل |

③ د بېلېدونکو فعلونو یا (trennbare Verben) د (Pertizip Perfek) لپاره باید لومړی د هر فعل د مختاړی یا (Präfix) او د فعل د ډډ یا د منځنی برخې تر مینځ (ge-) ولیکل شي: مثال: په یو شي کې بدلون راوستلو ته وایي (abändern). د (Partizip Perfekt) د جوړولو لپاره لومړی د دې فعل مختاړی، یعنې (ab) ورڅخه هیسته کیږي، یعنې پاتې کیږي (ändern). بیا له وروستی برخې نه یې (n) هیسته کیږي چې پاتې کیږي (änder) چې دا د دې فعل منځنی برخه یا ډډ دی. نو د (Partizip Perfekt) د جوړولو لپاره (ge-) د مختاړی (ab) او د فعل د منځنی برخې (änder-) ترمینځ لیکل کیږي، او په پای کې (t) ورسره یوځای کیږي، په دې ډول:

| ab | + | ge | + | änder | + | t | = | abgeändert | = | بدلول شوی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

مثال:

| Ich habe den Aufsatz abgeändert. | ما په مقاله کې بدلون راوړ |
|---|---|

**Übungen:** Bilden Sie Sätze mit Perfekt!

1. (*machen*) ............... du viele Fehler ......... تا ډېرې غلطی کړېدي؟
2. (*lieben*) Als Kind .......... sie nur ihr Pferd .......... .
د ماشوم په حیث د هغې تش خپل آس خوښېدو
3. (*rauchen*) Früher .......... die Jugend sehr viel .......... پخوا به ځوانانو ډېر سګرټ څکو
4. (*tanzen*) Niemand .............. auf dem Fest .............. په محفل کې هېڅ چا ګډا ونکړه
5. (*kaufen*) Was .......... ihr heute ........... ? تاسو نن څه شی په بیه واخیستو؟
6. (*lachen*) Wir ........... Tränen ........... په ډېر خندلو زمونږ له سترګو نه اوښکي راغلي
7. (*weinen*) Nach dem Tod meiner Mutter .......... ich wochenlang................ .
زما د مور د مړیني نه وروسته ما څو اونی وژړل
8. (*kochen*) Was .......... du für die Gäste .......... ? د مېلمنو لپاره تا څه پاخه کړیدي؟
9. (*stellen*) Ich .............. das Fahrrad in die Garage ................... ?
ما بایسکل په ګراج کې ودرولی دی
10. (*legen* ) Mein Bruder .............. seine Brille auf den Tisch ................
زما ورور خپلې عینکې په مېز ایښې دي
11. (*hängen*) ............. ihr eure Jacken in den Schrank ............. ?
تاسو خپلې کرتی په الماری کې ځوړندې کړېدي؟
12. (*lernen*) Sie .......... von mir vie .......... هغې له ما نه ډېر څه زده کړل
13. (*haben*) Er .......... in seinem Leben sehr viel Glück ............. .
په ژوندانه کې هغه ته ډېره طالع په نصیب شوېده
14. (*sagen*) Was ............... der Lehrer zu dir ................... ? ښوونکي تا ته څه وویل؟
15. (*fragen*) Ich ............... dich nie danach...................... .
په دې برخه کې ما هېڅکله له تا نه پوښتنه نده کړې.
16. (*parken*) Wo ............... du den Wagen .................. ? موټر تا چېرته پارك کړیدی؟
17. (*klopfen*) Irgendjemand.......... an der Tür ................... کوم چا دروازه وټکوله
18. (*sehen*, *hören* Ich ............... nichts ............. und nichts ..........
ما نه کوم څه لیدلي دي او نه مي کوم څه اورېدلي دي
19. (*merken*) ............... du dir die Nummer .....................? تا دا نمره په یاد وساتله؟
20. (*fehlen*) Du ............... mir so ................... . ته مي ډېر په یادېدلي

**Lösungen:**

1. Hast du viele Fehler gemacht?
2. Als Kind hat sie nur ihr Pferd geliebt.
3. Früher hat die Jugend sehr viel geraucht.
4. Niemand hat auf dem Fest getanzt.
5. Was habt ihr heute gekauft?
6. Wir haben Tränen gelacht.

7. Nach dem Tod meiner Mutter habe ich wochenlang geweint.
8. Was hast du für die Gäste gekocht?
9. Ich habe das Fahrrad in die Garage gestellt.
10. Mein Bruder hat seine Brille auf den Tisch gelegt.
11. Kinder, habt ihr schon eure Jacken in den Schrank gehängt?
12. Sie hat von mir viel gelernt.
13. Er hat in seinem Leben sehr viel Glück gehabt.
14. Was hat der Lehrer zu dir gesagt?
15. Ich habe dich nie danach gefragt.
16. Wo hast du den Wagen geparkt?
17. Irgendjemand hat an der Tür geklopft.
18. Ich habe nichts gesehen und nichts gehört.
19. Hast du dir die Nummer gemerkt?
20. Du hast mir so gefehlt.

### ② د قوي فعلونو یا (starke Verben) د (Partizip Perfekt) جوړونه:

د هر قوي فعل د (Partizip Perfekt) په سر کې (-ge) او په پای کې (-en) راځي. خو دا چې منځنۍ برخه یې څنګه جوړیږي، د دې لپاره کومه عامه قاعده نشته. د زده کړې لپاره یې یوازینۍ لاره دا ده چې هغه وخت چې یو فعل زده کول کیږي بیا (Partizip Perfekt) دې هم ورسره ځای په ځای زده شي. د ځینو فعلونو لپاره وړې وړې قاعدې شته چې په لاندې برخه کې لیکل کیږي:

د ځینو فعلونو دوهم توری چې (e) وي، نو د (Partizip Perfekt) د جوړولو په وخت له (e) نه یې (a) جوړیږي. د بېلګې په توګه به یو څو داسې فعلونه په جدول کې وګورو:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| brennen | سوځېدل | kennen | پېژندل | nennen | نومول | rennen | ځغستل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| nennen | Du hast ihn genannt.<br>تا هغه په نامه یاد کړو | kennen | Ich habe ihn gekannt.<br>هغه ما پېژندو |
| brennen | Es hat gebrannt. اور لګېدلی و | rennen | Er ist gerannt. هغه وځغستل |

**Übungen**:

1. (*fahren*) Der Minister …….. gestern nach Berlin ……. وزیر پرون برلین ته ولاړ
2. (*verlieren*) Unsere Mannschaft ……… schon wieder das Spiel ………… زمونږ لوبډلې یو ځل بیا لوبه بایللوده
3. (*anrufen*) Mein Kumpel …….. mich heute ………. زما اندیوال ماته نن ټیلفون وکړو
4. (*essen*) Scharfe Speisen ……. wir hier nie ………… تونده ډوډۍ مونږ دلته هېڅکله نده خوړلې
5. (*trinken*) Die Gäste ……. gar kein Wasser ……….. مېلمنو هېڅ اوبه ونه څښلې
6. (*kommen*) Wann ……… du gestern nach Hause ………… ته پرون په څو بجو کور ته راغلې؟
7. (*bleiben*) Am Feiertag ……….. alle zu Hause ………… د رخصتۍ په ورځ ټول په کور کې پاتې شول

8. (*fallen*) Alle Birnen ……… vom Baum ………… تول ناکونه له ونی نه ولېدلي دي
9. (*fliegen*) Mein Großvater …….. noch nie …………
زما نيکه لا تر اوسه پوري هيڅ د الوتکي مزل ندی کړی
10. (*gehen*) Der Direktor …….. schon nach Hause ……….. مدير وخته کور ته تللی دی
11. (*kommen*) Meine Kinder ………. vor einer Stunde nach Hause ………….
زما ماشومان يو ساعت مخکي کور ته راغلي دي
12. (*laufen*) Ich ……… nicht sehr schnell …………… ما ډېره چټکه منده ونکړه
13. (*sein*) Ich …….. noch nie hier ………….. زه هيڅکله دلته نه وم
14. (*springen*) Der Hund ……….. hoch ………. سپي پورته توپ وکړو
15. (*steigen*) Das Fieber …… auf 40 Grad ………… تبه څلوېښت درجو ته وختله
16. (*sterben*) Der alte Mann ……… gestern ………… زوړ سړی پرون مړ شو
17. (*treten*) Er …….. auf eine Wespe………. . هغه يوه مچۍ د پښو لاندي کړه
18. (*wachsen*) Die Stecklinge ……. hier recht gut ………..,
دلته بزغلو ډېره ښه وده کړېده
19. (*werden*) Was ………. aus ihm ………..? له هغه نه څه جوړ شو؟
20. (*schwimmen*) Er …… im Meer ……….. هغه په بحر کي لامبو کړېده
21. (*sitzen*) Der Häftling ……… zwei Jahre im Gefängnis ………….
بندي دوه کاله په زندان کي پروت و
22. (*stehen*) Er ………… eine Stunde hier ……….. هغه يو ساعت دلته ولاړ و

**Lösungen:**

1. ist ……. gefahren 2. hat ……. verloren 3. hat ……. angerufen 4. haben ……. gegessen 5. haben ……. getrunken 6. bist ………. gekommen. 7. sind …. geblieben 8. sind ……. gefallen 9. ist ……. geflogen 10. ist ……. gegangen 11. sind ……. gekommen 12. bin ……. gelaufen 13. bin ……. gewesen 14. ist ……. gesprungen 15. ist ………… gestiegen 16. ist ………gestorben 17. ist ………. getreten 18. sind ………… gewachsen 19. ist ………. geworden 20. ist ………… geschwommen 21. hat………..gesessen 22. hat… ……… gestanden

| Wann nehmen wir *sein* ? | Wann nehmen wir *haben* ? |
|---|---|
| Perfekt mit ich bin | Perfekt mit ich habe |
| Wechsel Ort A nach Ort B<br>کله چي له يو ځای نه بل ځای ته بدلون راشي | fester Standpunkt<br>کله چي بدلون نه وي او پخپل ځای پاتي شي |
| Ich bin nach Berlin gefahren.<br>زه برلين ته ولاړم<br>Ich bin ins Wasser gefallen.<br>زه په اوبو کي وغورځېدلم | Ich habe in meinem Bett geschlafen.<br>زه پخپل کټ کي ويده وم<br>Ich habe eine Stunde hier gewartet.<br>ما دلته يو ساعت انتظار وويست |
| Wechsel کله چي يو حالت بدل شي<br>Zustand A nach Zustand B<br>Das Kind ist wieder 2 cm gewachsen.<br>ماشوم بيا دوه سانتي متره وده وکړه<br>Es ist nichts passiert. هيڅ پيښ نه شول | Alle anderen Verben<br>پاتي نور تول فعلونه له haben سره کارول کيږي |

| | |
|---|---|
| *(Nur Verben ohne Akkusativ!)* | |
| Ausnahmen – bleiben und sein -<br>Sie bilden das Perfekt mit - sein - z.B. ich bin … | |
| bleiben: پاتي کېدل<br>sein: اوسېدل | Ich bin im Bett geblieben.<br>زه په کټ کي پاتي شوم<br>Ich bin in Berlin gewesen.<br>زه په برلین کي وم |

| Verben, die einen Wechsel des Zustands bezeichnen<br>هغه فعلونه چي د يو حالت بدلون راښايي | |
|---|---|
| aufwachen راويښېدل | Ich bin heute schon um 5 Uhr aufgewacht.<br>زه نن په پنځه بجو راويښ شوم |
| begegnen<br>يو څوك د يو چا په مخه راتلل | Gestern bin ich meinem Freund begegnet.<br>پرون زما ملګرى زما په مخه راغى |
| einschlafen ويده کېدل | Ich bin um 2 Uhr eingeschlafen. زه په دوه بجو ويده شوم |
| passieren/ يو چاته ورپيښېدل<br>geschehen | Zum Glück ist ihm nichts geschehen / passiert.<br>له نېکه مرغه هغه ته هېڅ پيښ نه شول |
| vorkommen په يو ځاى کي<br>ليدل کېدل، پيښېدل | Das ist seit 100 Jahren nicht vorgekommen.<br>دا په دي تېرو سل کلو کي ندي پيښ شوي |

Bei folgenden Verben sind beide Hilfsverben möglich.
په لاندیني جدول کي فعلونه د دواړو مرستندیو فعلونو یعني له (sein) او(haben) سره کارول کېدى شي

| Verben | Perfekt mit „sein“ oder „haben“ |
|---|---|
| biegen ١- يوي ډډي خوا ته تاوېدل<br>٢- کتول، قاتول | Das Auto ist um die Ecke gebogen.<br>موټر ډډي خوا ته تاو شو<br>Ich habe den Ast gebogen. ما ښاخ قات کړو |
| brechen ماتېدل | Die Brücke ist mittendurch gebrochen.<br>پول پخپلي منځنى برخه کي مات شو<br>Ich habe den linken Arm gebrochen.<br>زما کين مټ مات شو |
| fahren ١- په موټر کي چېرته تلل<br>٢- يو څوك په موټر کي چېرته بيول | Wir sind nach Berlin gefahren.<br>مونږ په موټر کي برلين ته ولاړو<br>Er hat mich in die Schule gefahren.<br>هغه زه په موټر کي ښوونځي ته يووړم |
| fliegen ١- په الوتکه کي يو چېرته<br>تلل ٢- الوتکه چلول | Wir sind nach Paris geflogen.<br>مونږ په الوتکه کي پاريس ته ولاړو<br>Wir haben das Flugzeug selbst geflogen.<br>مونږ الوتکه پخپله وچلوله |
| frieren ١- کنګل وهل، کنګلېدل<br>٢- ساړه کېدل، يخ کېدل | Der See ist gefroren. لوى ډنډ (جهيل) کنګل وهلى دى<br>In diesem Winter haben wir noch nicht gefroren.<br>په دي ژمي کي لا تر اوسه پوري زمونږ ساړه ندي شوي |

| | |
|---|---|
| reißen ۱- شکېدل، دوه ټوټې کېدل<br>۲- د يو چا له لاس نه تښتول | Das Kabel ist entzwei gerissen. کېبل دوه ټوټې شو<br>Die Kinder haben dem Vater die Bonbons aus der Hand gerissen. ماشومانو د پلار له لاس نه پتاسې وتښتولې |
| reiten ۱- په آس يو ځاى ته تلل<br>۲- آس ځغلول | Wir sind über das Feld geritten.<br>مونږ په آس باندې پټو ته ولاړو<br>Er hat das schnellste Pferd geritten.<br>هغه له ټولو نه چټک آس وځغلو |
| schwimmen ۱- لامبو وهل، په لامبو يو چېرته تلل ۲- يوه فاصله په لامبو تلل | Ich bin über den Fluss geschwommen.<br>زه په لامبو له سيند نه ووتم<br>Ich habe 1000 Meter geschwommen.<br>ما زر متره لامبو ووهله |
| treten ۱- يو ځاى ته ننوتل<br>۲- يو څوک په لغته وهل | Adam ist ins Zimmer getreten. آدم کوټې ته ننوت<br>Der Esel hat mich getreten. خره زه په لغته ووهلم |
| ziehen ۱- يو ځاى ته کډه کول<br>۲- راوېستل، راکاږل | Wir sind in eine Kleinstadt gezogen.<br>مونږ يو ښارګوټي ته کډه وکړه<br>Der Zahnarzt hat mir den Zahn gezogen.<br>د غاښو ډاکټر زما غاښ راووېست |
| توضيحات | ځنګه چې په پورتنو جملو کې ليدل کيږي، له (haben) نه هغه وخت کار اخيستل کيږي، چې له فعل سره يو (Akkusativ) يوځاى شي. له (sein) نه هغه وخت کار اخيستل کيږي چې له فعل سره (Akkusativ) يوځاى نشي. د بېلګې په توګه له (ziehen) سره په لومړۍ جملې کې کوم (Akkusativ) نشته، او په دوهمې جملې کې شته |

| | |
|---|---|
| 1. Satz ohne Akkusativ = (Perfekt mit „sein“) | Wir sind in eine Kleinstadt gezogen.<br>مونږ يو ښارګوټي ته کډه وکړه |
| 2. Satz mit Akkusativ = (Perfekt mit „haben“) | Der Zahnarzt hat mir den *(Akkusativ)* Zahn gezogen. د غاښو ډاکټر زما غاښ راووېست |

## Präteritum (= Imperfekt/Erzähl-Vergangenheit)

## مطلقه ماضي، بشپړ تېرمهال

په جرمني ژبه کې په ورځيني ژوند کې د خبرو کولو په وخت له (Präteritum) نه دومره ډېر کار نه اخيستل کيږي لکه چې له (Perfekt) نه کار اخيستل کيږي. په پښتو کې بيا برعکس له مطلقي ماضي نه ډېر کار اخيستل کيږي نسبت لنډې ماضي ته. د مثال په توګه په پښتو کې داسې ويل کيږي چې:

کار دې خلاص کړو؟ ته هلته ولاړې؟ خوب دې وکړو، ډوډۍ دې وخوړله، چاى دې وڅښو

دا شان جملې په پښتو کې د مطلقې ماضي يا د جرمني ژبې د (Imperfekt) جملې دي. که دا جملې په نږدې ماضي يا (Perfekt) کې بيان کړو، نو داسې به ووايو چې:

کار دې خلاص کړېدى؟ هلته تللى يې؟ خوب دې کړېدى؟ ډوډۍ دې خوړلې ده، چاى دې څښلى دى؟

د مطلقې ماضي يا (Präteritum) لپاره (Imperfekt) هم ويل کيږي. له (Präteritum) نه زياتره وخت په مطبوعاتو، ورځپاڼو، مجلو ، په ادبياتو، په کيسو او افسانو، د راډيو او تلويزيون په رسمي خبرونو کې او په دفترونو کې ډېر کار اخيستل کيږي. په دې چې په مطبوعاتو کې د (ته = du) او (تاسو = ihr) الفاظ

ډېر لږ استعمالیږي، نو ځکه دا الفاظ په مطلقه ماضي یا (Präteritum) کې هم ډېر لږ استعمالیږي. یوازیني الفاظ چي په (Präteritum) کې ډېر کارول کیږي، هغه (Modalverben) او (haben + sein) دي. دا چي له مطلقي ماضي نه په کومو حالاتو کې کار اخیستل کیږي، دا به په لاندینی برخه کې وګورو.

❶ کله چي په مطبوعاتو، راډیو او تلویزیون کې په لیکلي رپوټ کې د پخواني وخت کیسه کیږي. مثال:

| |
|---|
| Bei dem Erdbeben in China starben über 1000 Menschen.<br>په چین کې په زلزله کې له زرو نه ډېر کسان مړه شول |

❷ د مرستندویو فعلونو (haben, sein, werden) او د تناسبي فعلونو (Modalverben) د نږدې ماضي (Perfekt) په ځای ډېر وخت له مطلقي ماضي (Präteritum) نه کار اخیستل کیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| haben | Ich hatte keine Zeit. | ما وخت نه درلود |
| sein | Er war krank. | هغه ناروغ و |
| werden | Sie wurde wieder gesund. | هغه بیرته روغه شوه |
| können | Das konnten wir nicht. | دا مونږ نشول کولی |

❸ له (Präteritum) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چي یوه چاره یا یوه پېښه په پخواني وخت کې پیل شوې وي او په همغه پخواني وخت کې بشپړه شوې او یا پای ته رسېدلې وي. له بلې خوا له (Präteritum) نه د کیسو، افسانو او ناولو کې کار اخیستل کیږي. مثال:

| |
|---|
| Es war einmal eine wunderschöne Prinzessin. Sie lebte in einem märchenhaften Schloß. وه نه وه یوه شاهزادګۍ وه. هغه په یوې ډېرې ښایسته ماڼۍ کې اوسېدله |
| Der Mond verbarg sich hinter Wolken. Da fiel ein Schuss.<br>سپوږمۍ د ورېځو شاته پټه شوه. په دې وخت کې یو ډز وشو |

**د مطلقي ماضي جوړونه:**

د (Präteritum) د جوړوني لپاره په لومړي قدم کې په کار دي چي سړی پوه شي چي د کوم فعل (Präteritum) سړی جوړوي. مطلب دا چي سړی باید پوه شي چي دا فعل قاعده لرونکی دی او که بې قاعده دی او که نیم قاعده فعل دی.

**① د قاعده لرونکو فعلونو جوړونه:**

یو قاعده لرونکي فعل (Präteritum) په دې ډول جوړیږي چي د یو فعل د اوسني وخت یا حال منځنۍ برخه پیدا شي. کله چي د فعل منځنۍ برخه پیدا شوه نو بیا لاندیني توري ورسره یوځای کیږي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ich | - te | wir | -ten |
| du | - test | ihr | -tet |
| er, sie, es | - te | sie | -ten |

مثال: (spielen) یعني لوبېدل. له دې فعل نه چي وروستي توري، یعني (en) وښکل شي، نو (spiel) پاتې کیږي چي دا د اوسني وخت منځنۍ برخه ده او ورسره د مطلقي ماضي نښي یوځای کیږي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | s p i e l + t e | = | spielte | ما لوبه وکړه |
| du | s p i e l + t e s t | = | spieltest | تا لوبه وکړه |
| er, sie, es | s p i e l + t e | = | spielte | هغه، هغې لوبه وکړه |
| wir | s p i e l + t e n | = | spielten | مونږ لوبه وکړه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ihr | s p i e l + t e t | = | spieltet | تاسو لوبه وکړه |
| sie | s p i e l + t e n | = | spielten | هغوی لوبه وکړه |

Beispielsätze:

| |
|---|
| Als dein kleiner Bruder schlief, spieltest du Fußball.<br>کله چې ستا وړوکی ورور ویده و، تا د فوټبال لوبه وکړه |
| Bei der letzten Weltmeisterschaft spielte unsere Cricketmannschaft sehr gut.<br>په وروستی نړیوال سیالی کې زمونږ د کریکټ لوبډلې ډېره ښه لوبه وکړه |

**د ځینو فعلونو ځانګړتیا:**

کله چې د یو فعل د منځنی برخې په پای کې (d, t, tt, m, n) راشي، نو کله کله د فعل د منځنۍ برخې او د (Präteritum) خاصو تورو تر مینځ (e) ورزیاتیږي.مثال:
(arbeiten) یعني کارکول. د دې فعل منځنی برخه ده (arbeit) . څنګه چې لیدل کیږي، د دې فعل وروستی توری (t) دی. مخکې له دې چې د مطلقې ماضي خاص توري وروسره یوځای کړي شي، نو د دواړو تورو ترمینځ (e) ورزیاتیږي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | arbeit + *e* + t e | = | arbeitete | ما کار وکړو |
| du | atm + *e* + t e s t | = | atmetest | تا ساه راښکله |
| es | regn + *e* + t e | = | regnete | باران وورېدوو |
| wir | zeichn + *e* + t e n | = | zeichneten | مونږ رسم وکړو |
| ihr | kitt + *e* + t e t | = | kittetet | تاسو سرېښ کړو |
| sie | weid + *e* + t e n | = | weideten | هغوی وځرېدل |

Beispielsätze:

| |
|---|
| 1. Ich arbeitete 5 Jahre lang als Busfahrer. ما پنځه کاله د سرویس د ډریور په توګه کار وکړ |
| 2. In der letzten Nacht atmetest du sehr unregelmäßig.<br>په تېره شپه کې تا په ډېره غیر منظمه توګه ساه راښکله |
| 3. Gestern regnete es den ganzen Tag. پرون ټوله ورځ باران وشو |
| 4. Wir zeichneten gemeinsam ein schönes Bild. مونږ په ګډه یو ښایسته انځور رسم کړو |
| 5. Ihr kittetet den abgebrochenen Henkel der Kanne. تاسو د چاینك کونده سرېښ کړه |
| 6. Die Schafe weideten den ganzen Sommer über. پسونه په ټول اوړي کې وځرېدل |

**② د بې قاعده فعلونو د مطلقې ماضي جوړونه:**

د بې قاعده فعلونو د (Präteritum) د جوړوني لپاره په کار دې چې لومړی د فعل د (Präteritum) منځنی برخه پیدا شي. د منځنی برخې پیدا کول نو کوم اسان کار ندی، دا باید بې له کومې قاعدې په یادي ډول زده کړی شي او بیا ورسره د هر ضمیر خاص توري یو ځای شي. د بې قاعده فعلونو د (Präteritum) خاص توري د قاعده لرونکو فعلونو د خاصو تورو سره توپیر لري او هغه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ich | هیڅ ورسره نه یو ځای کیږي | wir | -en |
| du | -st | ihr | -et |
| er, sie, es | هیڅ ورسره نه یو ځای کیږي | sie | -en |

مثال: (kommen) يعني راتلل. د دې فعل د (Präteritum) منځنۍ برخه ده (kam) . دا چې ولې د (kommen) د (Präteritum) منځنۍ برخه (kam) ده، دې ته څه قاعده نشته او دا بايد له ياده زده شي.
نو په دې ډول د مطلقې ماضي د ګردان لپاره د هر ضمير لپاره خاص توري د (kam) سره يوځای کيږي، په لاندې ډول:

| kommen راتلل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | k a m + هيڅ ورسره نه يو ځای کيږي | = | kam | زه راغلم |
| du | k a m + s t | = | kamst | ته راغلې |
| er, sie, es | k a m هيڅ ورسره نه يو ځای کيږي | = | kam | هغه راغی |
| wir | k a m + e n | = | kamen | مونږ راغلو |
| ihr | k a m + t | = | kamt | تاسو راغلی |
| sie | kam + e n | = | kamen | هغوی راغلل |

Beispielsätze:

Ich kam gestern vom Urlaub zurück. زه پرون له رخصتی نه بيرته راغلم
Du kamst 5 Minuten zu spät zum Unterricht. ته درس ته پنځه دقيقې ناوخته راغلې

| fahren په يو ګاډي کې تلل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | f u h r هيڅ ورسره نه يو ځای کيږي | = | fuhr | زه په موټر کې ولاړم |
| du | f u h r + s t | = | fuhrst | ته په موټر کې ولاړې |
| er, sie, es | f u h r + هيڅ ورسره نه يو ځای کيږي | = | fuhr | هغه په موټر کې ولاړ |
| wir | f u h r + e n | = | fuhren | مونږ په موټر کې ولاړو |
| ihr | f u h r + t | = | fuhrt | تاسو په موټر کې ولاړئ |
| sie | f u h r + e n | = | fuhren | هغوی په موټر کې ولاړل |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Ich fuhr mit dem Zug nach Paris. | زه په اورګاډي کې پاريس ته ولاړم |
| Wie fuhrst du gestern zur Arbeit? | ته پرون کار ته څنګه ولاړې؟ |

| | |
|---|---|
| **پاملرنه** | د بې قاعده فعلونو د مطلقې ماضي په ګردان کې هېڅکله بايد د اوسني وخت يا د حال د ګردان په شان توري يو ځای نشي، يعني دا مطلق غلط دی چې د (ich fuhr) سره (e) يوځای شي او وويل شي چې (~~ich fuhre~~ = falsch) . |

## Halbunregelmäßige Bildung

### ③ د نيمه قاعده لرونکو او نيمه بې قاعده فعلونو د (Präteritum) جوړونه:

په جرمني ژبه کې څو فعلونه شته چې د هغوی (Präteritum) نيمه په قاعده او نيمه بې قاعده ده چې هغه دا فعلونه دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wissen پوهيدل | kennen پيژندل | bringen راوړل | brennen سوځيدل |
| nennen نومول | senden ليږل | rennen ځغستل | wenden اړول، مخه کول |

د دې فعلونو د (Präteritum) منځنۍ برخه باید په يادې ډول زده کړی شي او د جوړولو لپاره يې څه قاعده نشته، نو ځکه دا فعلونه د نيمه بې قاعده فعلونو په نامه ياديږي. کله چې منځنۍ برخه يې پيدا شوه نو بيا په قاعده ډول د (Präteritum) د ضميرونو ورستي توري ورسره د ګردان لپاره يو ځای کيږي، مثال:
د (پوهېدل = wissen) منځنۍ برخه په (Präteritum) کې (wuss) ده. نو د دې ګردان لپاره د هر ضمير خاص توري ورسره يوځای کيږي، په لاندې ډول:

| wissen پوهېدل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | w u s s + t e | = | wusste | زه پوه وم |
| du | w u s s + t e s t | = | wusstest | ته پوه وې |
| er, sie, es | w u s s + t e | = | wusste | هغه پوه و، پوهه وه |
| wir | w u s s + t e n | = | wussten | مونږ پوه وو |
| ihr | w u s s + t e t | = | wusstet | تاسو پوه واست |
| sie | w u s s + t e n | = | wussten | هغوی پوه وو |

Beispielsätze:
Ich wusste nicht, dass du krank warst. زه پوه نه وم چې ته ناروغ وې
Wusstest du, dass er verheiratet ist? ته خبر وې چې هغه واده کړی دی؟

| bringen راوړل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | b r a c h + t e | = | brachte | ما راوړ، ما راوړل |
| du | b r a c h + t e s t | = | brachtest | تا راوړ، تا راوړل |
| er, sie, es | b r a c h + t e | = | brachte | هغه راوړ، هغې راوړ (راوړل) |
| wir | b r a c h + t e n | = | brachten | مونږ راوړ، مونږ راوړل |
| ihr | b r a c h + t e t | = | brachtet | تاسو راوړ، تاسو راوړل |
| sie | b r a c h + t e n | = | brachten | هغوی راوړ، هغوی راوړل |

Beispielsätze:
Ich brachte ihm gestern ein Kilo Äpfel. ما هغه ته پرون يو کيلو مڼې يووړې
Brachtest du ihn nach dem Kinobesuch nach Hause?
سينما ته له تګ نه وروسته هغه تا کور ته يووړ؟

**④ د مرستندويو فعلونو د مطلقې ماضي جوړونه:**

د مرستندويو فعلونو يعنې د (haben, sein, werden) د (Präteritum) جوړونه په دې ډول کيږي چې لومړی د دې فعلونو منځنۍ برخه پيدا شي او بيا د ضميرونو خاص توري ورسره يوځای شي، په لاندې ډول:

| haben درلودل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | h a t + t e | = | hatte | ما درلودل |
| du | h a t + t e s t | = | hattest | تا درلودل |
| er, sie, es | h a t + t e | = | hatte | هغه درلودل، هغې درلودل |
| wir | h a t + t e n | = | hatten | ما درلودل |
| ihr | h a t + t e t | = | hattet | تاسو درلودل |
| sie | h a t + t e n | = | hatten | هغوی درلودل |

Beispielsätze:
Hattest du gestern keine Zeit, zum Vortrag zu kommen?
تا پرون وخت نه درلود چې کنفرانس ته راغلی وای؟
Was hattet ihr früher für ein Auto? تاسو پخوا څه شان موټر درلود؟

| sein اوسېدل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | w a r هېڅ ورسره نه یو ځای کیږي | = | war | زه وم |
| du | w a r + s t | = | warst | ته وې |
| er, sie, es | w a r هېڅ ورسره نه یو ځای کیږي | = | war | هغه و، هغه وه |
| wir | w a r + e n | = | waren | مونږ وو |
| ihr | w a r + t | = | wart | تاسو واست |
| sie | w a r + e n | = | waren | هغوی وو |

Beispielsätze:
Ich war gestern den ganzen Tag zu Hause. زه پرون ټوله ورځ په کور کې وم
Wo warst du vergangene Nacht? ته تېره شپه چېرته وې؟

| werden کېدل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | w u r d + e | = | wurde | زه شوم |
| du | w u r d + e s t | = | wurdest | ته شوې |
| er, sie, es | w u r d + e | = | wurde | هغه شو، هغه شوه |
| wir | w u r d + e n | = | wurden | مونږ شو |
| ihr | w u r d + e t | = | wurdet | تاسو شوئ |
| sie | w u r d + e n | = | wurden | هغوی شو |

Beispielsätze:
Wofür wurdest du bestraft? تا ته په څه باندې سزا درکړل شوه؟
In diesem Jahr wurden wir nicht krank. په دې کال کې مونږ ناروغه نه شولو

**Die Präteritumformen der 6 Modalverben**

| |
|---|
| 1.„wollen“ und „sollen“ bilden ein regelmäßiges Präteritum.<br>د (wollen + sollen) مطلقه ماضي د قاعده لرونکو فعلونو په شان کردانیږي |
| 2. „können“, „dürfen“ und „müssen“ verlieren den Umlaut, sonst sind die Präteritumformen auch regelmäßig.<br>(können, dürfen, müssen) په مطلقه ماضي کې (دپاسه دوه ټکي = Umlaut) له لاسه ورکوي |
| 3. „mögen“ bildet das Präteritum wie ein halbunregelmäßiges Verb.<br>(mögen) په مطلقه ماضي کې د نیمه قاعده لرونکو په شان کردانیږي |

① د (wollen) او (sollen) مطلقه ماضي په قاعده ده او په لاندې ډول کیږي:

| wollen غوښتل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | woll + te | = | wollte | ما غوښتل |
| du | woll + test | = | wolltest | تا غوښتل |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| er, sie, es | woll + te | = | wollte | هغه، هغې غوښتل |
| wir | woll + ten | = | wollten | مونږ غوښتل |
| ihr | woll + tet | = | wolltet | تاسو غوښتل |
| sie | woll + ten | = | wollten | هغوی غوښتل |

Beispielsatz:
Was wolltest du mir gestern sagen? تا پرون څه غوښتل چې ماته ووايي؟
Er wollte gestern nicht zur Schule gehen. هغه پرون نه غوښتل چې ښوونځي ته ولاړ شي

**Übungen:**

1. Ich ………. gestern meine Oma besuchen. ما غوښتل چې پرون د خپلې نیا لیدو ته ورشم
2. Du ………. mir heute mein Buch zurückgeben.
تا غوښتل چې نن ما ته زما کتاب بېرته راکړې
3. Sie (3. Person Singular) ………… mit dem Bus fahren.
هغې غوښتل چې په سروېس کې ولاړه شي
4. Wir ………. in der ersten Reihe sitzen. مونږ غوښتل چې په لومړي کتار کې کېنو
5. Ihr ………. mir beim Einkaufen helfen.
تاسو غوښتل چې له ما سره په سودا اخیستلو کې مرسته وکړئ
6. Sie (3. Person Plural) ………. einen Brief schreiben. هغوی غوښتل چې یو لیک ولیکي
7. Mein Nachbar ………. sich um den Garten kümmern.
زما ګاونډي غوښتل چې د حویلۍ غم وخوري
8. Meine Eltern ………. mir ein Geschenk machen.
زما مور او پلار غوښتل چې ما ته یوه ډالۍ راکړي
9. ………. ihr verreisen? تاسو غوښتل چې په سفر ولاړ شي؟
10. Mein Lehrer ………. meine Entschuldigung nicht annehmen.
زما ښوونکي نه غوښتل چې زما بښنه ومني

**Lösungen:**

1. wollte 2. wolltest 3. wollte 4. wollten 5. wolltet 6. wollten 7. wollte 8. wollten 9. wolltet 10. wollte

| sollen ښایېدل، لازم اوسېدل، باید اوسېدل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | soll + te | = | sollte | ما ته یې ښایل، ما ته لازم وو |
| du | soll + test | = | solltest | تا ته یې ښایل، تا ته لازم وو |
| er, sie, es | soll + te | = | sollte | هغه، هغې ته یې ښایل، لازم وو |
| wir | soll + ten | = | sollten | مونږ ته یې ښایل، مونږ ته لازم وو |
| ihr | soll + tet | = | solltet | تاسو ته یې ښایل، تاسو ته لازم وو |
| sie | soll + ten | = | sollten | هغوی ته یې ښایل، هغوی ته لازم وو |

Beispielsätze:
Ich sollte gestern einen Brief schreiben. ما باید پرون یو لیک لیکلی وای
Was solltest du gestern tun? تا باید پرون څه کړي وای؟

**Übungen:**

1. Ich (sollen) ………. heute nicht hier sein. زه باید نن دلته نه وای
2. Du (sollen) ………. dein Zimmer aufräumen. تا باید خپله کوټه تولہ کړې وای
3. Er (sollen) ………. bald wieder gesund sein. هغه باید ژر بېرته روغ شوی وای
4. Wir (sollen)………. leise sein. مونږ ته لازمه وه چې غلي وای
5. Ihr (sollen) ………. schnell zum Training gehen. تاسو باید ژر تمرین کولو ته تللي وای
6. Sie (3. Person Plural) (sollen) ………. den Fahrstuhl nicht benutzen.
هغوی باید له لفټ نه کار نه وای اخیستی
7. Das Flugzeug (sollen)………. um 10:00 Uhr landen.
الوتکه باید په لس بجو ښکته شوې وای
8. Die Arbeiten (sollen) ………. am Abend erledigt sein.
کارونه باید تر ماښامه پورې تمام وای
9. Du (sollen) ………. pünktlich sein. تا ته لازمه وه چې پخپل وخت کې راغلی وای
10. Der Zug (sollen)………. keine Verspätung haben. اورګاډي باید ځنډېدلی نه وای

**Lösungen:**
1. sollte 2. solltest 3. sollte 4. sollten 5. solltet 6. sollten 7. sollte 8. sollten
9. solltest 10. sollte

② له (können) او (dürfen) نه (Umlaut) هیسته کیږي، یعنې د (ö) او (ü) دپاسه دوه ټکي هیسته کیږي او ورنه (o) او (u) جوړیږي او بیا د (Präteritum) خاص توري ورسره یوځای کیږي.

| dürfen اجازه درلودل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | durf + te | = | durfte | ما اجازه درلودله |
| du | durf + test | = | durftest | تا اجازه درلودله |
| er, sie, es | durf + te | = | durfte | هغه، هغې اجازه درلودله |
| wir | durf + ten | = | durften | مونږ اجازه درلودله |
| ihr | durf + tet | = | durftet | تاسو اجازه درلودله |
| sie | durf + ten | = | durften | هغوی اجازه درلودله |

Beispielsätze:
Ich durfte gestern den ganzen Tag nichts essen.
پرون ماته ټوله ورځ د کوم شي د خوړلو اجازه نه وه
Was durftet ihr gestern nicht? تاسو ته پرون د څه شي اجازه نه وه؟

**Übungen:**

1. Ich ………. gestern leider nicht ins Schwimmbad gehen.
له بده مرغه ما ته اجازه نه وه چې زه پرون د لامبو ډنډ ته تللی وای
2. Du ………. mit niemandem darüber sprechen.
تا ته اجازه نه وه چې د کوم چا سره دې په دې برخه کې خبرې کړې وای
3. Sie (3. Person Singular) ………. nie zu spät kommen.
هغې ته هیڅکله اجازه نه وه چې ناوخته راغلې وای

4. Wir ………. uns von unserem Taschengeld etwas kaufen.
مونږ ته اجازه وه چې د خپل جبخرڅۍ پیسو نه مو یو څه په بیه اخیستي وای
5. Ihr ………. keine Freunde mitbringen.
تاسو ته اجازه نه وه چې ملګري مو له ځانه سره راوستي وای
6. Sie (3. Person Plural) ………. das schöne Wetter am Strand genießen.
هغوی کوی شو چې د بحر په غاړه له ښې هوا نه خوند واخلي
7. Der Großvater ………. nicht mehr mit dem Fahrrad fahren.
نیکه ته اجازه نه وه چې نور په بایسکل وګرځي
8. Onkel, ………. du gestern nicht mitkommen?
ماما، تا ته پرون اجازه نه وه چې له مونږ سره راغلی وای؟
9. Meine kleine Schwester und ich ………. auch von der Suppe probieren.
زما وړې خور او ما ته اجازه وه چې لږ څه ښوروا مو څکلي وای
10. Der Fremde ……. die Tür nicht öffnen. پردي سړي ته اجازه نه وه چې دروازه پرانیزي

**Lösungen:**
1. durfte 2. durftest 3. durfte 4. durften 5. durftet 6. durften 7. durfte 8. durftest 9. durften 10. durfte

| können کوی شول | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | konn + te | = | konnte | ما کوی شول |
| du | konn + test | = | konntest | تا کوی شول |
| er, sie, es | konn + te | = | konnte | هغه، هغې کوی شول |
| wir | konn + ten | = | konnten | مونږ کوی شول |
| ihr | konn + tet | = | konntet | تاسو کوی شول |
| sie | konn + ten | = | konnten | مونږ کوی شول |

Beispielsätze
Ich konnte gestern nichts essen. پرون ما هیڅ شی خوړلی نشو
Was konntest du gestern nicht tun? پرون تا څه شی نه شول کولی؟

**Übungen:**

1. Ich ………. gestern keine Zeitung lesen. پرون ما اخبار لوستلی نشو
2. Du ………. mir damit keinen Gefallen tun. په دې باندې تا زه خوشحاله نکړم
3. Sie (3. Person Singular) ………. die Sprache nicht. هغه په ژبه نیوهېدله
4. Wir ………. nicht am Unterricht teilnehmen. مونږ په درس کې برخه نشوه اخیستلی
5. Ihr ………. nicht wissen, dass niemand zu Hause ist.
تاسو په دې نشوئ پوهېدی چې هیڅ څوک په کور کې نه وو
6. Sie (3. Person Plural) ………. lauter singen.
هغوی کوی شول چې په لوړ غږ سندرې وواېي
7. Mein Großvater ………. großartig Tennis spielen. زما نیکه ډېر ښه تېنس لوبېدی شو
8. Meine Eltern ………. gestern nicht zum Schulfest kommen.
زما مور او پلار پرون نشول کولی چې د ښوونځي جشن ته راغلي وای

9. Jakob, .......... du alle Aufgaben lösen? يعقوبه، تا ټولې پوښتنې حل کړی شوې؟
10. Mein bester Freund .......... nicht lesen. زما له ټولو نه ښه ملګري لوست نشو کولی

**Lösungen:**
1. konnte 2. konntest 3. konnte 4. konnten 5. konntet 6. Konnten 7. konnte 8. konnten 9. konntest 10. konnte

| müssen مجبور اوسېدل، ډېر ضرور اوسېدل | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | muss + te | = | musste | زه مجبور وم |
| du | muss + test | = | musstest | ته مجبور وې |
| er, sie, es | muss + te | = | musste | هغه مجبور و |
| wir | muss + ten | = | mussten | مونږ مجبور وو |
| ihr | muss + tet | = | musstet | تاسو مجبور واست |
| sie | muss + ten | = | mussten | هغوی مجبور وو |

Beispielsätze:
Ich musste gestern 12 Stunden arbeiten. زه پرون مجبور وم چې دولس ساعته کار وکړم
Was musstet ihr gestern tun? پرون باید تاسو څه کړي وای؟

**Übungen:**

1. Ich .......... immer alles mit meinem Bruder besprechen.
زه مجبور وم چې د هر څه په برخه کې له خپل ورور سره سلا وکړم
2. Du .......... ja auch diesen Weg nehmen. ته هم مجبور شوې چې په دې لار تېر شې
3. Er .......... ohne seinen Vater fahren. هغه هم مجبور شو چې بې له خپله پلاره ولاړ شي
4. Wir .......... im Auto warten. مونږ مجبور شو چې په موټر کې انتظار وباسو
5. Ihr .......... gestern das Mittagessen kochen.
تاسو مجبور وئ چې پرون د غرمې ډوډی پخه کړئ
6. Sie (3. Person Plural) .......... sehr hohe Gebühren zahlen.
هغوی مجبور وو چې ډېر جګ ټکس تحویل کړي
7. Mein Freund .......... seine Mutter zum Bahnhof begleiten.
زما ملګری مجبور و خپله مور د اورګاډي تر ستېشن پورې بدرګه کړي
8. Seine Freunde .......... ihm bei den vielen Aufgaben helfen.
د هغه ملګري مجبور و چې له هغه سره په ډېرو وظیفو کې مرسته وکړي
9. .......... du diese faulen Äpfel kaufen? دا ضرور و چې ته دا خوسا مڼې په بیه واخلې؟
10. Der General .......... eine wichtige Entscheidung treffen.
جنرال مجبور و چې یوه مهمه پرېکړه وکړي

**Lösungen:**
1. musste 2. musstest 3. musste 4. mussten 5. musstet 6. mussten 7. musste 8. mussten 9. musstest 10. musste

## mögen   یو شي ته زړه کېدل

③ د (mögen) مطلقه ماضي په نیمه قاعده ډول جوړیږي، په لاندې ډول:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | moch + te | = | mochte | زما یو شي ته زړه کېدو |
| du | moch + test | = | mochtest | ستا یو شي ته زړه کېدو |
| er, sie, es | moch + te | = | mochte | د هغه یو شي ته زړه کېدو |
| wir | moch + ten | = | mochten | زمونږ یو شي ته زړه کېدو |
| ihr | moch + tet | = | mochtet | ستاسو یو شي ته زړه کېدو |
| sie | moch + ten | = | mochten | د هغوی یو شي ته زړه کېدو |

Beispielsätze:

Ich mochte früher keinen Spinat essen. — پخوا زما زړه نکېدو چې پالک وخورم

Was mochtet ihr früher nicht essen? — ستاسو پخوا د څه شی خوړلو ته زړه نکېدو؟

| Präsens: | Präteritum: |
|---|---|
| Ich mag nicht mit dir streiten.<br>زه نه غواړم چې له تا سره شخړه وکړم | Ich mochte nicht mit dir streiten.<br>ما نه غوښتل چې له تا سره شخړه وکړم |

**Übungen:**

1. Ich ………. unseren Lehrer nicht. — زمونږ ښوونکی زما نه خوښېدو
2. Du ………. sie schon immer. — ستا له ډېر پخوا راهیسي هغه خوښېدله
3. Sie (3. Person Singular) ………. die blaue Jacke nicht. — دا آبي رنګه کرتۍ د هغې نه خوښېدله
4. Wir ………. deine Aufsätze sehr. — ستا مقالې زمونږ ډېرې خوښېدلې
5. Ihr ………. mein Buch nicht. — زما کتاب ستاسو نه خوښېدو
6. Sie (3. Person Plural) ………. die kleine Stadt am Meer. — د بحر په غاړه دا وړوکی ښار د هغوی خوښېدو
7. Mein Neffe ………. nicht mit seinem Vater in die Stadt fahren. — زما د وراره خوښه نه وه چې د خپل پلار سره ښار ته ولاړ شي
8. Meine Klassenkameraden ………. mich nicht. — زه د خپلو ټولګیوالو نه خوښېدم
9. Ich dachte, du ………. keine Honigmelone? — ما فکر وکړو چې خټکی ستا نه خوښېدو
10. Ich ………. den Hund meines Onkels. — زما د تره سپی زما خوښېدو

**Lösungen:**

1. mochte 2. mochtest 3. mochte 4. mochten 5. mochtet 5. mochten 6. mochte 7. mochten 8. mochte 9. mochtest 10. mochte

**Übungen:** Modalverben in Präteritum (gemischte Verben).

1. Er ………. die Fragen des Professors in der Prüfung nicht beantworten.
   Deshalb ………. er die Prüfung wiederholen. په ازموینه کې هغه د پروفیسر پوښتنو ته ځواب نشو ورکولی. نو ځکه هغه مجبور و چې ازموینه تکرار کړي

2. Wo ist denn dein Bericht? Du .......... ihn doch gestern abgeben.
ستا رپوټ چېرته دی؟ تا خو باید هغه پرون ورکړی وای
3. Früher .......... ich keinen Spinat. پخوا پالك زما نه خوښېدل
4. Wir .......... einen weiteren Mitarbeiter einstellen, damit der Termin eingehalten werden .......... .
د دې لپاره چې وخت له مونږ نه تېر نشي، مونږ مجبور وو چې یو بل همکار مقرر کړو
5. Tut mir Leid, ich .......... dich nicht verletzen.
په دې باندې خواشینی یم، ما نه غوښتل چې تا روحآ ژوبل کړم
6. Vor einem Jahrhundert .......... Frauen bei den Wahlen nicht wählen.
یوه پېړی مخکې ښځو ته اجازه نه وه چې په ټاکنو کې رآی ورکړي
7. Du bist ja schon da! .......... du heute nicht später zur Arbeit kommen?
ته اوس راغلې؟ تا نه غوښتل چې نن لږخه وروسته کار ته راشې؟
8. Mein Bruder .......... am Freitag Abend nicht ausgehen. Er .......... zu Hause bleiben und lernen. زما ورور ته اجازه نه وه چې د ساعت تېرۍ لپاره بهر ولاړ شي. هغه مجبور و چې په کور کې پاتې شي او درس ووایي
9. Wir .......... das letzte Stück rennen, sonst hätten wir den Zug verpasst.
مونږ مجبور شولو چې په وروستی برخه کې منډه ووهو او که نه نو اورګاډی له مونږ نه تلو
10. Dank unseres jungen Torhüters .......... unsere Mannschaft das Spiel gewinnen. زمونږ د ځوان ګولکیپر پر مټ زمونږ لوبډلې لوبه وګټلی شوه

**Lösungen:**

1. konnte. musste 2. solltest 3. mochte 4. mussten. konnte 5. wollte 6. durften 7. wolltest 8. durfte. musste 9. mussten 10. konnte

## Plusquamperfekt (vollendete Vergangenheit)
## بعیده ماضي، ډېر لیرې پخوانی وخت، ډېر لیرې تېر مهال

له (ډېر لیري پخواني وخت = Plusquamperfekt) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې یوه خبره په (مطلقې ماضي = Präteritum) کې یاده شي خو اصلاً د دې خبرې نورې چارې ډېر پخوا تر سره شوي او خبره بشپړه او یا تمامه شوي وي. مثال:

| |
|---|
| Obwohl sie wochenlang fleißig geübt hatte, fiel sie durch die Prüfung.<br>سره له دې چې هغې څو اونۍ ډېر تمرین کړی و خو بیا هم په ازموینه کې ناکامه شوه |
| Als der Notarzt eintraf, war der Verletzte bereits gestorben.<br>کله چې عاجل ډاکټر راورسېدو نو ټپي وخته مړ شوی و |

د (Plusquamperfekt) لغت د لاتیني ژبې (*plus quam perfectum* = mehr als perfekt) نه اخیستل شوی او مطلب یې دا دی چې یوه خبره بشپړه شوې او یا پای ته رسېدلې ده. ډېر لیرې پخوانی وخت په دې ډول جوړیږي چې لومړی د یو فعل د (Perfekt) منځنی برخه باید ولټول شي. کله چې د (Perfekt) منځنی برخه پیدا شوه نو بیا د (haben + sein) د فعلونو (Präteritum) ورسره یو ځای کیږي. مثال:

① (sagen = ویل) د (sagen) د فعل (Perfekt) کیږي (hat gesagt). د (Plusquamperfekt) لپاره دومره پکار دي چې له (hat) نه (hatte) جوړ شي او بیا (gesagt) ورسره یو ځای شي، یعني (hatte gesagt) وویل شي.

② (gehen = تلل) . د (gehen) د فعل (Perfekt) کیږي (ist gegangen). د (Plusquamperfekt) د جوړولو لپاره دومره پکار دي چې له (ist) نه (war) جوړ شي او بیا (gegangen) ورسره یوځای شي، یعني (war gegangen) وویل شي.

| | |
|---|---|
| تکرار | د ډېر لیري پخواني وخت یا (Plusquamperfekt) او د نږدې پخواني وخت یا (Perfekt) توپیر تش دومره دی چې په (Perfekt) کې د (haben) او یا (sein) اوسنی وخت یا (Präsens) کارول کیږي، یعنې (er hat) او یا (er ist) ، خو په (Plusquamperfekt) کې د (haben) او یا (sein) مطلقه ماضي یا (Imperfekt/Präteritum) کارول کیږي، په دې ډول: (er hatte) او یا (er war) . |

| | Perfekt | Plusquamperfekt | Perfekt | Plusquamperfekt |
|---|---|---|---|---|
| ich | habe gesagt | hatte gesagt | bin gegangen | war gegengen |
| du | hast gesagt | hattest gesagt | bist gegangen | warst gegangen |
| er | hat gesagt | hatte gesagt | ist geganhen | war gegangen |
| wir | haben gesagt | hatten gesagt | sind gegangen | waren gegangen |
| ihr | habt gesagt | hattet gesagt | seid gegangen | wart gegangen |
| sie | haben gesagt | hatten gesagt | sind gegangen | waren gegangen |

**په کوم وخت کې له (Perfekt) او په کوم وخت کې د (Plusquamperfekt) نه کار اخیستل کیږي؟**

که چیرته د یوې جملې اصلي برخه په حال یا (Präsens) کې وي، نو فرعي برخه یې په (Perfekt) کې استعمالیږي. مثال:

| |
|---|
| Wir können jetzt gehen, nachdem du zum Glück gekommen bist,<br>مونږ کوی شو چې اوس ولاړ شو، په دې چې ته له نیکه مرغه راغلی |

په پورتنۍ جمله کې لومړنی برخه یې، یعني (wir können) په اوسني وخت کې یاده شوېده، نو ځکه په دوهمه برخه کې له (Perfekt) نه کار اخیستل شوی چې هغه (gekommen bist) دی.

که چیرته د یوې جملې اصلي برخه په (Imperfekt) او یا په (Perfek) کې وي، نو فرعي بجمله یې په (Plusquamperfekt) کې استعمالیږي. مثال:

| |
|---|
| Wir konnten dann gehen, nachdem du zum Glück gekommen warst,<br>په دې چې ته له نیکه مرغه راغلی وې ، نو مونږ بیا وکړی شو چې ولاړ شو |

په پورتنۍ جمله کې لومړنی برخه، یعني (wir konnten) په (Imperfekt) کې یاده شوېده، نو ځکه په دوهمه برخه کې له (Plusquamperfekt) نه کار اخیستل شوی چې هغه (gekommen warst) دی.

**Übungen:** Wählen Sie „haben“ oder „sein“ aus!

1. Wir ………… die Nachricht schon gelesen, als der Rechner abstürzte.
مونږ دا خبر ډېر وخته لوستلی و چې کمپيوټر يوناڅاپه مړ شو
2. Ich ………… nicht weit gelaufen, als mir das Bein weh tat.
زه لا ليرې تللی نه وم چې پښه مې په درد شوه
3. ………… ihr für die Prüfung gelernt? تاسو د ازموينې لپاره درس لوستی و؟
4. ………… du zuvor schon dort gewesen? ته له هغې نه دمخه هلته وې؟
5. Als sie hier ankam, ………… sie noch keine Kopfschmerzen.
کله چې هغه دلته ورسېدله، سر يې لا نه خوږېدو

**Lösungen**:
1. hatten 2. war 3. hattet 4. warst 5. hatte

**Übung:** Ergänzen Sie die Sätze im Plusquamperfekt. (schwache Verben).

1. Nachdem er (stürzen) ……….. , tat ihm das linke Bein weh.
وروسته له دې چې هغه ولوېدو، نو کينه پښه يې په درد شوه
2. Leztes Jahr zogen meine Freunde in den Ort, in dem sie vorher (studieren) ……… تېر کال زما ملګرو هغه ځای ته کډه وکړه چې پخوا يې هلته تحصيل کړی و
3. Es kamen viel mehr Leute als ich (einladen) ………… له هغو کسانو نه پرته چې ما رابللي وو، ګڼ شمېر نور کسان هم راغلل
4. Als das Eis (tauen) ……….., konnten man wieder spazieren gehen.
کله چې کنګل ويلې شو، نو بيا سړی چکر وهلی شو
5. Wir vergaßen alle Wörter, die wir so fleißig (lernen) …………
هغه لغات چې مونږ په دومره خواری زده کړي وو، ټول مو هېر شول

**Lösungen:**
1. gestürzt war 2. studiert hatten 3. eingeladen hatte 4. getaut war 5. gelernt hatten

**Übungen:** Schreiben Sie Sätze im Plusquamperfekt (starke/gemischte Verben).

1. Ich erhielt heute den Brief, den du mir gestern (schreiben) ………..
هغه ليك چې تا ماته پرون ليکلی و، نن راورسېدو
2. Als der Direktor so spät kam, (wir/schon/gehen) …………
کله چې مدير دومره ناوخته راغی، مونږ له هغې نه مخکې وخته تللي وو
3. Wir kaufen in dem Geschäft ein, das uns unser Nachbar (empfehlen) ………
مونږ په هغه مغازه کې سودا اخلو چې زمونږ ګاونډي مونږ ته سپارښتنه کړې وه
4. Wir gingen zu dem Raum zurück, in dem wir zuvor (sitzen) …………
مونږ هغه خونې ته بېرته ولاړو چې مخکې پکې ناست وو

5. Nachdem mein Bruder sehr schnell (rennen) ………., bekam er Beinschmerzen.
کله چي زما ورور ډېر ژر منډې ووهلې، پښه يې په درد شوه

**Lösungen:**
1. geschrieben hattest 2. waren wir schon gegangen 3. empfohlen hatte
4. gesessen hatten 5. gerannt war

## Futur I (Zukunft) لومړی راتلونکی وخت، آینده

(Futur) راتلونکي وخت يا آينده ته وايي، يعني دا چې هر څه چې په راتلونکي کې کيږي، هغه په (Futur) بيانيږي. دا مطلب د ګرامر په کتابونو کې په دغه عباراتو ليکل شويدی. په ليکل شوې ژبه او يا په دفترونو کې به دا همداسې وي، خو په ورځينی ويل شوې ژبه کې بيا داسې نده. داسې يو څوك به په جرمني کې پيدا نشي چې هغه په ويل شوې ژبه کې داسې ووايي :

| |
|---|
| Ich werde in fünf Minuten nach Hause gehen. زه به پنځه دقيقې وروسته کور ته ولاړ شم |

سره له دې چې دا پېښه يعنې (کور ته تګ) پنځه دقيقې وروسته په راتلونکي وخت (Futur) کې کيږي، خو ټول جرمنيان د (Futur) په ځای له (اوسنی وخت = Präsens) نه کار اخلي او داسې وايي چې:

| |
|---|
| Ich gehe in fünf Minuten nach Hause. زه پنځه دقيقې وروسته کور ته ځم |

دا چې د جرمني ولس د (راتلونکي = Futur I) په ځای له (اوسني وخت = Präsens) نه کار اخلي، نو دا سوال راپيدا کيږي چې د (راتلونکي = Futur I) نه څه وخت کار اخيستل کيږي؟ مخکې له دې چې دې سوال ته ځواب ووايو، ښه به دا وي چې د (Futur I) د زده کولو ګرامري قاعده زده کړو.
راتلونکی وخت په دوه ډوله دی:

| | |
|---|---|
| Futur I = لومړی راتلونکی وخت | Futur II دوهم راتلونکی وخت |

د لومړي راتلونکي وخت (Futur I) د جوړولو لار دا ده:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| werden | + | Infinitiv | = | Futur I |
| کېدل | + | مصدر | = | لومړی راتلونکی |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | (werden) خو پخپله هم يو مصدر دی او (Infinitiv) خو هسې هم يو مصدر دی، نو د جملې جوړولو په وخت کوم يو ګردان شي، (werden) او که (Infinitiv)؟ |
| ځواب | د جملې د جوړولو په وخت مصدر (Infinitiv) پخپل حال پاتې کيږي او تش (werden) ګردانيږي، په لاندې ډول |

| |
|---|
| Er *wird* in einer Stunde nach Hause gehen. هغه به يو ساعت وروسته کور ته ولاړ شي |




د (werden) ګردان بې قاعده دی چې په لاندې جدول کې ليکل شوی دی:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ich | werde ز ه به شم | | wir | werden مونږ به شو |
| du | wirst ته به شې | | ihr | werdet تاسو به شئ |
| er, sie, es | wird هغه به شي | | sie | werden هغوی به شي |

اوس به راشو دی ته چې د (Futur I) نه په کومو حالاتو کې کار اخيستل کيږي:

① له (Futur I) نه هغه وخت د (حال = Präsens) په ځای کار اخيستل کيږي چې يوه خبره ډيره جدي وي، سخت عاقبت ولري او يا د راتلونکي لپاره ډيره اړينه وي، او يا د وړاندويني (پيش بيني) لپاره ورنه کار واخيستل شي. مثال:

| |
|---|
| In 20 Jahren werden wir den Krebs besiegen.<br>په شل کالو کې به مونږ په سرطان برلاسی شو |

② کله چې په راتلونکي وخت لپاره يو څوك يو اټکل وکړي. د دې اټکل لپاره زياتره وخت (vermuten) او يا (nicht wissen) کارول کيږي، مثال:

| |
|---|
| Ich vermute, er wird deinen Vorschlag nicht akzeptieren.<br>زه اټکل کوم چې هغه به ستا وړانديز ونه مني |
| Ich weiß nicht genau, was mein Sohn gerade macht. Er wird bald ins Bett gehen. زه ښه نيوهيږم چې زما زوی په دې شيبه کې څه کوي. هغه به په دې لنډو کې ويده شي |

③ کله چې يو څوك خپله هيله بيانه کړي، مثال:

| |
|---|
| Ich hoffe, er wird seine Prüfung bestehen.<br>زه هيله کوم چې هغه په خپله ازموينه کې بريالی شي |
| Morgen wird schon alles gut gehen. سبا به هر څه به ښه توګه تير شي |

④ کله چې په راتلونکی وخت باندې يو امر او يا يو ممانعت بيان شي، مثال:

| |
|---|
| Das wirst du sofort unterlassen! ته به دا کار سمدلاسه پريږدې |

⑤ کله چې د يوې پيښې يادونه په اوسني وخت کې وشي خو دا پيښه په راتلونکي وخت کې بشپړه شي. مثال:

| |
|---|
| Du wirst später als Arzt guten Erfolg haben. ته به وروسته د ډاکټر په حيث ښه بری ولرې |

**Übung:** Schreiben Sie Sätze im Futur I.

1. (wer/helfen/mir) ………… څوك به له ما سره مرسته وکړي؟
2. (ich/aufstehen/morgen/früh) ………… زه به سبا وخته راجګ شم
3. (die Studenten/demonstrieren/gegen die Regierung) ………… محصلين به د حکومت په وړاندې لاريون وکړي
4. (du/nicht/studieren/Jura) ………… ته به د حقوقو تحصيل ونکړې
5. (ihr/nicht/bekommen/mehr Gehalt) ……… تاسو ته به له دې نه ډېر معاش درنکړل شي

**Lösungen:**

1 Wer wird mir helfen?
2. Ich werde morgen früh aufstehen.
3. Die Studenten werden gegen die Regierung demonstrieren.
4. Du wirst nicht Jura studieren.
5. Ihr werdet nicht mehr Gehalt bekommen.

**Übung:** Schreibe Fragen im Futur I.

1. (es/morgen/schneien) …………? سبا به واوره وشي؟
2. (ihr/besuchen/uns) …………? تاسو به زمونږ ليدو ته راشئ؟
3. (wo/du/studieren) …………? ته به چېرته تحصيل وکړې؟
4. (was/er/sagen/dazu) …………? هغه به په دې برخه کې څه ووايي؟
5. (wann/wir/wiedersehen/dich) …………? مونږ به تا بيا کله ووينو؟

**Lösungen:**

1. Wird es morgen schneien? 2. Werdet ihr uns besuchen? 3. Wo wirst du studieren? 4. Was wird er dazu sagen? 5. Wann werden wir dich wiedersehen?

**Übung:** Ergänzen Sie Futur I!

1. Schwarze Wolken überziehen den Himmel. Es (regnen)………. heute noch …………. اسمان په تورو وريځو پوښول کيږي. نن به باران وشي
2. Sie sind schon lange verlobt. Sie (heiraten) ………. bald ……….. هغوی له ډېر وخت راهيسې له يوبل سره کوژدن دي.هغوی به دې لنډو کې واده وکړي
3. Er leidet an Krebs. Er (sterben) ………. in den kommenden Monaten ……….. هغه په سرطان اخته دی. هغه به په څو مياشتو کې مړ شي
4. Mein Bruder (fliegen)………. in diesem Jahr nach Japan. ……….. زما ورور به په دې کال کې جاپان ته ولاړ شي
5. Der beste Schüler (studieren) sicherlich Medizin ………. اولنمره زده کوونکې به يقيناً د طب تحصيل وکړي
6. Er (berenten) ……….. aus gesundheitlichen Gründen vorzeitig ………… . هغه ته به د روغتيايي لاملونو له کبله مخکې له وخته تقاعد ورکړل شي

7. Ich verspreche, dass ich immer (treu bleiben) ……….. …………

زه ژمنه کوم چې زه به تل وفادار واوسم

8. Ich (machen) ……….. eine Diät ………… ., da ich an Diabetes leide.

زه به پرهېز وکړم، ځکه چې زه د شکرې په ناروغی اخته یم

9. Er (rauchen) ……….. nicht mehr …………, da er Asthma hat.

هغه به نور سګرټ ونه څکوي، ځکه چې هغه د ساه لنډۍ ناروغي لري

10. Du bist faul. Du (schaffen) ……….. die Prüfung auf keinen Fall …………

ته نالایق یې. ته به په هېڅ ډول په ازموینه کې بریالی نشې

**Lösungen:**

1. Es *wird* heute noch *regnen*. 2. Sie *werden* bald *heiraten*. 3. Er *wird* in den kommenden Monaten *sterben*. 4. Mein Bruder *wird* in diesem Jahr nach Japan *fliegen*. 5. Der beste Schüler *wird* sicherlich Medizin *studieren*. 6. Er *wird* aus gesundheitlichen Gründen vorzeitig *berentet*. 7. Ich verspreche, dass ich immer *treu bleiben werde*. 8. Ich *werde* eine Diät *machen,* da ich an Diabetes leide. 9. Er *wird* nicht mehr *rauchen,* da er Asthma hat. 10. Du bist faul. Du *wirst* die Prüfung auf keinen Fall *schaffen.*

## Futur II (vollendete Zukunft)

## دوهم راتلونکی وخت (بشپړ راتلونکی)

له (Futur II) نه د (Futur I) په پرتله ډېر لږ کار اخیستل کیږي، او له بلې خوا جوړول یې هم لږ څه ګران دي. اوس به په لنډ ډول زده کړو چې له (Futur II) نه مطلب څه شی دی. کله چې سړي په اوسني وخت کې د یو کار لپاره عاجز وي، خو په راتلونکي کې دا کار په بریالیتوب سرته رسوی شي، نو په دې وخت کې بیا (Futur II) پکاریږي. د بېلګې په توګه یو سړی وایي چې:

| |
|---|
| Jetzt bin ich arm. Aber in 20 Jahren werde ich ein reicher Mann sein.<br>زه اوس بېوزلی یم، خو شل کاله وروسته به زه یو بډا سړی یم |

په دې چې مونږ اوس د (Futur II) په مانا پوه شولو، نو له ډېرو تفصیلاتو نه مخکې به د (Futur II) جوړول زده کړو. د (Futur II) د زده کولو لپاره ډېر اړین دا دي چې مونږ پخواني څپرکي، یعنې (Partizip II) او یا د (Perfekt) جوړول ښه زده کړي وي. که دا مو زده وي، نو بیا د (Futur II) زده کول اسان دي او هغه په دې ډول دي:

| werden | + | Partizip II | + | haben/sein | = | Futur 2 |
|---|---|---|---|---|---|---|

| |
|---|
| Der Patient ist schwer krank. Er stirbt morgen.<br>رنځور ډېر سخت ناروغ دی. هغه سبا مړ کیږي. |

که مونږ دلته د دوهمې جملې (Perfekt) جوړ کړو، نو وبه وایو چې:

| |
|---|
| Der Patient ist schwer krank. Er ist morgen gestorben.<br>رنځور سخت ناروغ دی. هغه سبا مړ دی |

د (Futur II) د جوړولو په وخت له دې جملې سره (werden) یوځای کېږي چې (werden) د جملې دوهم ځای نیسي او په دغه ځای کې ګردانیږي، یعني په پورتنی جمله کې د (ist) په ځای (wird) راځي او د جملې په پای کې (ist) د مصدر په توګه، یعني د (sein) په توګه راځي، په دې ډول:

Der Patient ist schwer krank. Er wird morgen gestorben sein.
رنځور سخت ناروغه دی. هغه به سبا مړ شوی وي

د (Futur II) د جوړولو لپاره یوه بله لار هم شته او هغه دا ده چې که (Futur I) په (Perfekt) واړول شي او د جملې په پای کې فعل ګردان نشي بلکې د مصدر یا (Infinitiv) په توګه استعمال شي، نو له دې نه (Futur II) جوړیږي، په لاندې ډول:

| Futur I | + | Perfekt | = | Futur II |
|---|---|---|---|---|

د دې مطلب د اسانه کولو لپاره به قدم په قدم مخکې ولاړ شو. لومړی به یوه جمله په اوسني وخت (Präsens) کې جوړه کړو چې هغه دا ده:

Ich baue nächstes Jahr ein Haus. زه په راتلونکي کال کې یو کور جوړوم

د (Präsens) حالت به اوس په (Futur I) بدل کړو:

Ich werde nächstes Jahr ein Haus bauen. زه به په راتلونکي کال کې یو کور جوړ کړم

اوس به (Futur I) په (Perfekt) بدل کړو، چې په دې ډول له (bauen) نه به (ich habe gebaut) جوړ شي:

Ich habe nächstes Jahr ein Haus gebaut. په راتلونکي کال کې ما یو کور جوړ کړی دی

په وروستي قدم کې به دا (Perfekt) په (Futur II) بدل کړو او دا به په دې ډول وي چې د دې جملې د (habe) ځای به (werde) ونیسي او (habe) به د جملې په پای کې راشي، خو د مصدر یا د (Infinitiv) په توګه، یعني له (habe) نه به (haben) جوړ شي. دا بشپړه جمله به په دې ډول ولیکو:

Ich werde nächstes Jahr ein Haus gebaut haben.
ما به په راتلونکي کال کې یو کور جوړ کړی وي




| Person<br>شخص | Futur I<br>لومړنی راتلونکی وخت | Futur II<br>دوهمنی راتلونکی وخت |
|---|---|---|
| ich | werde haben وبه لرم | werde gehabt haben (ما) به درلودلي وي |
| du | wirst haben وبه لرې | wirst gehabt haben (تا) به درلودلي وي |

| | | |
|---|---|---|
| er/sie/es | wird haben وبه لري | wird gehabt haben<br>(هغه، هغې) به درلودلي وي |
| wir | werden haben وبه لرو | werden gehabt haben<br>(مونږ) به درلودلي وي |
| ihr | werdet haben وبه لرئ | werdet gehabt haben<br>(تاسو) به درلودلي وي |
| sie | werden haben وبه لري | werden gehabt haben<br>(هغوی) به درلودلي وي |

**1. Futur I**

1. Ich werde nächstes Jahr ein Auto haben. په راتلونکي کال کې به زه يو موټر ولرم
2. Vielleicht wirst du Morgen bei der Prüfung viel Glück haben.
کېدی شي چې سبا په ازموينه کې ستا ډېره طالع وي
3. Er wird nicht so viel Glück haben wie du. د هغه به لکه ستا په شان دومره ډېره طالع نه وي
4. Wir werden Morgen hier schönes Wetter haben. سبا به دلته زمونږ هوا ښه وي
5. Ihr werdet nächstes Jahr viel Arbeit vor euch haben.
په راتلونکي کال کې به ستاسو په مخکې ډېر کار پروت وي
6. Damit werden sie auch nicht den Himmel auf Erden haben.
په دې باندې به هغوی ته هم په دې دنيا کې جنت په نصيب نشي (اصطلاح)

**2. Futur II**

1. Damals werde ich wohl viel Angst gehabt haben.
په هغه وخت کې کېدی شي چې زه به ډېر ډارېدم
2. Für deinen Rücktritt wirst du wohl einen Grund gehabt haben.
د خپلې استعفا لپاره کېدی شي تا به کوم علت درلودلی وي
3. Er wird vermutlich viel Geld gehabt haben. کېدی شي چې هغه به ډېرې پيسې درلودلې وي
4. Sie werden wohl davon keine Ahnung gehabt haben.
کېدی شي چې هغوی به په دې برخه کې هېڅ آګاه نه وو
5. Ihr werdet wohl eine böse Absicht gehabt haben.
کېدی شي چې تاسو به کوم بد قصد درلود
5. Sie werden wohl keine Gelegenheit gehabt haben.
کېدی شي چې هغوی ته به موقع په لاس نه وي ورغلې

**Übungen:**

1. Er sagte: „Das Kind ……. jetzt Hunger ………“. هغه ووېل: ماشوم به اوس وږی وي
2. Er sagte: „Das Kind ……. gestern Hunger …… …….“.
هغه ووېل: ماشوم به پرون وږی و
3. Du ……….. in einem Jahr einen interessanten Beruf …………
ته به يو کال وروسته يو په زړه پورې مسلك ولرې
4. Wir ………… dort einen tollen Ausblick …………
مونږ به هلته هره خوا ښه نظر وکولای شو
5. Ich ……… in Zukunft keinen Erfolg …….. زه به په راتلونکې کې بريالی نشم

6. Ihr …….. gestern Abend Kopfschmerzen ……….. ………

تاسو به پرون سر خوږی درلود

7. Sie ……….. bei der letzten Prüfung Pech ………… ………….

په وروستی ازموینه کې به د هغوی طالع کمه وه

8. Du ………. die Gelegenheit ……….., mit ihm zu sprechen.

تا ته به موقع په لاس درشي چې له هغه سره خبرې وکړې

9. Du …….. vor zwei Jahren die Gelegenheit ……. ….., mit ihm zu sprechen.

دوه کاله مخکې به تا ته موقع په لاس وه، چې له هغه سره دې خبرې کړې وای

10. Sie ………. bei der nächsten Prüfung Probleme …………

تاسو به په راتلونکې ازموینه کې ستونځې ولرئ

**Lösungen:**

1. wird …. haben 2. wird …… gehabt haben 3. wirst ….. haben 4. werden….. haben 5. werde ….. haben 6. werdet ……. gehabt haben 7. Werden …….. gehabt haben 8. Wirst ……… haben 9. wirst ……. gehabt haben 10. werden ……. haben

| Person<br>شخص | | Futur I<br>لومړنی راتلونکی | Futur II<br>دوهم راتلونکی |
|---|---|---|---|
| ich | زه | werde sein به یم | werde gewesen sein به وم |
| du | ته | wirst sein به یې | wirst gewesen sein به وې |
| er/sie/es | هغه | wird sein به وي | wird gewesen sein به و |
| wir | مونږ | werden sein به یو | werden gewesen sein به وو |
| ihr | تاسو | werdet sein به یاست | werdet gewesen sein به وئ |
| sie | هغوی | werden sein به وي | werden gewesen sein به وو |

**1. Futur I**

1. Nächstes Jahr werde ich 18 Jahre alt sein. په راتلونکي کال کې به زه ۱۸ کلن یم
2. Du wirst wohl dumm sein, wenn du dazu Nein sagst.
ته به احمق یې چې دې ته (نه) ووایې، دا رد کړې، دا ونه منې
3. Er wird der zukünftige Schuldirektor sein. هغه به د ښوونځي راتلونکی مدیر وي
4. Wir werden morgen um 12 Uhr dort sein. مونږ به سبا په ۱۲ بجو هلته واوسو
5. Ihr werdet dafür ewig dankbar sein. تاسو به ټول عمر له دې کبله منونکي واوسئ
6. Sie werden dort sehr ruhig sein. هغوي به هلته ډیر ارام واوسي

**2. Futur II**

1. An diesem Tag werde ich wohl sehr müde gewesen sein.
کېدی شي چې زه به په دې ورځ ډېر ستړی وم
2. Bei dem Unfall wirst du wohl betrunken gewesen sein.
په دې ټکر کې به تا الکول څښلي وو
3. Er wird wohl in der Nacht sehr unruhig gewesen sein.
په دې شپه کې کېدی شي چې هغه به ډېر ستړی و

4. Wir werden wohl sehr in Sorge gewesen sein.
کېدی شي چې مونږ به ډېر په اندېښنه کې وو
5. Ihr werdet wohl dort nicht anwesend gewesen sein.
کېدی شي چې تاسو به هلته حاضر نه واست
6. Sie werden wohl mit dieser Methode erfolgreich gewesen sein.
کېدی شي چې هغوي به په دې طریقې بریالي وو

اوس چې د (Futur II) په جوړولو پوه شولو، نو دا به زده کړو چې له (Futur II) نه په کومو حالاتو کې کار اخیستل کیږي. له (Futur II) نه په لاندینیو حالاتو کې کار اخیستل کیږي:

① کله چې د راتلونکي وخت لپاره د یو کار یا د یوې پېښې یادونه وشي او همدا شان د دې کار بشپړتیا اعلان شي. مثال:

| |
|---|
| Morgen um diese Zeit werde ich meine Prüfung bestanden haben.<br>سبا همدغه وخت به زه په خپله ازموینه کې بریالی شوی یم |
| Bis Weihnachten wird das alles vergessen sein.<br>تر کرسمسه پورې به دا هر څه هېر شوي وي |

② کله چې په تېر وخت کې د یوې پېښې لپاره یو څوك خپل اټکل یا تصور څرګند کړي. مثال:

| |
|---|
| Deine Verletzung wird schon nicht so schlimm gewesen sein.<br>ستا زخم به په دومره بد حالت نه و |
| Er wird eure Verabredung schon nicht vergessen haben.<br>د هغه به ستاسو وعده هېره شوې نه وي |

③ کله چې په راتلونکي کې د یو کار په برخه کې مخکې له مخکې معلومات وړاندې شي، مثال:

| |
|---|
| Morgen wird die Entscheidung über ihren Antrag bereits gefallen sein.<br>ستاسو د غوښتنلیك په برخه کې به سبا فیصله شوې وي<br>Ich werde den Bericht bis morgen Abend gelesen haben.<br>دا رپوټ به تر سبا ماښامه پورې ما لوستی وي |

**Übungen:** *haben* oder *sein*? Wählen Sie die richtige Form aus!

1. Er wird wohl eine Dummheit (begehen) ………….. هغه به کوم بې عقله کار کړی وي
2. Bis dahin werden wir in den Urlaub (fahren) ……….. .
تر هغه پورې به مونږ په رخصتۍ تللي یو
3. In zehn Jahren wird das Haus (zerfallen). لس کاله وروسته به دا کور ړنګ شوی وي
4. Wenn ihr nach Hause kommt, werde ich schon das Essen für euch (kochen).
کله چې تاسو کور ته راشئ، نو ما به تاسو لپاره ډوډۍ پخه کړې وي
5. In spätestens einer Stunde wird das Kind (einschlafen).
که ډېر ځنډ شي، نو په یو ساعت کې به ماشوم ویده شوی وي

**Lösungen:**
1. begangen haben 2. gefahren sein 3. zerfallen sein 4. gekocht haben
5. eingeschlafen sein

**Übung:** Schreiben Sie Sätze im Futur II.

1. (er/gehen/schon/nach Hause) …………… هغه به کور ته تللی وي
2. (ihr/fragen/gar nicht/ihn) …………… تاسو به له هغه نه هېڅ پوښتنه نه وي کړې
3. (du/liegen/am Strand/die ganze Zeit) ……………
ته به دا ټول وخت د بحر په غاړه پروت وې
4. Bis dahin (ich/aufwachen/schon wieder) ……………
تر هغه پورې به زه بېرته وېښ شوی یم
5. Bis zum Wochenende (wir/lernen/das Lied) ……………
د اونۍ تر پایه پورې به مونږ دا سندره زده کړې وي

**Lösungen:**
1. Er wird schon nach Hause gegangen sein. 2. Ihr werdet ihn gar nicht gefragt haben. 3. Du wirst die ganze Zeit am Strand gelegen haben. 4. ….. werde ich schon wieder aufgewacht sein. 5. ….. werden wir das Lied gelernt haben.

**Übung:** Schreiben Sie Fragen im Futur II.

1. (er/umsteigen/am richtigen Bahnhof) ……………?
هغه به د اورګاډي په صحیح سټېشن کې بل اورګاډي ته ختلی وي؟
2. (du/schreiben/den Brief/bis morgen) …………? تا به تر سبا پورې دا لیك لیکلی وي؟
3. (die Nachbarn/annehmen/unser Paket) ……………?
زمونږ ګاونډیانو به زمونږ پارسل اخیستی وي؟
4. (ihr/bestehen/alle Prüfungen/bis Juli) ……………?
تاسو به تر جولای میاشتې پورې په ټولو ازموینو کې بریالی شوي یاست؟
5. (wie weit/wir/laufen/wohl schon) ……………? مونږ به څومره مزل کړی وي؟

**Lösungen:**
1. Wird er am richtigen Bahnhof umgestiegen sein? 2. Wirst du den Brief bis morgen geschrieben haben? 3. Werden die Nachbarn unser Paket angenommen haben? 4. Werdet ihr bis Juli alle Prüfungen bestanden haben? 5. Wie weit werden wir wohl schon gelaufen sein?

## Tempus und objektive Zeit مهال او ریښتینی وخت

په پورتنو مهالیز نومونو کې مطلق پخوانی وخت، نږدې پخوانی وخت، لیرې پخوانی وخت یاد شویدي. د دې پخوانو وختونو نږدېوالي او یا لیرېوالی کوم چا اندازه کړی ندی نو ځکه ورنه دا مانا نشي اخیستل کېدی چې دا پخوانی وخت په ریښتیا ډېر پخوا و او که لږ پخوا و. نو په دې اساس د نږدې پخواني وخت او یا د لیرې پخواني وخت اصطلاحات تش نومونه دي چې په دې لغاتو ایښودل شوي دي او بس. د ریښتیني نږدېوالي او یا لیرېوالي لپاره نور دقیق توضیحات پکار دي لکه د وخت بیان او داسې نور. مثال:

| | |
|---|---|
| 1. Er fuhr nach Berlin. | هغه برلین ته ولاړ (مطلقه ماضي) |
| 2. Er ist nach Berlin gefahren. | هغه برلین ته تللی دی (نږدې ماضي) |
| 3. Er war nach Berlin gefahren. | هغه برلین ته تللی و (لیرې ماضي) |

په دې پورتنيو مثالونو کې څرګنده نده چې کومه ماضي له نورو نه پخوا وه. دا چې کومه يوه ماضي په ريښتيا ډېره پخوا وه او کومه يوه ماضي لنډ وخت مخکې تېره شوېده، دا يوازې او يوازې د وخت دقيق بيان کوی شي . لاندیني مثالونه دا موضوع په دقيق ډول روښانه کوي:

| | |
|---|---|
| 1. Er fuhr vor zwei Jahren nach Berlin. | هغه دوه کاله دمخه برلين ته ولاړ (مطلقه ماضي) |
| 2. Er ist vor einem Jahr nach Berlin gefahren. | هغه يو کال دمخه برلين ته تللی دی (نږدې ماضي) |
| 3. Er war vor 6 Monaten nach Berlin gefahren. | هغه شپږ مياشتې دمخه برلين ته تللی و (لیرې ماضي) |

څنګه چې په پورتنو مثالونو کې ليدل کيږي، دربمه جمله سره له دې چې نوم يې دی (لیرې ماضي يا (Plusquamperfekt) ، خو د وخت په اساس له (Perfekt) يا نږدې ماضي نه لږ وخت پرې تېر شوی دی.

# Transitive und intransitive Verben
# لازمي او متعدي فعلونه

هر فعل چې په يوې جملې کې استعمالیږي نو لوستونکی بايد په دې پوه شي چې دا فعل په کوم حالت کې استعمالیږي، يعني دا چې دا فعل تش يو فاعل ته او که يو مفعول ته هم اړتيا لري او که نه، يعني دا چې دا فعل لازمي دی او که متعدي؟

## ① متعدي فعلونه يا Transitive Verben

(transitiv) يوه لاتيني کلمه ده چې په جرمني ژبه کې ورته (*hinübergehend, zielend*) وايي. په عربي ژبه کې (transitiv) ته (متعدي) وايي. د متعدي مانا ده: تېرى يا تجاوز کوونکی. له دې نه مطلب دا دی چې دغه فعلونه له فاعل نه ورتېرېږي او يو مفعول ته ورځي، او يا دا چې يو مفعول په نښه کوي. که چېرته دا فعل يو مفعول ته اړتيا ولري، نوا دا سوال پيدا کيږي چې هغه مفعول څه شان مفعول دی؟ آيا دا مفعول (Dativ) دی او که (Akkusativ) . هر هغه فعل چې په يو چا باندې يو څه کيږي، لکه وهل يا ليدل يا خوړل، هغه يو (Akkusativ) ته اړتيا لري، دې ته (transitiv) يا متعدي فعل وايي. مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Ich esse einen Apfel. | زه يوه منه خورم | Hast du ihn gesehen? | تا هغه وليد؟ |

څنګه چې په پورتنيو مثالونو کې ليدل کيږي (خوړل = essen) ، (ليدل = sehen) ، (پوښتل fragen) متعدي فعلونه يعني (transitiv) دي چې يو (Akkusativ) ته اړتيا لري. څکه کله چې سړی وايي: (زه خورم) نو دا سوال پيدا کيږي چې زه څه شی خورم. نو هغه څه چې زه خورم ، هغه مفعول شو. همدا شان (ليدل = sehen) . دلته سوال راپيداکيږي چې زه څوك او يا څه شی وينم. دا هرڅه چې زه وينم دا مفعول شو. دا ټول فعلونه چې يو مفعول پکې ياديږي، هغه هر يو (Akkusativ) ته اړتيا لري. په جرمني ژبه کې د (transitiv) لپاره تل دا سوال کيږي چې :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| wen | oder | was | څه شی | يا | څوك |

| | |
|---|---|
| **پوښتنه** | (Dativ خو هم مفعول دی، نو کوم فعلونه چې له (Dativ) سره راځي، آيا هغه لازمي يا متعدي فعلونه دي، يعني (transitiv) او يا (intransitiv) فعلونه دي؟ |
| **ځواب** | هغه متعدي يا (transitiv) فعلونه ندي. دا شان فعلونه (intransitiv) يا لازمي فعلونه دي، څکه چې (Akkusativ) ورسره نشته. يو څو مثالونه په جملو کې: |

| پاملرنه | د هر(transitiv) فعل مفعول یا (Akkusativ) په (Passiv) جمله کې په فاعل یا (Nominativ) بدلیږي. مثال: |
|---|---|

| | |
|---|---|
| Ich esse den Apfel. | زه منه خورم |
| Du malst ein Bild. | ته یو انځور رسموې |
| Er schreibt einen Aufsatz. | هغه یوه مقاله لیکي |

## ② لازمي فعلونه یا Intransitive Verben

لازمي فعلونه هغه فعلونه دي چې تش یو فاعل ته اړتیا لري، لکه (تلل، راتلل gehen, kommen) . دغه فعلونه ځکه لازمي یا (intransitiv) فعلونه دي چې کوم مفعول پکې نشته. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Ich gehe. زه ځم | Du kommst. ته راځې | Das Kind schläft. ماشوم ویده دی |

دلته داسې پوښتنه نشي کېدی چې (*wen oder was*) یعني د (څوک یې او څه شی یې) پوښتنه نشته. سرې داسې پوښتنه نشي کولی چې (زه څوک ځم) او یا (زه څه شی ځم). ځینې فعلونه شته چې هغوی یو مفعول ته اړتیا لري. خو دا مفعولونه (Dativ) او (Genitiv) دي، خو (Akkusativ) پکې نشته. دا شان فعلونه هم (intransitiv) دي.

| | |
|---|---|
| Nominativ | Das Kind schläft. ماشوم ویده دی |
| Dativobjekt | Er hilft dem Kind. هغه له ماشوم سره مرسته کوي |
| Genitivobjekt | Das bedarf keiner Erklärung. دې ته څه تشریحات پکار ندي |
| Präpositionalobjekt | Wir warten auf den Bus. مونږ سرویس ته په انتظار یو |
| adverbiale Ergänzung | Die Sitzung dauert lange. غونډه اوږده شوه |

| پاملرنه | ځینې فعلونه شته چې هم (transitiv) او هم (intransitiv) استعمالیدی شي، یعني هم لازمي او هم متعدي فعلونه دي. دلته دا پوښتنه راولاړیدی کیږي چې ولې؟ ځواب دا دی چې کله چې دا فعلونه (transitiv) استعمال شي، نو مانا یې یو شی ده او کله چې (intransitiv) استعمال شي، نو مانا یې بل شی ده. بل دا چې د داسې فعلونو پخواني وختونه، یعني (Imperfekt) او (Perfekt) هم بل شان دي. دا شان مثالونه به په لاندینو جملو کې وګورو: |
|---|---|

| transitiv متعدي | intransitiv لازمي |
|---|---|
| *hängen*: ځوړندول | *hängen*: ځوړند اوسېدل |
| er hängt, er *hängte*, er *hat gehängt*.<br>Ich habe das Bild an die Wand *gehängt*. ما عکس په دیوال ځوړند کړو | es hängt, es *hing*, es *hat gehangen*<br>Das Bild hat an der Wand *gehangen*. عکس په دیوال ځوړند و |
| *rauchen*: سګرټ څکول | *rauchen*: له یوه ځایه لوګی راوتل، لوګی کول |
| er raucht, er rauchte, er hat geraucht<br>Ich rauche keine Zigaretten.<br>زه سګرټ نه څکوم | es raucht, es rauchte, es hat geraucht<br>Der Schornstein raucht.<br>له روزان نه لوګی راوځي |
| *reißen*: شکول ، غوڅول | *reißen*: شکېدلی اوسېدل |
| er reißt, er riss, er *hat* gerissen<br>Er riss den Brief in kleine Stücke.<br>هغه لیك وشکوه او ټوټه ټوټه یې کړو | es reißt, es riss, es *ist* gerissen<br>Das Seil ist gerissen. پړی شکېدلی دی |

| | |
|---|---|
| *fahren*: موټر چلول، موټر يو چېرته وړل | *fahren*: په موټر کې يو چېرته تلل |
| er fährt, er fuhr, er *hat* gefahren<br>Ich habe das Auto in die Garage gefahren. موټر ما ګراج ته یووړ | er fährt, er fuhr, er *ist* gefahren<br>Ich bin mit dem Auto nach Hause gefahren. زه په موټر کې کور ته ولاړم |
| *erschrecken*: يو څوك ډارول | *erschrecken*: ډارېدل، وېرېدل |
| er *erschreckt*, er *erschreckte*, er *hat erschreckt*<br>Der Hund hat das Kind erschreckt.<br>سپي ماشوم وډارو | er *erschrickt*, er *erschrak*, er *ist erschrocken*<br>Ich bin bei dieser Nachricht erschrocken. په دې خبر زه وډارېدم |
| *schwellen*: يو شى پرسول ، ډډول | *schwellen*: يو شى پړسېدل، ډډېدل |
| er schwellt, schwellte, *hat* geschwellt<br>Er *schwellt seine Brust* vor Stolz.<br>د غرور له لاسه هغه خپله سينه پړسوي | *es schwillt, schwoll, ist geschwollen*<br>Sein Fuß *ist* geschwollen.<br>د هغه پښه پړسېدلې ده |
| *stecken:* يو شى په يو ځاى کې وردننه کول | *stecken:* يو شى په يو ځاى کې دننه اوسېدل |
| er steckt, steckte, hat gesteckt<br>Er hat den Brief in die Tasche gesteckt. هغه ليك په جب کې کېښود | er steckt, steckte, hat gesteckt<br>Der Brief hat in der Tasche gesteckt.<br>ليك په جب کې اېښودل شوى و |
| *zünden:* لګول، چالانول، بلول | *zünden:* بلېدل، چالانېدل، چاودېدل، انفجار کول |
| er zündet, er zündete, er hat gezündet<br>Die Terroristen zündeten eine Bombe.<br>تروريستانو يو بم خوشې کړو | es zündet, es zündete, hat gezündet<br>Der Sprengstoff hat gezündet.<br>چاودېدونکى توکى وچاودېدو |

**Übungen:** Entscheiden Sie, ob das unterstrichene Verb transitiv oder intransitiv ist.

هغه فعلونه چې لاندې يې کرښه راوېستل شوېده، تاسو ولیکئ چې هغه لازمي دي او که متعدي

1. Ich <u>*lese*</u> deinen Brief. زه ستا ليك لولم

☐ transitiv ☐ intransitiv

2. Die Schüler <u>*gehen*</u> in die Schule. زده کوونکي ښوونځي ته ځي

☐ transitiv ☐ intransitiv

3. Im Winter <u>*gefriert*</u> Wasser. په ژمي کې اوبه کنګل وهي

☐ transitiv ☐ intransitiv

4. Die Mutter *holt* ihren Sohn von der Schule *ab*. مور خپل زوى له ښوونځي نه راولي

☐ transitiv ☐ intransitiv

5. Meine Muter <u>*kocht*</u> heute Gemüsesuppe. زما مور نن د سبو ښوروا پخوي

☐ transitiv ☐ intransitiv

6. Der Zug ist zu langsam <u>gefahren</u>. اورګادى ډېر سست تللى دى

☐ transitiv ☐ intransitiv

7. Er <u>schläft</u> sehr unruhig. هغه ډېر ناارامه خوب کوي

☐ transitiv ☐ intransitiv

8. Der Hund *läuft* hinter dem Auto her. سپی د موټر شاته منډې وهي

☐ transitiv ☐ intransitiv

9. Ich bin ihm im Bus *begegnet*. زه له هغه سره په سروېس کې ولیدل

☐ transitiv ☐ intransitiv

10. Er hat mir sein neues Auto *gezeigt*. هغه ماته خپل نوی موټر وښودو

☐ transitiv ☐ intransitiv

**Lösungen:**

1. transitiv 2. intransitiv 3. intransitiv 4. transitiv 5. transitiv 6. intransitiv 7. intransitiv 8. intransitiv 9. transitiv 10. transitiv

**Übungen**: Wählen Sie bitte die richtige Form aus.

1. An der Tür (hängen) ………….. ein Zettel. په دروازه باندې یو کاغذ ځوړند و
2. Nach dem Wespenstich (anschwellen) ………….. meine Hand an. د مچۍ له چیچلو نه وروسته زما لاس وپړسېدو
3. Er hat das Schild (abhängen) …………? هغه لوحه هیسته کړه
4. Als er das hörte, (erschrecken) …………… er. کله چې هغه دا واورېدل، نو وډارېدو
5. Der Wind (kommen) ……….. hier vom Osten. دلته باد د ختیځ له لورې راغي
6. Sein lauter Schrei (erschrecken) …………… die Kinder. د هغه په لوړ غږ چیغې ماشومان وډارول
7. Er (rauchen) ………… täglich eine Schachtel Zigaretten. هغه د ورځې یوه کوتۍ سګرټ څکوي
8. Der Ofen (rauchen) ………….. له بخارۍ نه لوګی راوځي
9. Er (reißen) ………….. die Tageszeitung in mehrere Fetzen. هغه ورځپاڼه څیرې ځیرې کړه
10. Mir (reißen) ………… das Schuhband. زما د بوټانو مزی وشکېدو
11. Wo hast du so lange (stecken) …………? ته دومره موده چېرته لا درکه وې؟
12. Der Schlüssel (stecken) ………….. im Schloss. کیلي په کلپ کې چوخه شوې ده
13. Er (stecken) ……….. seine Hände in die Taschen. هغه خپل لاسونه په جبونو کې ننه ایستل
14. Das Messer (stecken) ……………. in seinem Rücken. چاقو د هغه په ملا کې چخ دی، د هغه په ملا کې وردننه دی
15. Er hat das Baby in den Kinderwagen (setzen) ……….. . هغه دا ماشوم د ماشومانو په کراچۍ کې کښېنو
16. Das Baby hat im Kinderwagen (sitzen) ………….. دا ماشوم د ماشومانو په کراچۍ کې ناست و
17. Ich habe das Buch in das Regal (legen) ………….. ما دا کتاب د کتابونو په دالمارۍ کې کېښود
18. Das Buch hat im Regal (legen) ……………. کتاب د کتابونو په الماری کې ایښی و
19. Der Förster hat den Baum (fällen) …………… ځنګلوان ونه ووهله
20. Der Baum ist (fallen) ……………… ونه ولوېدله

**Lösungen:**

1. hing 2. schwoll an 3. abgehängt 4. erschrak 5. kam 6. erschreckte 7. raucht 8. raucht. 9. riss 10. reißt 11. gesteckt 12. steckt 13. steckt 14. steckte/stak 15. gesetzt 16. gesessen 17. gelegt 18. gelegen 19. gefällt 20. gefallen

# Reflexive Verben منعکسه فعلونه

د منعکسه فعلونو په برخه کې اصلاً ډېر تشریحات پکار ندي ځکه چې دا مبحث د منعکسه ضمیرونو، یعني (Reflexivpronomen) په مبحث کې په اوږدو تفصیلاتو تشریح شو. خو دومره ویل پکار دي چې منعکسه فعلونه هغه فعلونه دي چې ورسره یو منعکسه ضمیر یا (Reflexivpronomen) یوځای کیږي. که چېرته د منعکسه فعلونو سره منعکسه ضمیرونه په جمله کې یاد نشي نو داسې جملې به د ګرامر له لحاظه بالکل غلطې وي. دا باید هم یاد شي چې منعکسه فعلونه په دوه ډولو دي.

### ① سوچه یا اصیل منعکسه فعلونه :Echte reflexive Verben

دا هغه فعلونه دي چې منعکسه ضمیر، یعني (sich) به ورسره هرومرو یوځای وي. بې له دې ضمیره دا فعل د ګرامر له لحاظه نشي استعمالېدلی، ځکه چې دا فعلونه او ضمیرونه لکه د نوك او ورۍ له یو بل نه نشي بېلېدلی. که څوك یې بېل کړي، نو دا به د ژبپوهنې له اړخه بالکل غلط کار وي. مثال:

| mit (sich) = reflexive Verben | ohne (sich) = falsch غلط |
|---|---|
| Diese Frau schämte sich. دا ښځه وشرمېدله | ~~Diese Frau schämte. دا جمله غلطه ده~~ |
| Der Schüler freut sich auf die Ferien. زده کوونکی رخصتۍ ته خوښ دی | ~~Der Schüler freut auf die Ferien. دا جمله غلطه ده~~ |

### ② غیر سوچه یا لباسي منعکسه فعلونه: Unechte reflexive Verben

دا هغه فعلونه دي چې هم له منعکسه ضمیر، یعني له (sich) سره او هم بې له منعکسه ضمیر استعمالېدلی شي. که چېرته بې له (sich) استعمال شي، نو د ګرامر له لحاظه څه نیوکه پرې نشته . کومه نیوکه چې پرې شته هغه دا ده چې بې له (sich) دا فعل بیا بله مانا لري. مثال:

| sich beherrschen | beherrschen (ohne sich) |
|---|---|
| ځان د کنټرول لاندې نیول، ځان کنټرولول | په یو شي باندې ښه پوهېدل، په یو څه حاکم اسېدل |

دا مانا به په لاندینو جملو کې وګورو:

| Reflexives Verb | Nichtreflexives Verb |
|---|---|
| Ich konnte mich in diesem Augenblick nicht beherrschen. په دې شېبه کې ما ځان نشو کنټرولولی | Er beherrscht die englische Sprache wie seine Muttersprache. هغه په انګلیسي ژبه دومره ښه پوهیږي لکه پخپله مورنۍ ژبه چې پوهیږي |

بل مثال: (übergeben)

| sich übergeben | übergeben (ohne sich) |
|---|---|
| کانګه کول، بېرته ګرځول، ولټی کول | یو چا ته یو څه تسلیمول، یو چا ته ورسپارل |

لاندیني جملې به وګورو:

| Reflexives Verb | Nichtreflexives Verb |
|---|---|
| Er übergab sich heute mehrmals.<br>هغه نن څو واره کانګې وکړې | Er übergab mir einen Brief.<br>هغه ما ته یو لیك راوسپاره |

سوچه او غیر سوچه منعکسه فعلونه په (Akkusativ) او په (Dativ) کې راځي چې دواړه به په لاندیني جدول کې وګورو.

### I. Echte reflexive Verben سوچه یا اصیل منعکسه فعلونه

| Verben mit Reflexivpronomen im Akkusativ | |
|---|---|
| sich auf den Weg machen<br>په روانېدو پیل کول، روانېدل | sich erholen له یو څه نه رغېدل، دمه کول |
| sich ausruhen استراحت کول | sich erkälten ریزش کول |
| sich bedanken (für)<br>له یو چا نه د یو څه لپاره مننه کول | sich erkundigen (nach, über)<br>د یو څه په برخه کې ځان خبرول |
| sich beeilen بېړه کول، عجله کول | sich kümmern (um) د یو چا غم خوړل |
| sich beschweren (über)<br>د یو څه په وجه شکایت کول | sich schämen شرمېدل |
| sich bewerben (um)<br>د یو کار لپاره ځان کاندیدول، خپل نوم ورکول | sich wundern (über)<br>یو څه ته هك پك پاتې کېدل |
| sich bücken (über) د یو څه دپاسه ځان ټیټول | sich verhalten چلند کول |

نور منعکسه ضمیرونه:
(*sich* freuen) خوښ اوسېدل، (*sich* bedanken) مننه کول، (*sich* wundern) هك پك پاتې کېدل، (*sich* einbilden) په خیال کې یو څه ګرځېدل یا ګرځول، (*sich* trauen) جرآت کول، (*sich* ergeben) تسلیمېدل، (*sich* übergeben) کانګه کول، (*sich* benehmen) ناسته پاسته کول

| Verben mit Reflexivpronomen im Dativ | |
|---|---|
| sich etwas leisten können<br>یو شي ته توان رسېدل، د یو شي توان درلودل | sich Mühe geben<br>د یو شي لپاره خپله خواري کول |
| sich etwas vorstellen یو څه تصور کول | |

### II. Unechte reflexive Verben غیر اصلي منعکسه فعلونه

| Verben mit Reflexivpronomen im Akkusativ | |
|---|---|
| sich abtrocknen ځان وچول | sich fragen, ob…<br>له ځانه دا پوښتنه کول چې آیا |
| sich ärgern (über)<br>د یو شي په وجه اعصاب خرابېدل | sich freuen (auf / über)<br>یو شي ته خوښ اوسېدل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| sich ändern | ځان بدلول ، بدلېدل | sich … fühlen | ځان ... احساسول |
| sich anziehen | جامې اغوستل | sich fürchten (vor) | له یو شي نه ډارېدل |
| sich anstrengen | ځان ته زحمتورکول | sich gewöhnen (an) | له یو شي سره عادتېدل |
| sich aufregen (über) د یو شي په وجه اعصاب خرابې کول | | sich interessieren (für) له یو شي سره علاقه درلودل | |
| sich ausruhen | استراحت کول، ارام کول | sich … legen | په یو ځای کې څملاستل |
| sich bewegen | ځان ښوځول، حرکت کول | sich kämmen | خپل وېښته ږمنځول |
| sich duschen | ځان په شاور پرېمینځل | sich konzentrieren (auf) | یو شي ته فکر راټولول |
| sich entschuldigen | له یو چا نه بښنه غوښتل | sich nähern | ځان نږدې کول |
| sich erinnern (an) | یو شی په یاد راتلل | sich nennen | خپل نوم یادول |
| sich rasieren | خپله ږیره خریل | sich schminken | سینګار کول |
| sich setzen (auf) – hin… | په یو شي کېناستل | sich treffen | د یو بل سره لیده کاته کول |
| sich umdrehen | ځان تاوول، تاوېدل | sich umziehen | جامې بدلول، نور کالې اغوستل |
| sich unterhalten | خبرې اترې کول، غږېدل | sich verletzen | ټپي کېدل، زخمي کېدل |
| sich verteidigen | خپله دفاع کول | sich vorbereiten | ځان د یو شي لپاره چمتو کول |
| sich waschen | ځان پرېمینځل | sich wundern (über) | هك پك پاتې کېدل |
| sich wiegen | ځان وزنول، خپل وزن کتل | sich *(Akk.)* vorstellen | ځان معرفي کول |

| Verben mit Reflexivpronomen im Dativ | | | |
|---|---|---|---|
| sich etwas denken | په فکر کې یو څه ګرځېدل | sich etwas rasieren | خپله ږیره لږ څه خریل |
| sich Sorgen machen um jemanden د یو چا له اړخه ناارامه اوسېدل | | sich etwas merken یو شی په حافظه کې ساتل، یو شی په یاد ساتل | |
| sich etwas wünschen | د یو شي هیله درلودل | sich etwas vorstellen | تصور کول |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | په دومره ډېرو فعلونو کې سړی څه پوه شي چې کوم فعل منعکسه یعنې (reflexiv) دی او که نه؟ |
| ځواب | دې ته کومه قاعده نشته. کله چې سړی یو فعل زده کوي، نو نه یوازې دا باید زده کړي چې دا فعل (reflexiv) دی او که نه‌دی، بلکې دا باید هم زده کړي چې د کوم (Präposition) سره راځي. مثال:<br>په یو چا مینېدلو ته (sich verlieben) وایي. خو دا فعل یو (Präposition) ته اړتیا لري او هغه (in) دی، او بیا (in) هم له (Dativ) او هم له (Akkusativ) سره راځي. نو سړی څه پوه شي چې دا له (Dativ) او یا له (Akkusativ) سره راځي؟ ځواب دا دی چې سړی باید دا له یاده زده کړي. څنګه چې په پښتو کې ویل کېږي چې (په یو چا) مینېدل، نو په جرمني ژبه کې ویل کې چې:<br>مثال: . (sich in (+ *Akkusativ*) verlieben) |

| | |
|---|---|
| Sie hat sich in mich verliebt. | هغه په ما مینه شوه |
| Ich habe mich in dich verliebt. | زه په تا مین شوم |

دغه شان ژبنی ستونځې په پښتو کې هم شته. په پښتو کې هم سړی نه وایي چې : هغه په (زه) مینه شوه بلکې هغه په (ما) مینه شوه. یا زه په (ته) مین شوم بلکې زه په (تا) مین شوم.

**Übungen**:

**sich ärgern پہ غصہ کېدل، پہ قهرېدل**

| | |
|---|---|
| 1. Ich ……………. über das Wetter. | زه د هوا له کبله په غصه یم |
| 2. Wir ………….. über den Krach. | مونږ د غالمغال له پلوه په غصه يو |
| 3. Du …………….. über den Direktor. | ته مدير ته په غصه يې |
| 4. Ihr ………….. über das Essen. | تاسو د ډوډۍ له کبله په غصه یاست |
| 5. Er …………….. über dich. | هغه ستا له اړخه په غصه دی |
| 6. Sie …………… über den Koch. | هغؤي په اشپز باندې په غصه دي |

**Lösungen:**

1. … ärgere mich ... 2. … ärgern uns ...
3. … ärgerst dich ... 4. … ärgert euch ...
5. … ärgert sich ... 6. Sie ärgern sich …

**sich entscheiden فيصله کول، پرکړه کول**

| | |
|---|---|
| 1. Ich ……………. für deine Hilfe. | ما پرېکړه وکړه چې ستا مرسته غواړم |
| 2. Wir …………. für diese Aufgabe. | مونږ پرېکړه وکړه چې دا دنده په غاړه اخلو |
| 3. Du ……………. für das Studium. | ته پرېکړه کوې چې تحصيل کوې |
| 4. Ihr ……………… für die Reise. | تاسو پرېکړه کوئ چې سفر کوئ |
| 5. Er …………….. für das Geld. | هغه پرېکړه وکړه چې پيسې اخلي |
| 6. Sie ……………. für Portugal. | هغوی پرتګال ته پرېکړه کوئ |

**Lösungen:**

1. … entscheide mich … 2. … entscheiden uns … 3. … entscheidest dich …
4. … entscheidet euch … 5. … entscheidet sich … 6. … entscheiden sich …

**sich erinnern په يادېدل، حافظې ته راتلل**

| | |
|---|---|
| 1. Ich ……………. an unsere Reise. | زما زمونږ سفر په یاد دی |
| 2. Wir …………….. an Jakob. | زمونږ يعقوب په یاد دی |
| 3. …………… du ………….. an mein Geschenk? | زما سوغات ستا په یاد دی؟ |
| 4. …………… ihr ………. noch an mich? | زه ستاسو په یاد یم؟ |
| 5. Er …………… nicht an den Sänger. | دا سندرغاړی د هغه په یاد ندی |
| 6. ………… Sie ……….. an meinen Hund? | زما سپی ستاسو په یاد دی؟ |

**Lösungen:**

1. … erinnere mich … 2. … erinnern uns ...
3. Erinnerst … dich …. 4. Erinnert … euch …
5. … erinnert sich ... 6. Erinnern … sich …

**sich freuen خوشحالي کول، خوښېدل، خوشحال اوسېدل**

| | |
|---|---|
| 1. Ich ………….. auf unsere Reise. | زه زمونږ سفر ته خوشحال يم |
| 2. Wir ………… über das schöne Wetter. | مونږ دې ښې هوا ته خوښ يو |
| 3. ………… du ……… über das Geschenk? | ته دې سوغات ته خوښ يې؟ |
| 4. ……….. ihr ……… auch darüber? | تاسو هم دې ته خوښ ياست؟ |
| 5. Mein Bruder ………….. auf Spanien. | زما ورور د هسپانيې تګ ته خوشحاله دی |
| 6. Sie …………… auf den Winter. | هغوی د ژمي راتګ ته خوشحالي کوي |

**Lösungen:**
1. … freue mich … 2. … freuen uns ...
3. Freust … dich … 4. Freut … euch …
5. … freut sich ... 6. … freuen sich ...

**sich fühlen ځان احساسول**

| | |
|---|---|
| 1. Ich …………….. nicht wohl. | زه نن ځان ښه نه احساسوم |
| 2. Wir …………. sehr wohl. | مونږ ځانونه ډېر ښه احساسوو |
| 3. ………. du …….. hier wohl? | ته دلته ځان ښه احساسوې؟ |
| 4. Wie ………. Ihr ………… heute? | تاسو نن ځان څنګه احساسوئ؟ |
| 5. Wie …………. der Patient heute? | نن رنځور ځان څنګه احساسوي؟ |
| 6. Sie …………… heute schlecht. | تاسو نن ځان بد احساسوئ |

**Lösungen:**
1. … fühle mich …. 2. … fühlen uns ... 3. Fühlst … dich … 4. ... fühlt … euch … 5. … fühlt sich … 6. … fühlen sich …

**sich interessieren له يو شي سره علاقه درلودل، علاقه نيول**

| | |
|---|---|
| 1. Ich ……………. für dein Buch. | زه له ستا کتاب سره علاقه لرم |
| 2. Wir ……………… nur für Fußball. | مونږ تش د فوټباله سره علاقه لرو |
| 3. Für wen ………………du ………? | ته له چا سره علاقه لرې؟ |
| 4. Interessiert ………ihr……… für Musik? | تاسو له موسيقۍ سره علاقه لرئ؟ |
| 5. Er ……………….. nicht für Kinofilme. | هغه د سينما د فلمونو سره څه علاقه نلري |
| 6. Wofür …………….. Sie ………? | تاسو له څه شي سره علاقه لرئ؟ |

**Lösungen:**
1. … interessiere mich … 2. … interessieren uns ...
3. … interessierst … dich? 4. Interessiert … euch …
5. … interessiert sich ... 6. … interessieren … sich?

**Übungen:**

Setzen Sie die reflexiven Verben richtig ein (Zeitform beachten).

1. Er (sich kämmen) …………….. die Haare. هغه خپل ویښته ږمنځوي
2. Wenn ihr keine Jacke anzieht, werdet ihr (sich erkälten) ………………
که تاسو کرتۍ وانغوندئ، نو والګی (زکام) به مو ونیسي
3. Du musst (sich schämen/nicht) ……………… ته باید په دې ونه شرمیږې
4. Wir haben (sich verlaufen) ……………… له مونږ نه لار ورکه شوه
5. Ich (sich bewerben) …………….. um eine Arbeitsstelle.
زه د یو کار لپاره خپل غوښتنلیك استوم
6. Sie haben (sich bemühen) …………….., nicht zu lachen.
تاسو کوښښ وکړو چې ونه خاندئ

**Lösungen**:

1. … kämmt sich … 2. … euch erkälten. 3. … dich nicht schämen. 4. … uns verlaufen. 5. … bewerbe mich ... 6. … sich bemüht, ...

**Übungen:**

Setzen Sie das Reflexivpronomen im *Akkusativ* oder *Dativ* ein.

1. Ich habe ……………..versteckt. ما ځان پټ کړو
2. Wäschst du ……………..die Haare? ته خپل ویښته پرېمینځې؟
3. Ich ziehe ……………..schnell eine Jacke an. زه ژر غوندې یوه کرتۍ اغوندم
4. Dreh ……………..nicht um! ته ځان مه تاووه
5. Hast du ……………..schon etwas zu essen bestellt?
تا د ځان لپاره د خوړلو څه وغوښتل؟

**Lösungen**:

1. mich 2. dir 3. mir 4. dich 5. dir

## Persönliche Verben شخصي فعلونه

دا هغه فعلونه دي چې د یو کس پورې اړه لري او په ټولو شخصي ضمیرونو کې کارول کېدی شي. مثالونه:

| | |
|---|---|
| Ich arbeite. زه کار کوم | Sie singt ein Lied. هغه یوه سندره وایي |
| Du träumst. ته خوب ویني | Die Schüler schlafen. زده کوونکي ویده دي |
| Der Lehrer putzt die Tafel. ښوونکی تخته پاکوي | Ich schreibe einen Brief. زه یو لیك لیکم |

## Unpersönliche Verben غیر شخصي فعلونه

دا هغه فعلونه دي چې تل (es) ورسره ګډ استعمالیږي. لاندیني مثالونه به وګورو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| Es regnet. | باران وریږي | Es freut mich. | زه خوښ یم |
| Es schneit. | واوره وریږي | Es steht geschrieben… | دا لیکل شویدي چې |
| Es dunkelt. | تیاره کیږي | Es geschah… | دا پیښ شول ... |
| Es brennt. | دا سوځي | Es heißt, dass… | ویل کیږي چې ... |
| Es klopft. | دلته ټك ټك کیږي | Es war einmal ein König. | وو نه و یو باچاه و |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | ځیني فعلونه په شخصي او غیر شخصي ډول کارول کېدی شي |

| | |
|---|---|
| Es klopft an der Tür. دروازه ټکیږي | Mein Vater klopft an die Tür. زما پلار دروازه ټکوي |
| Es freut mich sehr. زه ډېر خوښ یم | Er freut sich über das Geschenk. هغه د سوغات له پلوه خوښ دی |

# Modalverben

(Modalverben) هغه فعلونه دي چې د یوې جملې د فاعل او د یوې جملې د فعل اړیکي له یو بل سره ټاکي. د دې فعلونو ریښه له لاتیني ژبې (Modus) نه اخیستل شوې چې (Modus) اړیکي یا رابطې ته وایي، یعني دا چې د فاعل او فعل اړیکي ټینګوي. په جرمني ژبه کې شپږ (Modalverben) شته او هغه دا دي: (*können*, *sollen*, *wollen*, *müssen*, *mögen*, *dürfen*) . د (Modalverben) ګردان له نورو فعلونو نه توپیر لري. ستاسو به په یاد وي چې په عادي فعلونو کې د (ich) لپاره د فعل په پای کې (-e) او د (er, sie, es) لپاره (-t) راځي، لکه (ich gehe, er geht) . خو په (Modalverben) کې داسي نده. یو خو دا چې د (ich) لپاره (-e) او د (er, sie, es) لپاره (-t) پکې نه راځي، بل دا چې د (ich + er, sie, es) ګردان په عین ډول دی، یعنې دا چې کوم شی چې د (ich) لپاره ویل کیږي، همغه شی د (er, sie, es) لپاره هم ویل کیږي. مثال:

| Modalverb | ich | er, sie, es |
|---|---|---|
| können | kann | kann |

د (wir, ihr, sie) لپاره بیا دا فعلونه په قاعده دي او په هغه شان ګردانیږي چې عادي فعلونه ګردانیږي. مثال:

| Modalverb | wir | ihr | sie, Sie |
|---|---|---|---|
| können | können | könnt | können |

دا چې د (Modalverb) د فعلونو ګردان په کوم ډول کیږي، یعنې دا چې د (können) نه د (ich) لپاره ولې (kann) جوړیږي، دې لپاره کومه قاعده نشته. دا باید سړی له یاده داسي زده کړي.

**(Modalverben) د څه لپاره پکاریږي؟**

د (Modalverben) په مرسته سړی پوهېدی شي چي یو کار د یو چا په خوښه شوی او که په جبر؟ یو کار چي شویدی او یا ندی شوی، آیا یو چا دا کار کوی شو او یا یې نشو کولی؟ یو کار چي شوی دی او یا کیږي، آیا ورته اجازه وه او که نه؟ اوس به د دې فعلونو نومونه واخلو:

| | |
|---|---|
| können | په هغه وخت استعمالیږي چي یو څوك یو کار کوی وشي |
| sollen | هغه وخت استعمالیږي چي یو څوك باید یو کار وکړي |
| wollen | هغه وخت استعمالیږي چي یو څوك پخپله یو کار غواړي |
| müssen | هغه وخت استعمالیږي چي یو څوك یو کار ته مجبور وي |
| mögen | هغه وخت استعمالیږي چي د یو چا یو کار ته خوښه وي |
| dürfen | هغه وخت استعمالیږي چي یو څوك یو کار ته اجازه ولري |

نو څنګه چي وینو، دا فعلونه اصلي عملونه یا کارونه ندي، بلکي د اصلي فعلونو لپاره د امکاناتو، د اجازې، د خوښي او د مجبوریت فعلونه دي. دا په دې مانا چي دا فعلونه یو بل فعل ته اړتیا لري او په یوازې ځان په جمله کي کومه جمله نشي بشپړولی (غیر له یو څو استثناآو نه). په پښتو کي هم همدا شان فعلونه شته. که سړی ووایي چي (زه شم) ، (زه غواړم)، (زه باید). نو دا ځرګنده نشوه چي (زه څه شی شم، څه شی وکړم). نو ځکه د دې مطلب د ښکاره کولو لپاره بل فعل ته اړتیا ده، لکه: (زه لامبو وهلی شم، (ich kann schwimmen . د دې فعلونو ګردان او نور تشریحات به د تفصیلاتو سره په لاندینۍ برخه کي وګورو.

## können

په لغوی مانا (können) (کوی شول، توان درلودل، توانېدل) ته وایي، خو په واقعیت کي نوري ماناګاني هم لري چي هغه دا دي:
۱ـ د یو شي لپاره امکانات په لاس کي درلودل ۲ـ که په منفي استعمال شي: یو کار یو چا ته ناممکن اوسېدل ۳ـ له یو شي نه یوه نتیجه اخیستل ۴ـ د یو شي توان درلودل، یو کار کوی شول، یو شی زده اوسېدل، په یو شي پوهېدل ۵ـ که په منفي مانا استعمال شي: د یو شي توان نه درلودل، یو کار کوي نشول ۶ـ د یو شي لپاره اجازه درلودل ۷ـ اټکل کول، حدس وهل، فکر کول چي یو شی به داسي وي

| **1. Möglichkeit** | **د یو شي لپاره امکانات په لاس کي درلودل** |
|---|---|
| Ein Freund von mir fährt morgen nach Paris. Wenn ich will, kann ich mitfahren. | زما یو ملګری سبا پاریس ته ځي. که زه وغواړم، نو کوی شم چي له هغه سره په ګډه ولاړ شم |
| Ihr habt noch Zeit. Ihr *könnt* noch länger bleiben. | تاسو لا وخت لرئ . تاسو کوی شئ چي نور هم پاتي شئ |
| In einem Jahr *können* wir das Haus bestimmt teuer verkaufen. | یو کال وروسته مونږ هرومرو کوی شو چي دا کور په ځګه بیه خرڅ کړو |
| Ich kenne den Direktor. Ich *könnte* dich ihm vorstellen. | زه دا مدیر پیژنم . زه کوی شم چي تا له هغه سره معرفي کړم |

| **2. Unmöglichkeit** | **یو کار یو چا ته ناشونی یا ناممکن اوسېدل** |
|---|---|
| Menschen können nicht fliegen. | انسانان الوتلی نشي |
| Kein Mensch *kann* ohne Sauerstoff überleben. | هیڅ انسان بې له اکسیجنه ژوندی پاتي کېدی نشي |
| Ich hatte keinen Bleistift. Ich *konnte* nicht schreiben. | ما سره پنسل نه و . ما نشو کولی چي لیکل وکړم |

| 3. Schlussfolgerung | له یو شي نه نتیجه اخیستل، د یو کار نتیجه اوسپړل |
|---|---|
| Er ist nicht zu Hause. Dann kann er nur bei seinem Großvater sein.<br>هغه په کور کې نشته. یوازینی ځای چې هغه به هلته وي، هغه د هغه د نیکه کور دی | |
| In seiner Wohnung brennt kein Licht, dann kann er nicht zu Hause sein.<br>د هغه په استوګنځي کې څراغ بل ندی، نو هغه حتمي په کور کې نشته | |
| Er ist gehbehindert, dann *kann* er nicht zu Fuß gehen.<br>هغه د پښو نه معیوب دی، نو په دې وجه په پښو تللی نشي | |

| 4. Fähigkeit | د یو شي توان درلودل، یو کار کوی شول، په یو شي پوهېدل، یو شی زده اوسپړل |
|---|---|
| Er kann sehr gut Fußball spielen. | هغه ډېر ښه فوټبال لوبېدی شي |
| Mein vierjähriger Sohn kann schon sehr gut schwimmen.<br>زما څلور کلن زوی ډېره ښه لامبو وهلی شي | |
| Können Sie Auto fahren? | تاسو موټر چلولی شئ؟ |
| Kannst du Deutsch? | ته په جرمني ژبه پوهېږې؟ تا ته جرمني ژبه درځي؟ |

| 5. Unfähigkeit | یو شي ته ناتوان اوسپدل، یو کار کوی نشول، یو شی چې د یو چا زده نه وي |
|---|---|
| Er kann nicht schwimmen. | هغه لامبو وهلی نشي، د هغه لامبو زده نده |
| Seine Schwester kann nicht kochen. | د هغه د خور پخلی زده نه دی، پخلی نشي کولی |
| In diesem Laden kann man kein Brot kaufen. | په دې دکان کې ډوډۍ نه خرڅول کیږي |
| Er *kann* nicht lesen, weil er es nicht gelernt hat.<br>هغه لوستل نشي کولی، ځکه چې نه یې دي زده کړي | |

| 6. Erlaubnis | اجازه درلودل |
|---|---|
| Wenn du dich warm angezogen hast, *kannst* du draußen spielen.<br>که تا تودې جامې واغوستلې، نو کوی شي چې بهر لوبې وکړې | |
| Wenn ihr eure Hausaufgaben gemacht habt, *könnt* ihr ins Schwimmbad gehen.<br>کله چې تاسو کورنی دنده مو ترسره کړه، نو بیا کوی شئ چې د لامبو ډنډ ته ولاړ شئ | |
| Er *kann* nicht kommen. Seine Eltern erlauben es nicht.<br>هغه راتلی نشي. د هغه مور او پلار ورته اجازه نه ورکوي | |

| 7. Vermutung | د یو شي په برخه کې اټکل کول، فکر کول، خیال درلودل |
|---|---|
| Er *kann* es auch von jemand anderem gehört haben.<br>کېدی شي چې دا یې له کوم بل چا نه هم اورېدلي وي (یعني زه داسي اټکل کوم) | |
| Sie *könnten* auch schon nach Hause gegangen sein.<br>کېدی شي چې هغوی خپل کور ته هم تللي وي (یعني زه داسي اټکل کوم) | |
| Heute könnte es Regen geben. | نن کېدی شي چې باران وشي |

**د (können) ګردان:**

په لاندیني جدول کې د اوسني وخت، د مطلق تېر وخت یا (Imperfekt) او د نږدې تېر وخت یا (Perfekt) ګردان لیدل کیږي. نور تشریحات له جدول نه وروسته په لاندینی برخه کې وګورئ.

| | Präsens | Imperfekt | Perfekt |
|---|---|---|---|
| ich | kann<br>کوی شم | konnte<br>کوی شو | habe … können (z.B. ich habe gehen können)<br>ما کوی شو. دلته له بل فعل سره (ما کوی شو چې ولاړ شم) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | | habe gekonnt (Die Aufgabe habe ich gekonnt)<br>ما کوی شو. دلته بې له بل فعل (دا سوال ما کوی شو) |
| du | kannst<br>کوی شې | konntest<br>کوی شو | hast … können (z.B. du hast gehen können)<br>ته تلی شوې<br>hast gekonnt (Die Aufgabe hast du gekonnt)<br>دا پوښتنه تا کوی شوه |
| er, sie, es | kann<br>کوی شي | konnte<br>کوی شو | hat … können (z.B. er hat gehen können)<br>هغه تلی شو<br>hat gekonnt (Die Aufgabe hat er gekonnt)<br>دا پوښتنه هغه کوی شوه |
| wir | können<br>کوی شو | konnten<br>کوی شو | haben … können (z.B. wir haben gehen können) موږ کوی شو چې ولاړ شو<br>haben gekonnt (Die Aufgabe haben wir gekonnt) دا پوښتنه موږ کوی شوه |
| ihr | könnt<br>کوی شئ | konntet<br>کوی شو | habt … können (z.B. ihr habt gehen können)<br>تاسو کوی شول چې ولاړ شئ<br>habt gekonnt (Die Aufgabe habt ihr gekonnt)<br>تاسو دا پوښتنه کوی شوه |
| sie | können<br>کوی شي | konnten<br>کوی شو | haben können (z.B. sie haben gehen können)<br>هغوی کوی شول چې ولاړ شي<br>haben gekonnt (Die Aufgabe haben sie gekonnt) هغوی دا پوښتنه کوی شوه |
| Sie | können<br>کوی شئ | konnten<br>کوی شو | haben können (z.B. Sie haben gehen können)<br>تاسو (محترم کس) کوی شول چې ولاړ شئ<br>haben gekonnt (Die Aufgabe haben Sie gekonnt) تاسو (محترم کس) دا پوښتنه کوی شوه |

څنګه چې ليدل کيږي، په اوسني وخت يا (Präsens) او په مطلق تېر وخت يا (Imperfekt) کې د (Modalverben) ګردان د (ich) او د (er, sie, es) لپاره يو شان دی، يعنې په (Präsens) کې د دواړو لپاره (kann) او په (Imperfekt) کې د دواړو لپاره (konnte) ويل کيږي. په نږدې پخواني وخت او يا (Perfekt) کې توپير يې په دې کې دی چې د ټولو کسانو لپاره (haben) ګردانيږي او (Modalverben) د ټولو کسانو لپاره يو شکل لري.

**په (Modalverben) جملې جوړول:**

کله چې په (Modalverben) يوه اصلي جمله يا (Hauptsatz) جوړيږي، نو په دې ډول جوړيږي، چې په اوسني وخت يا په (Präsens) او په مطلق پخواني وخت يا (Imperfekt) کې لومړی يو فاعل راځي او بيا ورپسې يو (Modalverb) راځي، او د جملې په پای کې يو بل فعل په ژوندي ډول يا د مصدر په توګه. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich *kann* nicht nach Hause gehen. | زه نشم کولی چې کور ته ولاړ شم (اوسنی وخت) |
| Ich *konnte* nicht nach Hause gehen. | ما نشو کولی چې کور ته ولاړ شم (مطلق پخوانی وخت) |

نږدي تېر وخت او يا (Perfekt) په دې ډول جوړيږي، چي لومړی فاعل راځي او په دوهم ځای کې د (haben) فعل ګردانيږي او په پای کې لومړی د جملې اصلي فعل په ژوندي ډول، يعني د مصدر په ډول او له ټولو نه وروسته د جملې په پای کې (Modalverben) په ژوندي ډول راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich habe nicht nach Hause *gehen können*. | ما نشو کولی چي کور ته تللی وای |

**„können“ als Vollverb**:

(Modalverben) په يوازې ځان، يعني بې له دوهم فعل هم استعمالېدی شي. دا په دې وجه چي کله چي سړی وايي چي (ich kann) يعني زه شم، نو له دې به مطلب ځای په ځای يو اسم وي چي زه يې شم، لکه (يوه وظيفه شم) يعني د يو فعل په ځای يو اسم ياديږي، يا زه (جرمني ژبه) شم. مثال:

| | |
|---|---|
| Alle Schüler können die Mathematikaufgabe. | ټول زده کوونکي د رياضي په سوال پوهيږي |
| Alle Schüler konnten die Mathematikaufgabe. | ټول زده کوونکي د رياضي په سوال پوهېدل |

کله چي د دوهم فعل په ځای يو اسم راشي، نو بيا (Modalverben) د (Perfekt) په ډول د جملې په پای کې راځي. مثال:

| |
|---|
| Alle Schüler haben die Mathematikaufgabe gekonnt. |
| ټول زده کوونکي د رياضي په سوال پوهېدل |

## dürfen

په لغوي مانا (dürfen) (يو شي ته اجازه درلودلو) ته وايي، خو د دې په څنګ کې په نورو مانا ګانو هم استعماليږي چي هغه دا دي:

۱- اجازه درلودل ۲- حق درلودل ۳- اټکل کول، حدس وهل، تخمين کول ۴- که په منفي مانا استعمال شي: منع کول، بنديځ لګول

| 1. Erlaubnis | اجازه درلودل، يو چا ته اجازه اوسېدل |
|---|---|
| Die Kinder *dürfen* heute länger aufbleiben. | ماشومانو ته اجازه ده چي نن تر ناوخته پورې ويښ پاتې شي |
| Der 12-jährige Junge darf heute ins Kino gehen. | دې دولس کلن هلك ته اجازه ده چي نن سينما ته ولاړ شي |
| Der Arbeiter darf heute früher nach Hause gehen. | دې کاريګر ته اجازه ده چي نن وخته کور ته ولاړ شي |
| Er *darf* heute bei seiner Tante übernachten. | هغه ته اجازه ده چي نن د خپلې ترور په کور کې شپه وکړي |

| 2. Berechtigung | حق درلودل |
|---|---|
| Nur die Besatzung *darf* das Cockpit betreten. | تش پرسونل حق لري چي د الوتکې د چلولو کوټې ته ننوځي |
| In diesem Park *dürfen* Kinder spielen. | په دې پارك کې ماشومان د لوبې کولو حق لري |
| Hier bin ich Mensch, hier *darf* ich‘s sein. *(Goethe‘s Faust)* | |

| |
|---|
| دلته زه انسان یم، دلته زه حق لرم چي انسان واوسم (د جرمني شاعر (Goethe) د (Faust) له اثر نه یوه جمله) |

| 3. Vermutung | اټکل کول، حدس وهل، تخمین کول، د اټکل له مخي یوه خبره کول |
|---|---|
| Wir *dürften* bald in Berlin ankommen. | مونږ به په لنډ وخت کي برلین ته ورسیږو |
| Er dürfte um die 50 Jahre alt sein. | هغه به په عمر کي د پنځوسو په شاوخوا کي وي |
| Dieser Baum dürfte so um die 20 Meter hoch sein. | دا ونه به د شلو مترو په شاوخوا کي جګه وي |

| 4. Verbot | منع کول، بندیځ لګول |
|---|---|
| Im Museum darf man nicht fotografieren. | په موزیم کي د عکس اخیستلو اجازه نشته |
| Der Arbeiter darf heute nicht früher gehen. | دي کاریګر ته اجازه نشته چي نن د وخته ولاړ شي |
| Hier *darf* nicht geraucht werden! | دلته سګرټ څکولو ته اجازه نشته |

**د (dürfen) د فعل ګردان:**

| | Präsens | Imperfekt | Perfekt |
|---|---|---|---|
| ich<br>زه | darf<br>اجازه لرم | durfte<br>اجازه درلوده | habe … dürfen (z.B. ich habe gehen dürfen)<br>ما اجازه درلوده. (ما اجازه درلوده چي ولاړ شم)<br>habe gedurft (Das habe ich nicht gedurft)<br>ما اجازه درلوده (دي لپاره ما ته اجازه نه وه) |
| du<br>ته | darfst<br>اجازه لري | durftest<br>اجازه درلوده | hast … dürfen (z.B. du hast gehen dürfen)<br>تا ټک ته اجازه درلوده (تا اجازه درلوده چي ولاړ شي)<br>hast gedurft (Das hast du nicht gedurft)<br>تا اجازه درلوده (دي لپاره تا ته اجازه نه وه) |
| er,<br>sie,<br>es<br>هغه | darf<br>اجازه لري | durfte<br>اجازه درلوده | hat … dürfen (z.B. er hat gehen dürfen)<br>هغه اجازه درلوده (هغه اجازه درلوده چي ولاړ شي)<br>hat gedurft (Das hat er nicht gedurft)<br>هغه اجازه نه درلوده ((دي لپاره هغه ته اجازه نه وه) |
| wir<br>مونږ | dürfen<br>اجازه لرو | durften<br>اجازه درلوده | haben … dürfen (z.B. wir haben gehen dürfen) مونږ د ټک اجازه درلوده (مونږ اجازه درلوده چي ولاړ شو)<br>haben gedurft (Das haben wir nicht gedurft)<br>مونږ اجازه درلوده (دي لپاره مونږ ته اجازه نه وه) |
| ihr<br>تاسو | dürft<br>اجازه لرئ | durftet<br>اجازه درلوده | habt … dürfen (z.B. ihr habt gehen dürfen)<br>تاسو اجازه درلوده (تاسو اجازه درلوده چي ولاړ شئ)<br>habt gedurft (Das habt ihr nicht gedurft)<br>تاسو اجازه درلوده (دي لپاره تاسو ته اجازه نه وه) |
| sie<br>هغوی | dürfen<br>کوی شي | durften<br>اجازه درلوده | haben … dürfen (z.B. sie haben gehen dürfen)<br>هغوی اجازه درلوده (هغوی ته اجازه وه چي ولاړ شي)<br>haben gedurft (Das haben sie gedurft)<br>هغوی اجازه درلوده (دي لپاره هغوی ته اجازه وه) |
| Sie | dürfen | durften | haben … dürfen (z.B. Sie haben gehen dürfen) |

| | | | |
|---|---|---|---|
| تاسو | کوی شئ | اجازه درلوده | تاسو اجازه درلوده (تاسو اجازه درلوده چي ولاړ شئ)<br>haben gedurft (Das haben Sie gedurft)<br>تاسو اجازه درلوده (دي لپاره تاسو ته اجازه وه) |

**(dürfen) د مختلفو حالاتو په جملو کې:**

| |
|---|
| Bei Rot *darf* man die Straße nicht überqueren.<br>په سرې اشارې کې له سړك نه د تېرېدو اجازه نشته |
| Bei Rot *durfte* man die Straße nicht überqueren.<br>پـه سـرې اشـارې کې د سړك نه د تېرېدو اجازه نه وه |
| Bei Rot *hat* man die Straße nicht überqueren *dürfen*.<br>په سرې اشارې کې د سړك نه د تېرېدو اجازه نه وه |

| „dürfen" als Vollverb | کله چي (Modalverb) په جمله کې يوازينی فعل وي |
|---|---|
| Morgen *dürft* ihr nach Hause. | سبا تاسو ته کور ته د تګ اجازه ده |
| Gestern *durftet* ihr nach Hause. | پرون تاسو ته کور ته د تګ اجازه وه |
| Vorgestern *habt* ihr nach Hause *gedurft*. | ورمه ورځ تاسو ته کور ته د تګ اجازه وه |

## müssen

په لغوی مانا (müssen) (يو کار ته مجبور اسېدلو) ته وايي، خو په نورو مانا ګانو هم استعماليږي، چي هغه دا دي:

۱ـ يو کار بايد کول، يو کار ته مجبور اوسېدل، د يو کار کولو ته اړتيا درلودل ۲ـ د امر کولو لپاره او يا يو چا ته د امر کېدلو لپاره ۳ـ اټکل کول، تخمين کول، حدس وهل ۴ـ له يو کار نه نتيجه اخيستل، د يو کار په نتيجه کې يو عمل کول ۵ـ که په منفي مانا استعمال شي: يو کار ته اړتيا نه درلودل، ضرور نه اوسېدل، لازم نه اوسېدل

| 1. Notwendigkeit | يو کار ته اړتيا درلودل، مجبور اوسېدل، بايد يو کار کول |
|---|---|
| Der Schüler muss täglich seine Hausaufgaben machen.<br>زده کوونکی بايد هره ورځ خپله کورنی وظيفي تر سره کړي | |
| Jeder Bäcker muss jeden Tag sehr früh aufstehen.<br>هر نانبای دي ته مجبور دی چي هره ورځ وختته له خوبه راڅګ شي شي | |
| Ein Fußballspieler muss täglich hart trainieren, wenn er Erfolg haben will.<br>د فوټبال يو لوبغاړی که غواړي چي برلاسی شي، نو بايد هره ورځ ډېر سخت تمرين وکړي | |
| Ich *muss* einen Artikel schreiben. | زه بايد يو مضمون وليکم |

| 2. Befehl | امر کول، يو چا ته امر کېدل |
|---|---|
| Du musst jetzt gehen, sonst verpasst du noch deinen Zug.<br>ته اوس ولاړ شه، او که نه نو اورګاډی درنه ځي | |
| Wenn Sie das Geld haben wollen, müssen Sie diesen Vertrag unterschreiben.<br>که تاسو دا پيسي اخيستل غواړی، نو دا قرارداد به لاسليکوئ | |
| Der Patient muss etwas essen, damit er zu Kräften kommt.<br>رنځور بايد يو څه وخوري چي په قوت راشي | |

| | |
|---|---|
| **3. Vermutung, Annahme** | **اټکل کول، حدس وهل، تخمين ، د اټکل له مخې يوه ادعا کول** |
| Wir *müssten* eigentlich bald in Berlin ankommen. | اصلاً بايد مونږ په لنډ وخت کې برلين ته ورسيږو |
| Er *müsste* das Bild selber gemalt haben. | هغه به دا انځور پخپله رسم کړی وي |
| Der Einbrecher *muss* durch das Fenster eingedrungen sein. | غل هرورمرو د کړکۍ له لارې راننوتی وي |

| | |
|---|---|
| **4. Schlussfolgerung** | **له يو کار نه نتيجه اخيستل، د يو کار په نتيجه کې يو عمل کول** |
| Wir sind alle sterblich. Eines Tages muss jeder einmal sterben. | مونږ ټول فناکېدونکي يو. يوه ورځ نه يوه ورځ به هر څوك مړ کيږي |
| Ohne Arbeit können wir nicht überleben. Deswegen müssen wir viel arbeiten. | بې له کاره مونږ ژوندي نشو پاتې کېدی. نو له دې کبله مونږ بايد ډېر کار وکړو |
| Wer schön sein will, muss leiden. | څوك چې ښايست غواړي، دردېدل به په ځان مني |

**(müssen) د مختلفو حالاتو په جملو کې:**

| | |
|---|---|
| Ich *muss* morgen nach Hause gehen. | زه بايد سبا کور ته ولاړ شم |
| Ich *musste* gestern nach Hause gehen. | زه پرون مجبور وم چې کور ته ولاړ شم |
| Ich *habe* gestern nach Hause gehen *müssen*. | زه پرون مجبور وم چې کور ته ولاړ شم |
| | |

**„müssen“ als Vollverb** **کله چې (Modalverb) په جمله کې يوازينی فعل وي**

| | |
|---|---|
| Er *muss* in jeder Pause auf Toilette. | هغه بايد په هره تفريح کې تشناب ته ولاړ شي |
| Er *musste* in jeder Pause auf Toilette. | هغه بايد په هره تفريح کې تشناب ته تللی وای |
| Er hat in jeder Pause auf die Toilette gemusst. | هغه بايد په هره تفريح کې تشناب ته تللی وای |

## sollen

(sollen) په لغوي مانا (بايد يو کار کول)، ته وايي. خو په نورو ماناګانو هم استعماليږي چې هغه دا دي:
۱ـ يو چا ته امر کول او يا يو چا ته يو امر کېدل ۲ـ يو چا ته يوه وظيفه ورسپارل، مؤظفول ۳ـ يوه ګنګوسه يا اوازه اوسېدل ۴ـ قانون تطبيقول، فرمان ورکول ۵ـ د يو شي هدف اوسېدل، يو هدف درلودل ۶ـ مشوره ورکول، يو چاته توصيه کول ۷ـ اټکل کول، حدس وهل، له خپل فکره ويل چې يو څه به داسې وي ۸ـ په پخواني وخت کې راتلونکی وخت بيانول

| | |
|---|---|
| **1. Befehl** | **يو چا ته يو امر کول، يو امر کېدل** |
| Ich habe gesagt, du sollst dich jetzt schlafen legen! | ما وويل چې ته اوس څملئ |
| Ihr sollt euch benehmen. | تاسو په ادب شئ |

| | |
|---|---|
| **2. Auftrag** | **يو چا ته يوه وظيفه ورسپارل، يو شي ته مؤظفول** |
| Die Kinder *sollten* im Haus bleiben. | دا لازمه ده چې ماشومان دې په کور کې پاتې شي |
| Nicht ich, sondern Sie sollen die Feuerwehr anrufen. | زه نه، بلکې تاسو بايد اطفاييې ته ټيلفون وکړئ |

| | |
|---|---|
| Ich soll Herrn General diesen Brief persönlich übergeben. | ما ته وظيفه راکړل شوې چې دا ليک زه شخصاً جنرال صاحب ته ورکړم |
| Ich *soll* den Müll noch rausbringen. | ما ته وظيفه راسپارل شوې چې دا ناپاکي بهر يوسم |

| 3. Gerücht | يوه ګنګوسه يا يوه اوازه اوسېدل |
|---|---|
| Man sagt, diese Firma soll pleite sein. | ويل کيږي چې دې کمپنۍ سقوط کړی دی |
| Er soll eine Geliebte haben. | داسې ګنګوسه ده چې هغه يوه معشوقه لري |
| Der neue Minister soll sehr viel Geld haben. | اوازه ده چې دا نوی وزير ډېرې پيسې لري |
| Ich habe gehört, dass er jetzt irgendwo im Ausland leben *soll*. | ما داسې اورېدلي دي چې هغه اوس کوم چېرته په بهر کې اوسيږي |

| 4. Gebot/Gesetz | قانون تطبيقول، فرمان ورکول |
|---|---|
| Man soll nicht töten. | سړی بايد وژل ونکړي |
| Man soll keine Drogen nehmen. | سړی بايد له مخدره توکو نه کار وانخلي |
| Man *soll* immer die Wahrheit sagen. | سړی بايد تل رېښتيا ووايي |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | د (sollen) او (müssen) فعلونه يو بل ته ډېر ورته دي. که چېرته د (sollen) په ځای (müssen) وکارول شي، نو دا مطلب ترېنه نشي اخيستل کېدی چې دا يو فرمان دی. له (müssen) نه دا مطلب اخيستل کيږي چې دې چلند ته اړتيا ده او يا مجبوريت دی. که چېرته بيا اړتيا يا مجبوريت د يو چا د فرمان په اساس وي، نو يا فرمان ورکونکی يې بايد يکې ياد شي او يا علت يې ياد شي. |

مثال:

| | |
|---|---|
| Die Kinder müssen im Haus bleiben, weil die Eltern es ihnen befohlen haben. | ماشومان دې په کور کې پاتې شي، ځکه چې د هغوی مور او پلار داسې امر کړېدی |
| Die Kinder *müssen* im Haus bleiben, weil es draußen keinen Platz zum Spielen gibt. | ماشومان دې په کور کې پاتې شي، ځکه چې بهر د لوبو لپاره ځای نشته |

په نورو جملو کې چې (sollen) د فرمان په مانا استعمال شوی، دا په دې مانا چې دې کار ته اجازه نشته. نو په دې وجه دې فعل لپاره (dürfen) هم استعمالېدی شي.

| | |
|---|---|
| Du sollst nicht töten = du hast den Auftrag, nicht zu töten = du darfst nicht töten | |
| تاته د وژلو اجازه نشته = تاته دا دنده درکړل شوې چې وژل به نکوې = ته به وژل نکوې | |

| 5. Zweck | د يو شي هد□ اوسېدل، يو هد□ درلودل |
|---|---|
| Diese Übung *soll* dazu helfen, stark zu werden. | د دې تمرين هدف دا دی چې سړی قوي شي |
| Diese Beispiele sollen Ihnen helfen, die Modalverben zu verstehen. | دې مثالونو هدف دا دی، چې تاسو (Modalverben) زده کړئ |
| Die Strafe soll dir eine Lehre sein. | د دې سزا هدف دا دی چې ته ترېنه يو پند واخلې |

| 6. Empfehlung, Rat | مشوره ورکول، توصیه کول |
|---|---|
| Du *solltest* den Müll rausbringen, bevor er anfängt zu stinken. مخکې له دې چې دا ناپاکې بوي وکړي، ته يې بهر وباسه | |
| Die Kinder *sollten* im Haus bleiben, wenn es schneit. کله چې واوره وريږي، نو ماشومان دې په کور کې پاتې شي | |
| *Sollen* wir hier auf euch warten? | مونږ دلته تاسو ته انتظار وباسو؟ |
| *Soll* ich dir bei den Hausaufgaben helfen? | زه له تا سره په کورنی وظیفه کې مرسته وکړم؟ |

| 7. Vermutung, Annahme | اټکل کول، حدس وهل، له خپله فکره ويل چې يو څه به څنګه وي |
|---|---|
| Wenn du den Brief heute abschickst, *sollten* wir ihn übermorgen erhalten. که ته دا لیك نن ولیږې، نو مونږ ته به بل سبا ورسیږي | |
| Wir *sollten* eigentlich bald in Berlin ankommen. اصلاً باید مونږ په لنډ وخت کې برلین ته ورسیږو. | |

| 8. Zukunft in der Vergangenheit | په پخواني وخت کې راتلونکی بیانول |
|---|---|
| Er nahm auf niemand Rücksicht. Das *sollte* er noch bereuen. هغه د هیڅ چا لحاظ نه کوه. په دې باندې به وروسته پښېمانه و | |
| Er lernte die Lehrerin, die später seine Frau werden *sollte*, in Berlin kennen. هغه ښوونکې چې بیا به وروسته د ده میرمن کېدله، دی ورسره په برلین کې بلد شو | |

**(sollen) د مختلفو حالاتو په جملو کې:**

| | |
|---|---|
| Die Kinder *sollen* morgen im Haus bleiben. | ماشومان دې سبا په کور کې پاتې شي |
| Die Kinder *sollten* gestern im Haus bleiben. ماشومانو ته دا ضروري وه چې پرون په کور کې پاتې شوي وای | |
| Die Kinder haben gestern im Haus bleiben sollen. ماشومانو ته دا ضروري وه چې پرون په کور کې پاتې شوي وای | |

**„sollen“ als Vollverb** (Diese Form existiert nicht!)

**کله چې (sollen) په جمله کې یوازینی فعل وي**

(sollen) هېڅکله په جمله کې یوازې نشي راتللی. د استعمال لپاره یې تل یو بل فعل ته اړتیا ده

## wollen

د (wollen) لغوی مانا ده (غوښتل). خو په دې نورو مانا ګانو هم استعمالیږي:
۱ـ یو کار ته نیت درلودل، قصد درلودل ۲ـ اړتیا درلودل، د یو کار لپاره یو څه ضرور اوسېدل ۳ـ د یو چا د خولې خبره کول، د یو چا خبره کول چې هغه داسې وایي، اقتباس کول

| 1. Wille, Absicht | یو کار ته نیت درلودل، قصد درلودل |
|---|---|
| Er *will* Medizin studieren. | هغه غواړي چې د طب تحصیل وکړي |
| Wir wollen nächstes Jahr in Italien Urlaub machen. مونږ غواړو چې په راتلونکي کال کې ایټالیې ته په رخصتی ولاړ شو | |
| Ich *will* dir meine Geburtsstadt zeigen. | زه غواړم چې تا ته خپل د زیږیدنې ښار دروښایم |

| 2. Notwendigkeit | اړتیا درلودل، د یو کار لپاره یو څه ضرور اوسېدل |
|---|---|
| Autofahren *will* gelernt sein. | د موټر چلولو لپاره زده کولو ته یې اړتیا ده |
| Die Entscheidung *will* gut überlegt sein.<br>کله چې سړی یوه فیصله کوي، نو پکې ډېر سوچ وهلو ته اړتیا ده (چې دا فیصله وشي که ونشي) | |
| Das Veredeln von Obstbäumen *will* gelernt sein.<br>د مېوو د ونې قلمه کول باید سړی لومړی ښه زده کړي، مخکې له دې چې عملي یې کړي | |

| 3. Zitat, Behauptung | د یو بل چا د خولې خبره کول، اقتباس، ادعاکول |
|---|---|
| Er *will* den alten König noch gekannt haben. هغه ادعا کوي چې پخوانی باچاه یې پېژندو | |
| Der Verbrecher *wollte* an jenem Abend zu Hause gewesen sein.<br>جنایتکار ادعا کوي چې په هغه ماښام کې دی په کور کې و | |
| Du *willst* also der beste Schüler der Klasse sein.<br>ته نو ادعا کوئ چې ته د ټولګي له ټولو نه ښه زده کوونکی یې؟ | |

**(wollen) د مختلفو حالاتو په جملو کې:**

| |
|---|
| Ich *will* mir morgen eine neue Hose kaufen.<br>زه غواړم چې سبا ځان ته یو نوی پطلون په بیه واخلم |
| Ich wollte mir gestern eine neue Hose kaufen.<br>ما پرون غوښتل چې ځان ته یو نوی پطلون په بیه واخلم |
| Ich *habe* mir gestern eine neue Hose kaufen *wollen*.<br>ما پرون غوښتلي وو چې ځان ته یو نوی پطلون په بیه واخلم |

**„wollen" als Vollwerb کله چې (Modalverb) په جمله کې یوازینی فعل وي**

| | |
|---|---|
| Das *will* ich nicht. | دا زه نه غواړم |
| Das *wollte* ich nicht. | دا ما نه غوښتل |
| Das habe ich nicht *gewollt*. | دا ما ندي غوښتلي |

## mögen

د (mögen) لغوي مانا ده (یو شي ته زړه کېدل، یو څه خوښېدل) ، خو په نورو ماناګانو هم استعمالیږي:
۱ـ هیله درلودل، غوښتل ۲ـ یو شي ته زړه کېدل، یو څه د یو چا خوښېدل ۳ـ د یوې خبرې د منلو او یا د اعتراف کولو په مانا هم کله کله استعمالیږي ۴ـ د دعا کولو لپاره

**د (mögen) ګردان:**

| | Indikativ | Konjunktiv I | Konjunktiv II |
|---|---|---|---|
| ich | mag | möge | möchte |
| du | magst | mögest | möchtest |
| er, sie, es | mag | möge | möchte |
| wir | mögen | mögen | möchten |
| ihr | mögt | möget | möchtet |
| sie | mögen | mögen | möchten |

| | |
|---|---|
| **1. Wunsch** | **هیله درلودل، غوښتل** |
| Ich *möchte* so gern einmal zum Mond fliegen. | زما هیله ده چي یو ځل سپوږمۍ ته ولاړ شم |
| Er *möchte* euch einmal besuchen. | هغه هیله لري چي یو ځل ستاسو لیدو ته درشي |
| Die Kinder *möchten* draußen spielen. | ماشومان غواړي چي بهر ولوبیږي |
| *Möchtest* du auch einmal nach Paris fahren? | ته هم غواړې چي یو ځل پاریس ته ولاړ شې؟ |

| | |
|---|---|
| **2. Gefallen, Lust** | **یو شي ته زړه کېدل، یو څه د یو چا خوښېدل** |
| Ich *mag* gern fernsehen. | زما تلویزیون کتل خوښیږي |
| Mein Sohn mag Fußball spielen, Bücher lesen und schwimmen gehen. | زما د زوی فوټبال لوبېدل، کتاب لوستل او لامبو ته تګ خوښیږي |
| Meine Frau mag Volksmusik. | زما د مېرمني ولسي موسیقي خوښیږي |
| Der Gast geht in das Restaurant und mag einen Tee trinken. | مېلمه یو رستوران ته ځي او د یو چای څښلو ته یې زړه کیږي |
| Ich *mag* dich gern. | ته زما خوښیږي |

| | |
|---|---|
| **3. Einräumung** | **د اعترا□ کولو او یا د یوې خبرې د منلو په مانا** |
| Es *mag* wohl viel kosten, aber es ist den hohen Preis wert. | د دې بیه به لوړه وي، خو په دې لوړه بیه ارزي |
| Er *möge* fleißig sein, intelligent ist er aber nicht. | هغه دې خپله خواري وکړي، خو هغه ذکي ندی |

| | |
|---|---|
| **4. Gebet** | **د دعا کولو په مانا** |
| *Möge* er in Frieden ruhen! | (زما دعا ده چي) د هغه روح دې هوسا وي |
| *Möge* der Beste gewinnen! | (زما دعا ده چي) له ټولو نه ښه دې لوبه وګټي |
| *Möge* es doch bald regnen! | (زما دعا ده چي) په لنډو کي دې باران وشي |

**(mögen) د مختلفو حالاتو په جملو کي:**

| | |
|---|---|
| Ich *mag* heute nicht darüber reden. | زه نه غواړم چي نن په دې برخه کي خبري وکړم |
| Ich *mochte* gestern nicht darüber reden. | ما پرون نه غوښتل چي په دې برخه کي خبري وکړم |
| Ich habe gestern nicht darüber reden *mögen*. | ما پرون ندي غوښتلي چي په دې برخه کي خبري وکړم |

**„mögen“ alsVollverb** **کله چي (Modalverb) په جمله کي یوازینی فعل وي**

| | |
|---|---|
| Diesen Lehrer mögen die Schüler nicht. | دا ښوونکی د زده کوونکو نه خوښیږي |
| Diesen Lehrer mochten die Schüler nicht. | دا ښوونکی د زده کوونکو نه خوښېدو |
| Diesen Lehrer haben die Schüler nicht gemocht. | دا ښوونکی د زده کوونکو ندی خوښېدلی |

**د (mögen) او (möchten) تر مینځ توپیر:**

ډېر کسان (mögen) او (möchten) دوه مختلف فعلونه ګڼي چي مانا یې یو شان ده. واقعیت دا دی چي (möchten) کوم ځانګړی فعل ندی. (möchten) تش د (mögen) د فعل (Konjunktiv II) دی. (möchten) تش په اوسني وخت یا (Präsens) کي استعمالیږي او مانا یې داسې ده لکه (wollen) یا

(غوښتل)، خو ډېر په احترام. يعني دا چې كه يو څوك ووايي چې (ich will) د دې مانا په شدت او يا زور بلل كېدی شي، يعني دا چې يو څوك په زور يو شی غواړي. كه يو څوك ووايي چې:
(ich möchte) د دې مانا دا ده چې زه په احترام وايم چې زما دې شي ته خوښه ده او هيله يې كوم. د (ich möchte) لپاره هم ويل كېدی شي چې (ich würde gern) . د (Konjunktiv) په برخه كې د دې كتاب په وروستی برخه كې اوږد معلومات ليكل شوی دی چې ډېر په زړه پورې دی.

| Besonderheiten der Modalverben ځانګړتياوې (Modalverben) د | |
|---|---|
| Imperativ | د امر صيغه يا (Imperativ) : په (Modalverben) كې امر نشته |
| Passiv | (Passiv) : په (Modalverben) كې (Passiv) نشته |

**Stellung der Modalverben im Nebensatz په فرعي جملو كې (Modalverben)**

كله چې يو (Modalverb) په يوه فرعي جمله كې استعماليږي، نو لومړي اصلي فعل او بيا وروسي (Modalverben) راځي. په تېره زمانه يا (Perfekt) كې داسي راځي چې لومړی (haben) او بيا اصلي فعل او د جملې په پای كې (Modalverb) په ژوندي ډول يا د مصدر په توګه راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Präsens | Es ist schade, dass er uns nicht besuchen kann.<br>دا د تآسف ځای دی چې هغه زموږ ليدو ته نشي راتلی |
| Präteritum | Es ist schade, dass er uns nicht besuchen konnte.<br>دا د تآسف ځای دی چې هغه زموږ ليدو ته نشو راتلی |
| Perfekt | Es ist schade, dass er uns nicht hat besuchen können.<br>دا د تآسف ځای دی چې هغه زموږ ليدو ته نشو راتلی |
| Plusquamperfekt | Es ist schade, dass er uns nicht hatte besuchen können.<br>دا د تآسف ځای دی چې هغه زموږ ليدو ته نشو راتلی |

**Modalverben mit zwei Infinitiven**

| Hauptsatz | |
|---|---|
| Präsens | Ich kann dich nicht weinen sehen. زه ستا ژړا نشم ليدلی<br>Du musst jetzt arbeiten gehen. ته بايد اوس كار ته ولاړ شي |
| Präteritum | Er musste nach seinem Unfall wieder laufen lernen.<br>له ټكر نه وروسته هغه بايد ګرځېدل زده كړي وای<br>Er konnte den Verletzten nicht schreien hören.<br>هغه د ټپي چيغې نشوې اورېدلی |
| Perfekt | Er hat ihn nicht weggehen lassen wollen.<br>هغه نه غوښتل چې هغه بهر تللو ته پرېږدي<br>Der Wagen hat dort nicht stehen bleiben dürfen.<br>موټر ته هلته د ودرېدو اجازه نه وه |

| Nebensatz | |
|---|---|
| Präsens | Ich weiß, dass er nicht stehen bleiben will.<br>زه پوهېږم چې هغه نه غواړی چې ولاړ پاتې شي |
| Präteritum | Ich denke, dass er das Tier nicht leiden sehen konnte.<br>زه فكر كوم چې هغه د دې حيوان ځورېدل نشول ليدلی |

| | |
|---|---|
| Perfekt | Ich glaube, dass er mit uns hat essen gehen wollen.<br>زه ګمان کوم چې هغه غوښتل چې له مونږ سره ډوډۍ خوړلو ته راشي |

**هغه فعلونه چې (Modalverben) ندي خو د (Modalverben) په شان کارول کيږي**

ځيني فعلونه شته چې که چېرته د هغوی سره يو بل فعل يوځای شي، نو هغه په ټولو حالاتو کې د (Modalverben) په توګه استعماليږي، سره له دې چې دا فعلونه (Modalverben) ندي . هغه دا فعلونه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| hören اورېدل | lassen پرېښودل | sehen ليدل، کتل | helfen مرسته کول |

| Hauptsatz اصلي جمله | |
|---|---|
| Präsens | Im Frühling hören wir die Nachtigall singen.<br>په پسرلي کې مونږ د بلبلي سندرې اورو |
| Präteritum | Er ließ mich vor dem Haus warten.<br>هغه زه د کور په مخکې په انتظار پرېښودم |
| Perfekt | Die Mutter hat die Gefahr kommen sehen.<br>مور د خطر راتګ په سترګو ليدو |

| Nebensatz فرعي جمله | |
|---|---|
| Präsens | Wir freuen uns, wenn wir die Nachtigall singen hören.<br>کله چې مونږ د بلبلي غږ واورو، نو پرې خوشيږو |
| Präteritum | Es war nicht gut, dass er mich vor dem Büro warten ließ.<br>دا ښه نه و چې هغه زه د دفتر په مخکې په انتظار پرېښودم |
| Perfekt | Ich weiβ, dass du die Gefahr hast kommen sehen.<br>زه پوهيږم چې تا د خطر راتګ په سترګو ليدو |

ځيني فعلونه شته چې که چېرته له هغوی سره يو بل فعل يوځای شي، نو هغه په (Präsens) کې او په (Präteritum) کې د (Modalverben) په توګه استعماليږي، سره له دې چې دا فعلونه (Modalverben) ندي، خو په (Perfekt) او په (Plusquamperfekt) کې بيا د يو عادي فعل په شان کارول کيږي. هغه دا فعلونه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| bleiben پاتې کېدل | gehen تلل | lehren ورزده کول | lernen زده کول |

| Hauptsatz اصلي جمله | |
|---|---|
| Präsens | Er bleibt bei der Begrüßung sitzen.<br>د سترې مشي په وخت کې هغه ناست پاتې کيږي<br>Er geht jeden Abend Fußball spielen.<br>هغه هر ماښام د فوټبال لوبې ته ورځي<br>Er lehrt seinen Sohn lesen und schreiben.<br>هغه خپل زوی ته لوستل او ليکل ورزده کوي<br>So lernt Ihr Kind laufen.<br>ستاسو ماشوم په دې ډول ګرځېدل زده کوي |
| Präteritum | Er blieb bei der Begrüßung sitzen.<br>د سترې مشي په وخت کې هغه ناست پاتې شو<br>Er ging jeden Abend Fußball spielen.<br>هغه هر ماښام د فوټبال لوبې ته ورتلو |

| | |
|---|---|
| | Er lehrte seinen Sohn lesen und schreiben.<br>هغه خپل زوی ته لوستل او لیکل ورزده کړل<br>So lernte Ihr Kind laufen.<br>ستاسو ماشوم په دې ډول ګرځېدل زده کړل |
| Perfekt | Er ist bei der Begrüßung sitzen geblieben.<br>هغه د ستړي مشي په وخت کې ناست پاتې شوی و<br>Er ist jeden Abend Fußball spielen gegangen.<br>هغه هر ماښام د فوټبال لوبې ته ورغلی و<br>Er hat seinen Sohn lesen und schreiben gelehrt.<br>هغه خپل زوی ته لوستل او لیکل ورزده کړي وو<br>So hat Ihr Kind laufen gelernt.<br>ستاسو ماشوم په دې ډول ګرځېدل زده کړي وو |

**Übungen:** *darf, darf nicht, muss oder kann*

1. Man ________ beim Lernen einer Sprache aufpassen.
سړی باید د یوې ژبې په زده کړه کې پام ونیسي
2. Man ________ in die Bibliothek gehen und dort lesen.
سړی کوی شي چې کتابتون ته ولاړ شي او هلته مطالعه وکړي
3. Man ________ ins Krankenhaus keinen Hund mitnehmen.
سړی نشي کولی چې روغتون ته یو سپی له ځانه سره یوسي
4. Man ________ die Eltern immer fragen.
سړی کوی شي چې له مور او پلار نه تل پوښتنې وکړي
5. Man ________ bei der Prüfung keinen Computer benützen.
سړي ته اجازه نشته چې په ازموینه کې له کمپیوټر نه کار واخلي
6. Man ________ beim Autofahren seinen Führerschein dabeihaben.
سړی باید د موټر چلولو په وخت خپل لیسنس له ځانه سره ولري
7. Man ________ zur Prüfung zu spät kommen. سړی باید ازموینې ته ناوخته رانشي

**Lösungen:**
1. muss 2. kann 3. darf 4. darf/kann 5. darf 6. muss 7. darf nicht

**Übungen:** muss oder darf

1. ________ ein Kind täglich nicht mehr als eine halbe Stunde fernsehen?
یو ماشوم ته اجازه شته چې د ورځې له نیم ساعت نه ډېر تلویزیون وګوري؟
2. ________ ich unbedingt bis 24 Uhr auf bleiben?
زه هرومرو د شپې تر دولس بجو پورې ویښ پاتې شم؟
3. ________ du unbedingt mitten in der Nacht Musik spielen?
دا ضرور دي چې ته په نیمه شپه کې موزیك غږوې؟
4. ________ man bei Rot über die Ampel fahren?
سړی کوی شي چې له سرې اشارې نه تېر شي؟

**Lösungen:**
1. darf 2. muss 3. muss 4. darf

**Übungen**: wollen, können, sollen, müssen, dürfen, mögen

1. Hier ist das Rauchen verboten. – Hier ……….. niemand rauchen.
دلته سګرټ څکول منع دي. دلته هېڅ چاته اجازه نشته چې سګرټ وڅکوي
2. Hier ist es dunkel. – Ich ……….. nichts lesen. دلته ډېره تیاره ده. زه هېڅ شی نشم لوستلی
3. Ich habe kein Geld mehr. – Ich ……….. zur Bank gehen.
له ما سره نورې پیسې نشته. زه باید بانك ته ولاړ شم
4. Wenn du deinen Nachbarn treffen …….. , bestelle ihm doch bitte schöne Grüße von mir. که چېرته تا خپل ګاونډی ولیدو، نو زما له خوا ورته ډېر سلامونه ووایه
5. Ich bin mit der Prüfung fertig. – Ich ……….. jetzt nach Hause gehen.
زما ازموینه پای ته ورسېدله. زه کوی شم چې اوس کور ته ولاړ شم
6. Ich habe bis jetzt keinen Fernseher.– Ich …….. mir jetzt einen Fernseher kaufen. زه تر اوسه پورې کوم ټلویزیون نلرم. زه غواړم چې یو ټلویزیون په بیه واخلم
7. Deine Schrift ist unleserlich. Du ……….. den Bericht mit dem Computer schreiben. ستا لیك نه لوستل کیږي. ته باید رپوټ په کمپیوټر ولیکې
8. Ich habe keinen Computer. Ich …….. leider den Brief nur mit der Hand schreiben. زه کمپیوټر نلرم. له بده مرغه زه لیك تش په لاس لیکلی شم
9. Morgens trinke ich immer eine Kanne Tee. Ich ……….. keinen Saft.
د سهار له مخې زه تل یو چاینك چای څښم. زما شربت نه خوښیږي
10. Du ……….. nicht hier bleiben, wenn du nicht ………..
که ته نه غواړې، نو ته مجبور نه یې چې دلته پاتې شې
11. Du……….. dir unbedingt ein Fahrrad kaufen. Hier fahren keine Busse.
ته باید هرومرو یو بایسکل په بیه واخلې. دلته سروېسونه نه ګرځي
12. Dieser Hund ist gefährlich. Du ……….. nicht nach ihm mit Steinen werfen.
دا سپی خطرناك دی. ته د هغه پسې ګاټي مه غوزاروه
13. Ich ……….. den Brief eigentlich heute noch abschicken, aber er ist noch nicht fertig. اصلا باید دا لیك ما نن لیږلی وای. خو هغه لا بشپړ شوی ندی
14. Ich habe vor einem Monat eine moderne Videokamera gekauft. Ich ……….. sie leider immer noch nicht bedienen. یوه میاشت دمخه ما یوه موډرنه ویډیویي کمره واخیستله. له بده مرغه زه لا تراوسه پورې په چل یې نپوهېږم
15. Das ist keine Einbahnstraße, hier ……….. du links abbiegen.
دا یو اړخیز سړك نه دی، ته کوی شې چې کیڼ لاس ته تاو شې
16. An welcher Stelle ……….. wir den Fluss überqueren?
په کوم ځای کې مونږ د دې سیند نه تېرېدی شو؟
17. Ihr ……….. noch kein Auto leihen, da ihr noch nicht Auto fahren ……….. .
تاسو نشئ کولی چې یو موټر په کرایه واخلئ، ځکه چې تاسو موټر نشئ چلولی
18. Wenn ihr meine Kinder wäret, dann ……….. ihr abends bis zehn Uhr aufbleiben.
که تاسو زما ماشومان وای، نو تاسو ته اجازه وه چې د ماښام تر لس بجو پورې ویښ پاتې شئ

**Lösungen**:
1. darf 2. kann 3. muss 4. solltest
5. darf 6. will 7. muss 8. kann 9. mag 10. musst …. willst 11. solltest …….. kann 12. sollst 13. sollte 14. kann 15. kannst 16. können 17. könnt …… könnt. 18. dürftet

(پاملرنه: دلته solltest استعمال شوی دی چې (Konjunktiv) دی، نور تشریحات یې وروسته راځي)

**Das Perfekt der Modalverben**

① د هغو فعلونو په مینځ کې چې (ü) راځي نو د (ü) نه (u) جوړیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| **dürfen**: Er hat gedurft. هغه ته اجازه وه | **müssen**: Er hat gemusst. هغه مجبور و |

② په هغه فعل کې چې (ö) راځي، نو (ö) په (o) بدلیږي، مثال:

**können**: Er hat gekonnt. هغه کوی شو

③ په هغه فعل کې چې (i) راځي، نو (i) په (u) بدلیږي، مثال:

**wissen**: Er hat gewusst. هغه پوه و

④ په هغه فعل کې چې (ög) راځي، نو (ö) په (o) او (g) په (ch) بدلیږي، مثال:

**mögen**: Er hat gemocht. د هغه زړه کېدو

**Übung:** Perfekt der Modalverben

Bilden Sie die Perfektformen. Schreiben Sie die Sätze neu und setzen Sie die Prädikate dabei ins Perfekt!

1. Das mag ich nie. دا زما هېڅکله نه خوښیږي
2. Du darfst heute nicht bis zwölf Uhr schlafen . تا ته اجازه نشته چې نن د غرمې تر دولس بجو پورې خوب وکړې
3. Er mag morgens keine Eier. د سهار له مخې هګۍ د هغه نه خوښیږي
4. Ich gehe, weil ich noch arbeiten muss. زه ځم، ځکه چې زه باید کار وکړم
5. Er sagte, dass er am Freitag nicht kommen kann. هغه وویل چې هغه د جمعې په ورځ نشي راتلی
6. Du sollst das Haus kaufen. ته باید دا کور په بیه واخلې
7. Morgen will ich nach Hause fahren. سبا زه غواړم چې کور ته ولاړ شم
8. Um zwölf muss ich noch einkaufen gehen. په دولس بجو زه باید سودا اخیستلو ته ولاړ شم
9. Die Gewerkschaft will, dass wir morgen streiken. د کاریګرانو ټولنه غواړي چې مونږ سبا اعتصاب وکړو
10. Ich bin froh, mit meinem Vater in Urlaub fahren zu dürfen. زه خوشحاله یم چې د خپل پلار سره په رخصتۍ تللی شم

11.Willst du das Geld behalten? ته غواړې چې پیسې له ځانه سره وساتې؟
12. Der ausländische Student kann wirklich gut Deutsch.
بهرنی محصل په ریښتیا چې په جرمني ژبه ډېر ښه پوهیږي
13. Mein kleiner Bruder mag keine Suppe. زما د کشر ورور ښوروا نه خوښیږي
14. Ich kann dir bei den Hausaufgaben nicht helfen.
زه له تا سره په کورنۍ وظیفه کې څه مرسته نشم کولی
15. Ich möchte dich überreden, die Vokabeln zu lernen.
زه غواړم چې تا ته قناعت درکړم چې ته لغات زده کړې
16. Der Patient muss unbedingt zum Arzt. رنځور باید هرومرو ډاکټر ته ولاړ شي
17. Der Bauer möchte die Sängerin heiraten.
بزګر غواړي چې له سندرغاړې سره واده وکړي
18. Ich brauche nicht zu kommen, weil er kein Auto fahren muss.
زما راتګ ته څه اړتیا نشته، ځکه چې دا ضرور ندی چې هغه موټر وچلوي
19. Er informierte mich, dass ich das nicht darf.
هغه ماته معلومات راکړو چې ماته د دې اجازه نشته
20. Der Verletzte braucht die Hilfe des Arztes. ټپي د ډاکټر مرستې ته اړ دی

**Lösungen:**

1. Das habe ich nie gemocht. دا زما هېڅکله نه خوښېدل.2
Du hast heute nicht bis zwölf Uhr schlafen dürfen.
تا ته اجازه نه وه چې نن د غرمې تر دولس بجو پورې خوب وکړې
3. Er hat morgens keine Eier gemocht. د سهار له مخې هګۍ د هغه نه خوښېدې
4. Ich bin gegangen, weil ich noch habe arbeiten müssen.
زه ولاړم، ځکه چې ما غوښتل چې کار وکړم
5. Er hat gesagt, dass er Sonntag nicht hat kommen können.
هغه وویل چې د یکشنبې په ورځ یې نشوی کولی چې راشي
6. Du hast den Wagen kaufen sollen. تا باید دا موټر په بیه اخیستی وای
7. Am Abend habe ich nach Hause gehen wollen. ماښام ما غوښتل چې کور ته ولاړ شم
8. Um eins habe ich noch einkaufen gehen müssen.
په یوه بجه زه باید سودا اخیستلو ته تللی وای
9. Die Gewerkschaft hat gewollt, dass wir morgen streiken.
د کاریګرانو ټولنې غوښتل چې مونږ سبا اعتصاب وکړو
10. Ich bin froh gewesen, mit meinem Vater in Urlaub fahren zu dürfen.
زه خوشحاله وم چې د خپل پلارسره په رخصتۍ تللې شوم
11. Hast du das Geld behalten wollen? تا غوښتل چې پیسې ځانه سره وساتې؟
12. Der ausländische Student hat schon wirklich gut Deutsch gekonnt.
بهرنی محصل په ریښتیا چې په جرمني ژبه ډېر ښه پوهېدو
13. Mein Vater hat keine Suppe mehr gemocht. زما د پلار نور ښوروا نه خوښېدله
14. Ich habe dir bei den Hausaufgaben nicht helfen können.
ما له تا سره په کورنۍ وظیفه کې څه مرسته نشوه کولی
15. Ich habe dich überreden wollen, die Vokabeln zu lernen.
ما غوښتل چې تا ته قناعت درکړم چې ته لغات زده کړې
16. Der Patient hat unbedingt zum Arzt gemusst. رنځور باید هرومرو ډاکټر ته تللی وای

17. Der Bauer hat die Sängerin heiraten wollen.
بزګر غوښتل چې له سندرغاړې سره واده وکړي
18. Ich habe nicht zu kommen brauchen, weil er kein Auto hat fahren müssen.
زما راتګ ته څه اړتیا نه وه، ځکه چې دا ضرور نه وو چې هغه باید موټر چلولی وای
19. Er hat mich informiert, dass ich das nicht gedurft habe.
هغه راته معلومات راکړو چې ما ته د دې اجازه نه وه
20. Der Verletzte hat die Hilfe des Arztes gebraucht. ټپي د ډاکټر مرستې ته اړ و

# Das Prädikat

(Prädikat) په یوې جملې کې ګرادان شوي فعل ته وایي. د هر فعل مرکزي رول په (Prädikat) څرګندول کیږي. دا په دې مانا چې سړی د (Prädikat) په مرسته د یوې جملې په مانا او مطلب پوهیدی شي. په یوه بشپړه جمله کې تل لږ تر لږه یو فعل یا (Prädikat) وي. یو (Prädikat) له هغه شان فعل نه جوړیدی شي چې یوه برخه او یا دوه برخې ولري، دا مهمه نده چې دا فعل په اوسنې حالت کې دی او که په پخواني حالت کې. مثال:

| | |
|---|---|
| einteiliges Prädikat یو برخه ایز فعل | Ich esse einen Apfel. زه یوه مڼه خورم |
| mehrteiliges Prädikat څو برخه ایز فعل | Er geht gerne im Wald spazieren. په ځنګله کې چکر وهل د هغه خوښیږي |

په پورتنی لومړی جمله کې (esse) او په دوهمه جمله کې (geht spazieren) د جملې فعل یا (Prädikat) دی.

**Übungen:**

Setzen Sie die passenden Verbformen in die Lücken!
د دې جملو په تشو ځایو کې تاسو د فعل صحیح ګردان ولیکئ!
1. Ich ………….. im Garten die Vögel. (beobachten) زه په باغ کې د مرغانو ننداره کوم
2. Sie …………… gern Reis. (essen) وریجې د هغې ډیرې خوښیږي
3. Süßigkeiten ………….. allen Kindern immer. (schmecken)
خواږه ټولو ماشومانو ته تل خوند ورکوي
4. ………….. du mir bei den Hausaufgaben? (helfen)
ته له ما سره په کورنی وظیفه کې مرسته کوې؟
5. ………….. Sie einen Satz im Präsens? (bilden) تاسو په حال کې یوه جمله جوړه کړئ
6. Was für ein Buch ………….. du gerade? (lesen) ته دمګړی څه شان کتاب لولې؟
7. Er ………….. nicht auf meine Frage. (antworten) هغه زما پوښتنې ته ځواب نه راکوي
8. ………….. du mich morgen bis acht Uhr schlafen? (lassen)
ته ما سبا تر اته بجو پورې خوب ته پریږدې؟
9. Du ………….. auf meinem Stuhl. (sitzen) ته زما په چوکی ناست یې
10. ………….. euch auf den Boden. (setzen) تاسو په ځمکه کېنئ
11. Wo ……….. ihr eure Jacken? (trocknen) تاسو خپلې کرتی چیرته وچوئ؟
12. Er ………….. die Tür ohne Schlüssel. (öffnen) هغه دروازه بې کیلي خلاصوي

13. Mein Bruder ………….. Physik studieren. (wollen)
زما وروړ غواړي چې د فزيك تحصيل وكړي
14. Die Schülerin………….. gerade mit dem Lehrer. (sprechen)
زده کوونکې دمګړی د ښوونکي سره خبرې کوي
15. Du ………….. bestimmt, wie man hier ein Zimmer ………….. (wissen, finden).
ته هرورمرو پوهيږې چې دلته يوه کوټه څنګه پيدا کيږي
16. Wie ………….. der große Mann? (heißen)
دا جګ سړی څه نوميږي؟
17. Wir ………….. das Basketballspiel im Fernsehen. (sehen)
مونږ د باسکټبال لوبه په ټلويزيون کې ګورو
18. Kleine Kinder ………….. nicht so lange fernsehen. (dürfen)
وړو ماشومانو ته اجازه نشته چې دومره ډېر ټلويزيون وګوري
19. Ein kleines Kind ………….. schon um acht Uhr zu Bett gehen. (müssen)
يو وړوکی ماشوم  بايد په اته بجو ويده شي
20. Wann ………….. Sie  zu Bett? (gehen)
تاسو څو بجې ويده کيږئ؟
21. ………….. du auf dem Sofa oder im Bett? (schlafen)
ته په کوچ باندې ويده کيږې او که په کټ کې؟
22. Pass auf, ein Dieb ………….. dein Fahrrad. (stehlen)
پام کوه، يو غل ستا بايسکل غلا کوي
23. ………….. ihr die Bäume da drüben? (sehen)
تاسو  هغه ونې هلته وينئ؟
24. Jetzt ………….. er mit seinem Rad in die Schule.  (fahren)
هغه اوس زما په بايسکل له دې ځايه ځي
25. Dort  …………..  dich niemand …….. (festhalten)
هلته هېڅ څوك تا ټينګ نه نيسي
26. ………….. nicht hinter mir her!  (laufen)
ته ما پسې منډې مه وهه

**Lösungen:**

1. beobachte  2. isst  3. schmecken  4. hilfst  5. bilden  6. liest  7. antwortet  8. lässt 9. sitzt  10. setzt  11. Trocknet  12. öffnet  13. will  14. spricht  15. weiß…findet 16. heißt  17. sehen  18. dürfen  19. muss  20. gehen  21. schläfst  22. stiehlt 23. seht  24. fährt …. weg  25. hält …… fest  26.  lauf

# Trennbare und untrennbare Verben
# بېلېدونکي يا دوه برخې کېدونکي فعلونه، نه بېلېدونکي فعلونه

ځينې فعلونه شته چې د فعل په مخکې يو بل څه يا يو څو نور توري ورسره تړل شويدي چې دې تړل شوې برخې ته په پښتو کې (مختاړی)، په جرمني ژبه کې (Vorsilbe) او په لاتيني ژبه کې (Präfix) وايي. کله چې له داسې فعلونو سره يو مختاړی يوځای شو، نو د دې فعل مانا بالکل بدليږي او له دې فعل نه بل فعل جوړيږي چې د اصلي فعل سره څه اړه نلري. دا شان فعلونه لږ او ډېر په پښتو کې هم شته. د بېلګې په توګه که سړی د (کول) فعل ته وګوري، نو مانا يې ځرګنده ده چې (يو څه کول، لکه کار کول، خوب کول) او داسې نور. که چېرته له (کول) فعل نه مخکې يو مختاړی لکه (ور) ورسره يوځای شي، نو ورنه به جوړ شي: (ور +  کول = ورکول). نو په دې ډول د (ورکول) فعل له (کول) سره بيا څه اړيکې نلري، او مانا يې ده (يوچاته يو څه ورکول). همدا شان کله چې د (کېدل) فعل ته نظر وکړو، نو مانا يې ده : (يو

څه کېدل، لکه ښه کېدل، ناروغ کېدل او داسې نور). نو کله چې د (کېدل) سره (ور) یوځای شي، نو ورنه به جوړ شي: (ور + کېدل = ورکېدل). نو په دې ډول (ورکېدل) د (کېدل) سره بیا څه اړیکې نلري، چې مانا یې ده (له یوچانه یو شی ورکېدل یا مفقودېدل).
په جرمني ژبه کې داسې مختاړي بې شماره ډېر دي. مثال: که د (لټول = suchen) د فعل په مخ کې دوه نور توري، لکه (be) ورسره وتړل شي ي نو د (suchen) نه به جوړ شي (besuchen) چې د (besuchen) مانا ده (د یو چا لیدو ته ورتلل).

| | |
|---|---|
| suchen یو څوك یا یو شی لټول | be + suchen = besuchen د یو چا لیدو ته ورتلل |

د ګردان په وخت دا مختاړی ورنه نه بېلیږي، یعنې دا چې دا فعل دوه برخې نه کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich besuche dich heute oder morgen. | زه نن یا سبا ستا لیدو ته درځم |

خو ځینې فعلونه شته چې د ګردان په وخت هغه مختاړي ورنه بېلیږي. په جمله کې د استعمال په وخت کې لومړی د فعل لومړنی برخه او د جملې په پای کې مختاړی یې راځي. مثال: که له (kommen) فعل سره (an) یو ځای شي نو ورنه به جوړ شي:

| | |
|---|---|
| kommen راتلل | an + kommen = ankommen یو ځای ته رسېدل |

نو د ګردان په وخت مختاړی یې له فعل نه هیسته کیږي او بیا د جملې په پای کې لیکل کیږي، یعنې په دې ډول:

| | |
|---|---|
| Er kommt morgen oder übermorgen in Berlin an. | هغه سبا یا بل سبا برلین ته رسیږي |

په پورتنۍ جمله کې د (ankommen) د فعل لومړی برخه، یعنې (kommt) د جملې په سر کې او مختاړی یې، یعنې (an) د جملې په پای کې راغلی دی. د داسې دوه برخه ایزو لغاتو اصلي برخه په فشار یا په تآکید لوستل کیږي. د لوړي سویې په ډکشنریو کې هغه توری چې په فشار لوستل کیږي د هغوی لاندې یا یو ټکی او یا یوه کرښه لیکل شوي وي چې په لاندې برخه کې لیدل کیږي:
(besuchen) دلته فشار په (u) راځي نو ځکه لاندې یې یوه کرښه لیکل شوې ده، یعنې: u
هغه فعلونه چې مختاړی ورنه بیلیږي نو د لوستلو په وخت فشار هم په لومړی برخه یا په مختاړي راځي چې په ښو ډکشنریو کې د دې توري لاندې یا یو ټکی وي او یا یوه کرښه، په لاندې ډول: (ạnkommen).
څنګه چې دلته لیدل کیږي د (a) لاندې یو ټکی دی، یعنې (ạ) چې د لوستلو په وخت (a) لنډ لوستل کیږي خو په ډېرفشار. دا چې کوم مختاړي له فعل نه بیلیږي او کوم مختاړي نه بیلیږي، په لاندې برخه کې تشریح کیږي.

**له فعل نه نه بېلېدونکي مختاړي:**

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| be- | emp- | ent- | er- | ge- | hinter- | miss- | ver- | zer- |

| Untrennbare Verben<br>هغه فعلونه چې مختاړي ورنه نه بېلیږي | |
|---|---|
| bezahlen د یو شي پیسې ورکول | hinterlassen یو چاته پرېښودل، پرېښودل |
| Er bezahlte das Buch.<br>هغه د کتاب پیسې ورکړې | Er hinterließ eine Frau und drei Kinder.<br>له هغه نه یوه مېرمن او درې ماشومان پاتې شول |

| | |
|---|---|
| entdecken د یو شي توصیه کول | misslingen له یو چانه یو څه خرابیدل |
| Wer endeckte Amerika?<br>امریکه چا کشفه کړه | Zurzeit misslingt mir alles.<br>په دې وختو کې له مانه هرڅه خرابیږي |
| empfehlen د یو شي توصیه کول | missverstehen په یوې موضوع غلط پوهیدل |
| Ich kann dir dieses Restaurant empfehlen.<br>زه درته ددې رستوران سپارښتنه کوی شم | Du hast mich missverstanden.<br>ته زما په خبرو غلط پوه شوی |
| erzählen کیسه کول، قصه کول | verkaufen خرڅول |
| Erzähl mir eine Geschichte.<br>ته ماته یوه کیسه ووایه | Willst du dein Auto verkaufen?<br>ته خپل موټر غواړې چې خرڅ کړې؟ |
| gehören یو شی د یوچا اوسیدل | zerreißen شکول، غوځول، څیرې کول |
| Wem gehört dieses Haus?<br>دا کور د چا دی؟ | Sie zerriss das Bild in kleine Stücke.<br>هغې عکس توټه توټه کړو |

هغه مختاړي چې د ګردان په وخت د فعل نه هم بیلیدی شي او هم ورسره نښتې پاتې کیدی شي یعني ورنه نه بیلیږي، دا دي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| durch- | über- | um- | unter-, | wieder- | wider- |

ځینې فعلونه شته چې هغه په عین وخت کې بېلېدونکي او نه بېلېدونکي دي، خو دواړه په یو شان لیکل کیږي، خو د بېلېدلو په وخت یوه مانا لري او د نه بېلېدو په وخت بله مانا. له بلې خوا ګردان یې هم بل شان دی، چې داسې فعلونه به په لاندې جدول کې وګورو:

| هغه فعلونه چې مختاړي ورنه نه بیلیږي<br>Untrennbare Verben | هغه فعلونه چې مختاړي ورنه نه بیلیږي<br>Trennbare Verben |
|---|---|
| *übersetzen, er übersetzt, übersetzte, hat übersetzt* یو شی له یوې ژبې نه بلې ژبې ته ژباړل، ترجمه کول | *übersetzen, er setzt über, setzte über, hat übergesetzt* یو څوک د سیند یا د بحر له یوې غاړې نه بلې غاړې ته تیرول |
| Ich habe den Roman übersetzt.<br>ما ناول وژباړو، ناول مې ترجمه کړو | Der Fährmann *setzte* uns ans andere Ufer *über*. بیړۍ چلوونکي موږ د سیند له یوې غاړې نه هغه بلې غاړې ته تیر کړلو |
| *umfahren, er umfährt, umfuhr, hat umfahren*<br>د یو ځای له ډډو یا له شاوخوا نه تیریدل | *umfahren, er fährt um, fuhr um, hat umgefahren* یو څوک یا یو شی په موټر وهل او په مخکه غورځول |
| Wir haben die die Stadt umfahren.<br>موږ د ښار له څنګ یا له شاوخوا نه تیر شولو | Das Auto *fuhr* einen Mann *um*.<br>یو سړی موټر ووهو |
| Sie sollen den Verkehrspolizisten umfahren und nicht umfahren!<br>تاسو باید پخپل موټر د ترافیکي پولیس له شاوخوا نه تاو شئ او ترافیکي پولیس ونه وهئ | Sie sollen den Polizisten umfahren und nicht *umfahren!*<br>تاسو باید موټر د پولیس له ډډې نه تاو کړئ او داسې نه چې پولیس په موټر ووهئ |
| Er hat die Insel umfahren.<br>هغه د ټاپو له شاوخوا نه راتاو شو | Pass auf, dass du beim Überqueren der Straße nicht *umgefahren* wirst. |
| Er hat den See mit dem Rad umfahren.<br>هغه د لوی ډنډ له شاوخوا نه په بایسکل راتاو شو | ته پام وکړه چې د سړک نه په تیریدو کې کوم موټر تا ونه وهي |

| | |
|---|---|
| *wiederholen, er wiederholt, wiederholte, hat wiederholt*<br>یو شی تکرارول، بیا خلي کول | *wiederholen, er holt wieder, holte wieder, hat wiedergeholt*<br>یو شی بیا راوړل، بېرته راوړل |
| Er wiederholte den Satz.<br>هغه جمله بیا وویله، هغه جمله تکراره کړه | Er *holte* den Ball *wieder*.<br>هغه توپ بیا راوړ، توپ یې بېرته واخیست |
| *durchgehen, er durchgeht, durchging, hat durchgangen*<br>د یو شي له مینځه په قدم وهلو تېرېدل | *durchgehen, er geht durch, ging durch, ist durchgegangen*<br>د یو شي له مینځه تېرېدل |
| Ich habe den Wald durchgangen.<br>زه د ځنګله له مینځه په قدم وهلو تېر شوم | Das Wasser *geht* durch meine Schuhe *durch*. اوبه زما له بوټانو نه تېرېږي |
| *überlaufen, er überläuft, überlief, hat überlaufen*<br>په منډه له یوه ځایه تېرېدل، له یوه حده اوښتل | *überlaufen, er läuft über, lief über, ist übergelaufen*<br>د یو شي له سر نه اوښتل او لاندې تویېدل |
| Er hat die Linie überlaufen.<br>هغه په منډه له کرښې نه تېر شو | Das Wasser *läuft* gleich *über*. اوبه نږدې دي چې له سره واوړي او لاندې تویې شي |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | سرې څه پوه شي چې له یو فعل نه مختاړی یې ورنه بېلېږي او که نه بېلېږي؟ |
| ځواب | دا دې پورې اړه لري چې د لوستلو په وخت په کوم ځای فشار راځي، په لاندې ډول: |

① که چېرته مختاړی په فشار ولوستل شي، نو بیا د ګردان په وخت مختاړی له فعل نه بېلېږي.
② که چېرته اصلي فعل په فشار ولوستل شي، نو بیا د ګردان په وخت مختاړی له فعل نه نه بېلېږي.

پاتې نور ټول مختاړي چې له فعل نه بېلېدونکي دي، د بېلګې په توګه په لاندې برخه کې لیکل کېږي:

| ab- | an- | auf- | aus- | ein- | empor- | vorbei- | zurück- | fest- | frei- | hoch- |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

| immer trennbare Verben هغه فعلونه چې مختاړي ورنه تل بېلېږي | |
|---|---|
| *abfahren* د یو موټر حرکت کول | Der Bus *fährt* gleich *ab*.<br>سروېس په دې لنډو شېبو کې حرکت کوي |
| *ankommen*<br>د موټر یا د اورګاډي یو ځای ته رسېدل | Der Zug *kommt* um ein Uhr *an*.<br>اورګاډی په یوه بجه رسېږي |
| *einstellen*<br>یو څوک په کار کې نیول، مقررول | Die Firma *stellt* 20 neue Arbeiter *ein*.<br>کمپنۍ شل نوي کارګران کار ته نیسي |
| *zurückgeben*<br>یو شی یو چا ته بېرته ورکول | Sie *gab* mir das Buch *zurück*.<br>هغې ما ته کتاب بېرته راکړو |
| *feststellen*<br>معلومول، څرګندول، تشخیصول | Der Arzt *stellte* bei mir eine Erkrankung *fest*.<br>ډاکټر په ما کې یوه ناروغي تشخیص کړه |
| *freihalten* تش ساتل، نیولی ساتل | Er *hält* mir einen Platz *frei*.<br>هغه ما ته یو تش ځای ساتي |

**Übungen:** Bilden Sie Sätze!

1. Der Bus / um acht Uhr / in Rom / <u>ankommen</u>. سروېس په اته بجو روم ته رسېږي
2. Die Schüler aus England / bald wieder / <u>heimfahren</u>.
د انګلستان زده کوونکي په لنډو کې بېرته خپل کور ته ستنېږي

3. Der Direktor / alle Verträge / <u>unterschreiben</u>. مدير ټول قراردادونه لاسليکوي
4. Der Minister / auf alle Fragen der Journalisten / <u>antworten</u>.
وزير د ژورنالستانو ټولو پوښتنو ته ځواب وايي
5. Die Mutter / ihren Kindern / jeden Abend / eine Geschichte / <u>erzählen</u>.
مور هر ماښام خپل ماشوم ته يوه کيسه وايي
6. Der Lehrer / die Fragen der Schüler / <u>beantworten</u>.
ښوونکی د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وايي

7. Die Verwandten / nach langer Zeit / sich <u>wiedersehen</u>.
خپلوان ډېر وخت وروسته يو بل بيا ګوري
8. Die Politiker / über die Benzinpreise / <u>diskutieren</u>.
سياستوال د پټرولو د نرخونو په برخه کې خبرې اترې کوي
9. Die Flasche / Apfelsaft / <u>enthalten</u>. په بوتل کې د مڼو شربت دی
10. Der Schüler / den Aufsatz / <u>durchlesen</u>. زده کوونکی مقاله تر پايه پورې لولي
11. Freitag / wir alle / <u>spazieren gehen</u>. د جمعې په ورځ موږ ټول چکر وهلو ته ځو
12. Wir / euch / morgen / zum Mittagessen / <u>einladen</u>.
موږ تاسو سبا د غرمې ډوډۍ ته مېلمه کوو
13. Der Blinde / ohne fremde Hilfe / die Straße / <u>überqueren.</u>
ړوند له سړك نه بې له پردۍ مرستې تېرېږي
14. Der Arzt / den Patienten / <u>behandeln</u>. ډاکټر د رنځور درملنه کوي
15. Am Abend / die Sonne / im Westen / <u>untergehen</u>.
په ماښام کې لمر په لوېديځ کې ښکته کېږي
16. Die Nachbarn / einen Ausflug / <u>unternehmen</u>. ګاونډيان يوه مېله کوي
17. Der Schüler / die wichtige Textstelle / <u>unterstreichen</u>.
زده کوونکی د مضمون د مهمې برخې لاندې کرښه راکاږي
18. Vor Betreten des Zimmers / man/ <u>anklopfen</u>.
يوې کوټې ته له ننوتو نه مخکې سړی دروازه ټکوي
19. Der Arzt / den Patienten / gründlich / <u>untersuchen</u>. ډاکټر رنځور ډېر دقيق معاينه کوي
20. Der Chef / die Personalgehälter / überweisen.
آمر د پرسونل معاشونه د بانك له لارې لېږي

**Lösungen**:

1. Der Bus kommt um acht Uhr in Rom an.
2. Die Studenten aus England fahren bald wieder heim.
3. Der Direktor unterschreibt alle Verträge.
4. Der Minister antwortet auf alle Fragen der Journalisten.
5. Die Mutter erzählt ihren Kindern jeden Abend eine Geschichte.
6. Der Lehrer beantwortet die Fragen der Schüler.
7. Die Verwandten sehen sich nach langer Zeit wieder.
8. Die Politiker diskutieren über die Benzinpreise.
9. Die Flasche enthält Apfelsaft.
10. Der Schüler liest den Aufsatz durch.
11. Sonntags geht die ganze Familie spazieren.
12. Wir laden euch morgen zum Mittagessen ein.

13. Der Blinde überquert die Straße ohne fremde Hilfe.
14. Der Arzt behandelt den Patienten.
15. Am Abend geht die Sonne im Westen unter.
16. Die Nachbarn unternehmen einen Ausflug.
17. Der Lehrer streicht das falsche Wort  durch.
18. Vor Betreten des Zimmers klopft man an.
19. Der Arzt untersucht den Patienten gründlich.
20. Der Chef überweist die Personalgehälter.

**Übungen**: Setzen Sie das Verb vom Rand als Prädikat in den Satz ein!

| | |
|---|---|
| 1. Wir ……… mit einer schweren Aufgabe ………. | anfangen |
| مونږ په یوې سختې پوښتنې پيل کوو | پېل یا شروع کول |
| 2. Der Junge ………… ein Blatt Papier mit einem Bild. | verteilen |
| هلك یو ه پاڼه کاغذ وېشي چې یو عکس پکې دی | وېشل، تقسیمول |
| 3. Der Lehrer ……… einen Schüler zu Lesen ………… | auffordern |
| ښوونکی د یو زده کوونکي نه د لوستلو غوښتنه وکړه | غوښتنه کول |
| 4. Du ………… den Text nicht ohne Fehler. …… | vorlesen |
| ته مضمون بې له غلطیه نه لولې | په لوړ غږ لوستل |
| 5. Die Kinder ………… ihrer Mutter aufmerksam …… | zuhören |
| ماشومانو خپلې مور ته په ډېر پام غوږ نیولی دی | یو شي ته غوږ نیول |
| 6. Dann ………… der Filmschauspieler die Szene ……. | umformen |
| بیا د فلم لوبغاړي  صحنې ته بل شکل ورکوي | بل شکل ورکول |
| 7. Er  ………… nicht zwischen Spiel und Ernst. | unterscheiden |
| هغه د لوبې او جدیت ترمینځ توپیر نکوي | فرق کول، توپیرول |
| 8. Hier  ………… ich mich nicht ….  زه دلته بلد نه یم | auskennen |
| | په یو ځای کې بلد اوسېدل |
| 9. Er   ………… alles zu  هغه په هرڅه اعتراف کوي. | zugeben |
| | اعتراف کول |
| 10. Er bricht seine Reise ab.  هغه خپل سفر بند کړو | abbrechen |
| | قطع کول، غوڅول |
| 11. Der Schüler ……… die Tafel …… زده کوونکی تخته پاکوي | abwischen |
| | پاکول |
| | abschreiben |
| 12. Er ………… die Aufgabe von mir ……. | د یو شي له مخې لیکل |
| هغه سوال زما له مخې لیکي | |
| 13. Bitte ………… Sie die Verleumdungen. | unterlassen |
| تاسو مهرباني وکړی او تورونه پرېږدئ | یو شی پرېښودل |
| 14. ………… mich Morgen …….  ته ماته سبا ټېلفون وکړه | anrufen |
| | یو چاته ټېلفون کول |

**Lösungen:**

1. Wir *fangen* mit einer schweren Aufgabe *an*.
2. Der Junge *verteilt* ein Blatt Papier mit einem Bild.

3. Der Lehrer *fordert* einen Schüler zu Lesen *auf*.
4. Du *liest* den Text nicht ohne Fehler *vor*.
5. Die Kinder *hören* ihrer Mutter aufmerksam *zu*.
6. Dann *formt* der Filmschauspieler die Szene *um*.
7. Er *unterscheidet* nicht zwischen Spiel und Ernst.
8. Hier *kenne* ich mich nicht *aus*.
9. Ein Student *beklagt sich* über die vielen grammatischen Begriffe.
10. Wir *beschäftigen uns* mit Grammatik, denn sie erleichtert uns das Lernen einer Fremdsprache.
11. Der Schüler *wischt* die Tafel *ab*.
12. Er *schreibt* die Aufgabe von mir *ab*.
13. Bitte *unterlassen* Sie die Verleundungen.
14. *Ruf* mich Morgen *an*.

## Konjugation von Hilfsverben د مرستندويو فعلونو ګردان

### ① Konjugation des Hilfsverbs „haben"

| Person<br>شخص | Präsens<br>اوسنی وخت | Präteritum<br>مطلقه ماضي |
|---|---|---|
| ich زه | habe لرم | hatte (ما) درلود، درلودل |
| du ته | hast لرې | hattest (تا) درلود، درلودل |
| er/sie/es هغه | hat لري | hatte (هغه، هغې) درلود، درلودل |
| wir مونږ | haben لرو | hatten (مونږ) درلود، درلودل |
| ihr تاسو | habt لرئ | hattet (تاسو) درلود، درلودل |
| sie هغوی | haben لري | hatten (هغوی) درلود، درلودل |

Beispielsätze:

1. Vor einem Jahr hatte ich einen Hund. — یو کال مخکې ما یو سپی درلود
2. Du hattest gestern keine Zeit. — تا پرون وخت نه درلود
3. Er hatte bei dem Unfall viel Glück. — په دې ټکر کې د هغه ډیره طالع وه
4. Wir hatten heute Morgen keinen Unterricht. — نن سهار مونږ درس نه درلود
5. Hattet ihr dafür kein Geld? — د دې لپاره تاسو پیسې نه درلودې؟
6. Gestern hatten sie beide Kopfschmerzen. — پرون د هغوی دواړو سر خوږېدو

| Person<br>شخص | Perfekt<br>نږدې ماضي | Plusquamperfekt<br>لیرې ماضي |
|---|---|---|
| ich زه | habe gehabt درلودلی دی | hatte gehabt (ما) درلودلي وو |
| du ته | hast gehabt درلودلی دی | hattest gehabt (تا) درلودلي وو |

| | | |
|---|---|---|
| er/sie/es هغه | hat gehabt درلودلی دی | hatte gehabt (هغه، هغې) درلودلي وو |
| wir مونږ | haben gehabt درلودلی دی | hatten gehabt (مونږ) درلودلي وو |
| ihr تاسو | habt gehabt درلودلی دی | hattet gehabt (تاسو) درلودلي وو |
| sie هغوی | haben gehabt درلودلی دی | hatten gehabt (هغوی) درلودلي وو |

Beispielsätze:

**Perfekt**

1. Ich habe dafür kein Geld gehabt. د دې لپاره ما پیسې نه لرلې (درلودلې)
2. Hast du für das Konzert keine Zeit gehabt? د کنسرت لپاره تا وخت نه لرلو؟ (درلودلو)
3. Er hat früher mehrere Autos gehabt. هغه پخوا څو موټرونه لرل (درلودل)
4. Wir haben für das Projekt keine Energie gehabt. د پروژې لپاره مونږ انرژي نه لرله
5. Habt ihr gestern keine Zeit gehabt? تاسو پرون وخت نه لرلو؟ (درلودو)
6. Sie haben keine Lösung gehabt. هغوی کوم حل نه لرلو (درلودو)

**Plusquamperfekt**

1. Davor hatte ich nie Angst gehabt. له دې نه ما هېڅکله ډار نه و درلودلی
2. Was hattest du für eine Krankheit gehabt? تا څه شان ناروغي درلودلې وه؟
3. Bei dem Spiel hatte er Pech gehabt. په لوبه کې د هغه طالع بده وه
4. Wir beide hatten bisher nie Fieber gehabt. مونږ دواړو تر اوسه پورې هېڅکله تبه نه وه درلودلې
5. Hattet ihr gestern Bauchschmerzen gehabt. تاسو دواړو پرون نس خوږی درلودلی و؟
6. Sie hatten nie eine Lösung für das Problem gehabt. هغوی د دې ستونځې لپاره هېڅکله کوم حل درلودلی نه و

| | |
|---|---|
| پاملرنه | د (haben) د فعل د اوسني وخت یا حال گردان په دې ډول کیږي چې د (haben) د فعل د ډډ یا د فعل مرکزي برخې یعنې د (hab) سره د پایلي توري یا د وروستی برخې توري یو ځای کیږي. دوهم او دریم کس یعنې (du + er, sie, es) یوه استثنآ ده چې تش (ha) د پایلي تورو سره یوځای کیږي، په دې ډول: (ha + t = hat). د پایلي یا وروستی برخې توري دا دي: |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ich: -e | (hab + -e) = habe | wir: -en | (hab + -en) = haben |
| du: -st | (ha + -st) = hast | ihr: -t | (hab + -t) = habt |
| er, sie, es: -t | (ha + -t) = hat | sie: -en | (hab + -en) = haben |

د (haben) د فعل د مطلق پخواني وخت یا مطلقي ماضي د گردان لپاره له (hat) سره د پایلي توري یا د وروستی برخې توري یوځای کیږي چې پورته لیکل شوي دي.

د (haben) د فعل د نږدې پخواني وخت (Perfekt) او د لیرې پخواني وخت (Plusquamperfekt) گردان په دې ډول کیږي چې د (haben) د فعل گردان سره (gehabt) یوځای کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Perfekt | ich habe gehabt. ما درلودلی دی |
| Plusquamperfekt | ich hatte gehabt. ما درلودلی وو |

**Übungen**:

1. Ich …………. ein Haus. زه یو کور لرم
2. Wir ………… heute Schule. مونږ نن ښوونځي لرو (باید ښوونځي ته ولاړ شو)
3. Das Gemüse ………… sehr viele gute Inhaltsstoffe. په سابو کې ډېر محتويات دي
4. Er ………… hier nichts zu befehlen. هغه دلته د امر کولو څه واك او اختيار نلري
5. …………. du etwas gegen mich? ته له ما سره څه ضديت لرې؟ زما په ضد يې ؟
6. Du ………….. es gut. ستا حال ښه دی، وضع دې ښه ده، ژوند دې ښه دی
7. Früher ………….. wir keine Fremdsprachen in der Schule.
پخوا مونږ په ښـوونځي د پردو ژبو مضمون نه درلودو
8. Den Dieb ……….. sie schon. هغوی غل نيولی دی
9. Damals …………. er niemanden zur Hilfe.
هغه وخت له هغه سره د مرستې لپاره هيڅ څوك نه وو
10. Bei diesem Unfall …………. er sehr viel Glück gehabt.
په دې ټکر کې د هغه زښته ډېره طالع وه
11. Gestern ………….. wir schlechtes Wetter. پروم هوا خرابه وه
12. Bei dem Streit ………….. er seine Nachbarn auf seiner Seite.
په دې شخړه کې د هغه ګاونډيان د هغه په پلو وو
13. ………… du nichts zu tun? ته څه کار نلرې؟
14. Vor vielen Jahren (Plusquamperfekt)…………. Sie Glück gehabt.
ډېر کلونه پخوا ستاسو ډېره طالع وه
15. Nur ihr …………… Pech gehabt. تش ستاسو طالع بده وه، تش تاسو بې طالع وئ
16. Wir ………….. solche Unfälle in der Vergangenheit gehabt.
په تېر وخت کې مونږ داسې ټکرونه کړي وو
17. So etwas ……….. heutzutage keine Bedeutung mehr.
داسې څه نن ورځ څه اهميت نلري
18. Frauen ……….. eine Nase dafür.
ښځې په دې ډېر ښه پوهېږي، ته به وايې چې په پوزه يې بويولی شي (اصطلاح)
19. Davon ………… ich doch nichts! له دې نه ما ته څه ګټه نه رسيږي (اصطلاح)
20. Du ………….. wohl nicht alle beisammen! ستا ماغزه خراب دي، ته لېونی يې (اصطلاح)

**Lösungen**:

1. habe 2. haben 3. hat 4. hat 5. hast 6. hast 7. hatten 8. haben 9. hatte 10. hatten 11. hatte 12. hatte 13. hast 14. hatten 15. hattet 16. haben 17. hat 18. haben 19. habe 20. hast

**Konjugation des Hilfsverbs „sein“**

| Person شخص | | Präsens اوسنی وخت | | Präteritum مطلقه ماضي | |
|---|---|---|---|---|---|
| ich | زه | bin | یم | war | وم |
| du | ته | bist | يې | warst | وې |

| | | |
|---|---|---|
| er/sie/es هغه | ist دی | war و |
| wir مونږ | sind یو | waren وو |
| ihr تاسو | seid یاست | wart وئ |
| sie هغوی | sind دي | waren وو |

**Übungen**:

1. Sie .........sehr hübsch. هغه ډېره ښکلي ده
2. Wer ……. du? Ich ……. dein Nachbar. ته څوك يې؟ زه ستا ګاونډی یم
3. Wie ……dein Name? Mein Name ……… Josef. ستا نوم څه دی. زما نوم یوسف دی
4. Was ……… Sie von Beruf? Ich ……… Metzger. ستا مسلك څه دی؟ زه قصاب یم
5. Du siehst müde aus. Wie lange .......... du schon auf?
ته ستړی ستومانه ښکاري. څومره وخت کیږي چې ته له خوبه راڅګ شوی يې؟
6. ………. alle Gäste da? Nein, Jakob …… heute nicht da.
ټول مېلمانه حاضر دي؟ نه يعقوب نن نشته
7. Bei der Hochzeit ……… die ganze Familie beisammen.
په واده کي ټوله کورنۍ یوځای وي
8. Was ……. mit dir los? Du siehst so traurig aus. په تا څه شوي؟ ته داسي غمجن ښکاري
9. ……….. das deine Kinder? Nein, das ………. die Kinder meines Bruders.
دا ستا ماشومان دي؟ نه دا زما د ورور ماشومان دي
10. Wir ……… in Bonn. مونږ په بن کي وو
11. Ich ……….. wirklich krank. زه په رېښتيا ناروغ وم
12. Unsere Tante ……… noch nie in Amerika. زمونږ ترور هیڅکله په امریکه کي نه وه
13. Wo ……… ihr denn damals? تاسو هغه وخت چېرته واست؟
14. Darauf …….. sie so stolz. په دي باندي هغوی دومره ډېر وياړل
15. Wie lange ………. Sie insgesamt in Deutschland?
تاسو مجموعاً څومره وخت په جرمني کي واست؟

**Lösungen:**

1. ist 2. bist 3. ist, ...ist 4. sind . bin 5. bist 6. sind …… ist 7. ist 8. ist 9. sind. sind 10. waren 11. war 12. war 13. wart 14. waren 15. waren

| Person<br>شخص | Perfekt<br>نږدې ماضي | Plusquamperfekt<br>لیري ماضي |
|---|---|---|
| ich زه | bin gewesen وم | war gewesen وم |
| du ته | bist gewesen وې | warst gewesen وې |
| er/sie/es هغه | ist gewesen و | war gewesen و |
| wir مونږ | sind gewesen وو | waren gewesen وو |
| ihr تاسو | seid gewesen وئ، واست | wart gewesen وئ، واست |
| sie هغوی | sind gewesen وو | waren gewesen وو |

Beispielsätze:

**1. Perfekt**

1. Ich bin letztes Jahr in Indien gewesen. تېر کال زه په هندوستان کې وم
2. Bist du vorgestern in der Stadt gewesen? ته ورمه ورځ په ښار کې وې؟
3. Er ist bisher nie krank gewesen. هغه تر اوسه پورې هېڅکله ناروغ شوی ندی
4. Wir sind noch nie in Amerika gewesen. مونږ هېڅکله په امریکه کې نه وو
5. Seid ihr an dem Unfall schuld gewesen? په دې ټکر کې تاسو ګناهګار وئ؟
6. Sie sind damals alle vor Ort gewesen. په هغه وخت کې هغوی ټول هلته حاضر و

**2. Plusquamperfekt**

1. Ich war heute nur einmal in der Stadt gewesen. زه نن تش یو ځل په ښار کې وم
2. Wo warst du gestern gewesen? ته پرون چېرته وې؟
3. Er war gestern den ganzen Tag bei seinem Vater gewesen. هغه پرون ټوله ورځ د خپل پلار سره و
4. Wir waren auch letztes Jahr hier gewesen. مونږ تېر کال هم دلته وو
5. Wart ihr beiden gestern krank gewesen? تاسو دواړه پرون ناروغه وئ؟
6. Sie waren noch nie dort gewesen. هغوی هېڅکله هلته نه وو

**② Konjugation des Hilfsverbs „werden“**

| Person شخص | | Präsens اوسنی وخت | | Präteritum مطلقه ماضي | |
|---|---|---|---|---|---|
| ich | زه | werde | کېږم | wurde | شوم |
| du | ته | wirst | کېږې | wurdest | شوې |
| er/sie/es | هغه | wird | کېږي | wurde | شو |
| wir | مونږ | werden | کېږو | wurden | شو، شولو |
| ihr | تاسو | werdet | کېږئ | wurdet | شوئ |
| sie | هغوی | werden | کېږي | wurden | شول |

**Präteritum**

1. Ich wurde sehr schnell müde. زه ډېر ژر ستړم شوم
2. Du wurdest blasser und blasser. ستا له مخ نه رنګ همداسې تلو او تلو
3. Er wurde zum Helden des Spieles. هغه د لوبې اتل شو
4. Bei der Reise wurden wir alle krank. په سفر کې مونږ ټول ناروغه شولو
5. Wurdet ihr bei dieser Hitze nicht ohnmächtig? په دې ګرمۍ کې تاسو بې هوښه نشوئ؟
6. Bei dieser Explosion wurden sie verletzt.. په دې چاودنه کې هغوی ټپي شول

| Person<br>شخص | Perfekt<br>نږدې ماضي | Plusquamperfekt<br>لیرې ماضي |
|---|---|---|
| ich زه | bin geworden شوی یم | war geworden شوی وم |
| du ته | bist geworden شوی یې | warst geworden شوی وې |
| er/sie/es هغه | ist geworden شوی دی | war geworden شوی و |
| wir مونږ | sind geworden شوي یو | waren geworden شوي وو |
| ihr تاسو | seid geworden شوي یاست | wart geworden شوي وئ ، شوي واست |
| sie هغوی | sind geworden شوي دي | waren geworden شوي وو |

**1. Perfekt**

1. Seit ich viel esse, bin ich sehr dick geworden.
له هغه وخت راهیسي چي زه ډېره ډوډی خورم، ډېر چاغ شوی یم
2. Bist du verrückt geworden? ته لیونی شوی یې؟
3. Er ist beim Laufen die Nummer eins geworden. په منډه کي هغه اول نمره شو
4. Nun sind wir alt geworden. اوس مونږ زاړه شوي یو
5. Seid ihr wahnsinnig geworden? ستاسو ماغزه خراب شویدي؟
6. Bei der Kälte sind sie krank geworden. په یخ کي هغوی ناروغه شوي دي

**2. Plusquamperfekt**

1. Bei diesem Ereignis war ich wahnsinnig geworden.
په دې پیښه کي زما ماغزه خراب شوي وو
2. Warst du damals krank geworden? په هغه وخت کي ته ناروغه شوی وې؟
3. Er war noch nicht ganz 70 Jahre alt geworden, als er starb.
هغه لا بشپړ اویا کلن شوی نه و چي ومړ
4. Wir waren damals durch den Krieg arm geworden.
مونږ هغه وخت د جګړي په وجه بېوزلي شوي وو
5. Wart ihr damals satt geworden? تاسو په هغه وخت کي ماړه شوي وئ؟
6. Sie waren alle krank geworden. هغوی ټول ناروغه شوي وو

**Übungen:**

1. Zurzeit …….. ich sehr schnell müde. په دې وختو کي زه ډېر ژر ستومانه کېږم
2. Jetzt …….. wir aber alle schwach. اوس مونږ ټول ستړي کېږو
3. Er …….. in der Schule sein. هغه به په ښوونځي کي وي
4. Daraus ……. nichts. له دې نه څه نه جوړیږي، دا کار نکیږي
5. Aus nichts ……… nichts. له یو بې ارزښته شي نه څه نه جوړیږي (اصطلاح)
6. Wenn ihr nicht vorsichtig seid, werdet ihr krank. که تاسو پام ونکړئ، نو ناروغه کېږئ
7. Er ……… zum zweiten Male Vater. هغه د دوهم ځل لپاره پلار شو
8. ……. Ihr dafür bestraft? د دې لپاره تاسو ته سزا درکړل شوه؟

9. Wir ……… nie gefragt. له مونږ نه هېڅ پوښتنه ونشوه

10. Ihr …….. dort nicht erwähnt. تاسو هلته یاد نشوئ

11. Bei der Kälte …… ich krank ……….. په دې یخ کې زه ناروغ شوم

12. Du …….. alt ……… ته زوړ شوی یې

13. Sie ……. jetzt berühmt ……… هغوی اوس مشهور شوي دي

14. Das zähe Fleisch ……. jetzt weich …………. دا شخه غوښه اوس پسته شوېده

15. Ich ……. vor 10 Jahren Vater ……….. زه لس کاله مخکې پلار شوی یم

16. Auch du …….. schwach ……….. ته هم کمزوری شوی یې

17. Das …… bis heute noch nicht bekannt ……… دا لا تر اوسه پورې ښکاره شوې نده

18. Das Haus …….. im Laufe der Zeit unbewohnbar ………..
د وخت په تېرېدو سره دا کور نور د اوسېدو نه و

19. Diese Maßnahmen ……… damals notwendig ………….
هغه وخت دا اقدامات ضروري شوي وو

20. An diesem Tag ……. du wild ………… په دې ورځ کې ته وحشي شوی وې

**Lösungen**:
1. werde 2. werden 3. wird 4. wird 5. wird 6. werdet 7. wurde 8. wurdet 9. wurden 10. wurdet 11. bin …… geworden 12. bist …… geworden 13. sind ….. geworden 14. ist …… geworden 15. bin …… geworden 16. bist ……. geworden 17. ist ……. geworden 18. war …… geworden 19. waren ….. geworden 20. warst …… geworden.

| Person<br>شخص | Futur I<br>لومړی راتلونکی وخت | Futur II<br>دوهم راتلونکی وخت |
|---|---|---|
| ich زه | werde werden به شم، شم به | werde geworden sein شوی به یم |
| du ته | wirst werden به شې، شې به | wirst geworden sein شوی به یې |
| er هغه | wird werden به شي، شي به | wird geworden sein شوی به وي |
| wir مونږ | werden werden به شو، شو به | werden geworden sein شوي به یو |
| ihr تاسو | werdet werden به شئ، شئ به | werdet geworden sein شوي به یاست |
| sie هغوی | werden werden به شي، شي به | werden geworden sein شوي به وي |

Futur I

1. Ich werde ein guter Lehrer werden. زه به یو ښه ښوونکی شم

2. Was wirst du nach deinem Studium werden? له تحصیل نه وروسته ته به څه شې؟

3. Es wird heute sehr warm werden. نن به هوا ډېره توده شي

4. Wir werden dadurch bestimmt nicht krank werden.
به دې باندې به مونږ په هېڅ وجه ناروغه نشو

5. Bei diesem Sturm werdet ihr bestimmt krank werden.
په دې طوفان کې به تاسو هرومرو ناروغه شئ

6. Bei einer solchen Tat werden sie bestimmt verhaftet werden.
په دې شان عمل باندې به هغوی هرومرو ونیول شي

Futur II

1. Ich werde in einem Jahr Lehrer geworden sein. زه به په یو کال کي ښوونکی شوی یم
2. Du wirst bald Ingenieur geworden sein. په دي لنډو کي به ته انجنیر شوی یي
3. Jetzt wird er wohl gesund geworden sein. اوس به هغه ښه شوی وي
4. Bei diesem Krach werden wir bald taub geworden sein.
په دې کړنګهار کي به مونږ په لنډو کاڼه شوي یو
5. Werdet ihr bis dahin fertig geworden sein? تر هغه پورې به تاسو خلاص شوي یاست؟
6. Bei diesem Tempo werden sie bald die Nummer eins geworden sein.
په دې سرعت باندې به هغوی په لنډ وخت کي اول نمره شوي وي

**Übungen**:

1. ………. ich eines Tages gesund ………? زه به یوه ورځ روغ شم؟
2. Er ……… Politiker ……….. هغه به سیاستوال شي
3. Du ………. reich ………. ته به شتمن شي
4. Wir ……….  bald so stark ……….., dass niemand uns besiegen kann.
په دې لنډو کي به مونږ دومره قوي شو چي هېڅ څوك به په مونږ برلاسی نشي
5. Ihr ……… morgen danach gefragt …………
سبا به په دې برخه کي له تاسو نه پوښتنه وشي
6. Auf diese Weise ……… Sie nie gesund ……….. په دې ډول به تاسو هېڅکله روغ نشئ
7. Sie …….. alle dick ……….. هغوی به ټول چاق شي
8. Bis dahin ……… ich gesund …..…. …….. تر هغه پورې به زه روغ شوی یم
9. In einigen Jahren …….. du Ingenieur …… .... په یو څو کالو کي به ته انجنیر شوی یي
10. Die Entscheidung …….. in einem Monat rechtswirksam …….. ……..
پرېکړه به په یوې میاشت کي حقوقي بڼې ته رسېدلې وي
11. Dieses Dokument ……… morgen unleserlich …… ……..
دا سند به سبا لوستل کېدی نشي
12. Bei diesem Krach …….. ihr morgen taub …….. ………
په دې کړپ و کړوپ کي به سبا تاسو کاڼه شوي یاست
13. Bei dieser Nachfrage ………. Sie reich ………. ………..
په دې تقاضا باندې به تاسو شتمن شوي یاست
14. Bei dem Wirrwarr ……….. sie alle konfus ……… ………..
په دې ګډوډۍ کي به د هغوی ټولو ماغزه ګډوډ شوي وي

**Lösungen**:

1. werde ……. werden 2. wird …… werden 3. wirst ……. Werden 4. werden …. werden 5. werdet …….. werden 6. werden …… werden 7. werden …… werden 8. werde ……. geworden sein 9. wirst …… geworden sein 10. wird …… geworden sein 11. werden ……. geworden sein 12. werdet geworden sein
13. werden ……. geworden sein. 14. werden geworden sein

# haben und sein + Infinitiv mit „zu“

د دې مبحث لپاره په پښتو کې هم اندول شته او هغه په دې شان دی: کله چې یو کس مهم نه وي بلکې یو کار یا یو عمل مهم وي نو په پښتو کې دا شان ویل کیږي چې :

| |
|---|
| دا کار د کولو دی |

دلته د هیڅ چا نوم نه یادیږي چې څوك څه کوي. یوازینی شی چې مهم دی، هغه دا کار دی چې د کولو دی. بل مثال: (زه باید سبا هلته ولاړ شم). که چېرته (هلته تګ) مهم وي، خو دا مهم نه وي چې څوك هلته ولاړ شي، نو په پښتو کې هم مونږ وایو چې:

| |
|---|
| سبا هلته تګ پکار دی |

داسې مطلبونه په جرمنې ژبه کې لاپسې ډېر کارول کیږي. د بېلګې په توګه کله چې د یو کار په برخه کې داسې نظر ښکاره شي چې : (ډېر څه د حل و فصل کولو دی)، نو دا جمله په جرمنې ژبه کې داسې ویل کیږي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Es | ist | viel | zu | erledigen. |

د داسې جملو د جوړلو قاعده دا ده چې (haben + sein) ګردانیږي او هغه فعل چې باید وشي، د جملې په پای کې په ژوندي ډول، یعني د مصدر په توګه راځي او دمخه یې (zu) لیکل کیږي. په پورتنۍ جمله کې لومړی (sein) ګردان شوی او د جملې په دوهمه برخه کې راغلی (Es ist …). هغه څه چې د کولو دي، یعني (حل و فصل کول = erledigen) د جملې په پای کې په ژوندي ډول لیکل شویدي او دمخه یې (zu) راغلی دی.

د (haben) لپاره یو مثال : کله چې سړی د یو چا په برخه کې وایي چې (هغه دې سمدلاسه ورك شي): له بلې خوا د („haben“ + „sein“ + Infinitiv mit „zu“) نه د (müssen) په مانا ، یعني (یو شی باید کول او یا د یو شي حتمي کېدل) د (müssen) په ځای کار اخیستل کیږي. د بېلګې په توګه کله چې یو چا لپاره وویل شي چې: (دا وحشي او خطرناك ځناور باید ووژل شي). دا جمله په پښتو کې په دې ډول ویل کېدی شي چې:

| |
|---|
| دا وحشي او خطرناك ځناور د وژلو دی |

په پورتنۍ جمله کې په پښتو کې د (باید ووژل شي) په ځای (د وژلو دی) جمله راغله.همدا شان په جرمنې ژبه کې د (Diese Bestie muss getötet werden.) په ځای داسې ویل کېدی شي چې:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Diese | Bestie | ist | zu | erlegen. |

په پښتو کې هم د جرمنې ژبې په شان (یو شی باید وکتل شي) په ځای ویل کېدی شي چې (دا د کتلو دی). دا مطلب ډاکټر اعظم اعظم پخپل یو شعر کې ویلی دی چې هغه دا دی:

| | |
|---|---|
| هر انداز یې دلفریب دی خو زړګیه | دا معصوم معصوم کتل یې د کتو دي |

د (haben) لپاره یو مثال: کله چې سړی یو چا ته وایي چې (هغه باید سمدلاسه له دې ځایه ورك شي). دې ته داسې هم ویل کېدی شي چې: (هغه سمدلاسه له دې ځایه د ورکېدو دی).:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| Er | hat | hier | sofort | zu | verschwinden. |

د ګرامر له اړخه د دا شان جملو جوړول سړي ته يو بل ګرامري مبحث راپه يادوي او هغه د (Modalverben) مبحث دى. کله چي (haben + sein) د مصدر په توګه د جملي په پای کي وکارول شي، نو د (Modalverben) سره پرتله کېدى شي او د (اړتيا يا د ضرورت) او د (اجازه درلودلو) او د (شونتيا يا امکاناتو) په مانا استعماليږي. په لاندي جدولونو کي به په دي هره مانا بېلي بېلي جملي وګورو:

| Notwendigkeit اړتيا، ضرورت | | |
|---|---|---|
| Wir haben noch viel zu tun.<br>زمونږ په مخکي ډېر کار پروت دى | = | Wir müssen noch viel tun.<br>مونږ بايد ډېر کار وکړو |
| Er hat seine Arbeit zu machen.<br>د هغه خپل کار يي د کولو دى | = | Er muss seine Arbeit machen.<br>هغه بايد خپل کار وکړي |
| Ich hatte ein Problem zu lösen.<br>زما په مخکي يوه ستونځه د حلولو وه | = | Ich musste ein Problem lösen.<br>زه مجبور وم چي يوه ستونځه مي حله کړي وای |
| Es ist noch viel zu tun.<br>ډېر کار د کولو دى | = | Es muss noch viel getan werden.<br>ډېر کار بايد وشي |
| Das Formular ist in Blockschrift auszufüllen.<br>دا فورمه د چاپ په تورو د ډکولو ده | = | Das Formular muss in Blockschrift ausgefüllt werden.<br>فورمه بايد د چاپ په تورو ډکه شي |

| nicht dürfen اجازه نه درلودل | | |
|---|---|---|
| Ihr habt euch nicht hier aufzu-halten. ستاسو پاتي کېدل دلته پکار ندي | = | Ihr dürft euch hier nicht aufhalten.<br>تاسو ته اجازه نشته چي دلته پاتي شئ |
| Die Gefahr ist nicht zu unter-schätzen. دي خطر ته په ټيټ نظر د کتو ندي | = | Die Gefahr darf nicht unterschätzt werden. دا خطر بايد سړي ته لږ ښکاره نشي |

| Möglichkeit شونتيا، امکانات | | |
|---|---|---|
| Ich habe diesem Kommentar nichts hinzuzufügen. په دي تبصري کي زه کوم څه د اضافه کولو نلرم | = | Ich kann diesem Kommentar nichts hinzufügen.<br>په دي تبصري کي زه کوم څه نشم اضافه کولی |
| Diesem Kommentar ist nichts hinzuzufügen. په دي تبصري کي کوم څه د اضافه کولو ندي | = | Diesem Kommentar kann nichts hinzugefügt werden. په دي تبصري کي هيڅ شی اضافه کېدی نشي |

| | |
|---|---|
| توضيحات | تاسو به دي ته متوجه شوي ياست چي د (haben … zu) جمله يوه فعاله يا (Aktiv) جمله ده. همدا شان د (ist … zu) جمله يوه غير فعاله يا (Passiv) جمله ده. دا مطلب به يو ځل بيا په جملو کي وګورو. |

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Ein 10 Jahre alter Rasierapparat kann nicht mehr repariert werden.<br>يو لس کاله زوړ د ږيري ماشين سړي بېرته جوړولی نشي<br>Ein 10 Jahre alter Rasierapparat ist nicht mehr zu reparieren.<br>يو لس کاله زوړ د ږيري ماشين د بېرته جوړولو ندی |
| Passiv | Ich will dir nichts sagen. زه نه غواړم چي تا ته څه ووايم<br>Ich habe dir nichts zu sagen. زه تا ته څه د ويلو نه لرم |

**Übungen:** „sein“ + Infinitiv mit „zu“

1. Diese Aufgaben können in der knappen Zeit nicht gelöst werden.
دا وظيفي په دومره لږ وخت کې حلېدی نشي
2. Bist du dir sicher, dass alle Pilze, die du gefunden hast, gegessen werden können? ته متيقن يې چې ټول خربړي چې تا موندلي دي، خوړل کېدی شي؟
3. Diese Bilder können nicht verkauft werden. دا عکسونه خرڅول کېدی نشي
4. Seine Äußerungen waren sehr missverständlich.
د هغه خبرې داسې وې چې سړی پرې غلط پوهېدو
5. Das ist ein Lärm, den man nicht ertragen kann.
دا داسې ټك و ټوك دی چې سړی يې زغملی نشي
6. Das ist ein Konflikt, der nicht gelöst werden kann.
دا داسې يو لانجه ده چې حلېدلی نشي
7. Das sind Freunde, die man nicht trennen kann.
دا داسې ملګري دي چې څوك يې بېلولی نشي
8. Diese Lösung kann nicht akzeptiert werden. دا حل نشي منل کېدی
9. Das ist ein Plan, der nicht realisiert werden kann. دا يو پلان دی چې عملي کېدی نشي
10. Der Vertrag kann nicht gekündigt werden. دا قرارداد فسخ کېدی نشي
11. Eine Wunde, die nicht geheilt werden kann. يو ټپ چې رغېدلی نشي
12. Dieser Fehler kann nicht entschuldigt werden. دا غلطي ببښل کېدی نشي
13. Die Entscheidung der Gegenseite kann durch nichts beeinflusst werden.
د مقابل اړخ په فيصلې باندې هېڅ شی اغېزه نشي کولی
14. Das Wasser des Baches kann nicht getrunken werden.
د دې ويالې اوبه څښل کېدی نشي
15. Der Anzug muss nach den Ferien abgeholt werden.
دا دريشي بايد له رخصتيو نه وروسته يووړل شي

**Lösungen:**

1. Diese Aufgaben sind in der knappen Zeit nicht zu lösen.
دا وظيفي په دومره لږ وخت کې د حلېدو ندي
2. Bist du dir sicher, dass alle Pilze, die du gefunden hast, zu essen sind?
ته متيقن يې چې دا ټول خربړي چې تا موندلي دي، د خوړو دي؟
3. Diese Bilder sind nicht zu verkaufen. دا انځورونه د خرڅولو ندي
4. Seine Äußerungen waren sehr misszuverstehen. د هغه خبرې د غلط پوهېدو وې
5. Dieser Lärm ist nicht zu ertragen. دا ټك و ټوك د زغم وړ ندی
6. Dieser Konflikt ist nicht zu lösen. دا لانجه د حلېدو نده
7. Das sind nicht zu trennende Freunde. دا ملګري له يو بل نه بېلېدونکي ندي
8. Diese Lösung ist nicht zu akzeptieren. دا حل د منلو ندی
9. Das ist ein nicht zu realisierender Plan. دا پلان د عملي کېدو ندی
10. Das ist ein nicht zu kündigender Vertrag. دا قرارداد د فسخ کېدو ندی
11. Das ist eine nicht zu heilende Wunde. دا يو نه رغېدونکی ټپ دی
12. Das ist ein nicht zu entschuldigender Fehler. دا غلطي د ببښني نده
13. Das ist eine durch nichts zu beeinflussende Entscheidung der Gegenseite.
د مقابل اړخ دا فيصله په هېڅ شي باندې د اغېزې لاندې د راوستلو نده

14. Das Wasser des Baches ist nicht zu trinken. د ویالي اوبه د څښلو ندي
15. Der Anzug ist nach den Ferien abzuholen. دا دریښي د رخصتیو نه وروسته د وړلو ده

**Übungen: „haben" + Infinitiv mit „zu"**

1. Kinder sollen ihren Eltern gehorchen. ماشومان باید د خپل مور او پلار اطاعت وکړي
2. Zum Bestehen der Matheprüfung muss man viel lernen.
د ریاضي په ازموینه کې د بریالي کېدو لپاره باید سړی ډېر څه زده کړي
3. In der Mensa dürfen nur Studenten essen.
د محصلینو په کانتین کې تش محصلین ډوډۍ خوړلی شي
4. Ich gehe noch nicht ins Bett, denn ich soll noch einen Brief schreiben.
زه لا اوس نه ویده کېږم، ځکه چې زه باید یو لیك ولیکم
5. Was kannst du mir heute berichten? ته ما ته نن څه احوال راکوی شې؟
6. Der Justizminister darf dem Richter nichts befehlen.
د عدلیې وزیر اجازه نلري چې قاضي ته څه امرونه وکړي
7. Der Arbeiter muss sich bei seinem Chef melden.
کاریگر باید خپل آمر ته مراجعه وکړي
8. Du bist der Vater der Kinder, also musst du für ihren Lebensunterhalt sorgen.
ته د ماشومانو پلار یې، نو ته هغوی ته نفقې ورکولو ته مجبور یې
9. Ich soll zu der Sache nichts sagen, ob ich will oder nicht.
زه باید په دې موضوع کې څه خبرې ونکړم، که زه غواړم او که نه
10. Alle Bürger müssen sich an die Gesetze halten. ټول خلك باید د قانون مراعات وکړي

**Lösungen:**

1. Kinder haben ihren Eltern zu gehorchen. ماشومان به د مور او پلار اطاعت کوي
2. Zum Bestehen der Matheprüfung hat man viel zu lernen.
د ریاضي په ازموینه کې د بریالي کېدو لپاره ډېرڅه د زده کولو دي
3. In der Mensa haben nur Studenten zu essen.
د محصلینوپه کانتین کې تش محصلین ډوډۍ خوری شي
4. Ich gehe noch nicht ins Bett, denn ich habe noch einen Brief zu schreiben.
زه لا اوس نه ویده کېږم، ځکه زه باید یو لیك ولیکم
5. Was hast du uns zu berichten? ته پرون له سفر نه بېرته راغلې. ته مونږ ته څه د ویلو لرې؟
6. Der Justizminister hat dem Richter nichts zu befehlen.
د عدلیې وزیر قاضـي باندې څه امرونه نشي کول
7. Der Arbeiter hat sich bei seinem Chef zu melden.
د کاریگر له خوا خپل آمر ته مراجعه د کولو ده
8. Du bist der Vater der Kinder, also hast Du für ihren Lebensunterhalt zu sorgen.
ته د ماشومانو پلار یې، نو ته به د ماشومانو نفقه ورکوې
9. Ich habe in der Sache nichts zu sagen, ob ich will oder nicht.
په دې موضوع کې زه څه د ویلو نلرم، که زه غواړم او که نه
10. Alle Bürger haben sich an die Gesetze zu halten. قانون د ټولو خلکو له خوا د منلو دی

# Passiversatz

د دې لپاره چې د ګرامر په دې مبحث ښه پوه شو، نو لومړی به د پښتو دا لنډۍ وګورو:

| سړی په رنګ نه سړی کېږي | سړی هغه دی چې یې خوی د سړي وینه |
|---|---|

که پورتنۍ لنډۍ ته ښه ځیر شو، نو ګورو چې هلته لیکل شوي دي چې (سړی). خو دلته د کوم خاص سړي نوم ندی لیکل شوی. په دې چې د کوم چا نوم ندی لیکل شوی، نو څرګندده چې له (سړي) نه مطلب کوم خاص سړي نه، بلکې ټول خلك، یعني ښځې هم بکې شاملې دي. دا چې په پورتنۍ پښتو لنډۍ کې ولې د کوم چا نوم ونه لیکل شو، علت دا دی چې دلته کوم کس مهم ندی، بلکې چلند او عمل مهم دی او هغه (ښه خوي) دی. په جرمني ژبه کې هم داسې جملې شته چې پکې کوم کس مهم نه وي، بلکې عمل مهم وي چې هلته هم لکه د پښتو په شان له (سړی) نه کار اخیستل کیږي چې په جرمني ژبه کې ورته (man) وايي. اوس به دا مطلب په لاندې برخه کې د ګرامر په ژبه وګورو.

په لغوی مانا (Passiversatz) دې ته وايي چې د (Passiv) په ځای له بل څه نه کار واخیستل شي. د دې ګرامري برخې هدف څه دی؟ ولې د (Passiv) یا غیر فعال په ځای بل څه کارول کیږي؟ د (Passiv) یا غیر فعال په ځای څه کارول کیږي؟ او ولې بل څه کارول کیږي؟

ځواب دا دی چې کله کله په یو کار کې د هغه کار کوونکی هیڅ مهم نه وي. مهم دا وي چې هغه څه عمل کوي او یا د څه هدف لپاره یو کار کوي. نو په دې وجه په داسې جملو کې د یو کار کوونکی هیڅ نه یادیږي. نو کله چې د یو کار کوونکی یا فاعل یاد نه شو، نو څوك یادیږي؟ څرګندده چې د فاعل په ځای مفعول یا په بل عبارت د (Aktiv) په ځای (Passiv) استعمالیږي. خو کله کله د ډېر مفعول یادول او یا په بل عبارت د ډېر (Passiv) جوړولو باندې ډېرې جملې بې خونده کیږي. نو د دې لپاره چې په جملو کې لږڅه بدلون راشي، نو د (Passiv) په ځای (Aktiv) استعمالیږي. له بلې خوا که (Aktiv) جمله جوړه شي، نو په دې کې د یو کار کوونکی یا فاعل بیا هم یادیږي چې دا کار د دې ګرامري مبحث خلاف کار دی، ځکه چې پخپله د کار کوونکی یا فاعل مهم ندی او اصلاً باید هیڅ یاد نشي. که بیا فاعل یاد نشي او کار یاد شي، نو بیا ورنه (Passiv) جوړیږي. نو چاره څه ده؟ د دې خبرې د ښه پوهېدو لپاره به یو مثال وګورو:

| Freitags trinkt Josef um 16.00 Uhr eine Kanne Tee.<br>د جمعې په ورځو کې یوسف د مازدیګر په څلور بجو یو چاینك چای څښي |
|---|

پورتنۍ جمله (Aktiv) جمله ده. په دې جملې کې یوسف د جملې فاعل دی، نو په دې وجه له ټولو نه مهم کس دی چې نوم یې یادیږي چې یوسف د مازدیګر په څلور بجو څه کوي. که چېرته د یوسف اهمیت لیرې کړی شي، نو د یوسف نوم به هیڅ یاد نشي او دومره به وویل شي چې د مازدیګر په څلور بجو یو چاینك چای څښل کیږي. دا جمله نو اصلاً هیڅ یو واقعي فاعل نلري (تش ګرامري فاعل به ولري). نو دا به یوه (Passiv) جمله وي، په دې ډول:

| Freitags wird um 16.00 Uhr eine Tasse Tee getrunken.<br>د جمعې په ورځو کې د مازدیګر په څلورو بجو یوه پیاله چای څښل کیږي |
|---|

| پوښتنه | څنګه چې د مخه یاده شوه، ډېرې (Passiv) جملې خوند نکوي، او په (Aktiv) جمله کې یوسف او یا فاعل یادیږي. نو سړی څنګه یوه جمله جوړه کړي چې له یوې خوا جمله (Aktiv) وي او له بلې خوا فاعل یې مهم نه وي؟ |
|---|---|

| | |
|---|---|
| ځواب | د حل لاره دا ده چې د یوسف په ځای کوم نامعلوم کس یاد شي. خو پوښتنه دا ده چې دا نامعلوم کس څوک دی چې خلك يي نه پيژني؟ دې نامعلوم کس ته په پښتو کې (سړی) او هم (خلك) وايي چې پورته په پښتو لنډی کي یاد شو. نو د نامعلوم فاعل جمله په دې ډول جوړيږي: |

Freitags trinkt man um 16.00 Uhr eine Kanne Tee.
د جمعې په ورځو کې خلك د مازديګر په خلور بجو يو چاينك چای څښې

بله جمله:

| | |
|---|---|
| Jakob hat den Fehler mühelos korrigiert. | يعقوب دا غلطي بې له مشكلاتو اصلاح كړله |

دلته يعقوب د جملې فاعل او مهم کس دی. که د يعقوب اهميت هيسته شي او په جمله کې هيڅ ياد نشي، نو دا جمله به په دې ډول وي:

| | |
|---|---|
| Man hat den Fehler mühelos korrigiert. | دا غلطي بې له مشكلاتو اصلاح شوه |

د دې لپاره چې په جمله کې د (Passiv) په ځای بل څه راوستل شي، نو د دې لپاره مختلف ډولونه موجود دي.

| | |
|---|---|
| پوښتنه | د فاعل د بې اهميت کولو لپاره تش همدا يو (سړی) او يا (man) پکاريږي او که کومه بل لاره هم شته؟ |
| ځواب | دې ته نوري لارې هم شته چې په لاندې برخه کې په بېل بېل دول يادیږي. |

## Unpersönliche Formen „man“ / „jemand“

په دې ډول د (Passiv) په ځای د (سړی man) او یا (کوم څوك jemand) په مرسته جملې جوړېدلې شي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Aktivsatz | Josef putzt gerade die Schuhe.<br>Meriam kocht die Suppe. | يوسف همدا اوس بوټان پاکوي<br>مريم ښوروا پخوي |
| Passiv | Die Schuhe werden gerade geputzt.<br>Die Suppe wird gekocht. | بوټان همدا اوس پاکيږي<br>ښوروا پخيږي |
| Passiversatz man, jemand | Man putzt gerade die Schuhe.<br>Jemand kocht die Suppe. | همدا اوس بوټان پاکول کيږي<br>کوم څوك ښوروا پخوي |

*دا ډول، يعنې (man + jemand) د دوديز ګرامر په اصولو سل په سلو کې ټيك ندی او کېدی شي چې د ځينو جرمني اکاډيمو له خوا يې نيوکه وشي.*
*Man/jemand zählen nicht zu den klassischen Passiversatzformen!*

## Passivumschreibungen mit dem Modalfaktor „können“

هغه جملې چې پکې (können) کارول شوی وي، د (Passiv) په ځای (Aktiv) جمله په دې لاندې ډول جوړيږي. څرګنده ده چې د (können) لغت ترېنه هيسته کيږي او په ځای يې نور اصطلاحات کارول کيږي او هغه دا دي:

## sich lassen + Infinitiv

کله چي (sich lassen) د یو مصدر سره یوځای شي، نو د (کوی شول = können) په مانا استعمالیږي او (können) ترېنه هیسته کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Der Ladenbesitzer kann das Tor nicht öffnen.<br>هټیوال غټه دروازه نشي پرانیستلی<br>Die Kinder können den Tisch nicht bewegen.<br>ماشومان میز له ځایه نشي خوځولی |
| Passiv | Das Tor kann nicht geöffnet werden. غټه دروازه نشي پرانیستل کېدی<br>Der Tisch kann nicht bewegt werden. میز له ځایه نشي خوځول کېدی |
| Passiversatz sich lassen + Infinitiv | Das Tor lässt sich nicht öffnen. غټه دروازه نشي پرانیستل کېدی<br>Der Tisch lässt sich nicht bewegen. میز له ځایه نشي خوځول کېدی |

**Übungen:**

1. Streitigkeiten können hier nicht vermieden werden. د شخړو مخه دلته نشي نیول کېدی
2. Kritik kann leicht geäußert werden. نو نیوکه په اسانۍ سره کیږي
3. Der ganze Plan kann nicht überschaut werden. دا ټول پلان لیدل کېدی نشي
4. Einige Wörter können nur schwer ausgesprochen werden.
د ځینو لغاتو تلفظ ډېر په سختۍ کېدی شي
5. Daran kann nichts mehr repariert werden. د دې شی هیڅ ځای نشي بیرته جوړول کېدی
6. Auch die Grammatik kann gelernt werden. ګرامر هم زده کېدلی شي
7. Der Schaden konnte leicht repariert werden. دا تاوان په اسانۍ سره بیرته ترمیم شو
8. Diese teuren Sachen können überhaupt nicht verkauft werden.
دا قیمتي شیان هیڅ خرڅول کېدی نشي
9. Ihre Spieltaktik konnte verbessert werden. د هغوی د لوبې تکتیك اصلاح کړی شو
10. Das Ergebnis kann morgen korrigiert werden. نتیجه سبا اصلاح کېدی شي

**Lösungen:**

1. Streitigkeiten lassen sich hier nicht vermeiden.
2. Kritik  lässt sich leicht äußern.
3. Der ganze Plan lässt sich nicht überschauen.
4. Einige Wörter lassen sich nur schwer aussprechen.
5. Daran lässt sich nichts mehr reparieren.
6  Auch die Grammatik lässt sich lernen.
7. Der Schaden ließ sich leicht reparieren.
8. Diese teuren Sachen lassen sich überhaupt nicht verkaufen.
9. Ihre Spieltaktik ließ sich verbessern.
10. Das Ergebnis lässt sich morgen korrigieren.

## b) sein + Adjektivendung auf -bar oder -lich

په پښتو کې مونږ کله کله د يو شي لپاره يو صفت ورکوو او وايو چې په دې شي کې دا توان يا دا وس شته. د بېلګې په توګه که چېرته يو څوك ډېر تږى وي او په يو ځاى کې له يو نل نه اوبه روانې وي، نو دا سړي نپوهيږي چې دا اوبه پاکې دي او که ناپاکې دي، آيا دى يې څښلى شي او که نشي. نو که چېرته دى د کور خاوند نه د اوبو په برخه کې پوښتنه وکړي، نو د ده پوښتنه به داسې وي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دا | اوبه | د | څښلو | دي؟ |

د دې سړي مطلب دا دى چې دا اوبه پاکې دي او که ناپاکې دي، سړى يې څښلى شي او که نشي. که چېرته اوبه پاکې وي، نو د کور خاوند ځواب به داسې وي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هو | دا | اوبه | د | څښلو | دي |

اوس که مونږ د پښتو ګرامر ته نظر وکړو، کله چې مونږ يو شي ته يو صفت ورکوو، نو د هغه فعل په مخکې چې ورنه صفت جوړيږي (د) ليکو او د فعل په پاى کې (و) ورسره يو ځاى کوو، لکه چې په پورتني مثال کې له (څښل) نه مخکې يو (د) وليکو او وروسته له (څښل) سره مو (و) يوځاى کړو چې ورنه (د څښلو) جوړ شو چې دا يو صفت دى او د اوبو څرنګوالى بيانوي. داسې مثالونه ډېر دى، لکه (دا منه د خوړلو نده)، (دا سوال د حلولو ندى)، (دا غوا د لشلو نده) او داسې نور.

په جرمني ژبه کې هم لکه د پښتو په شان د يو فعل نه صفت جوړېدى شي. د دې قاعده دا ده چې له يو فعل نه (-en) هيسته کيږي او په پاى کې يې نور شاتړي ورسره يوځاى کيږي، لکه (-lich) , (-bar) او داسې نور چې په لاندې برخه کې به يې وګورو.

| | | | |
|---|---|---|---|
| essen | خوړل | verletzen | ټپي کول |
| ess + bar = essbar | د خوړلو | verletz + lich = verletzlich | د ټپي کېدو |
| trinken | څښل | begreifen | په يو شي رسېدل، پوهېدل |
| trink + bar = trinkbar | د څښلو | begreif + lich = begreiflich | د پوهېدو |

کله چې يو صفت چې په پاى کې يې (-bar) او يا (-lich) راشي له (sein) سره يوځاى شي، نو بيا دا د (كوى شول = können) په مانا استعماليږي.

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Die Schüler können die Aufgabe nicht lösen.<br>زده کوونکي دا سوال نشي حلولى<br>Mein Vater kann sehr schön schreiben.<br>زما پلار په ډېر ښايسته ليك ليکل کوى شي |
| Passiv | Die Aufgabe kann nicht gelöst werden. دا سوال حل کېدى نشي<br>Die Schrift kann sehr schön gelesen werden.<br>دا ليك په ښه ډول لوستل کېدى شي |
| Passiversatz sich lassen + Infinitiv | Die Aufgabe *lässt sich nicht lösen.* دا سوال د حلولو ندى (نشي حل کېدى)<br>Die Schrift *lässt sich sehr gut lesen.*<br>دا ليك په ډېر ښه ډول د لوستلو دى (ښه لوستل کېدى شي) |
| sein + Adjektiv | Die Aufgabe ist nicht lösbar. دا سوال د حلولو ندى (نشي حل کېدى)<br>Die Schrift ist gut leserlich. دا سوال ښه د لوستلو دى (ښه لوستل کېدى شي) |

په پورتنیو (Aktiv + Passiv) جملو کې د یو شي د کوی شولو لپاره مستقیماً (können) استعمال شویدي.
په (Passiversatz) جمله کې د (können) په ځای (sich lassen + Infinitiv) نه کار اخیستل شویدی چي مانا یي ده (یو شی کوی شول) . په وروستی برخه (sein + Adjektiv) کي د (können) په ځای (sein) د هغه صفتونو سره چي په پای کې یي (-bar + -lich) وي، استعمال شویدی چي مانا یي ده (د یو شي کېدی شول). همدا شان نور شاتړي لکه (-fähig, -lich, -sam, -abel, -ibel) هم همدا شان کارول کېدی شي. په پښتو کې هم دا شان شاتړي شته چي مانا یي ده (د یو شي توان درلودونکی)، لکه (د منلو وړ، د زغملو وړ) او داسي نور. مثالونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| transportfähig | د انتقال وړ | penibel | ډېر سختګیر او دقیق |
| erträglich | د زغم وړ | diskutabel | چي پرې بحث وشي، د بحث وړ |

له ځینو صفتونو سره (-un) یوځای کیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| (unaufhaltsam) | چي د پرمختګ مخه یي نشي نیول کېدی |

**Übungen:**

1. Radiowecker können als Radio und als Wecker verwendet werden.
له راډیویي ساعتونو نه د راډیو او د ویښوونکي ساعت په توګه کار اخیستل کېدی شي
2. Diese Aufgaben können in der knappen Zeit nicht gelöst werden.
دا سوالونه په دې لنډ وخت کې حل کېدی نشي
3. Bist du dir sicher, dass alle Pilze gegessen werden können?
ته متیقن یي چي ټول خرېړي خوړل کېدی شي؟
4. Diese Bilder können nicht verkauft werden. دا انځورونه خرڅول کېدی نشي
5. Seine Behauptungen konnten sehr leicht missverstanden werden.
د هغه په ادعا ګانو باندې خلك ډېر ژر غلط پوهېدی شول

**Lösungen:**

1. Radiowecker sind als Radio und als Wecker verwendbar.
د راډیو ساعتونه د راډیو او د ویښوونکي ساعت په توګه د استعمال وړ دي
2. Diese Aufgaben sind in der knappen Zeit nicht lösbar.
دا سوالونه په دومره لږ وخت کې د حلولو ندي (حل کېدی نشي)
3. Bist du dir sicher, dass alle Pilze essbar sind? ته متیقن یي چي ټول خرېړي د خوړو دي؟
4. Diese Bilder sind unverkäuflich. دا انځورونه د خرڅولو ندي
5. Seine Behauptungen waren sehr missverständlich.
د هغه په ادعاګانو باندې ډېر خلك غلط پوهېدل

**c) sein/bleiben/es gibt + zu + Infinitiv**

کله چي (sein, bleiben, es gibt) له یو بل فعل سره راشي او له فعل نه مخکي (zu) راشي، نو دا په مختلفو ماناګانو استعمالېدی شي او هغه دا دي:

**können, nicht können, müssen, nicht müssen, nicht wollen, nicht dürfen**

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Für die Sicherheit muss noch viel getan werden.<br>د امنیت لپاره باید ډېر څه وشي |

| | |
|---|---|
| sein + zu + Infinitiv | Für die Sicherheit ist noch viel zu tun. د امنیت لپاره ډېر څه د کولو دي |
| es gibt + zu + Infinitiv | Für die Sicherheit gibt es noch viel zu tun. د امنیت لپاره ډېر څه د کولو دي |
| Aktivsatz | Was noch getan werden muss, ist in einem Buch festgelegt. څه چې باید وشي، هغه په یو کتاب کې لیکل شویدي |
| es bleibt + zu + Infinitiv | Was noch zu tun bleibt, ist in einem Buch festgelegt. څه چې د کولو دي، هغه په یو کتاب کې لیکل شویدي |

**Übungen:**

1. Für die Sicherheit muss/soll/kann noch viel getan werden.
د امنیت لپاره باید ډېر څه نور وکړی شي
2. Hier kann nichts mehr geändert werden. دلته نور کوم شی بدلېدی نشي
3. Ein Polizist brüllte: „Die Straße muss unverzüglich geräumt werden.“
یو پولیس په غړمبېدو وویل : دا سړك دي ځای په ځای تش کړی شي
4. Sein Spiel war so perfekt, dass nichts daran kritisiert werden konnte.
د هغه لوبه دومره ښه وه چې هېڅ نیوکه پرې نشوه کېدی
5. Die Miete soll zum Monatsanfang gezahlt werden.
کرایه دي د میاشتي په سر کې تحویله کړی شي
6. Seine Kritik konnte nur schwer akzeptiert werden. د هغه نیوکه په سختۍ منل کېدی شوه
7. Die Frage konnte schnell geklärt werden. دا پوښتنه ژر حل کړی شوه
8. Das Auto kann nicht verkauft werden. دا موټر خرڅېدلی نشي
9. Diese Krankheit kann geheilt werden. دا ناروغي رغول کېدی شي

**Lösungen:**

1. Für die Sicherheit ist noch viel zu tun. د امنیت لپاره ډېرڅه د کولو دي
2. Hier ist nichts mehr zu ändern. په دي کې نور څه بدلون نشي راتلی
3. Ein Polizist brüllte: „Die Straße ist unverzüglich zu räumen.“.
یو پولیس په غړمبېدو وویل چې دا سړك ځای په ځای د تشولو دی
4. Sein Spiel war so perfekt, dass nichts daran zu kritisieren war.
د هغه لوبه دومره ښه وه چې هېڅ نیوکه پرې د نیولو نه وه
5. Die Miete ist zum Monatsanfang zu zahlen. کرایه د میاشتي په سر کې د تحویلولو ده
6. Seine Kritik war nur schwer zu akzeptieren. د هغه نیوکه په سختۍ سره د منلو وړ وه
7. Die Frage war schnell zu klären. دا پوښتنه ژر د حلولو وه
8. Das Auto ist nicht zu verkaufen. دا موټر د خرڅون ندی
9. Diese Krankheit ist zu heilen. دا ناروغي د رغېدو ده

### d) Passiversatz mit „bekommen/kriegen“ + Partizip II

د (bekommen) اصلي مانا ده (لاس ته راوړل)، خو کله چې (bekommen) د یوې جملي د فعل په حیث راشي او د جملي په پای کې یو بل فعل د (Partizip) په توګه راشي، نو مانا یې بالکل بدلیږي او د

یو کار د کېدلو په مانا استعمالیږي. داسي جملي د (Passiv) په ځای استعمالېدی شي. خو دا شان جملي تش د ویلو په ژبه کارول کیږي او په تحریري ډول نه لیکل کیږي، نو ځکه دا شان جملي ادبي جملي ندي.
مثال:

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Die Tante schenkt dem Kind 100 Euro.<br>ترور ماشوم ته سل یورو ورډالی کوي<br>Der Lehrer erklärt den Schülern die Grammatik.<br>ښوونکی زده کوونکو ته گرامر تشریح کوي |
| Passiv | Dem Kind werden 100 Euro geschenkt. ماشوم ته سل یورو ورډالی کیږي<br>Den Schülern wird die Grammatik erklärt.<br>زده کوونکو ته گرامر تشریح کیږي |
| Passiversatz<br><br>bekommen + Partizip II | Das Kind kriegt 100 Euro geschenkt.<br>ماشوم ته سل یورو د سوغات په توګه ورکول کیږي<br>Die Schüler bekommen die Grammatik erklärt.<br>زده کوونکو ته گرامر تشریح کیږي |

پورته په لومړی (Aktivsatz) جمله کې (dem Kind) د (Dativ) په حالت کې دی. کله چې دا مطلب په (kriegen /bekommen) په جملو کې بیان شي، نو (Dativ) یعني (dem Kind) په (Nominativ) بدلیږي او (das Kind) ورنه جوړیږي. او همدا شان له (den Schülern) نه چې (Dativ) دی ، (die Schüler) جوړیږي چې (Nominativ) دی.

**Übungen:**

1. Dem Direktor wurden die besten Wünsche übermittelt. مدیر ته ښې هیلې وړاندې شوې
2. Den Geschäften werden in der nächsten Woche neue Teppiche geliefert.
په راتلونکې اونۍ کې مغازو ته نوې قالینې ورلیږل کیږي
3. Dem Mädchen ist zum Geburtstag eine Puppe geschenkt worden.
نجلۍ ته د زیږېدنې کلیزې لپاره یو نانځکه سوغات ورکړل شوه
4. Ihm wurden die Bücher mit der Post geschickt.
هغه ته کتابونه د پوستې له لارې واستول شول
5. Dem Schriftsteller wurde der Kunstpreis der Stadt überreicht.
لیکوال ته د ښار هنري تمغه (جایزه) ورکړل شوه

**Lösungen:**

1. Der Direktor bekam die besten Wünsche übermittelt.
2. Die Geschäfte bekommen in der nächsten Woche neue Teppiche geliefert.
3 Das Mädchen hat zum Geburtstag eine Puppe geschenkt bekommen.
4. Er bekam die Bücher mit der Post geschickt.
5. Der Schriftsteller bekam den Kunstpreis der Stadt überreicht.

**e) Passiversatz mit „gehören“ + Partizip II**

کله چې په یوه جمله کې (gehören) چې اصلي مانا یې ده (د یو چا مال اوسېدل) د یوې جملې د فعل په توګه راشي او د جملې په پای کې یو بل فعل د (Partizip II) په حالت کې راشي، نو دا جمله بیا د

(مجبوریت اوسېدلو müssen) په مانا استعمالیږي. په پښتو کې دې ته داسې ویل کیږي چې (دا کار د کولو دی، دا کار دې هرومرو وشي، دا اړین دي چې دا کار وشي)
دا خو څرګنده ده چې د (gehören) اصلي مانا، یعني (د یو چا مال اوسېدل) دلته څه مانا نلري او دا لغت بالکل په بله مانا استعمالیږي چې په لاندیني جدول کې مثالونه ورته لیکل شویدي.

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Das Badezimmer muss regelmäßig gereinigt werden.<br>تشناب باید په منظم ډول پاك شي<br>Dieser Artikel muss veröffentlicht werden. دا مضمون باید خپور شي |
| Passiversatz gehören + Partizip II | Das Badezimmer gehört regelmäßig gereinigt.<br>تشناب په منظم ډول د پاکولو دی<br>Dieser Artikel gehört veröffentlicht. دا مضمون د خپرولو دی |

**Übungen:**

1. Das Haus muss/sollte dringend renoviert werden.
دا کور باید ډېر ضرور وتنډل (جوړ) شي، پکې لاس ووهل شي
2. Dieser Artikel muss/sollte veröffentlicht werden. دا مضمون باید خپور کړی شي
3. Die verschlissenen Ersatzteile müssen ersetzt werden.
د استهلاك یا خوړل شوو پرزو په ځای باید نوې پرزې واچول شي
4. Dieser Autofahrer muss angezeigt werden. په دې ډرېور باندې باید عریضه وشي
5. Man muss ihm die Meinung sagen. سړی باید هغه ته خپل نظر ووایي

**Lösungen:**

1. Das Haus *gehört* dringend *renoviert*. دا کور ضرور د جوړولو دی
2. Dieser Artikel *gehört veröffentlicht*. دا مضمون ضرور د خپرولو دی
3. Die verschlissenen Ersatzteile gehören ersetzt.
د خوړل شوو پرزو په ځای نوې پرزې د اچولو دي
4. Dieser Autofahrer *gehört angezeigt*. په دې ډرېور باندې عریضه د کولو ده
5. Ihm *gehört* die Meinung *gesagt*. هغه ته خپل نظر د ویلو دی

**f) Passiversatz mit „ *es gilt, es heißt, stehen + Infinitiv + zu***

کله چې دا درېواړه لغات له یو مصدر (Infinitiv) او له (zu) سره یوځای شي، نو بیا خپلې اصلي لغوي ماناګانې پرېږدي او بیا په یوې بلې مانا استعمالیږي چې هغه دا دي: د یوې اړتیا یا ضرورت مانا، د مجبوریت مانا (müssen)، د یوې غوښتنې او یا یوې سپارښتنې مانا (sollen). دا څرګنده ده چې (müssen, sollen) بیا له جملې نه وځي. د جملې فاعل یا (es) او یا کوم بل شی وي او فاعل یا کوونکی په جمله کې نه یادیږي. مثال:

| |
|---|
| Dieses Studium muss erfolgreich beendet werden.<br>تحصیل باید په بریالی توګه سر ته ورسول شي |

دا جمله که په (es gilt/es heißt) وویل شي، نو په دې ډول به وویل شي:

| |
|---|
| Es gilt, dieses Studium erfolgreich zu beenden.<br>دا اړینه ده چې تحصیل دې په بریالي توګه سرته ورسول شي |

Es heißt, dieses Studium erfolgreich zu beenden.
دا اړینه ده چې تحصیل دې په بریالي توګه سرته ورسول شي

**Übungen:**

1. Man soll jetzt keine Zeit mehr verlieren. اوس نو باید سړی نور وخت له لاسه ورنکړي
2. Man muss unbedingt dagegen etwas tun. د دې په وړاندې سړی باید هرومرو یو څه وکړي
3. Fragen, die man lösen muss. هغه پوښتنې چې سړی یې باید حلې کړي
4. Wenn man Abschied nehmen muss. کله چې سړی خدای پاماني ته مجبور شي
5. Eine Regierungskrise muss vermieden werden. د حکومتي بحران مخه باید ونیول شي

**Lösungen:**

1. Es gilt, jetzt keine Zeit mehr zu verlieren.
دا اړینه ده چې اوس نو نور وخت له لاسه ورنکړل شي
2. Es gilt, unbedingt dagegen etwas zu tun.
دا اړینه ده چې د دې په وړاندې هرومرو یو څه وشي
3. Fragen, die es gilt unbedingt zu lösen. هغه پوښتنې چې حلېدل یې هرومرو اړین دي
4. Wenn es heißt, Abschied zu nehmen. کله چې خدای پاماني اړین وي
5. Es hieß eine Regierungskrise zu vermeiden. د حکومتي بحران مخنیوی اړین و

# Das Gerundivum

د دې ګرامري صیغې لپاره په پښتو کې انډول شته. کله چې سړی په پښتو کې وایي چې:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| کېدونکی | یا | نه | کېدونکی، | کېدونکی شی | یا | نه کېدونکی شی | یا | کار |

کله چې د یو مطلب په برخه کې په پښتو وویل شي چې دا کېدونکی یا نه کېدونکی دی، نو دا بیا د جرمني ژبې (Gerundivum) شو. نو په دې وجه دا صیغه د یو کار شونتیا یا امکاناتو او یا نه شونتیا یا غیرامکاناتو او یا اړینتیا یا ضرورت لپاره په کارول کیږي. (Gerundivim) لکه د یو صفت په شان د اسم په مخکې راځي. په مانا کې (Gerundivum) داسې دی لکه یو (Passiv) چې د یو (Modalverb) سره یوځای استعمال شي. خو د (Passiv) سره توپیر یې دا دی چې (Gerundivum) د (Passiv) په ځای استعمالیږي او (Modalverb) ترېنه هیسته کیږي . مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Passiv | Die Aufgabe, die gelöst werden kann. | یو سوال چې حل کېدی شي |
| Gerundiv | die zu lösende Aufgabe | حل کېدونکی سوال |

**د (Gerundiv) د جوړولو لار:**

(Gerundivum) په دې ډول جوړیږي چې (zu) د یو (Partizip I) سره یوځای کیږي. د (Partizip I) جوړول خو مو پخوا زده کړي وو چې د یو مصدر په پای کې (d) یوځای کیږي.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| Infinitiv | + | d | + | zu | = | Gerundiv |

که د (lösen) مصدر په (Gerundivum) بدل شي، نو په لاندې ډول به وي:

| |
|---|
| lösen (حلول) + d = lösend + zu = zu lösend (-e, -er, -es) = Gerundivum |

مثالونه په جملو کې:

| | | |
|---|---|---|
| Aktivsatz | Eine Aufgabe, die man lösen kann. | یو سوال چې سړی یې حلولی شي |
| Passivsatz | Eine Aufgabe, die gelöst werden kann. | یو سوال چې حلېدی شي |
| Gerundivum | eine zu lösende Aufgabe | یو حلېدونکی سوال |

**د بېلېدونکو فعلونو یا (trennbare Verben) د (Gerundivum) د جوړولو لار:**
په داسې فعلونو کې (zu) د فعل د مختاړي یا (Präfix) او د فعل تر مینځ راځي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| anerkennen (په رسمیت پېژندل) | ----- | an + zu + erkennen + d = anzuerkennend (Gerundiv) (د په رسمیت پېژندلو) |

یو مثال په جمله کې:

| | |
|---|---|
| Das ist ein anzuerkennendes Recht. | دا یو حق دی چې باید په رسمیت وپېژندل شي |

(Gerundivum) لکه د یو صفت په شان د یو اسم په مخکې راځي او لکه د صفت په شان گردانیږي. داسې هم کېدی شي چې له (Gerundivum) نه مخکې یو صفت راشي، نو دا صفت بیا نه گردانیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Den Fehler kann man leicht korrigieren.<br>دا غلطي سړی په اسانۍ اصلاح کولی شي |
| Passivsatz | Der Fehler kann leicht korrigiert werden.<br>دا غلطي په اسانۍ اصلاح کېدلی شي |
| Gerundivum | der leicht zu korrigierende Fehler    په اسانۍ اصلاح کېدونکې غلطي |

کله چې له (Gerundivum) سره یو بل صفت راشي، نو هغه کېدی شي چې له (Gerundivum) نه وروسته د اسم په مخکې راشي. د (Gerundivum) او د دې صفت تر مینځ یوه کامه لیکل کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Aktivsatz | Das ist ein Ereignis, das wissenschaftlich nicht erklärt werden kann.<br>دا یوه پېښه ده چې په علم نشي تشریح کېدی |
| Passivsatz | Das ist ein wissenschaftlich nicht zu erklärendes Ereignis.<br>دا په علم یوه نه تشریح کېدونکې پېښه ده |
| Gerundivum | ein wissenschaftlich nicht zu erklärendes Ereignis<br>په علم یوه نه تشریح کېدونکې پېښه |

**Übungen:**

Üben Sie das Gerundivum nach folgendem Muster:

Ein Fehler, den man nicht wieder gutmachen kann, ist ein nicht wieder gutzumachender Fehler.

1. Ein Satz, der korrigiert werden muss, ist ein ……………………
یوه جمله چې اصلاح کېدی شي، یوه اصلاح کېدونکې جمله ده

2. Regeln, die man befolgen muss, sind …………………..
هغه اصول چې سړی يې بايد ومني، هغه د منلو وړ اصول دي
3. Eine Krankheit, die geheilt werden kann, ist eine ……………………
يوه ناروغي چې رغول کېدی شي، هغه يوه رغېدونکې ناروغي ده
4. Alle Erfolge, die man anerkennen muss, sind seine …………………..
ټول برياليتوبونه چې سړی يې منلی شي، هغه منل کېدونکي زيارونه دي
5. Eine Niederlage, die befürchtet werden muss, ist ………………
يوه ناکامي چې راتګ ته يې ډار شته، يو ډاروونکی ناکامي ده

**Lösungen:**

1. zu korrigierender Satz 2. zu befolgende Regeln 3. zu heilende Krankheit 4. anzuerkennenden Erfolge 5. eine zu befürchtende Niederlage

**Übungen:**

Bilden Sie aus den Relativsätzen Sätze nach folgendem Muster:
تاسو په دغه لاندې ډول جملې جوړې کړئ

Kinder stellen oft Fragen, die man nur schwer beantworten kann.
ماشومان زياتره وخت داسې پوښتنې کوي، چې سړی ورته په سختۍ ځواب ورکوی شي

Gerundivum: Kinder stellen oft schwer zu beantwortende Fragen.
ماشومان زياتره وخت سخت ځواب ورکوونکې پوښتنې کوي

1. Ergebnisse, die man nicht ändern kann, sollte man einfach akzeptieren.
هغه نتايج چې سړي يې بدلولی نشي، سړی يې بايد ومني
2. Wissenschaftler beschäftigen sich mit Wirkstoffen, die man sehr schwer bestimmen kann. پوهان په هغو اغېزمنو توکو پلټنه کوي چې سړی يې ډېر په سختۍ پيداکوی شي
3. Ergebnisse, die man mit Schwierigkeiten gewinnen kann, sind sehr wertvoll.
هغه نتيجې چې په سختۍ لاس ته راځي، ډېرې ګټورې دي

4. Viele Eisberge werden verschwinden, weil eine Erderwärmung erwartet wird.
ډېر د کنګل غرونه په له مينځه ولاړ شي، ځکه چې د ځمکې د تودېدو تمه ده

**Lösungen:**

1. Nicht zu ändernde Ergebnisse sollte man einfach akzeptieren.
نه بدلېدونکي نتايج بايد سړی ومني
2. Wissenschaftler beschäftigen sich mit schwer zu bestimmenden Wirkstoffen.
ډاکټران بايد تل د سخت معلومېدونکو وېروسونو پلټنه وکړي
3. Mit Schwierigkeiten zu gewinnende Ergebnisse sind sehr wertvoll.
په سختۍ لاس ته راوړل شوې نتيجې ډېرې ارزښتناکې دي
4. Wegen der zu erwartenden Erderwärmung werden viele Eisberge verschwinden.
د ځمکې د تودېدو د تمې په وجه به ډېر کنګل غرونه له مينځه ولاړ شي

# Appositionen

دا صیغه په پښتو کې غیرمعموله ده. له دې نه مطلب دا دی چې یو اسم لاپسې ښه تشریح شي. تشریح کېدنه يي په دې ډول ده چې لومړی یو اسم یادیږي، بیا ورپسې یوه کامه (,) لیکل کیږي او بیا د دې اسم په برخه کې تشریحات راځي، ورپسې بیا کامه (,) راځي او له کامې (,) نه وروسته د جملې اصلي مطلب یادیږي. مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو.

| |
|---|
| Josef, *der Bruder von Jakob*, ist sehr stolz auf seinen Vater.<br>یوسف، چې د یعقوب ورور دی، پخپل پلار ډېر وياړي |
| Ich, *die Schwester der beiden*, habe meine Brüder sehr gern.<br>زه، چې د دې دواړو خور یم، خپل ورونه راباندې ډېر ګران دي |
| Einer der beiden Brüder, *der mit den grünen Augen*, ist gestorben.<br>د دې دواړو ورونو نه یو تن، هغه یو کس چې سترګې يې شنې دي، مړ شوېدی |
| Herr David, *der Direktor der Firma*, wurde angeschossen.<br>ښاغلي داؤد چې د کمپنی مدیر دی، په ډزې ولګېدو |
| Mit Lebensmitteln, *besonders mit Fleisch*, sind wir sehr vorsichtig.<br>مونږ له خوراکي توکو سره، په تېره بیا له غوښې سره ډېر احتیاط کوو |

کله چې د یو چا حیثیت په (als) تشریح شي، نو بیا کامه پکې نه راځي. مثال:

| |
|---|
| *Ich als Vater* bin gegen Strafen für Kinder.<br>زه، د پلار په حیث، ماشومانو ته د سزا ورکولو په خلاف یم |
| *Als Vater* bin *ich* gegen Strafen für Kinder.<br>د پلار په حیث، زه ماشومانو ته د سزا ورکولو په خلاف یم |

کله چې یو اسم په (لکه = wie ، په تېره بیا = besonders ، چې نوم يې دي = namentlich) باندې تشریح شي، نو دا برخه ځای په ځای له تشریح کېدونکي اسم نه وروسته د کامې (,) تر شا لیکل کیږي. مثالونه پورتني جدول کې هم لیکل شوي دي، یو بل مثال به لاندې وګورو:

| |
|---|
| Manche Tiere, *wie zum Beispiel Bären*, fressen Fleisch, Obst und Gemüse.<br>ځیني حیوانات، لکه یږې، غوښه، میوه او سابه خوري |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | یو (Apposition) تل په هغه ګرامري حالت کې راځي چې له هغې نه مخکې لغت په همغه ګرامري حالت کې دی، دا په دې مانا چې هغه لغت چې (Apposition) يې تشریح کوي، که په (Akkusativ) کې وي، نو (Apposition) به هم په (Akkusativ) کې وي. (Apposition) تل د هغه لغت ښې لاس ته راځي چې تشریح کیږي. مثال: |

| | |
|---|---|
| Nominativ | Das ist Herr David. Er ist mein Lehrer.<br>دا ښاغلی داود دی. هغه زما ښوونکی دی |
| Apposition | Das ist Herr David, *mein Lehrer.* دا ښاغلی داود زما ښوونکی دی |
| Akkusativ | Ich kenne Herrn David sehr gut. Er ist mein Lehrer.<br>زه ښاغلی داود ډېر ښه پېژنم. هغه زما ښوونکی دی |
| Apposition | Ich kenne Herrn David, *meinen Lehrer*, sehr gut.<br>زه ښاغلی داود، زما ښوونکی ډېر ښه پېژنم |

| | |
|---|---|
| Dativ | Ich habe mit Herrn David gesprochen. Er ist mein Lehrer.<br>ما د ښاغلي داود سره خبرې وکړې. هغه زما ښوونکی دی |
| Apposition | Ich habe mit Herrn David, *meinem Lehrer* gesprochen.<br>ما د ښاغلي داود، زما ښوونکي سره، خبرې وکړې |
| Genitiv | Das Geburtshaus Goethes steht in Frankfurt. Goethe ist der größte deutsche Dichter. د جرمني له ټولو نه ستر شاعر، ګوېټې، کور په فرنکفورت کې دی |
| Apposition | Das Geburtshaus Goethes, *des größten deutschen Dichters*, steht in Frankfurt. د جرمني له ټولو نه ستر شاعر، ګوېټې، کور په فرنکفورت کې دی |

**(Apposition) او وخت :**

په (Apposition) باندي وخت هم تشريح کيږي چې کوم وخت دی، کومه نېټه ده، کوم کال دی، کومه مياشت او يا کومه ورځ ده. مثال:

| |
|---|
| Heute ist Freitag, *der 13. Oktober 1930*.<br>نن د جمعې ورځ ، د ۱۹۳۰ کال د اکتوبر ۱۳ نېټه ده |
| Wir haben heute Freitag, *den 13. Oktober 1930*.<br>نن د جمعې ورځ ، د ۱۹۳۰ کال د اکتوبر ۱۳ نېټه ده |
| Ich komme am Freitag, *dem 13. Oktober 2015*.<br>زه د جمعې په ورځ ، د ۲۰۱۵ کال د اکتوبر د مياشتې په ۱۳ نېټه درځم |

**Übungen:**

1. Mein Großvater war ein alter Mann. Er war von Haus aus gutmütig.
زما نيکه يو بوډا سړی و . هغه طبيعتاً يو مهربان سړی و
2. Einer der drei Brüder ist Professor. Er hat den Nobelpreis erhalten.
د درې ورونو نه يو تن پروفيسر دی . هغه ته د نوبل جايزه ورکړل شوېده
3. Der Professor wurde pensioniert. Er war der Leiter der Universitätsklinik.
پروفيسر ته تقاعد ورکړل شو. هغه د پوهنتون د کلينيك رئيس و
4. Albert Einstein ist in Ulm geboren. Er ist in New Jersey/USA gestorben.
البرت اين شتين د جرمني په اولم کې زېږېدلی دی. هغه د امريکي په نوجرسي کې مړ شوېدی
5. Vor 10 Jahren wurde der Euro als Zahlungsmittel eingeführt. Es war der 01. Januar 2002. لس کاله مخکې يورو د پيسو د ورکولو د وسيلې په توګه مروج شو. دا د ۲۰۰۲ کال د جنورې لومړی نېټه وه

**Lösungen:**

1. Mein Großvater, *ein alter Mann*, war von Haus aus gutmütig.
زما نيکه، طبيعتاً يو مهربان سړی، يو بوډا سړی و
2. Einer der Brüder, der Professor, hat den Nobelpreis erhalten.
د دې درېواړو ورونو نه يو ورور، هغه پروفيسر يې، د نوبل جايزه لاس ته راوړېده
3. Der Professor, *der Leiter der Universitätsklinik*, wurde pensioniert.
هغه پروفيسر ته چې د پوهنتون د کلينيك رئيس و، تقاعد ورکړل شو
4. Albert Einstein, in Ulm/Deutschland geboren, ist New Jersey/USA gestorben. البرت اين شتين، د جرمني په اولم کې زېږېدلی، د امريکي په نيوجرسي کې مړ شوېدی
5. Vor 10 Jahren, *am 01. Januar 2002*, wurde der Euro als Zahlungsmittel eingeführt. لس کاله دمخه، د ۲۰۰۲ کال د جنورې په دوهمه نېټه يورو د پيسو د ورکول د وسيلې په توګه مروج شو

# Der Imperativ امر

د امر یا (der Imperativ) لغت د لاتیني (*imperare*) نه اخیستل شوې دی چې مانا یې ده: (امر کول = befehlen). خو د دې ګرامري صیغې مطلب تش امر کول ندی. کېدی شي چې د امر په ځای له یو چا نه یوه احترامانه هیله وشي او یا هغه ته په ډېر احترام یوه بلنه وړاندې شي او یا یو چا ته لارښوونه یا نصیحت وشي او یا په یو چا یو څه منع شي. خو کېدی شي چې یو چا ته ډېر شدید امر او قومانده هم ورکړل شي. پخوا به ځینو باچاهانو ته امپراتور یا (Imperator) ویل کېده چې لغوی ریښه یې د همدغه (*imperare*) یا امر کولو نه اخیستل شوېده.

**د امر (Imperativ) له صیغې نه په دغه حالاتو کې کار اخیستل کېدی شي:**

| | |
|---|---|
| 1 | په یوه نسخه کې او یا د یو شي په استعمال کې چې د یو شي نه څه شان کار واخیستل شي |
| 2 | کله چې په یو چا یوه ناره او یا یو غږ وشي چې هغه دې څه وکړي |
| 3 | کله چې یو چا ته یوه لارښوونه وشي |
| 4 | کله چې له یو چا نه یوه هیله یا یو خواهش وشي |
| 5 | کله چې یو چا ته یوه مشوره ورکړل شي چې هغه څه شان چلند وکړي |
| 6 | کله چې د یو شي د منع کېدو خبر ورکړل شي |
| 7 | کله چې یو چا ته د امر په توګه یو اخطار ورکړل شي چې هغه څه وکړي |

مثالونه به په لاندینو جملو کې وګورو:

| Funktion وظیفه | Beispiele بېلګې |
|---|---|
| Gebrauchsan-weisungen د یو شي د استعمال وجه | Geben Sie zuerst Öl in die Pfanne. Schneiden Sie drei Zwiebeln klein. Servieren Sie dazu einen Apfelsaft.<br>تاسو لومړی په کړایي کې تېل واچوئ! درې دانې پیاز مېده کړئ! د منو شربت ورسره کېږدئ! |
| Appell په یو چا غږ یا ناره | Stoppt den Krieg! Sofort! تاسو جګړه بنده کړئ! سمدلاسه!<br>Verbietet die Todesstrafe! د مرګ سزا منع کړئ!<br>Rettet die Wälder! ځنګلونه وژغورئ! |
| Anweisungen لارښوونه | Seid ruhig! Papa schläft. تاسو غلي شئ! دادا ویده دی<br>Folgen Sie den Anweisungen des Personals!<br>تاسو د پرسونل لارښوونې تعقیب کړئ!<br>Treten Sie ein. تاسو را دننه شئ! |
| Befehl, Bitte امر، هیله، خواهش | Gib mir bitte sofort meinen Ball zurück!<br>ته ما ته زما توپ همدا اوس بېرته راکړه!<br>Geben Sie mir bitte 2 kg Bananen!<br>تاسو مهرباني وکړئ او ما ته دوه کیلو ګرامه کېلې راکړئ!<br>Schließen Sie alle Türen ab, wenn Sie gehen.<br>کله چې تاسو ځئ نو ټولې کنکې وتړئ! |
| Ratschläge مشوره | Rauch nicht so viel! دومره ډېر سګرټ مه څکوه!<br>Iss nicht jedes Mal so viel und denk an dein Gewicht!<br>ته هر ځل دومره ډېره مه خوره او د خپل وزن په فکر کې شه!<br>Fahr vorsichtig! Die Straßen sind nass.<br>ته په پام موټر وچلوه! سړکونه لامده دي |

| | | |
|---|---|---|
| Verbot<br>ممانعت، منع | Rauchen Sie hier nicht! | تاسو دلته سګرټ مه څکوئ! |
| | Betreten verboten! | ننوتل منع دي! |
| | Schalten Sie im Unterricht Ihr Handy aus! | تاسو په درسي ساعت کي خپل موبايل ټيلفون مړ کړئ |
| Warnung / Ermahnung<br>اخطار | Bleib stehen! Da kommt ein Auto! | ودرېږه! هغه دی يو موټر راځي! |
| | Lass das! | دا پرېږده! |
| | Geht ins Bett, Kinder. Sonst wird Papa böse. | ماشومانو تاسو ويده شئ! او که نه نو دادا په قهرېږي |

څرنګه چې په پورتنو مثالونو کي ليدل کيږي، امر يا يو مخامخ کس يا مخاطب ته ، يعني (du) ته، او يا دوه يا ډېرو مخامخ يا مخاطب کسانو ته، يعني (ihr) ته، او يا يو مخامخ يا مخاطب محترم کس ته، يعني (Sie) ته، او يا ډېرو محترمو مخامخ يا مخاطب کسانو ته، يعني (Sie) ته کيږي.
هغه څوك چا حاضر ندي يا غايب دي نو هغوی ته امر نکيږي، يا په بل عبارت د غايبو ضميرونو لپاره يعني (er, sie, es, sie) کسانو لپاره امر نکيږي. همدا شان هغه حاضرکس چي پخپله غږيږي، که يو کس دی او که ډېر کسان دي، هغوی ځان ته امر نشي کولی، يعني د (ich + wir) لپاره امر نشته.

**د امر يا (Imperativ) د جوړولو لار:**

**① د يو مخامخ کس يا مخاطب لپاره، يعني د (du) لپاره:**
له هر مصدر نه وروستي دوه توري يعني (en) هيسته کيږي. په عامه ژبه کي بس همدا پاتي برخه يې د امر مانا لري. خو په ادبي ژبه کي (‎-e) ورسره يوځای کيږي. په دې وروستيو وختو کي حتی په ادبي ژبه کي هم غلطي نده چي (‎-e) ورسره ونه ليکل شي. مثال:
که له (gehen = تلل) نه وروستي دوه توري، يعني (en) وويستل شي، نو (geh) پاتي کيږي چي په عاميانه ډول همدا د امر مانا لري، يعني يو چا ته امر کيږي چي ولاړ شه!

| | |
|---|---|
| Geh nach Hause! | ته کور ته ولاړ شه ! |
| Gehe nach Hause! | ته کور ته ولاړ شه (په ادبي ژبه) |

**يادونه:** هيڅ قاعده نشته چي استثنآ ونلري، استثناآګاني به يې په لانديني برخه کي ووينئ!

**② د دوه يا ډېرو مخامخ کسانو يا د مخاطب کسانو، يعني د (ihr) لپاره:**
له هر مصدر نه (en) راوېستل کيږي او (t) ورسره يوځای کيږي. مثال:
که له (gehen = تلل) نه (en) وويستل شي، نو پاتي کيږي (geh)، نو کله چي (t) ورسره يوځای شوه نو ورځيني (geht) جوړيږي چي دا د ډېرو مخامخ کسانو لپاره امر دی يعني ولاړ شئ!

| | |
|---|---|
| Geht nach Hause! | تاسو کور ته ولاړ شئ! |

**③ د يو مخامخ يا مخاطب محترم کس يا د (Sie) او يا د ډېرو مخامخ محترمو کسانو لپاره:**
د امر صيغه عين شی دی لکه پخپله مصدر. څنګه چي د تللو مصدر (gehen) دی، نو د يو محترم کس يا د ډېر ومحترمو کسانو د امر لپاره هم همدا شان پخپله مصدر (gehen) کارول کيږي، خو په دې ډول چي لومړی مصدر، يعني (gehen) او وروپسي د محترم کس شخصي نومځری، يعني (Sie) راوستل کيږي.
مثال:

| | |
|---|---|
| Gehen Sie bitte! | تاسو مهرباني وکړئ او ولاړ شئ |

څنګه چي ليدل کيږي د لته لومړی (gehen) او بيا وروپسي (Sie) استعمال شوی دی.

④ د بېلېدونکو فعلونو یا د (trennbare Verben) د امر جوړولو لار:
څرنګه چې په عادي ګردان کې د بېلېدونکو فعلونو مخکینی برخه یا مختاړی (Präfix) د جملې په پای کې راځي، نو همدا شان په امریه جمله کې هم مختاړی یې د جملې په پای کې راځي. مثال:

چالانولو یا لګولو ته ویل کیږي (einschalten) . دا فعل جوړ شوی دی له (ein) او له (schalten) نه چې دلته (ein) یې مختاړی دی. په عادي جمله کې ویل کیږي چې: (ich schalte das Radio ein) یعنې (زه راډیو چالانوم). نو همدا شان په امریه جمله کې چې یو چاته امر کیږي، نو مختاړی یې د جملې په پای کې راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Schalte das Radio ein! | ته راډیو چالانه کړه! |
| Schaltet das Radio ein! | تاسو راډیو چالانه کړئ! |
| Schalten Sie das Radio ein! | تاسو راډیو چالانه کړئ! |

استثنآ :
① د هغو فعلونو چې د ګردان په وخت کې (e) په (i) او یا په (ie) بدلیږي، نو د امر شکل یې هم همدا شان دی. مثال: د لوستلو لپاره ویل کیږي (lesen). ته لولې ته ویل کیږي (du liest). څنګه چې لیدل کیږي، د لته د (e) توری په (ie) بدل شو. نو د یو مخامخ کس یا مخاطب د امر لپاره ویل کیږي چې (lies) . د ډېرو مخامخ یا مخاطب کسانو، یعنې د (ihr) او د یو محترم مخامخ کس، یعنې د (Sie) لپاره امر په هغه شان جوړیږي چې فعل ګردان کیږي، یعنې (e) پخپل حال پاتې کیږي او په (i, ie) نه بدلیږي، لاندینی مثالونه وګورئ:

| | |
|---|---|
| Lies diese Geschichte! ته دا کیسه ولوله! | (~~liese = falsch~~ دا غلط دی) |
| Lest diese Geschichte! | تاسو دا کیسه ولولئ! |
| Lesen Sie diese Geschichte! | تاسو دا کیسه ولولئ! |

نور مثالونه : خوړلو ته ویل کیږي (essen). د یو مخامخ کس د امر لپاره ویل کیږي (وخوره = iss!). دوه یا ډېرو مخامخ کسانو ته ویل کیږي (وخورئ = esst!) . د یو یا ډېرو محترمو کسانو لپاره ویل کیږي (تاسو وخورئ = essen Sie!)

| | |
|---|---|
| Iss, was du willst! | څه چې ته غواړې، همغه شی وخوره! |
| Esst, was ihr wollt! | څه چې تاسو غواړئ، همغه شی وخورئ! |
| Essen Sie, was Sie wollen! | څه چې تاسو (محترم کس) غواړئ، همغه شی وخورئ! |
| Sieh die Spatzen unter dem Himmel! | ته د اسمان لاندې چرچڼې وګوره! |
| Seht die Spatzen unter dem Himmel! | تاسو د اسمان لاندې چرچڼې وګورئ! |
| Sehen Sie die Spatzen unter dem Himmel! | تاسو (محترمو) د اسمان لاندې چرچڼې وګورئ |

② کله چې له یو مصدر نه (en) ووېستل شي او د مصدر په پاتې شوې برخه کې (t) او یا (d) او یا (ig) راشي نو د یو مخامخ کس د امر لپاره تل (e) ورسره یو ځای کیږي ، ځکه چې که (-e) ورسره یوځای نشي، نو لوستل یې بیا ګرانیږي. مثال: (کار کولو) ته ویل کیږي (arbeiten)، نو کله چې له(arbeiten) نه (en) ووېستل شي نو پاتې کیږي (arbeit)، چې په پای کې یې (t) لیدل کیږي. د امر کولو لپاره (e) ورسره یوځای کیږي، یعنې (arbeite) .

| | |
|---|---|
| Arbeite nicht zuviel! | ته ډېر کار مه کوه! |
| Arbeitet nicht zuviel! | تاسو ډېر کار مکوئ! |
| Arbeiten Sie nicht zuviel! | تاسو ډېر کار مکوئ! |

بل مثال: بسپنه ورکولو ته ویل کیږي (spenden). کله چي له دي فعل نه (en) ووېستل شي، نو پاتي کيږي (spend) ، یعني د لغت په وروستی برخه کي (d) راځي، نو ځکه د یو مخامخ کس د امر لپاره تل (e) ورسره یوځای کیږي، یعني ویل کیږي (ته بسپنه ورکړه = spende).

| | |
|---|---|
| Spende Lebensmittel für die Opfer des Erdbebens!<br>ته د زلزلي له قربانیانو سره مرسته وکړه | |
| Spendet Lebensmittel für die Opfer des Erdbebens!!<br>تاسو د زلزلي له قربانیانو سره مرسته وکړئ | |
| Spenden Sie Lebensmittel für die Opfer des Erdbebens!!<br>تاسو (محترمو کسانو) د زلزلي له قربانیانو سره مرسته وکړئ | |

د (-ig) سره مثال: بښنه غوښتلو ته ویل کیږي: (entschuldigen)، کله چي له دي لغت نه (en) ووېستل شي، نو پاتي کیږي (entschuldig)، یعني د لغت په وروستی برخه کي (-ig) راځي، نو ځکه د مخامخ کس د امر لپاره تل (e) ورسره یوځای کیږي، یعني ویل کیږي: (entschuldige)

| | |
|---|---|
| Entschuldige mich bitte! | ته ما وبښه! |

③ کله چي له یو فعل نه (en) راووېستل شي او په پاتي برخه کي یې (m) او یا (n) پاتي شي او له دي توري نه مخکي یو بې غږه توری یا (Konsonant) راشي، نو په دې وخت کي د مخامخ یو کس د امر لپاره تل (e) ورسره یوځای کیږي. مثال: (ساه راښکلو یا تنفس کولو) ته ویل کیږي (atmen). نو که (en) ورنه وېستل شي نو پاتي کیږي (atm) . څنګه چي لیدل کیږي، له (m) نه مخکي د (t) توری راغلی دی چي دا یو بې غږه توری دی، نو ځکه د امر لپاره (e) ورسره یوځای کیږي او ویل کیږي (atme)، یعني تنفس وکړه.

| | |
|---|---|
| Atme ruhig und verliere die Geduld nicht!<br>ته په ارامه ساه راکاږه او حوصله له لاسه مه ورکوه! | |
| Atmet ruhig und verliert die Geduld nicht!<br>تاسو په ارامه ساه راکاږئ او حوصله له لاسه مه ورکوئ! | |
| Atmen Sie ruhig und verlieren Sie die Geduld nicht!<br>تاسو (محترم کس) پـه ارامـه سـاه راکاږئ او حوصله له لاسه مه ورکوئ | |

بل مثال: پرانیستلو ته ویل کیږي (öffnen). نو د یو مخامخ کس د امر لپاره ویل کیږي: (öffne!)

| | |
|---|---|
| Öffne die Tür leise! | ته په کراره دروازه خلاصه کړه! |
| Öffnet die Tür leise! | تاسو په کراره دروازه خلاصه کړئ! |
| Öffnen Sie die Tür leise! | تاسو (محترم کس) په کراره دروازه خلاصه کړئ! |

④ کله چي له یو فعل نه (en) وېستل شي او په پاتي برخه کي یي (m) او یا (n) راشي او له دي توري نه مخکي یو بې غږه توری یا (Konsonant) راشي، خو دغه بې غږه توری (m, n, l, r, h) وي، نو بیا د (e) لیکلو ته څه ارتیا نشته. مثال: لامبو وهلو ته ویل کیږي (schwimmen). کله چي له دي فعل نه (en) راووېستل شي نو پاتي کیږي (schwimm)، یعني د وروستي توري یا (m) نه  وروسته یو ځل بیا (m) راغی، نو ځکه ورسره  (e) په جبري ډول نه یوځای کیږي. نو په دې ډول د یو مخامخ کس د امر لپاره ویل کیږي (schwimm).

| | |
|---|---|
| Schwimm, solange du kannst! | هرڅومره چي ته کوی شي، لامبو ووهه! |
| Schwimmt, solange ihr könnt! | هرڅومره چي تاسو کوی شئ، لامبو ووهئ! |

| | |
|---|---|
| Schwimmen Sie, solange Sie können! | هرڅومره چې تاسو (محترم کس) کوی شئ، لامبو ووهئ! |

همدا شان د (lernen) لپاره ویل کیږي چې (lern!) .

⑤ که چېرته د یو فعل په وروستۍ برخه کې (ern) راشي نو د مخامخ یو کس د امر لپاره تل (e) ورسره یوځای کیږي. مثال: (لمانځلو یا جشن نیولو) ته ویل کیږي (feiern). څنګه چې لیدل کیږي، د فعل وروستي توري (ern) دي. نو د یو مخامخ کس د امر لپاره له فعل نه (n) هیسته کیږي او (e) ورسره یوځای کیږي، یعني (feire) او یا (feiere)، یعني ولمانځه او یا جشن ونیسه!

| | |
|---|---|
| Feiere deinen Geburtstag! | ته خپله کلیزه ولمانځه! |
| Feiert euren Geburtstag! | تاسو خپله کلیزه ولمانځئ! |
| Feiern Sie Ihren Geburtstag! | تاسو (محترم کس) خپل کلیزه ولمانځئ! |

⑥ هغه فعلونه چې په پای کې یې (eln-) راځي، نو د یو مخامخ کس، یعنې د (du) لپاره امر په دې ډول جوړیږي چې د دې فعل دري وروستي توري، یعني همدا (eln-) هیسته کیږي او بیا (le-) ورسره یوځای کیږي. مثال:

| Verb | | Imperativ | |
|---|---|---|---|
| lächeln | مسکا کول، مسکېدل | lächle! | ته مسکا وکړه |
| wechseln | بدلول | wechsle! | ته بدل کړه |
| handeln | چلند کول | handle! | ته چلند وکړه |

مثالونه په جملو کې:

| | |
|---|---|
| Lächle, wenn du kannst! | که ته کوی شي، نو مسکا وکړه |
| Lächelt, wenn ihr könnt! | که تاسو کوی شئ، نو مسکا وکړئ |
| Lächeln Sie, wenn Sie können! | که تاسو (محترم کس) کوی شی، نو مسکا وکړئ |

⑦ اوسېدلو ته ویل کیږي (sein) چې په انګلیسي کې ورته (be) او په فارسي کې ورته (بودن) وایي. د دې فعل امر په دې شکل کیږي: د یو مخامخ کس یا مخاطب د امر لپاره ویل کیږي (sei)، د ډېرو مخامخ کسانو لپاره ویل کیږي (seid)، او یو مخامخ محترم کس لپاره ویل کیږي (seien Sie). مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Sei still! ته غلی شه! | Seid still! تاسو غلي شئ! | Seien Sie still! تاسو غلي شئ! |

⑧ ځینې فعلونه هم شته چې د ګردان په وخت (a) په (ä) بدلیږي، خو د امر کولو په وخت (a) پخپل حال پاتې کیږي او په (ä) نه بدلیږي، د بېلګې په توګه په لاندې برخه کې یو څو فعلونه لیکل کیږي:

| | |
|---|---|
| fahren: du fährst | ته په موټر کې ځې |
| Fahr bei Schnee vorsichtig! | ته په واوره کې په پام موټر وچلوه! |
| Fahrt bei Schnee vorsichtig! | تاسو په واوره کې په پام موټر وچلوئ ! |
| Fahren Sie bei Schnee vorsichtig! | تاسو (محترم کس) په واوره کې په پام موټر وچلوئ! |

داسي نور فعلونه دا دي: (خوب کول schlafen , ځغستل laufen , ډېر څښل saufen)

## Andere Möglichkeiten für Aufforderungen د غوښتنې لپاره نور امکانات

له امر نه پرته يوه غوښتنه په نورو ډولونو هم کېدی شي چې البته دا ګرامري امر ندی بلکې دا د خبرو کولو يوه مروجه لهجه يا ګرډود او يا يوه اصطلاح ده. له بلې خوا په ځينو ترافيکي لوحو باندې له دا شان امر نه کار اخيستل کيږي، ځکه چې د امر دا بڼه ډېره لنډه ده او په لوحو کې ډېر ځای نه نيسي. مثال:

| | |
|---|---|
| Infinitiv | Türen *schließen*! دروازې وتړئ |
| Partizip II | Betreten *verboten*! ننوتل منع دي |
| Person Singular/Plural | Du *bist* jetzt ruhig! ته به اوس غلی يې!<br>Ihr *kommt* mit! تاسو به له موږ سره راځئ |
| Nomen<br>Passivsatz ohne Subjekt | *Ruhe*! *Hilfe*! ارامي پکار ده! راسره مرسته وکړئ<br>Jetzt *wird geschlafen*! اوس ويده شئ، اوس د خوب وخت دی |
| mit *müssen* und *sollen* | Du musst kommen! ته به خامخا راځې، ته به حتمي راځې!<br>Du sollst nicht stehlen! ته به غلا نه کوې! |
| mit dem Indikativ Futur I | Du wirst sofort kommen! ته به سمدلاسه راځې!<br>Werdet ihr still sein! تاسو به غلي کيږئ؟ تاسو غلي شئ! |
| mit dem Indikativ Präsens (+ Betonung) | Du kommst jetzt! ته به همدا اوس راځې!<br>Sie verlassen sofort den Raum!<br>تاسو به سملاسي له دې خونې نه وځئ! |
| mit dem Passiv ohne Subjekt | Es wird nicht mehr geredet! نورې خبرې به نه کيږي!<br>Nun wird geschlafen!<br>اوس به خوب کوئ، اوس د خوب وخت دی، ويده شئ!<br>Jetzt wird das Zimmer aufgeräumt!<br>اوس بـه دا کـوټه راټولول کيږي! |
| mit dem Konjunktiv II Frageform | Würdest du bitte kommen?<br>ته به دا مهرباني وکړې او رابه شې؟<br>Könnten Sie mir bitte helfen?<br>تاسو بـه دا مهرباني وکړئ چې ما سره به مرسته وکړئ؟ |

که چېرته له يو امر سره د (مهرباني وکړئ = bitte) کلمات يوځای شي نو له دې امر نه يوه احترامانه غوښتنه جوړيږي:

| | | |
|---|---|---|
| Mach das Fenster zu! | کړکۍ پورې کړه! | سخت امر |
| Mach bitte das Fenster zu. | مهرباني وکړه او کړکۍ پورې کړه! | احترامانه امر |
| Mach doch bitte mal das Fenster zu! | ته مهرباني وکړه او يوځل کړکۍ خو پورې کړه! | احترامانه هيله |

دا چې آيا يو ګرامري امر لکه د يو عسکري امر په شان ډېر کلك امر دی او که يوه احترامانه غوښتنه ده، دا دې پورې هم اړه لري چې په کوم شدت او يا په کومې نرمۍ د يو چا غږ د هغه له خولې نه وځي. نو که چېرته د (bitte) لفظ هم وکارول شي، خو دا خبره له خولې نه په ډېر شدت راووځي، نو دا ګرامري امر د يو ډېر سخت امر په حيث غوږ ته راځي.

**Übungen:** Bilden Sie den Imperativ. Beachten Sie die Pronomen!

| | |
|---|---|
| 1. Sie lernen nicht. | هغوی درس نه لولي |
| 2. Sie räumt ihr Zimmer nicht auf. | هغه خپله کوټه نه راټولوي |
| 3. Er hört nicht auf mich. | هغه زما خبره نه مني |
| 4. Das Kind isst die Suppe nicht. | ماشوم ښوروا نه خوري |
| 5. Die Schüler sind nicht ruhig. | زده کوونکي غلي ندي |
| 6. Nachts macht er die Tür nicht zu. | د شپې له مخې هغه دروازه نه پورې کوي |
| 7. Keiner von ihnen setzt sich an den Tisch. | د هغوی له ډلې نه هېڅ څوك مېز ته نه کېني |
| 8. Die Kinder waschen sich nicht. | ماشومان ځانونه نه پرېمينځي |
| 9. Du räumst nie den Tisch ab. | ته هېڅکله مېز نه راټولوي |
| 10. Du lädst deine Freunde nie ein. | ته خپل ملګري هېڅکله نه مېلمه کوي |

**Lösungen:**

| | |
|---|---|
| 1. Lernt! | تاسو درس ولولئ |
| 2. Räum dein Zimmer auf! | ته خپله کوټه راټوله کړه |
| 3. Hör auf mich! | ته زما خبره ومنه |
| 4. Iss die Suppe! | ته ښوروا وخوره |
| 5. Seid ruhig! | تاسو غلي شئ |
| 6. Mach nachts die Tür zu! | ته د شپې له مخې دروازه پورې کړه |
| 7. Setzt euch an den Tisch! | تاسو مېز ته کېنئ |
| 8. Wascht euch! | تاسو ځانونه پرېمينځئ |
| 9. Räum den Tisch ab! | ته مېز راټول کړئ |
| 10. Lade deine Freunde ein! | ته خپل ملګري مېلمه کړه |

# Aktiv und Passiv فعال او غير فعال يا مفعول

په لغوي مانا (Aktiv) فعال ته وايي، يعني هغه څوك چې پخپله په فعال ډول په يو چا يا په يو شي باندې يو څه کوي چې په جرمني ژبه کې ورته (Tätigkeitsform) يعني (د فعاليت ډول) وايي. (Passiv) غيرفعال ته وايي، يعني هغه څوك يا هغه شی چې د يو چا له خوا په هغه باندې لکه په د يو مظلوم په شان زورزياتی کيږي چې په جرمني ژبه کې ورته (Leideform) يعني د (ځورېدلو يا د کړول کېدلو ډول) وايي. مثال:

| | |
|---|---|
| Der Wolf hat das Schaf gerissen. | لېوه پسه ونيوه او بدن يې ورته ځيرې ځيرې کړو |

په پورتني مثال کې څرګنده ده چې (لېوه = der Wolf) د مانا او د ګرامر په اساس (فاعل = Aktiv) دی، ځکه چې هغه په پسه باندې زورزياتی کوي، او پسه (مفعول = Passiv) دی، ځکه چې په هغه باندې د لېوه له خوا ظلم کيږي او بدن يې ځيرې ځيرې کيږي. نو په دې ډول داسې ښکاري چې (Aktiv) تل يو فعال يا کوم ظالم کس شو او (Passiv) يو غيرفعال او مظلوم کس شو. خو دومره ساده چې دا ښکاري، د ګرامر له اړخه دا مبحث دومره ساده بيا ندي. دا چې ولې، دا به په لاندې برخه کې وګورو. مثال:

| | |
|---|---|
| Der Tote liegt im Grab. | مړی په قبر کې پروت دی |

دلته د ګرامر په اساس (der Tote) یا (مړی) د جملې فاعل یا فعالیت کوونکی دی. نو په دې وجه دا سوال به په ځای وي چې مړی څه فعالیت کوي؟

دا لاندینی جمله د (Passiv) په برخه کې بیا برعکس معلومات ورکوي:

| |
|---|
| Ihm wurde für den tapferen Kampf ein Preis verliehen. |
| هغه ته د زړورې جګړې په وجه یوه جایزه ورکړل شوه |

په پورتنۍ جمله کې هغه سړی چې زړوره جګړه یې کړېده او په دې وجه ورته یوه جایزه ورکول کیږي، په حقیقت کې کوم غېر فعال او مظلوم سړی ندی، خو د ګرامر له اړخه (Passiv) یا (غېرفعال) دی. نو پورتنۍ جمله دا ښکاره کوی چې (Aktiv) تل لپاره د (فعال) او (Passiv) د (غیرفعال یا ځورېدلي) کس ندی. نو رابه شو دې ته چې د (Aktiv) او (Passiv) نه نو هدف څه دی؟
(Aktiv) که په واقعیت کې فعال دی او که نه دی خو په جمله کې (Subjekt) یا د جملې ګرامري فاعل یا کوونکی هرومرو دی. مثال:

| | |
|---|---|
| Der Lehrer fragt den Schüler. | ښوونکی له زده کوونکي نه پوښتنه کوي |

دلته ښوونکی د مانا په اساس هغه څوک دی چې یو څه کوي، یعنې فاعل دی، او په ګرامري ډول د جملې (Subjekt) یا فاعل او حالت یې (Nominativ) دی. (der Schüler) یا زده کوونکی هغه څوک دی چې په هغه باندې یو څه کیږي، یعنې له هغه نه پوښتنه کیږي. نو په دې اساس (den Schüler) د جملې مفعول یا (Objekt) دی او حالت یې (Akkusativ) دی.

**څرنګه له (Aktiv) نه (Passiv) او له (Passiv) نه (Aktiv) جوړېدلی شي؟**

دا په دې ډول جوړېدلی شي چې د یوې جملې ګرامري مفعول په فاعل بدل شي یا په بل عبارت له (Objekt) او یا له (Akkusativ) نه (Subjekt) او یا (Nominativ) جوړ شي. نو په دې ډول له (den Schüler) نه به (der Schüler) او له (der Lehrer) نه به (vom Lehrer) جوړ شي:

| | |
|---|---|
| Der Schüler wird vom Lehrer gefragt. | له زده کوونکي نه د ښوونکي له خوا پوښتنه کیږي |

**د (Passiv) جملې فعل باندې څه کیږي؟**

په (Aktiv) جمله کې ویل کیږي چې:

| | | |
|---|---|---|
| er fragt | = | هغه پوښتنه کوي |

خو په (Passiv) کې ویل کیږي چې:

| | | |
|---|---|---|
| er wird gefragt | = | له هغه نه پوښتنه کیږي |

که چېرته دا پورتنۍ دواړه جملې د یو بل سره پرتله کړو، نو په پښتو کې هم په فعل کې یو بدلون لیدل کیږي او هغه دا دی:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| له | (کوي ) | نه | (کیږي) | جوړیږي |

نو په دې ډول په جرمني ژبه کې هم د (پوښتنه کول = fragen) سره (werden) یو ځای کیږي او بیا (werden) ګردانیږي چې په (Passiv) کې ورنه (پوښتنه کېدل = gefragt werden).جوړیږي.

په پورتنۍ جمله کې که سړی ښه پام ونیسي، نود (Aktiv) او د (Passiv) د جملو په مانا او مفهوم کې هېڅ توپیر نشته. یو ځل ویل کیږي چې (ښوونکی له زده کوونکي نه پوښتنه کوي) او بل ځل ویل کیږي (له زده کوونکي نه د ښوونکي له خوا پوښتنه کیږي). د دې دواړو جملو د مفهوم توپیر څه شو؟ په ریښتیا چې هېڅ توپیر یکې نشته. نو چې توپیر پکې نشته، دا پوښتنه په حقه ده چې (Passiv) نو د څه لپاره پکاریږي؟ دا موضوع به په لاندې برخه کې وګورو.

**د (Passiv) او (Aktiv) اهمیت څه دی، ولې (Passiv) یا (Aktiv) استعمالیږي:**

په (Aktiv) کې هغه څوك چې یو کار کوي هغه مهم او غټ ښکاره کیږي او یا په ټینګار یادیږي. دا چې څه کار کوي دا دومره مهم نه ښکاره کیږي یا په ټینګار نه ویل کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich habe ihm gestern geholfen. | ما له هغه سره پرون مرسته وکړه |

په پورتنۍ جمله کې هغه څوك چې مرسته کوي ډېر مهم دی او هغه (زه = ich) دی چې په جمله کې فاعل یا (Subjekt) دی.
په (Passiv) کې برعکس هغه څوك چې یو کار کوي مهم نه دی او په تآکید نه یادیږي او کله کله حتی نوم یې یا په قوس کې لیکل کیږي او یا هېڅ نه یادیږي. کوم شی چې مهم دی، هغه کار یا عمل دی چې کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ihm ist gestern (von mir) geholfen worden. | له هغه سره (زما له خوا) پرون مرسته وشوه |

څنګه چې په پورتنۍ جمله کې ښکاریږي، مهمه دا ده چې له هغه سره مرسته وشوه، دا چې چا مرسته کړېده، دا په قوس کې لیکل شویدي. کله کله د کار کوونکی نوم هېڅ نه یادیږي، په لاندې ډول:

| | |
|---|---|
| Ihm ist gestern geholfen worden. | له هغه سره پرون مرسته وشوه |

تکرار : له (Passiv) جملو نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې:

| | |
|---|---|
| 1 | کله چې یو فاعل چا ته معلوم نه وي |
| 2 | کله چې سړی د فاعل د نوم یادول نه غواړي |
| 3 | کله چې فاعل هېڅ مهم نه وي او یا به هغه پخوا په کوم مضمون او یا په کومې جملې کې یاد شوی وي |




Die Akkusativergänzung (= Objekt) des Aktivsatzes wird zur Nominativergänzung (= Subjekt) des Passivsatzes).
په پورتنۍ (Aktiv) جمله کې د جملې مفعول یا (Akkusativ) په (Passiv) جمله کې په فاعل بدل شوېدی، یعني ورنه (Nominativ) جوړ شوېدی.

Die Nominativergänzung (= Subjekt) des Aktivsatzes kann mit „von“+Dativ in den Passivsatz integriert werden.




په پورتنۍ (Aktiv) جمله کې د فاعل یا (Subjekt) لپاره د (man) کلمه کارول شوېده چې مانا یې ده (کوم چا). خو په (Passiv) جمله بیا د (man) کلمه له مینځه ځي.

## Passivfähigkeit هغه فعلونه چې (Passiv) ورنه جوړېدی شي

Fast alle Verben mit einer Akkusativ-Ergänzung können ein Passiv bilden.
نږدې ټول فعلونه چې (Akkusativ) ورسره وي، نو (Passiv) ورنه جوړېدی شي

**Nicht passivfähig sind jedoch:**
**هغه فعلونه چې (Passiv) ورنه نشي جوړېدی، سره له دې چې (Akkusativ) ورسره وي**

| | |
|---|---|
| **1. Verben ohne Aktion** | **هغه فعلونه چې عملي کار یا کړنه پکې نه وي** |
| Ich habe Schulden.<br>Das hat mich einen großen Haufen Geld gekostet.<br>Ich kenne die Preise. | زه پوروړی یم، زه قرضداره یم<br>په دې باندې زما ډېرې پیسي ولګېدلې<br>ماته نرخونه معلوم دي |
| **2. Reflexive Verben** | |
| Ich erkundige mich nach den Preisen.<br>Er beruhigte sich schnell wieder. | زه د نرخونو پوښتنه کوم<br>هغه ژر بېرته ارام شو |

پورتنۍ جملې مونږ ته ښایي چې له هرې (Aktiv) جملې نه (Passiv) نشي جوړیدلی، نو په دې وجه ادا به غلطه وي چې له دې جملو نه (Passiv) جوړ شي

د (Passiv) جوړول په مختلفو حالاتو کې:

## Passiv im Präsens اوسنی وخت یا حال

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | liebe زه مینه کوم | werde geliebt له ما سره مینه کیږي |
| du | liebst ته مینه کوې | wirst geliebt له تا سره مینه کیږي |
| er/sie/es | liebt هغه مینه کوي | wird geliebt له هغه سره مینه کیږي |
| wir | lieben موږ مینه کوو | werden geliebt له موږ سره مینه کیږي |
| ihr | liebt تاسو مینه کوئ | werdet geliebt له تاسو سره مینه کیږي |
| sie | lieben هغوی مینه کوي | werden geliebt له هغو سره مینه کیږي |

Beispielsätze:
Ich liebe meine Familie. زه له خپلې کورنۍ سره مینه لرم
Ich werde von meiner Familie von ganzem Herzen geliebt.
ماته د خپلې کورنۍ له خوا د زړه مینه راکول کیږي

## Passiv im Präteritum مطلق تېر وخت یا مطلقه ماضي

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | liebte ما مینه وکړه | wurde geliebt له ما سره مینه وشوه |
| du | liebtest تا مینه وکړه | wurdest geliebt له تا سره مینه وشوه |
| er/sie/es | liebte هغه مینه وکړه | wurde geliebt له هغه سره مینه وشوه |
| wir | liebten موږ مینه وکړه | wurden geliebt له موږ سره مینه وشوه |
| ihr | liebtet تاسو مینه وکړه | wurdet geliebt له تاسو سره مینه کوشوه |
| sie | liebten هغوی مینه وکړه | wurden geliebt له هغوی سره مینه وشوه |

Beispielsätze:
Ich liebte früher meine Schule. پخوا زما خپل ښوونځی سره مینه وه
Ich wurde früher von meinem Geliebten geliebt.
پخوا ماته زما د لالي له خوا مینه راکول کېدله

## Passiv im Perfekt لنډ تېر وخت یا نږدې ماضي

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | habe geliebt ما مینه کړېده | bin geliebt worden له ما سره مینه شوېده |
| du | hast geliebt تا مینه کړېده | bist geliebt worden له تا سره مینه شوېده |
| er/sie/es | hat geliebt هغه مینه کړېده | ist geliebt worden له هغه سره مینه شوېده |
| wir | haben geliebt موږ مینه کړېده | sind geliebt worden له موږ سره مینه شوېده |
| ihr | habt geliebt تاسو مینه کړېده | seid geliebt worden له تاسو سره مینه شوېده |
| sie | haben geliebt هغوی مینه کړېده | sind geliebt worden له هغوی سره مینه شوېده |

Beispielsätze:
Ich habe immer meine Familie geliebt. ما تل د خپلې کورنۍ سره مينه درلوده
Ich bin immer von meiner Familie geliebt worden.
له ما سره زما د کورنۍ له خوا تل مينه شوېده

## Passiv im Plusquamperfekt دېر پخوانی وخت يا بعيده ماضي

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | hatte geliebt ما مينه کړې وه | war geliebt worden له ما سره مينه شوې وه |
| du | hattest geliebt تا مينه کړې وه | warst geliebt worden له تا سره مينه شوې وه |
| er/sie/es | hatte geliebt هغه مينه کړې وه | war geliebt worden له هغه سره مينه شوې وه |
| wir | hatten geliebt مونږ مينه کړې وه | waren geliebt worden له مونږ سره مينه شوې وه |
| ihr | hattet geliebt تاسو مينه کړې وه | wart geliebt worden له تاسو سره مينه شوې وه |
| sie | hatten geliebt هغوی مينه کړې وه | waren geliebt worden له هغوی سره مينه شوې وه |

Beispielsätze:
Ich hatte meine Familie immer geliebt. ما له خپلې کورنۍ سره تل مينه درلوده
Ich war von meiner Familie immer geliebt worden.
له ما سره زما د کورنۍ له خوا تل مينه شوېده

## Passiv im Futur I نږدې راتلونکی

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | werde lieben زه به مينه وکړم | werde geliebt werden له ما سره به مينه وشي |
| du | wirst lieben ته به مينه وکړې | wirst geliebt werden له تا سره به مينه وشي |
| er/sie/es | wird lieben هغه به مينه وکړي | wird geliebt werden له هغه سره به مينه وشي |
| wir | werden lieben مونږ به مينه وکړو | werden geliebt werden له مونږ سره به مينه وشي |
| ihr | werdet lieben تاسو به مينه وکړئ | werdet geliebt werden له تاسو سره به مينه وشي |
| sie | werden lieben هغوی به مينه وکړي | werden geliebt werden له هغوي سره به مينه وشي |

Beispielsätze:
Ich werde dich nie lieben. زه به له تا سره هېڅکله مينه ونلرم
Ich werde von dir nie geliebt werden. له ما سره به هېڅکله ستا مينه ونشي

## Passiv im Futur II لیري راتلونکی

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | werde geliebt haben<br>ما به مینه کړې وي | werde geliebt worden sein<br>له ما سره به مینه شوې وي |
| du | wirst geliebt haben<br>تا به مینه کړې وي | wirst geliebt worden sein<br>له تا سره به مینه شوې وي |
| er/sie/es | wird geliebt haben<br>هغه به مینه کړې وي | wird geliebt worden sein<br>له هغه سره به مینه شوې وي |
| wir | werden geliebt haben<br>مونږ به مینه کړې وي | werden geliebt worden sein<br>له مونږ سره به مینه شوې وي |
| ihr | werdet geliebt haben<br>تاسو به مینه کړې وي | werdet geliebt worden sein<br>له تاسو سره به مینه شوې وي |
| sie | werden geliebt haben<br>هغوي به مینه کړې وي | werden geliebt worden sein<br>له هغوي سره به مینه شوې وي |

Beispielsätze:
Ich werde meinen Geliebten damals geliebt haben.
په هغه وخت کې به زما د خپل لالي سره مینه وه
Ich werde damals von meinem Geliebten geliebt worden sein.
په هغه وخت کې به له ما سره زما د لالي له خوا مینه شوې وي

## Passiv Präsens von „waschen“ اوسنی وخت یا حال

| | Aktiv | | Passiv | |
|---|---|---|---|---|
| ich | wasche | زه پرېمینځم | werde gewaschen | زه پرېمینځل کیږم |
| du | wäschst | ته پرېمینځې | wirst gewaschen | ته پرېمینځل کیږې |
| er/sie/es | wäscht | هغه پرېمینځي | wird gewaschen | هغه پرېمینځل کیږي |
| wir | waschen | مونږ پرېمینځو | werden gewaschen | مونږ پرېمینځل کیږو |
| ihr | wascht | تاسو پرېمینځئ | werdet gewaschen | تاسو پرېمینځل کیږئ |
| sie | waschen | هغوي پرېمینځي | werden gewaschen | هغوي پرېمینځل کیږي |

Beispielsätze:
Ich wasche mich jeden Tag selbst. زه هره ورځ ځان پخپله پرېمینځم
Ich werde von meiner Mutter gewaschen. زه د خپلې مور له خوا پرېمینځل کیږم

## Passiv Präteritum مطلق پخوانی وخت یا مطلقه ماضي

| | Aktiv | | Passiv | |
|---|---|---|---|---|
| ich | wusch | ما پرېمینځو | wurde gewaschen | زه پرېمینځل شوم |
| du | wuschest | تا پرېمینځو | wurdest gewaschen | ته پرېمینځل شوې |

| | | |
|---|---|---|
| er/sie/es | wusch هغه پرېمینځو | wurde gewaschen هغه پرېمینځل شو |
| wir | wuschen مونږ پرېمینځو | wurden gewaschen مونږ پرېمینځل شو |
| ihr | wuschet تاسو پرېمینځو | wurdet gewaschen تاسو پرېمینځل شوئ |
| sie | wuschen هغوی پرېمینځو | wurden gewaschen هغوی پرېمینځل شول |

Beispielsätze:
Ich wusch mir gestern die Füße. پرون ما خپلې پښې پرېمینځلې
Ich wurde gestern von meiner Mutter gewaschen.
پرون زه د خپلې مور له خوا پرېمینځل شوم

## Passiv Perfekt نږدې تېر وخت یا نږدې ماضي

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | habe gewaschen ما مینځلی دی | bin gewaschen worden زه مینځل شوی یم |
| du | hast gewaschen تا مینځلی دی | bist gewaschen worden ته پرېمینځل شوی یې |
| er/sie/es | hat gewaschen هغه مینځلی دی | ist gewaschen worden هغه مینځل شوی دی |
| wir | haben gewaschen مونږ مینځلی دی | sind gewaschen worden مونږ مینځل شوي یو |
| ihr | habt gewaschen تاسو مینځلی دی | seid gewaschen worden تاسو مینځل شوي یاست |
| sie | haben gewaschen هغوی مینځلی دی | sind gewaschen worden هغوی مینځل شویدي |

Beispielsätze:
Ich habe mich gestern gewaschen. ما پرون ځان پرېمینځو
Ich bin gestern von meiner Mutter gewaschen worden.
زه پرون د خپلې مور له خوا پرېمینځل شوی یم

## Passiv Plusquamperfekt ډېر پخوانی وخت یا بعیده ماضي

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | hatte gewaschen ما مینځلی و | war gewaschen worden زه مینځل شوی وم |
| du | hattest gewaschen تا مینځلی و | warst gewaschen worden ته مینځل شوی وې |
| er/sie/es | hatte gewaschen هغه مینځلی و | war gewaschen worden هغه مینځل شوی و |
| wir | hatten gewaschen مونږ مینځلی و | waren gewaschen worden مونږ مینځل شوي وو |
| ihr | hattet gewaschen تاسو مینځلی و | wart gewaschen worden تاسو مینځل شوي واست |
| sie | hatten gewaschen هغوی مینځلی و | waren gewaschen worden هغوی مینځل شوي وو |

Beispielsätze:
Gestern hatte ich mich nicht gewaschen. پرون ما ځان نه و پرېمينځلی
Gestern war ich von meiner Mutter nicht gewaschen worden.
پرون زه د خپلې مور له خوا نه وم پرېمينځل شوی

## Passiv Futur I نږدې راتلونکی

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | werde waschen زه به پرېمينځم | werde gewaschen werden زه به پرېمينځل شم |
| du | wirst waschen ته به پرېمينځې | wirst gewaschen werden ته به پرېمينځل شې |
| er/sie/es | wird waschen هغه به پرېمينځي | wird gewaschen werden هغه به پرېمينځل شي |
| wir | werden waschen مونږ به پرېمينځو | werden gewaschen werden مونږ به پرېمينځل شو |
| ihr | werdet waschen تاسو به پرېمينځئ | werdet gewaschen werden تاسو به پرېمينځل شئ |
| sie | werden waschen هغوی به پرېمينځي | werden gewaschen werden هغوی به پرېمينځل شي |

Beispielsätze:
Ich werde mich morgen waschen. زه به سبا ځان پرېمينځم
Ich werde morgen von meiner Mutter gewaschen werden.
زه به سبا د خپلې مور له خوا پرېمينځل شم

## Passiv Futur II لیرې راتلونکی

| | Aktiv | Passiv |
|---|---|---|
| ich | werde gewaschen haben ما به پرېمينځلی وي | werde gewaschen worden sein زه به پرېمينځل شوی یم |
| du | wirst gewaschen haben تا به پرېمينځلی وي | wirst gewaschen worden sein ته به پرېمينځل شوی یې |
| er/sie/es | wird gewaschen haben هغه به پرېمينځلی وي | wird gewaschen worden sein هغه به پرېمينځل شوی وي |
| wir | werden gewaschen haben مونږ به پرېمينځلی وي | werden gewaschen worden sein مونږ به پرېمينځل شوي یو |
| ihr | werdet gewaschen haben تاسو به پرېمينځلی وي | werdet gewaschen worden sein تاسو به پرېمينځل شوي یاست |
| sie | werdet gewaschen haben هغوی به پرېمينځلی وي | werden gewaschen worden sein هغوی به پرېمينځل شوي وي |

Beispielsätze:
Ich werde mich morgen um 8 Uhr gewaschen haben.ما به سبا په ۸ بجو ځان پرېمينځلی وي
Ich werde morgen um 8 Uhr gewaschen worden sein.
زه به سبا په ۸ بجو پرېمينځل شوی يم

**Übungen:** Formen Sie die Aktivsätze in Passivsätze um (Vorgangspassiv). Verwenden Sie die gleiche Zeitform wie im Aktivsatz.

1. Er liest ein Buch. هغه کتاب لولي
2. Gestern unterschrieb er den Vertrag. پرون هغه قرارداد لاسليك کړو
3. Ein Auto hat mich angefahren. زه موټر ووهلم
4. Meine Freunde werden meine Pflanzen gießen.
زما ملګري به زما بوټو ته اوبه واچوي
5. Sein Großvater hatte das Haus gebaut. د هغه نيکه دا کور جوړ کړی دی
6. Ich gebe dir das Buch zurück. زه درته کتاب بېرته درکوم
7. Er rief sie gestern an. هغه هغي ته پرون ټيلفون وکړو
8. Sie empfahlen mir ein gutes Restaurant. هغوی ما ته د يو ښه رستوران سپارښتنه وکړه
9. Das Finanzamt hat ihm die Zahlung bestätigt.
د ماليې وزارت هغه ته د تحويل شوو پيسو تصديق وکړو
10. Jemand hat uns die Taschen gestohlen. کوم چا زمونږ بکسونه غلا کړي دي

**Lösungen:**
1. Ein Buch wird gelesen. کتاب لوستل کيږي
2. Der Vertrag wurde gestern unterschrieben. قرارداد پرون لاسليك شو
3. Ich bin angefahren worden. زه موټر وهلی يم
4. Meine Pflanzen werden gegossen werden. زما بوټو ته به اوبه واچول شي
5. Das Haus war gebaut worden. کور جوړ کړی شوی و
6. Dir wird das Buch zurückgegeben. تا ته به کتاب بېرته درکړل شي
7. Sie wurde gestern angerufen. هغي ته پرون ټيلفون وشو
8. Mir wurde ein gutes Restaurant empfohlen. ماته د يو ښه رستوران سپارښتنه وشوه
9. Ihm ist die Zahlung bestätigt worden. هغه ته د ورکړل شوو پيسو تصديق وشو
10. Uns sind die Taschen gestohlen worden. زمونږ بکسونه غلا شول

**Übungen:** Setzen Sie folgende Aktivsätze ins Passiv.
1. Der Junge liebt das Mädchen. د دې هلك دا نجلی خوښيږي
2. Der Schüler bringt die Bücher zurück. زده کوونکی کتابونه بېرته ورکوي
3. Die Männer tragen den schweren Schrank. سړي دا درنه الماری وړي
4. Die Krankenschwester hilft dem Arzt. نرسه له ډاکټر سره مرسته کوي
5. In München trinkt man viel Bier. د مونشن په ښار کي خلك ډېر بير څښي
6. Man muss das Auto reparieren. سړی بايد دا موټر جوړ کړي
7. Sie muss die Aufgabe berichtigen. هغه بايد دا سوال اصلاح کړي
8. Man hat das Fenster aufgemacht. کوم چا دا کړکی پرانيستلې ده

9. Seine Frau musste das Auto abholen. د هغه ښځه مجبوره وه چي موټر راولي
10. Man hat den Stuhl reparieren müssen. سړي باید دا چوکی جوړه کړې وای

**Lösungen:**
1. Das Mädchen wird von dem Jungen geliebt. دا نجلۍ د دې هلك خوښیږي
2. Die Bücher werden von dem Schüler zurückgebracht.
کتابونه د زده کوونکي له خوا بېرته ورکول کیږي
3. Der schwere Schrank wird von den Männern getragen.
دا درنه الماری د سړو له خوا وړل کیږي
4. Dem Arzt wird von der Krankenschwester geholfen.
د ډاکټر سره د نرسې له خوا مرسته کیږي
5. In München wird viel Bier getrunken. د مونشن په ښار کې ډېر بیر څښل کیږي
6. Das Auto muss repariert werden. دا موټر باید جوړ کړی شي
7. Die Aufgabe muss von ihr berichtigt werden.
دا سوال باید د هغې له خوا اصلاح کړی شي
8. Das Fenster ist aufgemacht worden. دا کړکۍ پرانیستل شوې ده
9. Das Auto musste von seiner Frau abgeholt werden.
دا موټر باید د هغه د ښځې له خوا راوړل شوی وای
10. Der Stuhl hat repariert werden müssen. دا چوکی باید جوړه شوې وای

**Übungen:** Setzen Sie folgende Aktivsätze in Passivsätze und umgekehrt.

1. Die kranken Bäume müssen gefällt werden. ناروغه وني باید ووهلې شي
2. Hier darf nicht geraucht werden. دلته داجازه نشته چي سګرټ وڅکول شي
3. Niemand hat dich nicht angerufen. تا ته هېڅ چا ټېلفون ندی کړی
4. Die alten Häuser müssen renoviert werden. زاړه کورونه باید بېرته جوړ کړی شي
5. Man musste stundenlang warten. سړي مجبور و چې په ساعتو ساعتو انتظار وباسي
6. Die Aufgabe konnte nicht gelöst werden. دا سوال حل نکړی شو
7. Ihnen wurde nicht geholfen. له هغوی سره مرسته ونشوه
8. Darüber ist nicht gesprochen worden. په دې برخه کې څه خبرې ندي شوي
9. Sie feierten die ganze Nacht durch. هغوی ټوله شپه په ساعت تېرۍ تېره کړه
10. Die Todesstrafe wird abgeschafft werden. د وژني جزا به له مینځه یووړل شي

**Lösungen:**
1. Man muss die kranken Bäume fällen. سړي باید ناروغه وني ووهي
2. Man darf hier nicht rauchen. دلته اجازه نشته چي څوك سګرټ وڅکوي
3. Du bist von niemandem angerufen worden. تا ته د هېڅ چا له خوا ټېلفون ندی شوی
4. Man muss die alten Häuser renovieren. سړی باید دا زاړه کورونه بېرته جوړ کړي
5. Es musste stundenlang gewartet werden. په ساعتو ساعتو باید انتظار وېستل شوی وای
6. Man konnte die Aufgabe nicht lösen. دا سوال سړي نشو حلولی
7. Man half ihnen nicht. له هغوی سره کوم چا مرسته ونکړه
8. Man hat darüber nicht gesprochen. په دې برخه کې چا څه خبرې ونکړې
9. Es wurde die ganze Nacht durchgefeiert. ټوله شپه په ساعت تېرۍ تېره کړی شوه
10. Man wird die Todesstrafe abschaffen. د وژني جزا به خلك هیسته کړي

## Zustandspassiv und Vorgangspassiv

(Passiv) په دوه ډولو دی، یو دا چې یو کار جریان لري چې د ې ته (Vorgangspassiv) وایي. د بېلګې په توګه که یوه ورځ د ټاکنو یا انتخاباتو ورځ وي او د صدراعظمی کاندید ووایي چې:

| | |
|---|---|
| Heute werde ich zum Kanzler gewählt. | زه به نن د صدراعظم په توګه وټاکل شم |

نو که د ده خبره رېښتیا شي، نو ټاکنې او بیا صدراعظم کېدل یو بهیر یا یو جریان دی چې په مخه روان دی نو ځکه ورته (Vorgangspassiv) وایي. که ده ټاکنې وګټلې او دی په رېښتیا د صدراعظم په توګه وټاکل شو نو دی وایي چې:

| | |
|---|---|
| Heute bin ich zum Kanzler gewählt worden. | زه نن د صدراعظم په توګه وټاکل شوم |

په دې ډول دا عمل پای ته ورسېد، خبره خلاصه شوه، نو دا یو بهیر یا یو جریان خپل هدف ته ورسېد او هلته ودرېد. دا په یو واقعیت یا یو حالت بدل شو چې دې ته (Zustandspassiv) وایي. څرنګه چې په پورتنیو مثالونو کې لیدل کیږي، هغه (Passiv) چې یو بهیر او یا یو جریان بیانوي، هغه د (werden) سره یوځای کیږي او بیا (werden) ګردانیږي، په پورتنۍ جمله کې لیکل شوي دي:

| | | |
|---|---|---|
| werde | … | gewählt |

او (Zustandspassiv) له (sein) سره استعمالیږي چې بیا (sein) ګردانیږي. په پورتنۍ جمله کې راغلي دي چې:

| | | |
|---|---|---|
| bin | … | gewählt |

بل مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Ich öffne das Fenster. | | زه کړکۍ پرانیځم |
| Vorgangspassiv | Das Fenster wird von mir geöffnet. | کړکۍ زما له خوا پرانیستل کیږي |
| Zustandspassiv | Das Fenster ist geöffnet. | کړکۍ پرانیستل شوې ده |

## Vorgangspassiv

Transitive Verben = Verben mit Akkusativobjekt    متعدي فعلونه

| Aktiv | Vorgangspassiv |
|---|---|
| Die Mutter gibt dem Jungen den Schlüssel. مور هلك ته کیلي ورکوي | Der Schlüssel wird dem Jungen von der Mutter gegeben. کیلي د مور له خوا هلك ته ورکول کیږي |

| | | |
|---|---|---|
| قاعده | ① | د (Aktiv) جملې له فاعل سره، یعنې له (die Mutter) سره (von) یوځای کیږي او د (Dativ) په توګه کارول کیږي، په دې ډول: (… von der Mutter) |

| | | |
|---|---|---|
| د (Aktiv) جملې (Akkusativ)، یعني (den Schlüssel) د (Passiv) جملې په (Nominativ) بدلیږي، یعني له (den Schlüssel …) نه (der Schlüssel …) جوړیږي | ② | |
| د (Aktiv) جملې له فعل سره (werden) یوځای کیږي او بیا (werden) ګردانیږي، یعني ورنه (wird …. gegeben) جوړیږي | ③ | |
| د (Aktiv) جملې پاتې برخې، لکه (Dativobjekt) ، یعني (dem Jungen) پخپل حال پاتې کیږي او د (Passiv) په جمله کې د (dem Jungen) په توګه استعمالیږي | ④ | |

## Intransitive Verben mit Genitiv-, Dativ- oder Präpositionalobjekt

**لازمي فعلونه (هغه فعلونه چې Akkusativ ورسره نه کارول کیږي)**

| Aktiv | Vorgangspassiv |
|---|---|
| Der Lehrer hilft den Schülern.<br>ښوونکی له زده کوونکو سره مرسته کوي | Den Schülern wird vom Lehrer geholfen. له زده کوونکو سره د ښوونکي له خوا مرسته کیږي |

| | | |
|---|---|---|
| د (Aktiv) جملې له فاعل سره، یعني له (Lehrer) سره (von) یوځای کیږي او د (Dativ) په توګه کارول کیږي، په دې ډول: (vom Lehrer) | ① | قاعده |
| د (Aktiv) د جملې له فعل، یعني له (helfen) سره (werden) یوځای کیږي او بیا همدغه (werden) ګردانیږي، په دې ډول: (wird … geholfen) | ② | |
| د جملې (Dativobjekt, Genitivobjekt, Präpositionalobjekt) ، یعني (den Schülern) پخپل حال پاتې کیږي | ③ | |

## Intransitive Verben ohne Objekt هغه لازمي فعلونه چې هیڅ مفعول نلري

| Aktiv | Vorgangspassiv |
|---|---|
| Die Zuschauer klatschen.<br>ننداریان چکچکې کوي<br>Man schwieg. خلك غلي شول<br>Die Kinder lachten. ماشومانو وخندل | Es wird von den Zuschauern geklatscht. د ننداریانو له خوا چکچکې کیږي.<br>Es wurde geschwiegen. چوپه چوپتیا شوه<br>Es wurde von den Kindern gelacht.<br>د ماشومانو له خوا وخندل شول |

| | | |
|---|---|---|
| د (Aktiv) جملې له فاعل، یعني له (die Zuschauer) سره (von) یوځای کیږي او د (Dativ) په توګه کارول کیږي، په دې ډول: (von den Zuschauern) | ① | قاعده |
| که چیرته د (Aktiv) جملې فاعل یو واقعي فاعل نه وي یعني (man) وي، نو په (Passiv) کې د جملې د فاعل لپاره ( es) کارول کیږي، په دې ډول: (es wurde …) | ② | |
| د (Aktiv) جملې له فعل سره، یعني له (klatschen) سره (werden) یوځای کیږي او بیا (werden) ګردانیږي، په دې ډول: (wird … geklatscht, wurde … geschwiegen) | ③ | |

## Spezialfall: Vorgangspassiv zum Ausdruck eines Befehls

**د امر لپاره خا  حالت**

ځيني فعلونه شته چي اصلاً د (Passiv) لپاره نه استعماليږي خو په اصطلاحي ژبه کارول کيږي چي زياتره وخت د (*nun, jetzt, sofort*) سره ګډ راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Und jetzt wird geschlafen! | اوس نو د خوب وخت دی او تاسو ويده شئ! |
| Nun wird wieder gearbeitet! | اوس نو د کار وخت دی او تاسو کار وکړئ! |
| Das Zimmer wird sofort aufgeräumt! | کوټه بايد سمدلاسه راټوله کړی شي! |

**Übungen:**

1. Man diskutierte nicht. خبرې اترې کوم چا ونکړې
2. Die Regierung achtet auf die Einhaltung der Gesetze.
حکومت د قوانينو مراعات کولو ته پام کوي
3. Man glaubt ihm nicht. د هغه په خبرو څوك باور نکوي
4. Die Banken helfen den Fabriken mit zinslosen Krediten.
بانکونه له فابريکو سره په بې سوده قرضهورکولو مرسته کوي
5. Hat man Ihnen für Ihre Spende gedankt?
له تاسو نه کوم چا ستاسو د بسپني لپاره مننه وکړه؟
6. Ich wusste bereits, dass man ihr den Vertrag gekündigt hat.
زه خبر وم چي د هغي قرارداد يې فسخ کړی دی

**Lösungen:**

1. Es wurde nicht diskutiert. خبرې اترې ونشوې
2. Es wird von der Regierung auf die Einhaltung der Gesetze geachtet.
د حکومت له خوا د قوانينو په مراعاتولو پام کيږي
3. Es wird ihm nicht geglaubt. = Ihm wird nicht geglaubt. د هغه په خبرو باور نکيږي
4. Es wird den Fabriken von den Banken mit zinslosen Krediten geholfen
له فابريکو سره د بانکونو له خوا په بې سوده قرضه مرسته کيږي
5. Ist Ihnen für Ihre Spende gedankt worden? له تاسو نه ستاسو د بسپني لپاره مننه شوېده؟
6. Ich wusste bereits, dass der Vertrag gekündigt worden ist.
زه له دې نه خبر وم چي د هغي قرارداد فسخ شوی دی

## Bildung des Zustandspassivs د حالت بيانوونکی

هغه (Passiv) چي يو حالت بيانوي، په جوړولو کي يې د (werden) په ځای (sein) کارول کيږي او بيا (sein) ګردانيږي. دا په دې مانا چي په داسي حالاتو کي په (Passiv) کي هيڅ (werden) نه يادېږي. اصلاً بايد د دې جملو په پای کي (worden) راغلی وای. خو په داسي حالاتو کي بيا (worden) نه ويل کيږي.

| Vorgangspassiv | Zustandspassiv |
|---|---|
| Die Tür wird geöffnet.<br>دروازه پرانيستل کيږي | Die Tür ist geöffnet.<br>دروازه پرانيستل شوې ده |

| | |
|---|---|
| Die Angehörigen werden informiert.<br>خپلوانو ته خبر ورکول کیږي | Die Angehörigen sind informiert.<br>خپلوانو ته خبر ورکړل شوی دی |

**Vorgangspassiv** **پیښنه یا جریان بیانونکی**

که چېرته د یوې (Aktiv) جملې فاعل یو انسان وي نو په (Zustandspassiv) کې دا فاعل نه یادیږي

| Aktiv | Vorgangspassiv | Zustandspassiv = falsch |
|---|---|---|
| Der Lehrer öffnet die Tür.<br>ښوونکی دروازه پرانیځي | Die Tür wird vom Lehrer geöffnet. دروازه د ښوونکي له خوا پرانیستل کیږي | Die Tür ist vom Lehrer geöffnet = falsch.<br>دلته ښوونکی نه یادیږي |
| Die Behörden informier-en die Angehörigen.<br>مقامات خپلوان خبروي | Die Angehörigen werden von den Behörden informiert. خپلـوان د مقاماتو له خوا خبرول کیږي | Die Angehörigen sind von den Behörden informiert = falsch.<br>دلتـه مـقامـات نه یادیږي |

**که چېرته د یوې (Aktiv) جملې فاعل یوه وسیله وي، نو هغه وخت بیا یادول یې امکان لري:**

| Aktiv | Vorgangspassiv | Zustandspassiv |
|---|---|---|
| Der Regen weicht die Wege auf.<br>باران لارې پستوي | Die Wege werden durch den Regen aufgeweicht.<br>لارې په باران باندې پستیږي | Die Wege sind durch den Regen aufgeweicht.<br>لارې په باران باندې پستې شوېدي |

**Übungen:** Bilden Sie Sätze im Zustandspassiv.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| 1. | das Essen / kochen | ډوډۍ پخول | Präsens | ............................ |
| 2. | die Betten / machen | بسترې اچول | Präsens | ............................ |
| 3. | die Tür / verschließen | دروازه تړل | Präsens | ............................ |
| 4. | alles vorbereiten | هرڅه چمتو کول | Präsens | ............................ |
| 5. | die Fenster / öffnen | کړکۍ پرانیستل | Präsens | ............................ |

**Lösungen:**

1. Das Essen ist gekocht. ډوډۍ پخه ده
2. Die Betten sind gemacht. بسترې اچول شوي دي
3. Die Tür ist verschlossen. دروازه تړلې ده
4. Alles ist vorbereitet. هر څه چمتو وو
5. Die Fenster sind geöffnet. کړکۍ پرانیستې وي

## Das Passiv bei Modalverben

Modalverben können nicht ins Passiv gesetzt werden.

څنګه چې پورته لیکل شویدي، له (Modalverben) نه (Passiv) نه جوړیږي. خو که په یوه جمله کې بیا هم (Modalverben) وي، نو دا جمله په دې ډول په (Passiv) بدلیږي چې د جملې اصلي فعل په (Passiv) بدلیږي او (Modalverb) تش د (Passiv) د جملې د فاعل سره کردانیږي. مثال:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| müssen | ~~gemusst werden~~ | = | falsch | دا غلط دی |
| bezahlen | bezahlt werden | = | richtig | دا صحیح دی |

| Aktiv | Passiv |
|---|---|
| Ich muss die Kosten bezahlen. زه باید د لګښت پیسې یې ورکړم | Die Kosten müssen von mir bezahlt werden. د لګښت پیسې زما له خوا باید ورکړل شي |
| Sie durfte die Briefe nicht öffnen. هغې ته اجازه نه وه چې لیکونه پرانیځي | Die Briefe durften von ihr nicht geöffnet werden. اجازه نه وه چې لیکونه د هغې له خوا پرانیستل شي |
| Man hat den Patienten operieren müssen. سړي باید دا ناروغ عملیات کړی وای | Der Patient hat operiert werden müssen. دا ناروغ باید عملیات شوی وای |

| | | |
|---|---|---|
| Präsens | Der Patient muss operiert werden. | دا ناروغ باید عملیات شي |
| Präteritum | Der Patient musste operiert werden. | دا ناروغ باید عملیات شوی وای |
| Perfekt | Der Patient hat operiert werden müssen. | لکه پورتنۍ جملې غوندې |
| Plusquamperfekt | Der Patient hatte operiert werden müssen. | پورتنۍ جمله وګورئ |
| Futur I | Der Patient wird operiert werden müssen. | ناروغ باید عملیات شي |

| | |
|---|---|
| پوښتنه | له (wollen) نه په (Modalverb) کې څه جوړیږي؟ |
| ځواب | په (Passiv) کې له (wollen) نه (sollen) جوړیږي |

| Aktivsatz mit „wollen“ | Passivsatz mit „sollen“ |
|---|---|
| Man will am Stadtrand ein neues Fußballstadion errichten. په نظر کې نیول شویدي چې د ښار په اړخ کې د فوټبال یو نوی لوبغالی جوړ شي | Am Stadtrand soll eine neues Fußballstadion errichtet werden. ویل کیږي چې د ښار په اړخ کې به د فوټبال یو نوی لوبغالی جوړ شي |

### Passiv in der Infinitivkonstruktion

له یوې (Aktiv) جملې نه هغه وخت یوه (Passiv) جمله د (Infinitivsatz) په توګه جوړېدی شي چې فاعل یا (Subjekt) په اصلي جمله کې او په (dass-Satz) کې همغه یو کس وي. مثالونه په لاندیني جدول کې وګورئ:

| Aktiv | Passiv |
|---|---|
| Ich fürchte, dass ich bald entlassen werde. زه ډارېږم چې ژر به له کاره وشړل شم | Ich fürchte, bald entlassen zu werden. زه له کاره د ژر شړل کېدو نه ډارېږم |
| Sie hofft, dass sie von der Schule abgeholt wird. هغه هیله لري چې له ښوونځي نه راوستل شي | Sie hofft, von der Schule abgeholt zu werden. هغه له ښوونځي نه د راوستل کېدو هیله لري |
| Er behauptet, dass er niemals vorher gefragt worden ist. هغه ادعا کوي چې له دمخه هېڅ چا له هغه نه پوښتنه نده کړې | Er behauptet, niemals vorher gefragt worden zu sein. هغه ادعا کوي چې له هغه نه دمخه هېڅکله پوښتنه نده شوې |

**Übungen:**

Passiv oder Aktiv? Welche Zeitform? Wählen Sie aus.

1. Heute wird dein Geburtstag gefeiert. نن ستا کلیزه لمانځل کیږي

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

2. Ich werde ins Stadion kommen. زه به لوبغالي ته درشم

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

3. Er hat einen Brief geschrieben. هغه یو لیك لیکلی دی

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

4. Die Früchte werden geerntet. د مېوې حاصل به راټول شي

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

5. Hier wird oft Dialekt gesprochen. دلته په خپله لهجه خبرې کیږي

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

6. Das Buch wurde ins Deutsche übersetzt. کتاب جرمني ژبې ته واړول شو

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

7. Es wurde dort allmählich kalt. هوا هلته په کراره کراره سړه شوه

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

8. Wir sind nicht zur Feier eingeladen worden. مونږ محفل ته رابلل شوي نه یو

| Aktiv | | | | Passiv | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt | Präsens | Futur | Präteritum | Perfekt |

**Lösungen:**

1. Passiv Präsens 2. Aktiv Futur 3. Aktiv Perfekt 4. Passiv Präsens
5. Passiv Präsens 6. Passiv Präteritum 7. Aktiv Präteritum 8. Passiv Perfekt

**Übungen:**

1. Der Arzt muss den Mann operieren. ډاکټر باید دا سړی عملیات کړي
2. Der Arzt musste den Mann operieren. ډاکټر باید دا سړی عملیات کړی وای
3. Der Arzt hatte den Mann operieren müssen. ډاکټر دا سړی مجبوراً عملیات کړی دی
4. Der Arzt wird den Mann operieren müssen. ډاکټر په مجبوراً دا سړی عملیات کړي

**Lösungen:**

1. Der Mann muss operiert werden. دا سړی باید عملیات شي
2. Der Mann musste operiert werden. دا سړی باید عملیات شوی وای
3. Der Mann hatte operiert werden müssen. دا سړی باید عملیات شوی وای
4. Der Mann wird operiert werden müssen. دا سړی به مجبوراً عملیات شي

**Übungen:**

1. Man muss die Ware pünktlich liefern. سړی باید مال پخپل وخت کې ورسوي
2. Man musste die Ware pünktlich liefern. سړي باید مال پخپل وخت کې رسولی وای
3. Man hat die Ware pünktlich liefern müssen. سړي باید مال پخپل وخت کې رسولی وای
4. Man hatte die Ware pünktlich liefern müssen. سړي باید مال پخپل وخت کې رسولی وای
5. Man wird die Ware pünktlich liefern müssen.
سړی به مال ضروراً پخپل وخت کې رسوي
6. Man wird die Ware pünktlich geliefert haben müssen.
سړي به مال ضرروراً پخپل وخت کې رسولی وي

**Lösungen:**

1. Die Ware muss pünktlich geliefert werden. مال باید پخپل وخت کې ورسول شي
2. Die Ware musste pünktlich geliefert werden. مال باید پخپل وخت کې رسول شوی وای
3. Die Ware hat pünktlich geliefert werden müssen.
مال باید پخپل وخت کې رسول شوی وای
4. Die Ware hatte pünktlich geliefert werden müssen.
مال باید پخپل وخت کې رسول شوی وای
5. Die Ware wird pünktlich geliefert werden müssen.
مال به ضرور پخپل وخت کې رسول شوی وي
6. (wird nicht verwendet) دا نه کارول کیږي

# Konjunktionen      د تړاو حرفونه

(Konjunktion) یو لاتیني لغت دی چې په ګرامر کې له یو بل سره د دوه جملو، د دوه لغاتو یا د دوه حرفونو د نښلولو حرف ته وایي. په جرمني ژبه کې ورته (Bindewort) وایي. اوس به دوه جملې وګورو چې بېلې بېلې دي او بیا د (Konjunktion) په مرسته له یو بل سره نښلول کیږي:

| 1. Hauptsatz | | 2. Hauptsatz | |
|---|---|---|---|
| Wir kaufen Äpfel. | مونږ مڼې په بیه اخلو | Wir kaufen Birnen. | مونږ ناك په بیه اخلو |

اوس به دا دواړه جملې له یو بل سره د یو (Konjuntion) په مرسته ونښلوو او ورنه به یوه جمله جوړه کړو.

| Konjunktionalsatz | |
|---|---|
| Wir kaufen Äpfel und Birnen. | مونږ مڼې او ناك په بیه اخلو |

په پورتنۍ جمله کې (und) یو (Konjunktion) دی چې دا دواړه جملې یې له یو بل سره ونښلولې. دا دواړه جملې خو تش دوه ساده اصلي (Hauptsatz) جملې وې چې له یو بل سره ونښلول شوې. داسې نور (Konjunktion) شته چې مغلقې جملې له یو بل سره نښلوي، لکه اصلي جملې له فرعي جملو سره، فرعي جملې له فرعي جملو سره او داسې نور. له بلې خوا دا (Konjunktion) نه یوازې دا چې دوه جملې له یو بل سره نښلوي، بلکې یو حالت، یو شرط یا یو دلیل پکې لیدل کیږي. په دې برخه کې به یو بل مثال وګورو.

| 1. Hauptsatz | | 2. Hauptsatz | |
|---|---|---|---|
| Ich gehe ins Bett. | زه ویده کېږم | Ich bin müde. | زه ستړی یم |

| Konjunktionalsatz | |
|---|---|
| Ich gehe ins Bett, weil ich müde bin. | زه ویده کېږم، ځکه چې زه ستړی یم |

پورتنۍ دوه جملې د (weil) په مرسته له یو بل سره ونښلول شوې. دا حرف (weil) نه یوازې داچې دا دوه جملې له یو بل سره نښلوي، بلکې دلیل یې هم ښکاره کوي او هغه دا دی چې (ځکه چې زه ستړی یم). نو په دې ډول (Konjunktion) زښت ډېر دي چې ځینې یې یو دلیل، ځینې یې یو شرط، ځینې یې یو حالت او داسې نور څه څرګندوي. د دې (Konjunktion) یوه برخه به په لاندینې جدول کې وګورو:

| Liste der Konjunktionen | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| A | aber | als | als dass | als ob | als wenn | anstatt dass | auch |
| | außer | | | | | | |
| B | bevor | beziehungsweise | | | bis | | |
| D | da | dass | denn | desto | damit | doch | |
| E | ehe | eh | entweder… oder | | einerseits | andererseits | |
| F | falls | ferner | | | | | |
| I | indem | indessen | | indes | insofern | insoweit | |
| J | je … umso | | jedoch | | | | |
| N | nachdem | | | | | | |
| O | ob | obgleich | | obschon | | obwohl | obzwar |
| | oder | ohne dass | | | | | |
| R | respektive | | | | | | |
| S | so | sobald | | so dass | | sofern | solange |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | sonst | sondern | | sooft | soviel | soweit | sowie |
| | sowohl als auch | | | statt | statt dass | | |
| U | um | umso | und | | | | |
| W | wobei | während | | währenddessen | | weder… noch | |
| | weil | wenn | wie | wo | wohingegen | | |
| Z | zumal | zwar | | | | | |

په راتلونکو مبحثونو کې د جملو مختلف ډولونه تشریح کیږي چې په هغو کې (Konjunktion) په مختلفو حالاتو کې کارول شوېدی چې مونږ یې هلته په مفصل ډول لیدلی شو.

## Die Satzgrammatik د جملو جوړولو ګرامر

جمله یو نسبتآ خپلواك او بشپړ ژبنی واحد دی. دا په دې مانا چې یوه جمله هم په یوازې توګه لیکل او لوستل کېدی شي او هم له دوه یا درې نورو جملو سره یوځای کېدی شي. که زښتې ډېرې جملې له یو بل سره یوځای شي نو له هغوی نه یو مضمون، یوه مقاله، یوه کیسه او یا یو ناول جوړېدی شي. د جملو د تشکل او د وظیفې په اساس په جرمني ژبه کې جملې مختلف ډولونه لري:

| | |
|---|---|
| 1. Aussagesätze<br>د یو مطلب د بیانولو جملې یا بیانیه جملې | 2. Wunschsätze د هیلې کولو جملې |
| 3. Fragesätze<br>د پوښتنو کولو جملې یا سوالیه جملې | 4. Ausrufesätze<br>ندائیه جملې یا د غږ کولو جملې |
| 5. Aufforderungssätze<br>د امر کولو جملې یا امریه جملې | |

مخکې له دې چې دا مختلفې جملې له نږدې نه وڅېړو، نو یو بل مفهوم به زده کړو چې هغه (Satzglied) دی چې په لاندې برخه کې تشریح شوی دی.

**(Satzglied) څه ته وايي؟**

په لغوي مانا (Satz) ته په پښتو کې (جمله) او (Glied) ته (غړی) وايي، (Satzglied) یعنې د (جملې غړی). کله چې په یوې جملې کې مختلف غړي یا بندونه یا مختلفې برخې موجودې وي، نو د جملې هر غړی د ځان لپاره بېله بېله وظیفه لري. د بېلګې په توګه د جملې یو غړی کېدی شي چې یو فاعل، یا یو مفعول، یا یو فعل واوسي، یا د یو شي ځرنګوالی وښايي، یعنې صفت او یا قید واوسي. د جملې دغه بېلو بېلو غړو یا برخو ته (Satzglieder) وايي. د جملې هر غړی یا (Satzglied) کېدی شي چې له یوې کلمې یا له ډېرو کلمو څخه جوړ شوی وي.

د جملې په جوړولو کې سړی نشي کولی چې پخپله خوښه د جملې هر شان غړي بې پلانه او بې نقشې خوا په خوا ولیکي. د جملې په جوړولو کې هر غړی د ځان لپاره یوه درجه یا مرتبه یا دریځ لري. دا په دې مانا چې د اصولو په خلاف د جملې یو غړی له بل غړي نه مخکې کېدی نشي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich danke Ihnen für das Geschenk. | زه له تاسو نه د سوغات په وجه مننه کوم |

په دې جمله کې درجې یا مرتبې په دې ډول دي:

| | |
|---|---|
| ① ich (فاعل) لومړی درجه | ② danke (فعل) دوهمه درجه |
| ③ Ihnen (Dativ مفعول) دریمه درجه | ④ für (Präposition) څلورمه درجه |
| ⑤ das Geschenk (Akkusativ مفعول) پینځمه درجه | |

کله چي یو څو وړې جملې له یو بل سره یو ځای شي، نو له هغې نه یوه اوږده سرېښ شوې یا ترکیبي جمله جوړیږي. دی یوځای شوو جملو ته سرې په یو نظر نشي کتلی. دا په دې مانا چې د جملې یوه برخه به ډېره مهمه وي، او بله برخه به دومره مهمه نه وي. هغه برخه چې ډېره مهمه ده، هغه به په جمله کې هرومرو ویل کیږي. غیرمهمه جمله کېدی شي چې پرېښودل شي. د جملې ډېرې مهمې برخې ته اصلي جمله یا (der Hauptsatz) او غیرمهمې برخې ته (der Nebensatz) وایي. په دې برخه کې به په لاندې پاڼو کې خپل معلومات زیات کړو .

## Der Hauptsatz اصلي جمله

اصلي جمله یا (der Hauptsatz) یوه خپلواکه جمله ده چې لږ تر لږه دوه غړي لري او هغه دا دي:

| | |
|---|---|
| 1. Subjekt = فاعل | 2. Prädikat = فعل |

مثال:

| |
|---|
| er schläft دی ویده هغه |

دلته (er) فاعل او (schläft) فعل دی. یوه اصلي جمله کېدی شي یوه سواليه جمله او یا امریه جمله واوسي، مثال:

| | |
|---|---|
| schläfst du? یې؟ ویده ته | geh weg! شه! هیسته شه، لیرې |

له یوې اصلي جملې سره یو یا دوه مفعولونه، صفتونه، او یا فعلونه یوځای کېدی شي چې په دې وخت کې جمله اوږدیږي او مفهوم یې لږ څه نور هم واضح کیږي. اوس به پورتنۍ جمله په کراره کراره اوږده کړو:

| | |
|---|---|
| Er schläft. هغه ویده دی | Er schläft hier. هغه دلته ویده دی |
| Er schläft hier nicht mehr. هغه دلته نور نه ویده کیږي | |
| Er schläft seit zwei Stunden hier nicht mehr. هغه له دوه ساعتو راهیسې دلته نه ویده کیږي | |
| Er schläft aus persönlichen Gründen seit zwei Stunden hier nicht mehr. هغه د شخصي علتونو په وجه له دوه ساعتو راهیسې دلته نه ویده کیږي | |

| |
|---|
| Ich esse einen Apfel. زه یوه منه خورم |
| Ich esse einen Apfel und eine Birne. زه یوه منه او یو ناك خورم |
| Ich esse einen Apfel und eine Birne in der Mittagspause. زه د غرمې په دمه کې یوه منه او یو ناك خورم |
| Ich esse einen süßen Apfel und eine saftige Birne in der Mittagspause. زه د غرمې په دمه کې یوه خوږه منه او یو د شربت نه ډك ناك خورم |
| Ich esse einen süßen Apfel und eine süße Birne in der Mittagspause mit äußerster Vorsicht. زه د غرمې په دمه کې په نهایت ډېر احتیاط یوه خوږه منه او یو خوږ ناك خورم |

څنګه چې په پورتنیو مثالونو کې لیدل کیږي، یوه اصلي جمله کېدی شي چې ډېره لنډه واوسي چې تش یو فاعل او یو فعل پکې وي، او یا دومره اوږده وي چې پکې یو فاعل، مختلف مفعولونه او مختلف صفتونه وي. یوه اصلي جمله که لنډه وي او که اوږده، په هر حال کې یوه خپلواکه جمله ده چې په یوازې ځان لیکل کېدی شي او بلې جملې ته اړتیا نلري . دلته سوال پیدا کیږي چې اصلي جمله چې یوه خپلواکه جمله ده، نو فرعي جملې ته څه ضرورت دی؟ ځواب دا دی چې په اصلي جمله کې مطلب په لنډ ډول وي. که چېرته دا مطلب نور هم تشریح شي، نو په دې وجه بیا یوې فرعي جملې ته ضرورت احساسیږي.

**Übungen:** Bilden Sie Sätze mit Subjekt/Objekt/Ort/Zeit an der ersten Position.

1. gestiegen ختلي/sind یو/wir مونږ/auf den Berg غره ته
   1. Position: Subjekt  په لومړي سر کې فاعل راځي  →  …………………
2. gelernt زده کړي/habt/ihr تاسو/ein neues Lied یوه نوې سندره/in der Schule په ښوونځي کي
   1. Position: Ort → په لومړي سر کې يې د ځای نوم راځي  …………………
3. gehe ځم/morgen سبا/ich زه/ins Museum موزيم ته
   1. Position: Zeit →  په لومړي سر کې يې د وخت يادونه کيږي  …………………
4. schreiben ليکل/wird وبه کړي/er هغه/euch تاسو ته/eine E-Mail يو برېښناليك
   1. Position: indirektes Objekt په لومړي سر کې غېرمستقيم مفعول راځي
   → ………………
5. vorlesen لوستل چاته  یو/darf/ اجازه ده  sie/ihrem Opa  خپل نيکه ته/die Zeitung اخبار
   1. Position: direktes Objekt  په لومړي سر کې مستقيم مفعول راځي
   → ………………

**Lösungen:**

1. Wir sind auf den Berg gestiegen. مونږ غره ته وختلو
2. In der Schule habt ihr ein neues Lied gelernt. په ښوونځي کي تاسو يوه نوې سندره زده کړه
3. Morgen gehe ich ins Museum. سبا ته زه موزيم ته ځم
4. Euch wird er eine E-Mail schreiben. هغه به تاسو ته يو برېښناليك وليکي
5. Die Zeitung darf sie ihrem Opa vorlesen. هغې ته اجازه ده چې خپل نيکه ته اخبار ولولي

## Aussagesätze  د يو مطلب د بيانولو جملې يا بيانيه جملې

د بيان جملې هغه جملې دي چې يوه ادعا، يوه فرضيه يا د يو چا يو نظر بيانوي. کېدی شي چې دا موضوع سل په سلو کې واقعيت ولري او کېدی شي چې هېڅ واقعيت ونلري. خو هر څه چې وي، دا به د يو چا خپل بيان وي. د داسې جملو ځانګړتيا دا ده چې په جمله کې فعل تل په دوهم ځای کې راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Die Sonne *scheint*. لمر دی | Mein Bruder *ist* 14 Jahre alt. زما ورور څورلس کلن دی |
| Schlangen *können* gefährlich sein. | ماران کېدی شي چې خطرناکه واوسي |
| Sie  *wohnen* in Indien. | هغوی په هندوستان کې ژوند کوي |

استثنا: کله کله يوه بيانيه جمله د يوې پوښتنې په توګه هم راتلی شي چې دی ته (rhetorische Frage) يا د (بديع پوښتنه) وايي. د دې پوښتنې په ځواب کې ويناد له مخاطب نه د ځواب کومه تمه نلري. برعکس هغه د پوښتنې په جامه کې يوه ادعا کوي. مثال:

| | |
|---|---|
| Habe ich dir das nicht schon hundertmal gesagt? | تا ته مې سل ځلې دا خبره نده کړې؟ (په دې جمله کې په غير مستقيم ډول دا ادعا کيږي چې ما تا ته سل ځلې دا خبره کړېده) |
| Wer hört schon auf mich? | زما خبره څوك مني؟ (يعنې دا چې هېڅ څوك يې نه مني) |

**Übungen**: Wandeln Sie bitte folgende Paschtosätze in deutsche Aussagesätze um!
۱- زما پلار یو کتاب لولي .........................................................
۲- زه له جرمني نه راځم (زه د جرمني یم)..........................................................
۳- مونږ اوس یوه دمه کوو.....................................................................
۴- اوس زه په سویډن کې اوسېږم ...........................................................
۵- د اونۍ په پای کې زه فوټبال لوبېږم.......................................................
۶- اسمان شین دی ...............................................................................
۷- لمر دی ................................................................................

**Lösungen**:
1. Mein Vater liest ein Buch. 2. Ich komme aus Deutschland. 3. Wir machen jetzt eine Pause. 4. Jetzt wohne ich in Schweden. 5. Am Wochenende spiele ich Fußball. 6. Der Himmel ist blau. 7. Die Sonne scheint.

## Fragesätze د پوښتنو جملې

د پوښتنو جملې هغه جملې دي چې یوه پوښتنه پرې کېږي. د پوښتنو لپاره دوه شان جملې موجودې دي.

| | |
|---|---|
| 1. Entscheidungsfragen د پرېکړې پوښتنې | 2. Ergänzungsfragen د بشپړولو پوښتنېمم |

① د پرېکړې یا د فیصلې پوښتنې = Entscheidungsfragen : د دې پوښتنو په ځواب کې یا (هو) او یا (نه) ویل کېږي. د داسې پوښتنو په سر کې یو فعل او بیا ورپسې فاعل راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Gehst du jetzt ins Kino? | ته اوس سینما ته ځې؟ |
| Hast du gut geschlafen? | تا ښه خوب وکړو؟ |

② د بشپړولو یا تکمیلولو پوښتنې = Ergänzungsfragen : په داسې پوښتنو کې پوښتونکی د یوې ناځرګندې خبرې په برخه کې معلومات غواړي. د داسې پوښتنو په سر کې تل یو (w) راځي، لکه: (wer, wann, wie, wieso, wo, warum) یعني (ځوك، کله، څنګه، په کومه وجه، چېرته، ولې) او داسې نور. په دې چې د هرې پوښتنې په سر کې (w) راځي، نو دارنګه پوښتنو ته (w-Fragen) هم ویل کېږي. دا مبحث وروسته یو ځل بیا تکرارېږي، نور معلومات به تاسو هلته ولولي. اوس به دوه مثالونه وګورو:

| | |
|---|---|
| Wann gehst du ins Kino?: | ته کله سینما ته ځې؟ |
| Wie hast du geschlafen? | تا څنګه خوب وکړو؟ |

**Übungen:** Wandeln Sie bitte die Paschtosätze in deutsche Fragesätze um!

۱- تا نن کوم څه خوړلي دي؟ ...................................................................................
۲- تا کله کوم شی خوړلی دی؟ ..............................................................................
۳- ته وږی یې؟ ...................................................................................................
۴- ته ولې وږی نه یې؟ .......................................................................................
۵- ما دروغ ویلي دي؟ ........................................................................................
۶- ما څنګه دروغ ویلي دي؟ ...................................................................................

۷- مونږ دي ته مکلف یو؟
۸- په کومه وجه مونږ دي ته مکلف یو؟ ..........................................................................
۹- تاسو په هر څه پوه شوئ؟...........................................................................................
۱۰- تاسو په څه پوه نشوئ؟.............................................................................................

**Lösungen:**
1. Hast du heute irgendetwas gegessen? 2. Wann hast du irgendetwas gegessen? 3. Hast du Hunger? 4. Warum hast du keinen Hunger? 5. Habe ich gelogen? 6. Wieso habe ich gelogen? 7. Sind wir dazu verpflichtet? 8. Weshalb sind wir dazu verpflichtet? 9. Habt ihr alles verstanden? 10. Was habt ihr nicht verstanden?

## Aufforderungssätze د غوښتني جملې

د غوښتني جملې هغه جملې دي چې یوه غوښتنه پرې کیږي. دا غوښتنه کېدی شي چې یوه ډېره احترامانه غوښتنه وي، یوه د زړه له کومې هیله وي، او هم کېدی شي چې دا غوښتنه کومه هیله نه بلکې یو ډېر کلك امر وي. د غوښتني په جملو کې له مخاطب نه دا غوښتنه کیږي چې د غږېدونکي غوښتنه تر سره کړي.

**د امر کولو جملې:**
په امریه جملو کې فعل د جملې په سر کې راځي. هغه څوك چې باید دا امر تر سره کړي، یعنې فاعل په جمله کې هېڅ نه یادیږي. د جملې په پای کې تل یوه ندائیه (!) ایښودل کیږي.

| | |
|---|---|
| Komm sofort zurück! | ته سمدلاسه بیرته راشه |
| Sei vorsichtig! پام کوه ، احتیاط وکړه | Seid vorsichtig! تاسو پام وکړئ |
| Lass deine Schwester los und komm hierher! | ته خور دي پرېږده او دلته راشه |

**احترامانه جملې:**
په احترامیه جملو کې هغه څوك چې غوښتنه ورنه کیږي، په احترامیه ډول یادیږي چې په پښتو ورته (تاسو) او په جرمني ژبه کې ورته (Sie) وایي، مثال:

| | |
|---|---|
| Seien Sie vorsichtig! تاسو پام وکړئ | Bleiben Sie hier! تاسو دلته پاتي شئ |
| Lassen Sie alles stehen und kommen Sie hierher! تاسو هرڅه پخپل ځای پرېږدئ او دلته راشئ | |

د غوښتني جملې په څو مختلف ډولونو جوړېدی شي :

**① د بیان د جملو په توګه:**
په دې چې د مانا او د مفهوم په اساس داسې جملې امریه جملې دي، خو د ګرامر د قواعدو په اساس دا جملې امریه جملې ندي. امریه جملې په دې ندي چې د جملې په سر کې فعل نه راځي. خو د امر خاصیت په دې جملو کې په دې لیدل کیږي چې د جملې په پای کې یوه ندائیه (!) لیکل کیږي. د غږېدو په وخت خو ندائیه په سترګو نه لیدل کیږي. په دغه وخت کې امرکوونکی خپله خبره په لوړ غږ، په چټکی او په ټینګار کوي چې اورېدونکی ځای په ځای پوهیږي چې دا یو امر دی. مثال:

| | |
|---|---|
| Du machst sofort deine Hausaufgaben! | ته به سمدلاسه خپله کورنی وظیفه کوې |
| Du gehst jetzt sofort ins Bett! | ته به سمدلاسه کټ ته ځې (ته به سمدلاسه ویده کیږې) |

| | |
|---|---|
| Sie verlassen sofort den Raum! | تاسو به سمدلاسه له دې کوټې نه وځئ |
| Du kommst jetzt! | ته به اوس راځې |

② د پوښتنو یا سوالیه جملو په توګه:

| | |
|---|---|
| Kommst du bitte mal hierher? | ته دېخوا ته راځې؟ (یعني ته دېخوا ته راشه) |
| Würdest du bitte kommen? | ته به مهرباني وکړې او دېخوا ته به راشې؟ (یعني راشه) |
| Könnten Sie mir bitte helfen? | تاسو کوی شئ چې له ما سره مرسته وکړئ؟ (یعني ما سره مرسته وکړئ) |

څرنګه چې په پورتنیو جملو کې لیدل کیږي، د جملو په سر کې یو فعل راغلی چې دا جملې باید یو امر واوسي، خو د جملو په پای کې ندائیه (!) نښته او د هغې په ځای یوه سوالیه (?) راغلې چې دا سوالیه جملې ته د امر په ځای د پوښتنې خاصیت ورکوي.

③ په (Passiv) حالت کې:

په دا شان جملو کې فعل د (Aktiv) په ډول نه بلکې د (Passiv) په ډول کارول کیږي. له بلې خوا د جملې په سر کې فعل نه راځي، خو د جملې په پای کې یوه ندائیه (!) راځي چې د امر مفهوم ورځینې اخیستل کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Es wird nicht mehr geredet! | اوس به نور خبرې نه کیږي (یعني خبرې بس دي) |
| Nun wird geschlafen! | اوس به خوب کیږي (یعني ویده شئ) |
| Jetzt wird das Zimmer aufgeräumt! | اوس به کوټه راټولول کیږي (یعني کوټه راټوله کړئ) |

④ له (lassen + Akkusativ+ Infinitiv Präsens) سره:

دا شان جملې تل د (lassen) په فعل پیلیږي. هغه څوک چې په دې جمله کې امر کوي، هغه د (Akkusativ) په حالت کې راځي او د جملې په پای کې ندائیه (!) راځي، مثال:

| | |
|---|---|
| Lass mich schlafen! ته ما خوب ته پرېږده | Lasst uns gehen! راځئ چې ولاړ شو |
| Lasst uns vorsichtig sein! راځئ چې پام وکړو | Lassen Sie mich in Ruhe! تاسو ما په کراره پرېږدئ |

په پورتنیو جملو کې هغه څوک چې امر کوي، د (Akkusativ) په حالت کې دي چې هغه دا دي: (mich, mich, uns, mich)

⑤ له (müssen + sollen) سره:

په دا شان جملو کې هغه څوک چې ورته یو امر کیږي، د جملې په سر کې راځي او ورپسې (müssen) او یا (sollen) راځي، او د جملې په پای کې ندائیه (!) لیکل کیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| Du musst kommen! | ته مجبور یې چې راشې، ته باید راشې |
| Du sollst nicht stehlen! | ته به غلا نه کوې |
| Wir müssen heute handeln statt morgen! | د سبا په ځای مونږ باید نن اقدام وکړو |
| Ihr sollt euch schämen! | تاسو باید وشرمیږئ |
| Sie müssen heute zur Polizei gehen! | تاسو باید نن پولیسو ته ولاړ شئ |

⑥ تش له یو اسم، له یو صفت او یا له یو قېد سره:

| | |
|---|---|
| Ruhe! غلي شئ، ارام شئ، چوپ شئ | Hilfe! له ما سره عاجله مرسته وکړئ |

| | | | |
|---|---|---|---|
| schneller! | نور هم ژر شئ، نور هم ژر ژر | zurück! | تاسو په شا شئ |
| Vorsicht! | پام وکړئ، احتیاط وکړئ | Explosionsgefahr! | د چاودني خطر دی |
| Glatteisgefahr! | په ګنګل باندې د ښویېدو خطر | Brandgefahr | د اور خطر دی |

| | |
|---|---|
| یادونه | دا خو څرګنده ده چې څه چې پورته لیکل شویدي، هغه جملې ندي. دا چې ولې د غوښتنو د جملو په څېرکي کې یادونه یې شوېده، دا تش د دې کتاب د بشپړتیا لپاره شویده. پوښتنه دا ده چې په کوم ځای کې له د داسې الفاظو نه کار اخیستل کیږي؟ |
| ① | د غږ یا د خبرو په ژبه دا الفاظ هغه وخت کارول کیږي چې اورېدونکو ته ډېر ژر او په یو لفظ خبرداری ورکړل شي. د بېلګې په توګه کله چې د یو چا ژوند په یو څو ثانیو کې په خطر کې وي، نو هغه خو د اوږدو خبرو وخت نلري، نو تش دومره غږ یا چیغه له خولې نه راووېستلی شي چې (Hilfe) یعني (هله، مرسته راسره وکړئ). |
| ② | په تحریري یا لیکلي ډول دا الفاظ هغه وخت کارول کیږي چې یو څوك په ډېر چټك ډول له یوه ځایه د تېرېدو په حالت کې وي او وخت ونلري چې اوږدې جملې ولولي. د بېلګې په توګه کله چې په یوه ترافیکي لار کې په کوم ځای کې خطر وي، نو ډریور باید په ډېرې چټکۍ سره د خطر الفاظ ولوستلی شي، لکه (Glatteisgefahr!) یعني دا چې په دغه ځای کې د کنګل په وجه د موټر د ښویېدو خطر دی) . |

**Übungen**: Wandeln Sie folgende Paschtosätze ins Deutsche um!

۱- بېرته راشه ! ..........................................................................................
۲- ته مهرباني وکړه دا کړکۍ پورې کړه! ..............................................................
۳- ته خو لږ غوندې نور هم دلته پاتې شه! ..............................................................
۴- ته ما ته دا کتاب راکړه!..........................................................................
۵- ته ما ته همدا اوس واقعیت ووایه! ..................................................................
۶- راځئ چې نن برلین ته ځو! ....................................................................
۷- خه، پرېږده یې! .......................................................................
۸- ته ما په ارامه پرېږده! ....................................................................
۹- ته په کور کې پاتې شه! ....................................................................
۱۰- ته لاپسې ژر منډې ووهه! ..................................................................
۱۱- ته هغه پرېږده چې لاپسې پورته وخېژي! ..........................................................
۱۲- ته دا پړی ټینګ ونیسه! ...................................................................
۱۳- یوځل بیا به ته دا نکوې! ...................................................................
۱۴- ته نن ډېرې تودې جامې واغونده! ..............................................................
۱۵- ته ما مه هېروه!..........................................................................

**Lösungen**:
1. Komm zurück! 2. Mach bitte das Fenster zu! 3. Bleib doch noch ein bisschen hier! 4. Gib mir dieses Buch! 5. Sag mir gleich die Wahrheit! 6. Lasst uns heute nach Berlin fahren! 7. Ach, lass das sein! 8. Lass mich in Ruhe! 9. Bleib zu Hause! 10. Lauf schneller! 11. Lass ihn höher steigen! 12. Halte das Seil fest! 13. Mach das nicht noch einmal! 14. Zieh dich heute sehr warm an! 15. Vergiss mich nicht!

## Wunschsätze  د هيلې جملې، د خواهش جملې

دا شان جملې د (Konjunktiv) په برخه کې په تفصيل تشريح شويدي. تاسو به يې هلته تفصيلات ولولئ.

## Ausrufesätze ندائيه جملې، د غږ راوېستلو جملې

ندآ يوه عربي کلمه ده او په پښتو کې ورته (غږ) يا (ږغ) وايي، په جرمني ژبه کې غږکولو يا غږ وېستلو ته (ausrufen) وايي. کله چې سړی يو شي ته هك اريان پاتې شي، نو له خولې نه د حيرانتيا په وجه يو غږ راوځي، لکه (آه، اخ، وی وی، هی هی) . دا هك اريانتيا کېدی شي د يو شي د ډېر ښه والي په وجه وي، او هم کېدی شي چې د يو شي د ډېر بدوالي په وجه وي. له بلې خوا خپله خوشحالي، هك پکتيا، قهر او غصه په خينو صفتونو (Adjektiv) هم بيانېدی شي چې په پای کې يې تل يوه ندائيه ليکل کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ah, ist das schön! | اخ، دا څومره ښايسته دی! |
| Das ist aber teuer! | دا خو ډېر قيمته دی! |

په دې غږيز يا ندائيه جملو باندې هر څوك خپل احساس او احساسات بيانولی شي. د احساساتو ښودل له هر څه نه د خپل غږ په راوېستلو ښه کيږي، خو په ليکلو کې خو غږ نه اورېدل کيږي، نو پوښتنه دا ده چې دلته احساس او احساسات څنګه ليدل کېدی شي؟ د دې ځواب به دا وي، چې د هك اريانتيا، د احساس او احساساتو د ښکاره کولو لپاره د جملې په پای کې يوه غږيزه نښه يا ندائيه (!) ليکل کيږي. بل دا چې د جملې په سر کې ځينې اصول د مراعتولو دي چې د هغوی په وجه ندائيه جملې په څو ډولو جوړيږي چې په لاندې برخه کې ليکل کيږي:

**① د (Aussagesatz) يا د بيان د جملې په توګه:**

د بيان جملې خو مو مخکې زده کړې، خو کله چې د ندائي جملې (Ausrufesatz) په توګه استعمالي شي، نو ورسره تل د (vielleicht, aber, doch, nur, so) الفاظ کارول کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| War das vielleicht leicht! | دا خو له حده ډېر اسان و (چې سړی ورته حيران پاتې کيږي) |
| Das ist ja super! | دا ډېر اعلی دی (دومره اعلی دی چې سړی ورته حيران پاتې کيږي) |

کله کله داسې هم کيږي چې يوه جمله په ډېر لنډ ډول بې له فاعله وويل شي چې اغېز يې لاپسې ډېريږي او د اورېدونکي غوږ ته ډېر ژر رسيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Toll gemacht! | ډېر اعلی، ډېر دې ښه وکړل |

**② د سواليه يا د پوښتنې کولو جملې په توګه (Fragesatz) :**

سره له دې چې په دې جملو کې فعل د جملې په سر کې راځي او داسې ښکاري چې دا جمله به يوه سواليه جمله وي، خو د جملې پای ته چې وکتل شي، هلته بيا د سوالي (?) په ځای يوه ندائيه (!) ليکل شوې وي. له بلې خوا په داسې جملو کې د (aber, doch, vielleicht) الفاظ هم کارول شوي وي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ist das schön! | دا څومره ښايسته دی |
| Ist das aber teuer geworden! | دا خو ډېر قيمته شوی دی |
| Wie mich das aufregt! | دا ما څومره په قهروي (يعني دا چې زښت ډېر مې په قهروي) |
| Was dieser arme Mann nicht alles erlebt hat! | په دې بدمرغه سړي باندې څه تېر شوي ندي! |

په پښتو کې کله کله د جملې په سر کې د سوالي يو حرف راځي، لکه (ښنګه)، خو له (ښنګه) نه مطلب کومه پوښتنه نده، بلکي يوه ادعا ده چې مطلب يې (زښت ډېر) دی. د دې مطلب د واضح کولو لپاره به د بېلګي په توګه د موسيقی د استاد، محمد دين زاخېل د يو شعر يوه مصرع وګورو:

| |
|---|
| ښنګه مينه زما او ستا وه، ښنګه هېر شو له يو بل نه |
| زه خو ګل ستا د پېکي وم ښنګه پرېوتم اوربل نه |

په پورتنی جمله کې (ښنګه مينه) د پوښتني په مانا نه بلکي د (ډېره مينه) په مانا کارول شوېده.

په جرمني ژبه کې هم لکه د پښتو په شان د جملو په سر کې کله کله سواليه الفاظ کارول کيږي، لکه: (was für ein, wie, was) چې په دې وجه لکه د هرې (w) سواليي جملې (w-Frage) په شان فعل د جملې په پای کې راځي. خو دې سره سره دا جملې سواليه جملې نه بلکي ندائيه جملې دي، له يوې خوا ځکه چې په پای کې يې سواليه (?) نښته، بلکي ندائيه (!) ده او له بلې خوا له اورېدونکي نه ځواب نه غوښتل کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Wie mich das aufregt! | دا ما ځومره په قهروي (يعني دا چې زښت ډېر مې په قهروي) |
| Was dieser arme Mann nicht alles erlebt hat! | په دې بدمرغه سړي باندې څه تېر شوي ندي! (يعني په ده باندې ډېرې سختې تېرې شوې دي) |

**③ د فرعي جملې يا (Nebensatz) په ډول:**

په دې چې دا مبحث تر اوسه پورې لا تشريح شوی ندی او په راتلونکي مبحث کې په مفصل ډول تشريح کيږي، نو د بشپړتيا لپاره به اوس تش يو څو مثالونه وګورو:

| | |
|---|---|
| Dass du das noch weißt! | دا دې لا په ياد دي! |
| Dass er das so gut gemacht hat! | دا چې دا يې دومره ښه کړی دی |
| Wie gut du das doch gemacht hast! | دا دې ځومره ښه کړی دی |

**Übungen**: Wandeln Sie bitte folgende Paschtosätze in deutsche Ausrufesätze um!

۱- ته خو ډېر جګ شوی يې! ..........................................................................
۲- ستا خولی ځومره ښايسته ده! ....................................................................
۳- ستا ګوته (لکه د واده ګوته) ځومره ښايسته ده! ..............................................
۴- زما ځومره ډېر زړه کېدو چې له هغه سره مې پېژندګلوي شوې وای! ..........................................................................................................
۵- دا ځومره ښاسته ورځ ده! ..........................................................................
۶- دا دې ډېر ښه وکړو ! ...............................................................................
۷- دلته ځومره ډېر ساړه دي! .........................................................................

**Lösungen:**

1. Du bist aber groß geworden! 2. Du hast aber einen hübschen Hut! 3. Was du für einen hübschen Ring hast! 4. Wie gern hätte ich ihn kennengelernt! 5. Ist das ein schöner Tag! 6. Das hast du aber gut gemacht! = Gut hast du das gemacht! 7. Hier ist es vielleicht kalt! = Kalt ist es hier!

# Nebensätze فرعي جملې

فرعي جملې د مانا او مفهوم له اړخه نیمګړي جملې دي. دا په دې مانا چې فرعي جملې په یوازې ځان
ټول مطلب نشي بیانولی، نو ځکه یوې بلې جملې ته اړتیا لري چې هغه اصلي جمله ده.

| | |
|---|---|
| Dass ihr hier seid, … | دا چې تاسو دلته یاست |

پورتنۍ جمله چې یوه فرعي جمله ده، بالکل یوه نیمګړې جمله ده ، ځکه مطلب یې واضح ندی، نو کله چې
یوه اصلي جمله ورسره یوځای شي، نو جمله بشپړه او مطب یې واضح شي، په لاندې ډول:

| | |
|---|---|
| Dass ihr hier seid, freut uns sehr. | دا چې تاسو دلته یاست، مونږ پرې ډېر خوښ یو |

په پورتنۍ جملې کې د اصلي جملې په زیاتولو، یعني (مونږ پرې خوښ یو) مطلب واضح شو او جمله
بشپړه شوه. نو په دې اساس یوه اصلي جمله د فرعي جملې تشه ډکوي.

**د فرعي جملې نورې ځانګړتیاوې:**

① هره فرعي جمله یو فاعل او یو فعل ته اړتیا لري. که چېرته فاعل په اصلي او فرعي جمله کې همغه
یو کس وي، نو په فرعي جمله کې باید دا فاعل یوځل بیا یاد شي. مثال:

| |
|---|
| Ich sprang in den Fluss, als ich Hilferufe hörte. |
| کله چې ما د مرستې چیغې واورېدې، نو سیند ته مې ورټوپ کړو |

په دې جمله کې (als ich Hilferufe hörte) یوه فرعي جمله ده. فاعل په دواړو جملو کې (ich) دی، نو
ځکه په دو همه برخه کې بیا تکرار شوی دی.

② ځینې فرعي جملې د تړاو په حرف یا (Konjunktion) پیلیږي، لکه (wenn, als, obwohl). مثال:

| | |
|---|---|
| Als er nach Hause kam, ….. | کله چې هغه کور ته راغی …. |
| Obwohl er nicht schwimmen konnte, …. | سره له دې چې هغه لامبو نشوه وهلی، …. |

③ په فرعي جمله کې فاعل له ربطي حرف نه وروسته راځي. د فرعي جملې فعل د جملې په پای کې
راځي. په پورتنۍ جمله کې (kam + konnte) فعلونه دي چې د جملې په پای کې راغلي دي.

④ فرعي جملې کوی شي چې له اصلي جملې نه مخکې او هم وروسته راشي، مثال:

| |
|---|
| Er rief den Notdienst an, als er Hilfe brauchte. |
| هغه نوکریوال ته ټېلفون وکړو، کله چې د هغه مرستې ته پکار وه |

په پورتنۍ جمله کې (als er Hilfe brauchte) یوه فرعي جمله ده چې د اصلي جملې نه وروسته راغلې
ده. کله چې یوه فرعي جمله د اصلي جملې نه مخکې راشي، نو د اصلي جملې فعل د کامې (,) نه وروسته
راځي او د فعل نه وروسته بیا فاعل یا (Subjekt) راځي. مثال:

| |
|---|
| Als er Hilfe brauchte, rief er den Notdienst an. |
| کله چې د هغه مرستې ته پکار وه، نو نوکرایوال ته یې ټېلفون وکړو. |

فرعي جملې پخپله په څو ډولو دي:

| | | |
|---|---|---|
| 1. Subjektsatz فاعلي جمله | 2. Objektsatz مفعولي جمله | 3. Adverbialsatz قیدیه جمله |

| 4. Attributsatz د اسم د ځرنګوالي ښودونکي جمله | 5. Prädikativsatz د فعل تشريح کوونکي جمله | |
|---|---|---|

هره پورته ياده شوې مفعولي جمله بيا په ځو نورو برخو وېشل کيږي چې په لاندیني جدول کې د مثالونو سره ليدل کېدی شي.  که چېرته د لاندینی جدول پوهېدل تاسو ته ګران وي، نو تاسو مه نهيلي کيږئ، د جدول نه وروسته دا مبحث يو ځل بيا په اسانه ډول تشريح شوی دی.

| | | |
|---|---|---|
| Subjektsatz فاعلي جمله | dass-Satz له (دا چې) سره جمله | Dass ihr hier seid, freut uns sehr. دا چې تاسو دلته ياست، مونږ ډېر خوښ يو |
| | ob-Satz له (دا چې آيا) سره جمله | Ob ich den Schlüssel wiederfinde, ist fraglich. دا چې زه به دا کيلي بېرته پيدا کړی شم، په دې کې شك دی |
| | w-Satz سواليه جمله | Wann wir ankommen werden, ist ungewiss. دا چې مونږ به کله ورسيږو، څرګنده نه ده |
| | Infinitivkonstruktion له مصدر سره فرعي جمله | Dir zu verzeihen, fiel mir schwer. ستا ښيل ما ته ګران وو |
| | uneingeleitet د نظر د اختلاف جمله | Es ist besser, du kommst noch einmal zurück. ښه به دا وي چې ته يو ځل بيا راشي |
| Objektsatz مفعولي جمله | dass-Satz له (دا چې) سره جمله | Wir verstehen, dass ihr uns nicht begleiten könnt. مونږ په دې پوهيږو چې تاسو مونږ نشئ بدرګه کولی |
| | ob-Satz له (دا چې آيا) سره جمله | Sie wissen nicht, ob sie auch eingeladen sind. هغوی نپوهيږي چې هغوی رابلل شويدي |
| | w-Satz سواليه جمله | Ich wundere mich, warum du erst so spät kommst. زه په دې تعجب کوم چې ته ولې دومره ناوخته راځې |
| | Infinitivkonstruktion له مصدر سره فرعي جمله | Wir bedauern, sie enttäuschen zu müssen. مونږ په دې تاسف کوو چې تاسو مأيوسوو |
| | uneingeleitet د نظر د اختلاف جمله | Er sagt, er habe keine Zeit. هغه وايي چې هغه وخت نه لري |
| | wie-Satz له (څنګه) سره جمله | Sie fühlte, wie ihre Kräfte nachließen. هغې پخپله احساسوله چې د هغې قوه څنګه مخ په کمېدو شوه |
| | Akkusativ mit Infinitiv له (Akkusativ) سره جمله | Er hörte mich die Treppe hinaufkommen. په زينو باندې مخ په پورته ختلو په وخت کې هغه زما غږ واورېد |
| | Temporalsatz د وخت د ښودلو جمله | Das Haus ist abgebrannt, während sie im Kino waren. کله چې هغوی په سينما کې وو، کور اور واخيست |
| | Lokalsatz د ځای ښودلو جمله | Bleib, wo du bist! چېرته چې يې، همغلته پاتې شه |
| | Modalsatz د (څه شان) ښکاره کولو | Er hat sie gekränkt, indem er sie einfach negierte. په دې چې هغه هغې ته منفي ځواب ورکړو |

| | جمله | نو هغه يي خجالته کړه |
|---|---|---|
| Adverbialsatz<br>قیدیه جمله | Begründungssatz<br>د دلیل وړاندي کولو جمله | Sie spielen im Haus, weil es regnet.<br>په دې چې باران دی، هغوی په کور کې لوبې کوي |
| | Bedingungssatz<br>د شرط ایښودلو جمله | Du wirst bald wieder gesund sein, wenn du gut für dich sorgst. که ته د ځان ښه غم وکړې، نو لنډ وخت وروسته به ښه شوی واوسې |
| | Einräumungssatz<br>له (سره له دې) سره جمله | Er ging schwimmen, obwohl er eine leichte Grippe hatte. سره له دې چې هغه لږ څه زکام و هلې و، هغه بيا هم لامبو ته ولاړ |
| | Folgesatz<br>د یو علت ښودلو لپاره جمله | Er hatte die Grippe, sodass er das Treffen absagen musste. هغه زکام نیولی و، نو په دې وجه هغه له لیده کاته (ملاقات) نه تېر شو |
| | Zwecksatz<br>د یو هدف د بیانولو جمله | Ich schreibe alles auf, damit ich es nicht vergesse.<br>د دې لپاره چې هېر مې نشي، نو زه هر څه لیکم |
| | Adversativsatz<br>له ګرامري قید سره جمله | Heute scheint die Sonne, während es gestern geregnet hat.<br>په داسې حال چې نن لمر دی، پرون باران و |
| | Partizipialkonstruktion<br>له Partizip سره جمله | In Paris angekommen, suchten wir ein Hotel. پاریس ته د رسېدو سره مونږ یو هوټل ولټو |
| Attributsatz<br>د ځرنګوالي ښودلو جمله | Relativsatz<br>د تړاو ورکولو جمله | Das Haus, das dort drüben steht, gehört meinem Großvater.<br>هغه کور چې هلته ولاړ دی، زما د نیکه دی |
| | Partizipialkonstruktion<br>له Partizip سره جمله | Der Sänger, in Deutschland geboren, wurde in Amerika ein Star.<br>هغه سندرغاړی چې په جرمني کې زیږېدلی دی، په امریکه کې د ستوري درجې ته ورسېد |
| Prädikativsatz<br>د فعل تشریح کوونکې جمله | | Diese Wohnung ist, was ich schon immer suchte. دا استوګنځی هغسې دی چې ما تل لټوه |
| | | |
| weiterführender Nebensatz | | Er hat uns eingeladen, was uns sehr freut.<br>هغه مونږ ته بلنه راکړه چې پرې ډېر خوښ شولو |

# Der Subjektsatz فاعلي جمله

فاعلي جملې هغه شان فرعي جملې دي چې د جملې په مهمې یا په لومړنۍ برخه کې د فاعل وظيفه ورپه غاړه ده. فاعلي جملې په دې شان دي:

## dass-Satz

د (dass-Satz) جملې داسې جملې دي چې په هغو کې د یو (Nominativ) او یا د (Akkusativ) او یا د یو ضمیر او یا (Präposition) په ځای یوه جمله کارول کیږي چې په (dass) پیل کیږي، خو په دې شرط چې په دې جمله کې یو کس یا یو شی تشریح نشي بلکې یو عمل یا یوه پېښه یا یو کار بیان شي. له (dass) سره جملې هغه وخت جوړیږي چې یوه موضوع څرګنده وي او یو څوك د یوې موضوع په برخه کې ډاډمن وي. که چېرته یوچا ته یوه موضوع څرګنده نه وي او پوښتنه ورته پیدا شي، نو داسې جملې بیا په (ob-Satz) جوړیږي چې دا به وروسته په دوهمه برخه کې ووینو. اوس به د (dass-Satz) یو څو مثالونه ووینو:

| | |
|---|---|
| Ich weiß das schon. | زه په دې پوهېږم |

دا جمله یوه اصلي جمله (Hauptsatz) ده. په دې کې یاد شوي چې زه په دې پوهېږم. دلته (das) د دې شي او یا (په دې) مانا لري. خو دا یاد نشول چې زه په څه شي پوهېږم. خو کله چې دا مطلب چې (زه په څه شي پوهېږم) تشریح شي، نو دا تشریحات یې بیا په یوې فرعي جملې کې راځي چې هغه بیا په (dass) پیلیږي، یعنې دا چې د (das) له یو (s) نه دوه (ss) جوړیږي، یعني (dass) ورنه جوړیږي. نو اوس به له دې نه خبر شو چې (زه په دې پوهېږم) مطلب له څه شي نه دی. زه په څه شي پوهېږم.

| | |
|---|---|
| Ich weiß schon, dass mein Bruder den Mathetest mit „sehr gut“ bestanden hat.<br>زه په دې پوهېږم چې زما ورور د ریاضي په ازموینه کې په ډېره ښه نمره بریالی شو | |

نو څنګه چې په پورتنۍ جمله کې لیدل کیږي، د جملې مطلب د (dass-Satz) په جمله کې تشریح شوی دی. نو په دې باندې اوس مونږ پوه شولو چې هره جمله چې په (dass) پیل شي او یوه موضوع څرګنده کړي، نو هغې ته (dass-Satz) وایي. نور مثالونه:

| | |
|---|---|
| Dass du recht hast, wird bezweifelt. | دا چې ستا خبره ریښتیا ده، پرې شك دی |
| Es freut uns sehr, dass ihr hier seid. | مونږ ډېر خوښ یو چې تاسو دلته یاست |

د (dass-Satz) جملې په مختلفو ډولو جوړېدی شي: د (Nominativ) سره، د (Akkusativ) سره، د (Präposition) سره او د مصدري جملو یا د (Infinitivkonstruktion) سره چې په لاندې برخه کې یې هر یو بېل بېل وینو.

### ① له (Nominativ) سره د (dass-Satz) جمله:

| Zwei Hauptsätze | ein Nebensatz als „dass-Satz“ |
|---|---|
| Mein Freund kommt immer zu spät zur Arbeit. Das gefällt mir nicht.<br>زما ملګری تل کار ته ناوخته راځي. دا زما نه خوښیږي | Dass mein Freund immer zu spät zur Arbeit kommt, gefällt mir nicht.<br>دا چې زما ملګری تل کار ته ناوخته راځي، دا زما نه خوښیږي. |
| Jemand ist im Zimmer gewesen. Ich sah es. کوم څوك په کوټه کې و. دا ما ولیدل | Ich sah, dass jemand im Zimmer gewesen war.<br>ما ولیدل چې کوم څوك په کوټه کې و |

**Übungen**: Bilden Sie bitte „dass-Sätze“!

1. Es wird wärmer. Es ist nicht angenehm. هوا تودیږي. دا په سړي ښه نه لږیږي
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
2. Jemand raucht im Büro. Es ist nicht erlaubt.
   کوم څوك په دفتر کې سګرټ څکوي، دې ته اجازه نشته
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
3. Du bist schon wieder verliebt. Es freut mich nicht.
   ته بیا مین شوې. په دې باندې زه خوښ نه یم
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
4. Du räumst dein Zimmer auf. Es gefällt mir. ته خپله کوټه راټولوې. دا مې خوښیږي
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
5. Der faule Mitarbeiter ist entlassen worden. Es ist mir egal.
   دا لټ همکار له کاره وشړل شو. دا ما لپاره بې تفاوته ده
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
6. Du hast deinen Job verloren. Es tut mir leid.
   تا خپل کار له لاسه ورکړو. په دې باندې زه خواشینی یم
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
7. Sie helfen ihm. Es ist nicht nötig. تاسو له هغه سره مرسته کوئ. دې ته څه اړتیا نشته
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
8. Du willst mehr Gehalt haben. Das geht nicht.
   ته له دې نه هم ډېر معاش غواړې. دا نشي کېدی
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
9. Du bist vom Unfallort weggelaufen. Das steht schon mal fest.
   ته د ټکر له ځایه وتښتېدلې. دا خو څرګنده ده
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
10. Der Hund bellt sehr laut. Man kann ihn aus der Ferne hören.
    سپی ډېر په زوره غاپي. سړی د هغه غږ له لیرې نه اورېدلی شي
    Dass-Satz: ……………………………………………………………………
11. Man muss aufpassen. Sonst verbrennt man in der Sonne.
    سړی باید پام ونیسي. او که نه نو په لمر کې د سړي پوستکی سوځي
    Dass-Satz: ……………………………………………………………………
12. Er wird morgen verhaftet. Stimmt es? هغه سبا بندي کیږي. دا ریښتیا ده؟
    Dass-Satz: ……………………………………………………………………
13. Er ist krank. Es verwundert mich nicht. هغه ناروغ دی. زه دې ته هك اریان پاتې نه یم
    Dass-Satz: ……………………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Es ist nicht angenehm, dass es wärmer wird.
2. Es ist nicht erlaubt, dass man im Büro raucht.
3. Es freut mich nicht, dass du wieder verliebt bist.
4. Es gefällt mir, dass du dein Zimmer aufräumst.
5. Es ist mir egal, dass der faule Mitarbeiter entlassen worden ist.
6. Es tut mir Leid, dass du deinen Job verloren hast.

7. Ist es nicht nötig, dass Sie ihm helfen?
8. Das geht nicht, dass du noch mehr Gehalt haben willst.
9. Dass du vom Unfallort weggelaufen bist, steht schon mal fest.
10. Der Hund bellt so laut, dass man ihn aus der Ferne hören kann.
11. Man muss aufpassen, dass man in der Sonne nicht verbrennt.
12. Stimmt es, dass er morgen verhaftet wird?
13. Es verwundert mich nicht, dass er krank ist.

**② له (Akkusativ) سره د (dass-Satz) جمله:**

| Zwei Hauptsätze | ein Nebensatz als „dass-Satz“ |
|---|---|
| Mein Nachbar arbeitet im Garten. Ich sehe es. زما ګاونډی په حویلی کې کار کوي. زه دا وینم | Ich sehe, dass mein Nachbar im Garten arbeitet. زه وینم چې زما ګاونډی په حویلی کې دی |
| Du hast den Baum gefällt. Das hat dein Bruder behauptet. تا دا ونه ووهله. ستا وررور دا ادعا وکړه | Dein Bruder hat behauptet, dass du den Baum gefällt hast. ستا وررور ادعا وکړه چې تا دا ونه ووهله |

**Übungen:** Bilden Sie bitte dass-Sätze!

1. Du bist ein Genie. Das habe ich immer gesagt. ته يو نابغه يې. دا ما تل ويلي دي
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
2. Die Umwelt ist schon verschmutzt. Hast du den Artikel gelesen?
   چاپېريال ناولي شويدي. تا دا مضمون لوستی دی؟
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
3. Du hast ihn ganz fest mit der Faust ins Gesicht geschlagen. Er wurde sofort ohnmächtig. تا هغه په سوك ډېر كلك په مخ ووهو. هغه سمدلاسه بې هوښه شو
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
4. Du hast ein neues Haus gekauft. Das erzählt jeder im Dorf.
   تا يو نوی كور په بيه واخيست. دا خبره هر څوك په كلي كې كوي
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
5. Sie essen alles sehr langsam. Sie werden ihren Zug bestimmt verpassen. تاسو هرڅه ډېر په كراره خوري. له تاسو نه به اورګاډی هرومرو ولاړ شي
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
6. Er hat den Tee sehr heiß getrunken. Er hat sich die Zunge verbrüht.
   هغه چاى ډېر تود وڅښو. د هغه ژبه وسوځېدله
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
7. Er drückte mir die Hand sehr fest. Ich hatte zwei Tage danach noch Schmerzen. هغه زما لاس ډېر ټينګ وخپبښو. له هغې نه وروسته زه دوه ورځې په درد وم
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………
8. Sie kommt morgen nicht. Das wusste ich nicht. هغه سبا نه راځي. زه په دې نيوهېدم
   Dass-Satz: ……………………………………………………………………

9. Er warf den Ball sehr weit weg. Ich konnte ihn gar nicht erreichen.

هغه توپ ډېر ليرې وغورځو. ما نشو کولی چې ويې نيسم

Dass-Satz: ……………………………………………………………………

10. Du hast die Suppe sehr versalzen. Man kann sie gar nicht essen.

تا په ښوروا کې ډېره مالګه اچولې ده. سړی يې هېڅ خوړلی نشي

Dass-Satz: ……………………..……..……………………………………………

**Lösungen:**

1. Ich habe immer gesagt, dass du ein Genie bist.
2. Hast du den Artikel gelesen, dass die Umwelt schon verschmutzt ist.
3. Du hast ihn mit der Faust so fest ins Gesicht geschlagen, dass er sofort ohnmächtig wurde.
4. Das erzählt jeder im Dorf, dass du ein neues Haus gekauft hast.
5. Sie essen alles so langsam, dass Sie ihren Zug bestimmt verpassen werden.
6. Er hat den Tee so heiß getrunken, dass er sich die Zunge verbrüht hat.
7. Er drückte mir die Hand so fest, dass ich zwei Tage danach noch Schmerzen hatte.
8. Ich wusste nicht, dass sie morgen nicht kommt.
9. Er warf den Ball so weit weg, dass ich ihn gar nicht erreichen konnte.
10. Du hast die Suppe so versalzen, dass man sie gar nicht essen kann.

**③ له يو (Präposition) سره د (dass-Satz) جمله:**

| Zwei Hauptsätze | ein Nebensatz als „dass-Satz“ |
|---|---|
| Der Bus kommt endlich. ايله په ايله چې سروېس راځي Ich warte darauf. زه ورته په انتظار يم | Ich warte darauf, dass der Bus endlich kommt. زه دې ته په انتظار يم چې سروېس آخر راشي |
| Jetzt haben wir Gott sei Dank Ferien. Darauf haben wir uns schon lange gefreut. شکر خدايه چې اوس زمونږ رخصتي ده. مونږ ورته د ډېر وخت راهيسي خوشحاله وو | Wir haben uns schon lange darauf gefreut, dass wir Ferien haben. مونږ له ډېر وخت راهيسي دې ته خوشحاله وو چې زمونږ رخصتي راځي |

**Übungen**: Bilden Sie bitte dass-Sätze!

1. Du wirst in der Prüfung durchfallen. Davor habe ich Angst.

ته به په ازموينه کې پاتې راشې. له دې نه زه دارېږم

Dass-Satz: ……………………………………………………………………

2. Er hat dir geholfen. Hast du dich bei ihm dafür bedankt?

هغه له تا سره مرسته وکړه. تا له هغه نه مننه وکړه؟

Dass-Satz: ……………………………………………………………………

3. Du hast ihm das Leben gerettet. Das ist der Dank dafür.

تا د هغه ژوند وژغورو. دا د هغې بدل دی

Dass-Satz: ……………………………………………………………………

4. Ich helfe ihm. Er hat sich darauf verlassen.
زه له هغه سره مرسته کوم. هغه پرې اعتماد وکړو
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
5. Du hast den selben Fehler wieder gemacht. Ich habe mich darüber geärgert.
همدغه يوه غلطي تا بيا وکړه. زه په دې باندې په غصه شوم
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
6. Du bist auch nur ein Mensch. Denk daran. ته هم يو انسان يې. ته دې ته فکر وکړه
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
7. Dieser Plan bedeutet deinen Ruin. Hast du darüber nachgedacht?
دا پلان ستا د بربادۍ مانا لري. تا په دې برخه کې چورت وهلی دی؟
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
8. Er hat die Prüfung bestanden. Er war sehr stolz darauf.
هغه په ازموينه کې بريالی شو. هغه پرې وياړ وکړو
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
9. Hier gibt es viele Taschendiebe. Er warnte uns davor.
دلته ډېر ګنډکپان (کيسه بران) دي. هغه مونږ له دې نه خبر کړلو
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
10. In seinem Zimmer wird nicht geraucht. Er besteht darauf.
د هغه په کوټه کې سګرټ څکولو ته اجازه نشته. هغه په دې ټينګار وکړو
Dass-Satz: ……………………………………………………………………

**Lösungen**:

1. Ich habe davor Angst, dass du in der Prüfung durchfällst.
2. Hast du dich bei ihm dafür bedankt, dass er dir geholfen hat.
3. Das ist der Dank dafür, dass du ihm das Leben gerettet hast.
4. Er hat sich darauf verlassen, dass ich ihm helfe.
5. Ich habe mich darüber geärgert, dass du den selben Fehler wieder gemacht hast.
6. Denk daran, dass du auch nur ein Mensch bist.
7. Hast du darüber nachgedacht, dass dieser Plan deinen Ruin bedeutet?
8. Er war sehr stolz darauf, dass er die Prüfung bestanden hatte.
9. Er warnte uns davor, dass es hier viele Taschendiebe gibt.
10. Er besteht darauf, dass in seinem Zimmer nicht geraucht wird.

### ④ د مصدري جملو په ډول dass-Satz und Infinitivkonstruktion

يو (dass-Satz) کېدی شي چې د يو (Infinitivsatz) يا مصدري جملې په ځای راشي. مثال:

| Infinitivsatz | „dass-Satz" |
|---|---|
| Ich habe die Gewissheit, die Aufgabe bewältigen zu können. زه ډاډمن يم چې وظيفه به سرته ورسولی شم | Ich habe die Gewissheit, dass ich die Aufgabe bewältigen kann. زه ډاډمن يم چې زه به دا وظيفه سرته ورسولی شم |

| | |
|---|---|
| Du kannst sicher sein, morgen nach Amerika fliegen zu können.<br>ته مطمئن اوسېدی شي چې سبا به امریکې ته ستا الوتنه وشي | Du kannst sicher sein, dass du morgen nach Amerika fliegen kannst.<br>ته مطمئن اوسه چې ته به سبا وکړی شې چې امریکې ته په الوتکه کې ولاړ شي |

**Übungen**: Bilden Sie bitte „dass-Sätze“

1. Ich befürchte, Sie beleidigt zu haben.
زه په دې ډارېږم، چې تاسو ته مې په تېته سترګه کتلي وي
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
2. Ich habe die Befürchtung, dort unerwünscht zu sein.
زه په دې ډارېږم، چې هلته نابللی واوسم
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
3. Sie erlauben den Kindern, nach der Schule draußen zu spielen.
هغوی ماشومانو ته اجازه ورکوي، چې له ښوونځي نه وروسته بهر لوبې وکړي
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
4. Es freut mich, euch hier zu sehen. زه په دې خوښ یم، چې تاسو دلته وینم
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
5. Ich hoffe, die Prüfung bestehen zu können.
زه هیله کوم، چې په ازموینه کې بریالی شم
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
6. Ich hoffe, dich bald wiederzusehen. زه هیله کوم، چې تا په لنډو کې وګورم
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
7. Er hat mir versprochen, mir bei der schwierigen Arbeit zu helfen.
هغه ماته دا وعده راکړېده، چې له ما سره به سختو وظیفو کې به مرسته وکړي
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
8. Bemüh dich darum, auf eigenen Füßen zu stehen.
ته دې ته کوښښ وکړه، چې پخپلو پښو ودرېږې
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
9. Es ist uns eine Freude, Sie hier begrüßen zu dürfen.
دا مونږ ته د خوشحالۍ ځای دی، چې تاسو ته دلته ستړي مشي ووېلی شو
Dass-Satz: ……………………………………………………………………
10. Er befürchtet, entlassen zu werden. هغه له دې نه ډارېږي، چې له کاره به وشړل شي
Dass-Satz: ……………………………………………………………………

**Lösungen**:

1. Ich fürchte, dass ich Sie beleidigt habe.
2. Ich habe die Befürchtung, dass ich dort unerwünscht bin.
3. Sie erlauben den Kindern, dass sie nach der Schule draußen spielen.
4. Es freut mich, dass ich euch hier sehe.
5. Ich hoffe, dass ich die Prüfung bestehen kann.
6. Ich hoffe, dass ich dich bald wiedersehe.
7. Er hat mir versprochen, dass er mir bei der schwierigen Arbeit hilft.
8. Bemüh dich darum, dass du auf eigenen Füßen stehst.

9. Es ist uns eine Freude, dass wir Sie hier begrüßen dürfen.
10. Er befürchtet, dass er entlassen wird.

| یادونه | د (dass-Satz) جملې له هر فعل سره نشي راتلی، بلکې د ځینو ځینو فعلونو سره راځي چې مشهور فعلونه يې په دې لاندې برخه کې ليکل شوي او په جملو کې استعمال شويدي: |
|---|---|

| Infinitiv | Hauptsatz „dass"-Satz als Akkusativ-Ergänzung |
|---|---|
| annehmen<br>په يو نظر اوسېدل | Dein Chef nimmt an, dass du heute mit Fieber im Bett liegst.<br>ستا آمر په دې نظر دی چې ته نن تبې نيولی په کټ کې پروت يې |
| befürchten<br>ډار درلودل | Ich befürchte, dass ein Klimawandel nicht mehr zu stoppen ist.<br>زما دا ډار دی چې د اقليم د بدلون مخه نور نيول کېدی نشي |
| behaupten<br>ادعا کول | Wer behauptet, dass der Direktor das Geld unterschlagen hat?<br>څوك ادعا کوي چې مدير د پيسو سره درغلي کړې ده؟ |
| denken فکر کول | Ich denke, dass du etwas gegen dein Übergewicht tun solltest.<br>زه فکر کوم چې ته بايد د خپل ډېر وزن په وړاندې يو څه وکړې |
| erwarten von<br>توقع کول | Ich erwarte von dir, dass du in der Schule fleißig bist.<br>زه له تا نه دا توقع کوم چې ته په ښوونځي کې زيار وباسې |
| erzählen<br>ويل، کيسه کول | Ich habe mir erzählen lassen , dass du lange krank warst.<br>ما ته يو چا وويل چې ته ډېر وخت ناروغ وې |
| glauben<br>باور کول | Man glaubt, dass es auf dem Mars Wasser geben könnte.<br>داسې باور کيږي چې په مريخ کې کېدی شي چې اوبه به وي |
| hören اورېدل | Ich hörte es an ihrem Ton, dass etwas nicht in Ordnung war.<br>زه د هغې په غږ پوه شوم چې يو څه سم ندی |
| hoffen<br>هيله درلودل | Ich hoffe, dass du bald kommst. زه هيله لرم چې ته ژر راشې |
| meinen فکر کول | Ich meine, dass das anders war. زه په دې فکر يم چې دا بل شان و |
| mitteilen<br>رپوټ ورکول | Es wurde mitgeteilt, dass beim Schusswechsel eine Geisel verletzt wurde. داسې رپوټ ورکړل شو چې په ډزو کې يو يرغمل ټپي شويدی |
| sagen ويل | Ich sage nicht, dass er es mit Absicht getan hat.<br>زه دا نه وايم چې هغه دا کار قصداً کړی دی |
| sehen<br>ليدل، کتل | Siehst du nun, dass ich doch recht hatte?<br>ته ګورې چې زما خبره رېښتيا وه |
| vergessen<br>هېرېدل، هېرول | Ich habe vergessen, dass unser Lehrer heute Geburtstag hat.<br>زما هېر شول چې نن زمونږ د ښوونکي کليزه ده |
| verlangen von<br>د يو چا نه غوښتل | Ich verlange von dir, dass du dich in der Schule mehr anstrengst. زه له تا نه دا غواړم چې په ښوونځي کې زيار وباسې |
| vermuten<br>حدس وهل | Es wird vermutet, dass sich der Dieb noch in der Stadt aufhält.<br>داسې حدس وهل کيږي چې غل به لا په ښار کې وي |
| versprechen<br>ژمنه ، وعده کول | Versprich mir, dass du aufpasst!<br>ته له ما سره دا ژمنه وکړه چې ته به خپل پام نيسې |
| wissen پوهېدل | Ich weiß, dass ich nichts weiß. زه پوهېږم چې په هېڅ نپوهېږم |
| wünschen<br>هيله کول | Wir wünschen, dass der Vertrag unterzeichnet wird.<br>مونږ دا هيله کوو چې قرارداد لاسليك شي |

**Übungen**: Ergänzen Sie die fehlenden dass-Sätze:

1. Vokabeln muss man auswendig lernen. لغات باید سړی له یاده زده کړي
   Sie weiß, ………………………………………………………………………
   هغه په دې پوهیږي چې ...
2. Durch die Arbeit ist sie ganz müde geworden.
   هغه په کار باندې ډېره ستړې شوېده
   Du weißt nicht, dass …………….…………….……………
   ته په دې نپوهېږې چې ...
3. Sein kleiner Sohn kann jetzt Französisch sprechen.
   د هغه وړوکې زوی اوس فرانسوي غږېدی شي
   Er ist stolz darauf, dass ……………………………………………………
   هغه په دې ویاړي چې ...
4. Unsere Verwandten haben ein Haus gebaut. زمونږ خپلوانو یو کور اباد کړو
   Er berichtet, dass ……………………………….………………………..…
   هغه رپوټ ورکوي چې ...
5. Es wird gleich regnen. په همدې شېبه کې به باران وشي.
   Ich bin mir sicher, dass ……………….....…………………………………
   زه بالکل متیقن یم چې ...
6. Du hast die Prüfung bestanden. ته په ازموینه کې بریالی شوې
   Es ist toll, dass ……………………………………………………
   دا خو ډېر ښه دی چې ...
7. Wir können uns bald wieder bei mir treffen.
   مونږ کوی شو چې په لنډو کې یو بل بیا زما په کور کې وګورو
   Es freut mich, dass …………………………………………………………
   زه په دې خوښ یم چې ...
8. Es ist kein Tee mehr in dieser Kanne. په دې چاینك کې هېڅ چای نشته
   Niemand weiß, dass ……………...……………………………
   هېڅ څوك په دې نپوهیږي چې ...
9. Du hast die Fahrprüfung geschafft. ته د ډریورۍ په ازموینه کې بریالی شوې
   Ich finde es klasse, dass ………………………………………………………
   زما په نظر دا ډېر ښه کار دی چې ...
10. Sie sind morgen verabredet. هغوی سبا وعده کړېده
    Sie sagen, dass ………………………...………………………………
    هغوی وایي چې ...
11. Er kann zum Konzert nicht kommen. هغه کنسرت ته نشي راتلی
    Es ist schade, dass ……………………………..……………………………
    دا د خواشیني ځای دی چې ...
12. Die Bank hat die Kunden um viele Millionen Euro betrogen.
    بانك د خپلو مشتریانو سره د ډېرو میلیونو په کچه درغلي وکړه
    Dass ……………………………………………………… ist ein Skandal.
    دا یو ډېر بد کار دی چې ..

13. Ihr habt das Spiel nicht gewonnen. تاسو لوبه ونه ګټله
Dass ……………………………………………………, war mir schon klar.
دا چې تاسو لوبه ونه ګټله، ...

14. In der Schweiz sind die Preise höher als in Deutschland.
په سویس کې نرخونه د جرمني په پرتله لوړ دي
Wir wissen, dass ……………………………………………………
مونږ په دې پوهیږو چې ...

15. Die Jugend macht immer weniger Sport. ځوانان ورځ په ورځ لږ سپورټ کوي
Dass ……………………………………………………, ist ein Problem.
دا یوه ستونځه ده چې ...

**Lösungen**:

1. Sie weiß, dass man Vokabeln auswendig lernen muss.
2. Du weißt nicht, dass sie durch die Arbeit ganz müde geworden ist.
3. Er ist stolz darauf, dass sein kleiner Sohn jetzt Französisch sprechen kann.
4. Er berichtet, dass unsere Verwandten ein Haus gebaut haben.
5. Ich bin mir sicher, dass es gleich regnen wird.
6. Es ist toll, dass du die Prüfung bestanden hast.
7. Es freut mich, dass wir uns bald wieder bei mir treffen können.
8. Niemand weiß, dass kein Tee mehr in dieser Kanne ist.
9. Ich finde es klasse, dass du die Fahrprüfung geschafft hast.
10. Sie sagen, dass sie morgen verabredet sind.
11. Es ist schade, dass er zum Konzert nicht kommen kann.
12. Dass der Bankvorstand die Kunden um viele Millionen Euro betrogen hat, ist ein Skandal.
13. Dass ihr das Spiel nicht gewonnen habt, war mir schon klar.
14. Wir wissen, dass in der Schweiz die Preise höher sind als in Deutschland.
15. Dass die Jugend immer weniger Sport macht, ist ein Problem.

## Mit *ob* eingeleiteter Nebensatz (ob-Satz)
## هغه جمله چې په ړومبۍ برخه کې یې (ob) راشي

د لغت په لحاظ (ob) (آیا) ته وایي. د (ob-Satz) له جملې نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې یوه خبره یا یو مطلب څرګند نه وي او سړي ته یو شك پیدا شي چې دا شی همداسي دی او که ندی، دا شی به وشي او که وبه نه شي، دا به ریښتیا وي او که ریښتیا به نه وي او داسي نور.

### Ob-Satz bei Entscheidungsfrage, Unsicherheit, Zweifel
### د (ob-Satz) جمله د فیصلې، د نه ډاډمنۍ او یا د یو شك په حالت کې

یوه (ob-Satz) جمله زیاتره وخت د یوې غیرمستقیمي پوښتني سره سمون خوري. دا په دې مانا چې د دې غیرمستقیمي جملې نه یوه مستقیمه جمله جوړېدلی شي. په لاندینو جملو کې لومړنۍ جملې مستقیمي جملې او د وهمنۍ جملې چې له (ob) سره دي، غیر مستقیمي جملې دي چې وروباندې یوه پوښتنه کیږي.

| | |
|---|---|
| Er fragte mich: „Kannst du kommen?“ | هغه له ما نه پوښتنه وکړه : ته راتلی شې؟ |
| Er fragte mich, ob ich kommen kann. | هغه له ما نه پوښتنه وکړه چې زه راتلی شم |

Ich erkundigte mich: „Ist dein Vater wieder gesund?“
ما پوښتنه وکړه : ستا پلار بېرته روغ شوی دی؟
Ich erkundigte mich, ob sein Vater wieder gesund war.
ما پوښتنه وکړه چې د هغه پلار بېرته روغ شوی دی

Er dachte nach: „Habe ich das Gas abgestellt?“ هغه چورت ووهو: ما غاز بند کړی دی؟
Er dachte nach, ob er das Gas abgestellt hatte.
هغه چورت ووهو، چې هغه غاز بند کړی دی او که نه

یوه (ob-Satz) جمله له داسې غیرمستقیمې جملې سره سمون خوري چې سمدلاسه په یوې مستقیمې جملې نشي بدلېدلی. د غیرمستقیمې جملې د جوړولو لپاره به یو بل څه ورسره اضافه کیږي. د مثال په توګه دا لاندینی جمله یوه غیرمستقیمه جمله ده چې سمدلاسه په مستقیمې جملې نه بدلیږي او د بدلولو لپاره به ضرور (die Antwort auf die Frage) ورسره زیاتیږي، په دې ډول:

Bitte teilen Sie uns mit, ob Sie an der Konferenz teilnehmen.
Bitte teilen Sie uns die تاسو موږ ته احوال راکړئ چې تاسو په کنفرانس کې ګډون کوئ او که نه
تاسو موږ ته ديAntwort auf die Frage mit: „Nehmen Sie an der Konferenz teil?“
سوال ته ځواب راکړئ چې: تاسو په کنفرانس کې ګډون کوئ او که نه؟

Niemand weiß, ob heute noch ein Zug fährt.
هېڅ څوك نیوهیري چې نن یو اورګاډي ځي او که نه
Niemand weiß die Antwort auf die Frage: „Fährt heute noch ein Zug?“
هېڅ څوك دې پوښتنې ته یو ځواب نلري چې : نن یو اورګاډی ځي؟ (دا یوه مستقیمه پوښتنه ده)

یوه (ob-Satz) جمله د دې لپاره هم کارول کېدی شي چې له دوه مختلفو امکاناتو نه یو امکان غوره شي، مثالونه:

Es ist nicht egal, ob du die Wahrheit sagst oder nicht.
دا بې تفاوته نده چې ته واقعیت وایې او که نه

Es ist mir ganz egal, ob du kommst oder nicht.
دا له ما لپاره بالکل بې تفاوته ده چې ته راځې او که نه راځې

له لاندینو فعلونو سره ډېر وخت (ob-Satz) جوړېدی شي

| Infinitiv | Ob-Satz |
|---|---|
| keine Ahnung haben<br>هېڅ خبر نه اوسېدل | Ich habe keine Ahnung, ob sie verheiratet ist.<br>زه هېڅ خبر نه یم چې هغې واده کړېدی او که نه |
| sich fragen له ځانه پوښتل | Ich frage mich, ob er körperlich gesund ist.<br>زه له ځانه پوښتم چې هغه جسماً روغ دی او که نه |
| nachforschen پلټنه کول | Warum forschst du nicht nach, ob er das Geld gestohlen hat. ته ولې پلټنه نه کوې چې هغه دا پیسې غلا کړې دي او که نه |
| prüfen ازمایل، امتحانول | Er prüfte mit dem Finger, ob das Wasser heiß war.<br>هغه په ګوته وازمایل چې دا اوبه تودې وې او که نه |

**Übungen**:

1. Haben die Geschäfte morgen geöffnet? مغازې سبا پرانیستي دي؟
   Ich bin mir nicht sicher, ..............................
   زه متیقن نه یم چې مغازې به د یکشنبې په ورځ پرانیستي وي
2. Stammt sein Vater aus England ? د هغه پلارله انګلستان نه دی؟
   Ich weiß nicht, ......................... زه نپوهېږم چې د هغه پلار له انګلستان نه دی او که نه
3. Hat er geraucht? هغه سګرټ څکولي دي؟
   Ich verrate dir nicht, ..............................
   دا راز زه تا ته نه وایم چې هغه سګرټ څکولي دي او که نه
4. Sprechen sie über uns? هغوی زمونږ په برخه کې خبرې کوي
   Ich verstehe nicht, ..............................
   زه نپوهېږم چې هغوی زمونږ په برخه کې خبرې کوي
5. Ist er ein guter oder ein schlechter Mensch?
   هغه یو ښه انسان دی او که بد انسان دی
   Ich möchte nicht darüber urteilen, ..............................
   زه په دې برخه کې څه قضاوت نه غواړم وکړم چې هغه ښه انسان دی او که بد

**Lösungen**:

1. ob die Geschäfte morgen geöffnet haben. 2. ob sein Vater aus England stammt. 3. ob er geraucht hat. 4. ob sie über uns sprechen. 5. ob er ein guter Mensch ist oder ein schlechter.

## W-Satz (Mit Fragewort eingeleiteter Nebensatz) د پوښتنو کولو جمله

یوه سوالیه جمله هغه وخت کارول کیږي چې سړی یوه پوښتنه ولري، په یو څه ډاډمن نه وي او یا په یو څه شك ولري. نو د پوښتنو لپاره ډېر سوالیه ضمیرونه شته چې ټول په (w) پیل کیږي او هغه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wer څوك ، چا | wo چېرته، په کوم ځای کې | wann کله، په کوم وخت کې | wonach له څه شي نه وروسته |
| was څه ، څه شی | woher له کومه ځایه | wozu د څه لپاره | wem چا ته |
| wen څوك | wie څنګه، څرنګه | worauf د څه دپاسه | wohin کوم ځای ته |
| wovor له څه شي نه مخکې، له څه شي نه | worüber د څه شي په برخه کې ، د څه دپاسه | womit په څه باندې، په څه شي | wobei د څه شي په ملتیا کې، په څه شي کې |
| wessen د چا | warum ولې | wieso ولې ، څنګه | wie viel څومره |

یوه (W-Satz) جمله زیاتره وخت یوه غیرمستقیمه جمله ده چې په مستقیمه جمله بدلیدلی شي. سوالیه ضمیر په دواړو جملو کې همغه یو ضمیر پاتې کیږي، مثال:

| |
|---|
| Sie fragte mich, wovon ich rede.<br>هغې له ما نه پوښتنه وکړه چې زه د څه شي په برخه کې غږېږم |
| = Sie fragt mich: „Wovon redest du?“<br>هغې له ما نه پوښتنه وکړه : ته د څه شي په برخه کې غږېږې؟ |
| Ich erkundigte mich, wie viel der Wagen kostet.<br>ما پوښتنه وکړه چې د دې موټر بیه به څو وي |

= Ich erkundigte mich: „Wie viel kostet der Wagen?“
ما پوښتنه وکړه : د دې موټر بيه څو ده؟

په پورتنيو جملو کې د پوښتني ضميرونه په مستقيمه او غېر مستقيمه جمله کې همغه يو دي، يعني په لومړۍ جمله کې (wovon) او په دوهمه جمله کې (wie viel) دی.

يوه (W-Satz) جمله کېدی شي چې داسې يوه غير مستقيمه جمله وي چې سمدلاسه په مستقيمه جمله نشي بدليدلی. د بدلولو لپاره يې بايد يو بل څه ورسره ورګډ شي. مثال:

Bitte teilen Sie uns mit, wann Sie unser Haus verlassen.
تاسو مونږ ته احوال راکړئ چې تاسو کله زمونږ له کوره وځئ؟
= Bitte teilen Sie uns die Antwort auf die Frage mit: „Wann verlassen Sie unser Haus?“
تاسو زمونږ دې پوښتني ته احوال راکړئ : تاسو څومره وخت په فرنکفورت کې پاتي کېږئ؟
Niemand weiß, wann der letzte Zug fährt.
هېڅ څوك نپوهيږي چې وروستی اورګاډی کله ځي
= Niemand weiß die Antwort auf die Frage: „Wann fährt der letzte Zug?“
هېڅ څوك دې پوښتني ته يو ځواب نلري : وروستی اورګاډی کله ځي؟

يوه (W-Satz) جمله د دې لپاره هم کارول کيږي چې د څو امکاناتو تر مينځ يو امکان غوره شي، لکه:

Es ist wichtig, wann du ihm die Wahrheit sagst.
دا مهمه ده چې ته ورته کوم وخت واقعيت وايي (په دې جمله کې څرګنده ده چې واقعيت بايد وويل شي.
خو د واقعيت د ويلو لپاره مختلف امکانات موجود دي چې همغه کوم وخت وويل شي)
Es ist mir egal, wen er einlädt. دا ما ته بې تفاوته ده چې همغه څوك ميلمه کوي
(په دې جمله کې دا څرګنده ده چې يو څوك ميلمه کيږي. دا څرګنده نده چې څوك به ميلمه شي)

د (W-Satz) جمله له يو اسم نه وروسته هم کارول کېدی شي چې دا اسم يوه پوښتنه يا يو شك څرګندوي، مثال:

Die Frage, wann ich zur Ruhe komme, kann ich derzeit nicht beantworten.
دې پوښتني ته چې زه به کله ارام شم، زه دمګړی څه ځواب نشم ورکولی
Seine Information, wie hoch er gesprungen ist, interessiert niemanden.
د همغه له معلومات سره چې همغه څومره لوړ توپ وهلی، هېڅ څوك علاقه نلري
Das Problem, wen er einladen soll, muss er selbst lösen.
دا ستونځه چې همغه څوك ميلمه کړي او څوك نه، همغه دې پخپله حله کړ

**Übungen**: Bilden Sie bitte W-Sätze!

1. Wie heißt sein Großvater? — د همغه د نيکه نومنوم څه دی؟
   Ich habe keine Ahnung, ...................... — زه هېڅ نپوهېږم چې د همغه نوم څه دی
2. Wo hast du das Hemd gekauft? — دا کميس تا چېرته اخيستی دی؟
   Ich weiß nicht mehr, ............................................................................
   دا مې اوس په ياد ندي چې دا کميس مې چېرته اخيستی دی
3. Wann kommt er uns besuchen? — همغه کله زمونږ ليدو ته راځي؟
   Er hat nicht gesagt, ........................ — همغه ونه ويل چې همغه کله زمونږ ليدو ته راځي
4. Warum hat sie so schlechte Laune? — د همغې مزاج نن ولې دومره خراب دی؟

Ich kann dir nicht sagen, ………………………………………………………

زه نشم ویلی چې د هغې مزاج نن ولې دومره خراب دی

5. Wer hat das Spiel gewonnen? لوبه چا وګټله؟

Ich verrate dir nicht, ……………………………………………………………

دا راز زه درته نه وایم چې لوبه چا وګټله

6. Warum will er plötzlich seinen Namen ändern?

هغه ولې یوناڅاپه د خپل نوم بدلول غواړي؟

Frag mich nicht …………………………………………………………..

ته له ما نه پوښتنه مکوه، چې هغه ولې د خپل نوم بدلول غواړي

7. Wie soll das funktionieren? دا به څنګه کار وکړي؟

Ich weiß auch nicht, …………………………………………………………..

زه هم په دې نپوهیږم چې دا به څنګه کار وکړي

8. Wessen Auto ist das? دا د چا موټر دی؟

Ich habe keine Ahnung, ……………………………………………………

زه له دې نه هېڅ خبر نه یم چې دا د چا موټر دی

9. Womit hat er die Uhr repariert? هغه دا ساعت په څه شي باندې جوړ کړو؟

Woher soll ich wissen, ……………………………………………………

زه له څه شي نه پوه شم چې هغه ساعت په څه شي باندې جوړ کړو

10. Wofür brauchst du die Zange? دا پلاس ستا د څه شي لپاره پکار دی؟

Es geht dich nichts an, ……………………………………………………

دا تا پورې هېڅ اړه نلري چې پلاس زما د څه شي لپاره پکار دی

11. Wonach riecht es hier? دلته د څه شي بوي دی؟

Ich habe keine Ahnung, ……………………………………………………

زه هېڅ خبر نه یم چې د لته د څه شي بوی دی.

12. Für wen habt ihr das gemacht? تاسو دا د چا لپاره وکړو؟

Wir wissen auch nicht, ……………………………………………………..

مونږ هم په دې نپوهیږو چې مونږ دا د چا لپاره وکړو

13. Welcher Dummkopf hat die Tür nicht abgeschlossen? کوم احمق دروازه نده تړلې؟

Niemand kann diese Frage beantworten, …………………………………

دې سوال ته هېڅ څوك ځواب نشي ویلی

14. Weshalb seid ihr so früher aufgestanden? تاسو ولې دومره وخته له خوبه راجګ شوئ؟

Wir wissen es auch nicht, ………………………………………………..

مونږ هم په دې نپوهیږو چې مونږ ولې دومره وخته له خوبه راجګ شولو

**Lösungen**:

1. wie er heißt. 2. wo ich das Hemd gekauft habe. 3. wann er uns besuchen kommt. 4. warum sie so schlechte Laune hat. 5. wer das Spiel gewonnen hat. 6. warum er plötzlich seinen Namen ändern will. 7. wie das funktionieren soll 8. wessen Auto das ist. 9. womit er die Uhr repariert hat? 10. es geht dich nichts an, wofür ich die Zange brauche. 11. ich habe keine Ahnung, wonach es hier riecht. 12. für wen wir das gemacht haben. 13. welcher Dummkopf die Tür nicht abgeschlossen hat. 14. weshalb wir so früh aufgestanden sind.

## Der Angabesatz معلوماتي جمله

فرعي جملې کېدی شي چې معلومات یا توضیحات وړاندې کړي. د جملې دا معلوماتي برخه کې کېدی شي چې د جملې په سر، د جملې په پای او یا د جملې په مینځ کې راشي. په دې اړوند به په لاندې جدول کې درې جملې وګورو. په لومړۍ جمله کې معلومات د جملې په سر کې، په دوهمه جمله کې د جملې په پای کې او په دریمه جمله کې د جملې په مینځ کې راغلی دی:

| | |
|---|---|
| Da er Hunger hat, geht er essen. | په دې چې هغه وږی دی، هغه ډوډۍ خوړلو ته ورځي |
| Er kommt, wenn er Zeit hat. | هغه راځي، که چېرته هغه وخت ولري |
| Er kommt, wenn er Zeit hat, heute noch vorbei. هغه، که چېرته وخت ولري، همدا نن راځي | |

په لاندې جدول کې به مختلفې معلوماتي جملې وګورو:

| | |
|---|---|
| Kausalsatz | Er isst, weil er Hunger hat. هغه د دې لپاره ډوډۍ خوري، ځکه چې وږی دی |
| | Da er Hunger hat, isst er. په دې چې هغه وږی دی، هغه ډوډۍ خوري |
| Temporalsatz | Er kommt, wenn er Zeit hat. کله چې هغه وخت ولري، راځي. |
| | Er kam in die Schule, als er fünf war. کله چې هغه پنځه کلن و، ښوونځي کې شامل شو |
| | Er kam in die Schule, bevor er sechs war. مخکې له دې چې هغه شپږ کلن شي، هغه په ښوونځي کې شامل شو |
| | Er kam in die Schule, nachdem er im Kindergarten war. هغه په ښوونځي کې شامل شو، وروسته له دې چې هغه په وړکتون کې و |
| | Er macht Schulaufgaben, während seine Mutter liest. په هغه وخت کې چې د هغه مور لوستل کوي، هغه د ښوونځي وظیفه کوي |
| Konditionalsatz | Ich gehe spazieren, wenn das Wetter schön ist. کله چې هوا ښه وي، زه په چکر ګرځم |
| Konzessivsatz | Ich gehe spazieren, obwohl das Wetter schlecht ist. سره له دې چې هوا خرابه ده، زه په چکر ګرځم |
| Modalsatz | Mach das, wie du meinst. ته هغه څه وکړه، څنګه چې ته فکر کوې |
| Instrumentalsatz | Er schaffte es, indem er viel lernte. په دې چې هغه ډېر درس ولوستو، هغه بریالی شو |
| Konsekutivsatz | Er lief sehr schnell, so dass er den Bus noch bekam. هغه ډېره چټکه منډه واخیستله چې په دې بیا سروبس ته ورسېدلی شو |
| Adversativsatz | Ich komme, während du zu Hause bleibst. په هغه وخت کې چې ته په کور کې واوسې، زه درځم |

## Infinitivkonstruktion مصدري جملې

په پښتو کې ځینې جملې شته چې د جملې فعل زیاتره وخت په (و) پیل کېږي، لکه (ورکړي، ورشي، وشي، وکړي) او داسې نور. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| د دې لپاره چې دا کار وشي .... | بې له دې چې دا کار وشي ... | په ځای د دې چې دا کار وشي |

داسي جملې په جرمني ژبه کې هم شته، خو د پښتو په مقايسه فعل تل د جملې په پای کې په ژوندي ډول يا د مصدر (Infinitiv) په توګه راځي. د جملې په سر کې لاندې ليکل شوي الفاظ راځي:

| | | |
|---|---|---|
| um = د دې لپاره چې | ohne = بې له دې چې | anstatt = په ځای د دې چې |

د جملې په پای کې له فعل نه مخکې تل (zu) ورسره راځي، په دې ډول:

| | | |
|---|---|---|
| um … zu (gehen) | ohne … zu (gehen) | anstatt … zu (gehen) |

د داسي جملو بله ځانګړتيا دا ده، چې په هغه ځای کې چې پورتني الفاظ راځي، هلته کوم فاعل (Subjekt) نه وي. اوس به يو څو جملې وګورو:

| |
|---|
| Die Franzosen arbeiten, um zu leben, und die Deutschen leben, um zu arbeiten.<br>فرانسويان کار کوي، د دې لپاره چې ژوند وکړي، او جرمنيان ژوند کوي، د دې لپاره چې کار وکړي |
| Mein Freund ging nach Hause, ohne sich zu verabschieden.<br>زما ملګری کور ته ولاړ، بې له دې چې خدای پاماني واخلي |
| Er schläft den ganzen Tag, anstatt zu arbeiten.<br>هغه ټوله ورځ ويده وي، په ځای د دې چې کار وکړي |

دا چې د دې الفاظو نه په کومو حالاتو کې کار اخيستل کيږي، دا به په لاندې برخه کې په مفصل ډول وګورو.

## „um … zu“ … د دې لپاره چې

په لغوي مانا (um … zu) په پښتو کې (د دې لپاره چې …) ته وايي. په (um … zu) باندې هغسې جملې جوړيږي چې دا جملې د يو څه هدف يا مقصد يا نيت څرګند کړي، چې دې ته (Finalsatz) وايي. کومه پوښتنه چې د يوې ادعا په برخه کې کيږي، هغه په دې ډول وي:

| |
|---|
| wozu د څه لپاره، د څه هدف لپاره، په کومه موخه |

کله چې په اصلي او فرعي جملې کې فاعل همغه يو کس وي، نو په فرعي جمله کې کله چې (um … zu) ذکر شو، نو دا فاعل بيا نه تکراريږي. د فرعي جملې په پای کې مصدر په ژوندي ډول يا په (Infinitiv) کې راځي. اوس به د يوې پوښتنې په بدل کې څلور ځوابونه وګورو چې دا ځوابونه په بېلو بېلو اصلي جملو شوېدی او نه په (um … zu) . په دوهمه برخه کې بيا ځواب په (um … zu) ورکړل شوېدی. هغه پوښتنه چې څلور ځوابونه ورته بې له (um … zu) ورکړل شويدي، دا ده:

| Wozu lernst du Deutsch? ته د څه لپاره جرمني ژبه زده کوې |
|---|
| 1. Ich möchte in Deutschland studieren. زه غواړم چې په جرمني کې تحصيل وکړم |
| 2. Ich möchte mich besser mit Deutschen unterhalten können.<br>زه غواړم چې د جرمنيانو سره لاپسې ښې خبرې وکړی شم |
| 3. Ich möchte bessere Berufsaussichten haben.<br>زه غواړم چې لاپسې ښه مسلکي چانس ولرم |
| 4. Ich möchte die Deutschen besser verstehen können.<br>زه غواړم چې د جرمنيانو په ذهنيت لاپسې ښه پوه شم |

کله چې له دې څلور جملو نه د (um … zu) جملې جوړې کړو، نو هغه به داسې وي:

| | |
|---|---|
| 1. Ich lerne Deutsch, um in Deutschland studieren zu können.<br>زه جرمني ژبه زده کوم، د دې لپاره چې په جرمني کې تحصیل وکړی شم | |
| 2. Ich lerne Deutsch, um mich besser mit Deutschen unterhalten zu können.<br>زه جرمني ژبه زده کوم، د دې لپاره چې د جرمنیانو سره لاپسې ښې خبرې وکړی شم | |
| 3. Ich lerne Deutsch, um bessere Berufsaussichten zu haben.<br>زه جرمني ژبه زده کوم، د دې لپاره چې ښه مسلکي چانس ولرم | |
| 4. Ich lerne Deutsch, um die Deutschen besser verstehen zu können.<br>زه جرمني ژبه زده کوم، د دې لپاره چې د جرمنیانو په ذهنیت لاپسې ښه پوه شم | |

**Übungen**: Bilden Sie bitte Finalsätze mit „um …zu“!

1. Ich kaufe mir ein Fahrrad. Ich komme schneller zur Uni.
زه د ځان لپاره یو بایسکل په بیه اخلم . زه پوهنتون ته ژر رسېږم
Ich kaufe mir ein Fahrrad, um……………………………………………

2. Sie nimmt eine Schmerztablette. Sie will keine Schmerzen mehr haben.
هغه د درد یوه ګولی خوري. هغه نه غواړي چې درد ولري
Sie nimmt eine Schmerztablette, ………..……………………………

3. Ihr müsst den Bus nehmen.
Ihr kommt zum Museum. تاسو سرویس ونیسئ. تاسو موزیم ته رسېږئ
Ihr müsst den Bus nehmen, ………………………………………

4. Ich gehe jetzt schon los. Ich will nicht zu spät kommen.
زه همدا اوس ځم. زه نه غواړم چې ناوخته ورسېږم
Ich gehe jetzt schon los, ……………………………………………………..

5. Sie öffnete die Tür. Sie ließ ihn herein..
هغې دروازه پرانیستله. هغه یې پرېښودو چې راډننه شي
Sie öffnete die Tür. ………………………………………………………….

6. Wir gingen ins Geschäft. Wir kauften Anzüge.
مونږ مغازې ته ولاړو. مونږ دریشی په بیه واخیستلې
Wir gingen ins Geschäft, ……………………………………………………

7. Der alte Mann braucht beim Lesen eine Brille. Er liest die Zeitung..
دا زوړ سړی د لوستلو په وخت له عینکو نه کار اخلي. هغه اخبار لولي
Der alte Mann braucht beim Lesen eine Brille. …………………………………

8. Heute will ich zu Hause bleiben. Ich verbringe mehr Zeit mit meinen Kindern.
نن زه غواړم چې په کور کې پاتې شم. زه د خپلو ماشومانو سره ډېر وخت تېروم
Heute will ich zu Hause bleiben, …. …………………………………

9. Ich bin hierhergekommen. Ich will dich sehen.
زه دلته راغلی یم . زه غواړم چې تا ووینم

Ich bin hierhergekommen, ………………………………………………………

10. Der Student lernt sehr viel. Er will das Examen bestehen.
دا محصل ډېر درس لولي. هغه غواړي چې په ازموینه کې بریالی شي
Der Student lernt sehr viel, ………………………………………………………

11. Er kommt morgen zu euch. Er will euer Fahrrad reparieren.
هغه سبا ستاسو کور ته درځي. هغه غواړي چې ستاسو بایسکل جوړ کړي
Er kommt morgen zu euch, ………………………………………………………

**Lösungen**:

1. Ich kaufe mir ein Fahrrad, um schneller zur Uni zu kommen.
د دې لپاره چې زه پوهنتون ته ژر ورسېږم، زه د ځان لپاره یو بایسکل په بیه اخلم
2. Sie nimmt eine Schmerztablette, um keine Schmerzen mehr zu haben.
د دې لپاره چې درد ونلري، هغه د درد یوه ګولۍ خوري
3. Ihr müsst den Bus nehmen, um zum Museum zu kommen.
د دې لپاره چې تاسو موزیم ته ورسېږئ، تاسو باید سروېس ونیسئ
4. Ich gehe jetzt schon los, um nicht zu spät zu kommen.
د دې لپاره چې زه ناوخته ونه رسېږم، زه همدا اوس ځم
5. Sie öffnete die Tür, um ihn hereinzulassen.
د دې لپاره چې هغه رادننه کېدو ته پرېږدي، هغې دروازه پرانیستله
6. Wir gingen ins Geschäft, um Anzüge zu kaufen.
د دې لپاره چې مونږ دریشی په بیه واخلو، مونږ مغازې ته ولاړو
7. Der alte Mann braucht beim Lesen eine Brille, um die Zeitung zu lesen.
د دې لپاره چې اخبار ولولي دا زوړ سړی له عینکو نه کار اخلي
8. Heute will ich zu Hause bleiben, um mehr Zeit mit meinen Kindern zu verbringen. د دې لپاره چې زما ډېر وخت زما د ماشومانو سره تېر شي، زه غواړم چې نن کې په کور کې پاتې شم
9. Ich bin hierhergekommen, um dich zu sehen.
د دې لپاره چې زه تا ووینم، زه دلته راغلی یم
10. Der Student lernt sehr viel, um das Examen zu bestehen.
د دې لپاره چې په ازموینه کې بریالی شي، محصل ډېر درس لولي
11. Er kommt morgen zu euch, um euer Fahrrad zu reparieren.
د دې لپاره چې هغه ستاسو بایسکل جوړ کړي، هغه سبا ستاسو کور ته درځي

## „ohne … zu“ ... بې له دې چې

په لغوي مانا (ohne … zu) پښتو کې (بې له دې چې ...) ته وایي. په (ohne … zu) باندې هغسې جملې جوړېږي چې د جملې په لومړۍ برخه کې یو کار یا یو عمل بیان شي، خو په دوهمه برخه کې هغه کار چې توقع ورته کېږي، هغه کار ونشي، څکه چې کېدی شي چې یوه ستونځه مینځ ته راغلې وي، او یا دا چې کوم بل علت د دې باعث وګرځي چې دا توقع تر سره نشي.
اوس به دوه جملې وګورو چې د جملې په لومړۍ برخه کې یې یو کار کیږي، خو په دوهمه برخه کې هغه کار چې توقع ورته کیږي، د کومې ستونځې په وجه ونشي.

| | |
|---|---|
| Er gab mir die Hand. Er stand vom Stuhl nicht auf.<br>هغه ما ته لاس راکړو. هغه له چوکۍ نه پورته نشو | |

دا پورتنۍ دواړه جملې خو بېلې بېلې جملې دي. که چېرته له دې دوه جملو نه مونږ یوه جمله جوړه کړو، نو یوه جمله به یې اصلي جمله یا (Hauptsatz) شي او بله جمله به یې فرعي جمله یا (Nebensatz) شي. په هغه جمله کې چې (ohn ... zu) راځي، هغه جمله به فرعي جمله یا (Nebensatz) وي. په دوهمه جمله کې توقع کېدله چې هغه سړی باید د لاس راکولو په وخت له چوکۍ نه پورته شوی وای، خو هغه پورته نشو. نو په د ې ډول مونږ په دوهمه جمله کې له (ohne ... zu) نه کار اخیستی شو او ویلی شو چې:

| | |
|---|---|
| Er gab mir die Hand, ohne vom Stuhl aufzustehen.<br>هغه ما ته لاس راکړو، بې له دې چې له چوکۍ نه پورته شي | |

نو څنګه چې لیدل کیږي، دلته له دوه اصلي جملو نه یوه اصلي او یوه فرعي جمله جوړه شوه. هغه ستونځه چې په وجه یې یو کار ونشو، په لومړۍ جملې کې په (nicht) ذکر شوې، په دوهمه جمله کې (nicht) ورنه هیسته کیږي او په ځای یې (ohne) استعمالیږي. همدا شان کله چې په لومړۍ جملې کې (kein) راشي، نو په دوهمې جملې کې د (kein) په ځاي (ohne) راځي. نور مثالونه:

| Hauptsätze | Sätze mit „ohne … zu“ |
|---|---|
| Sie saßen am Tisch. هغوی مېز ته ناست وو Sie sprachen nicht miteinander.<br>هغوی له یو بل سره خبرې ونکړې | Sie saßen am Tisch, ohne miteinander zu sprechen. هغوی مېز ته ناست وو، بې له دې چې له یو بل سره خبرې وکړي |
| Er ging fort. Er trank keinen Tee.<br>هغه ولاړ. هغه چاى و نه څښنو | Er ging fort, ohne Tee zu trinken.<br>هغه ولاړ، بې له دې چې چاى وڅښني |
| Er ging weg. Er hat mit mir kein Wort gesprochen.<br>هغه ولاړ. هغه له ما سره یوه خبره هم ونکړه | Er ging weg, ohne mit mir ein Wort gesprochen zu haben. هغه ولاړ، بې له دې چې له ما سره یې یوه خبره هم کړې وي |
| Ihr habt uns geholfen.<br>تا سو له مونږ سره مرسته وکړه<br>Ihr habt uns darum nicht gefragt.<br>تاسو له مونږ نه په دې برخه کې پوښتنه ونکړه | Ihr habt uns geholfen, ohne uns darum gefragt zu haben.<br>تاسو له مونږ سره مرسته وکړه، بې له دې چې تاسو په دې برخه کې له مونږ نه پوښتنه کړې وي |

**Übungen**: Bilden Sie Sätze mit „ohne … zu“!

1. Er ging nach Hause. Er verabschiedete sich nicht.
هغه کور ته ولاړ. هغه خداى پامانى وانه خیستو
   Er ging nach Hause, ohne…………………………………………………………

2. Dieser Mann fuhr mit meinem Auto nach Hause. Er hat keinen Führerschein.
دا سړی زما په موټر کې کور ته ولاړ. هغه لېسنس نه لري
   Dieser Mann fuhr mit meinem Auto nach Hause, ……………………………..

3. Unsere Nachbarin ging einkaufen. Sie hatte kein Geld dabei.
زمونږ ګاونډۍ سودا اخیستلو ته ولاړه. له هغې سره پیسې نه وې
Unsere Nachbarin ging einkaufen, …………………………………………….

4. Der Junge ging ins Schwimmbad. Er kann nicht schwimmen.
هلك د لامبو ډنډ ته ولاړ. د هغه لامبو زده نده
Der Junge ging ins Schwimmbad, ……………………………………………

5. Sie flüchteten aus dem Zimmer. Sie machten kein Geräusch.
هغوی له کوټې نه وتښتېدل. هغوی هېڅ ټک وټوك ونکړو
Sie flüchteten aus dem Zimmer, ……………………………………………..

6. Er kauft ein Auto. Er kann kein Auto fahren.
هغه یو موټر په بیه اخلي. هغه موټر نشي چلولی
Er kauft ein Auto, ………………………………………………………

7. Du malst. Du kannst nicht malen. ته رسم کوې. ته په رسامۍ نپوهېږې
Du malst, ……………………………………………………………

8. Sie bestellte ein leckeres Essen. Sie hat keinen Hunger.
هغې یوه خوندوره ډوډۍ وغوښتله. هغه هېڅ وږې نه ده
Sie bestellte ein leckeres Essen, …………………………………………

9. Er will eine Reise machen. Er hat kein Auto.
هغه غواړي چې سفر وکړي. هغه موټر نه لري
Er will eine Reise machen, ………………………………………………

10. Er liest dieses Buch. Er versteht es nicht. هغه دا کتاب لولي. هغه پرې نپوهېږي
Er liest dieses Buch, ……………………………………………………

11. Sie bekommt immer gute Noten. Sie lernt nicht..
هغه تل ښې نمرې اخلي. هغه درس نه لولي
Sie bekommt immer gute Noten, …………………………………………

12. Sie ging aus dem Haus. Sie sagte kein Wort.
هغه له کوره ووتله. هغې یوه خبره هم ونکړه
Sie ging aus dem Haus, ………………………………………………..

**Lösungen**:

1. Er ging nach Hause, ohne sich zu verabschieden.
بې له دې چې خدای پامانی وکړي، هغه کور ته ولاړ
2. Dieser Mann fuhr mit meinem Auto nach Hause, ohne einen Führerschein zu haben. بې له دې چې لیسنس ولري، دا سړی زما په موټر کې کور ته ولاړ

3. Unsere Nachbarin ging einkaufen, ohne Geld dabei zu haben.
بې له دې چې پیسې ورسره وي، زمونږ ګاونډۍ سودا اخیستلو ته ولاړه
4. Der Junge ging ins Schwimmbad, ohne schwimmen zu können.
بې له دې چې لامبو یې زده وي، هلك د لامبو ډنډ ته ولاړ
5. Sie flüchteten aus dem Zimmer, ohne ein Geräusch zu machen.
بې له دې چې ټك وټوك وكړي، هغوی له كوټې نه وتښتېدل
6. Er kauft ein Auto, ohne Auto fahren zu können.
بې له دې چې هغه موټر وچلولی شي، هغه یو موټر په بیه اخلي
7. Du malst, ohne malen zu können. بې له دې چې ته په رسامۍ پوه شې، ته رسم كوې
8. Sie bestellte ein leckeres Essen, ohne Hunger zu haben.
بې له دې چې هغه وږې واوسي، هغې خوندوره ډوډۍ وغوښتله
9. Er will eine Reise machen, ohne ein Auto zu haben.
هغه غواړي چې سفر وكړي، بې له دې چې كوم موټر ولري
10. Er liest dieses Buch, ohne es zu verstehen.
هغه دا كتاب لولي، بې له دې چې پرې پوه شي
11. Sie bekommt immer gute Noten, ohne zu lernen.
هغه ښې نمرې اخلي، بې له دې چې درس ولولي
12. Sie ging aus dem Haus, ohne ein Wort zu sagen.
هغه له كوره ووتله، بې له دې چې یوه خبره هم وكړي

## „anstatt … zu“ = „statt … zu“ … په ځای د دې چې

په لغوي مانا (anstatt … zu) په پښتو كې (په ځای د دې چې ...) ته وایي. په (anstatt … zu) باندې هغسې جملې جوړېږي چې د یو كار په ځای د توقع په خلاف بل كار وشي. دا په دې مانا چې په ځای د دې چې داسې یو كار وشي، د هغې برعكس بل كار كېږي. مثال:

Der Junge hilft seinem Vater nicht. Er liegt den ganzen Tag faul im Bett.
دا هلك خپل پلار سره مرسته نه كوي. د دې په ځای هغه ټوله ورځ په كټ كې لټ پروت وي

دا پورتنۍ دواړه جملې خو بېلې بېلې جملې دي. كه چېرته له دې دوه جملو نه مونږ یوه جمله جوړه كړو، نو یوه جمله به یې اصلي جمله یا (Hauptsatz) او بله جمله به یې فرعي جمله یا (Nebensatz) وي. په هغه جمله كې چې (anstatt … zu) راځي، هغه جمله به فرعي جمله یا (Nebensatz) وي.

Der Junge liegt den ganzen Tag faul im Bett, *anstatt* seinem Vater *zu* helfen.
دا هلك په ځای د دې چې له خپل پلار سره مرسته وكړي، هغه ټوله ورځ په كټ كې لټ پروت وي

**د** (anstatt … zu) **د جملو جوړولو قاعده:**

څنګه چې په پورتنۍ جمله كې ښكاري، هغه كار چې نكیږي او یا یو څوك یې نكوي، په اصلي جمله كې د نه كولو لپاره په (nicht) بیان شوی. خو سرې دا توقع كوي چې دا كار باید شوی وای، یعنې په جمله كې باید (nicht) نه وای. نو په دې وجه كله چې دا مطلب د (anstatt … zu) په جمله كې یادیږي، نو د نه كولو یا (nicht) په ځای (anstatt … zu) راځي. كله چې د جملې په سر كې (anstatt) راشي، نو (zu) د جملې په پای كې له فعل نه مخكې راځي. فعل بیا د ګردان په توګه نه، بلكې په ژوندي ډول او یا د (Infinitiv) په ډول راځي چې په پورتني مثال كې (helfen) دی چې ورنه مخكې (zu) راغلی دی.

نور مثالونه:

| Hauptsätze | Sätze mit „anstatt … zu“ |
|---|---|
| Die fleißige Schülerin sieht nicht gern fern. Lieber liest sie ein Buch. لایقه زده کوونکي نه غواړي چي ټلویزیون وګوري. هغه دا ښه ګني چي یو کتاب ولولي | Die fleißige Schülerin liest lieber ein Buch, *anstatt* fern*zu*sehen. لایقه زده کوونکي په ځای د دي چي ټلویزیون وګوري، دا ښه ګني چي یو کتاب ولولي |
| Der faule Schüler macht seine Hausaufgabe nicht. Er geht lieber ins Kino. نالایق زده کوونکی خپله کورنی وظیفه نه کوي. هغه دا ښه ګني چي سینما ته ولاړ شي | *Anstatt* seine Hausaufgabe *zu machen*, geht *der faule Schüler* lieber ins Kino. په ځای د دي چي خپله کورنی وظیفه وکړي، دا نالایق زده کوونکی دا ښه ګني چي سینما ته ولاړ شي |
| Die dicke Frau bleibt lieber im Bett liegen. Sie treibt keinen Sport. دا پیړه ښځه دا ښه ګني چي په کټ کي پاتي شي. هغه هیڅ سپورټ نه کوي | Die dicke Frau bleibt lieber im Bett liegen, *anstatt* Sport *zu* treiben. دا پیړه ښځه په ځای د دي چي سپورټ وکړي، دا ښه ګني چي په کټ کي پاتي شي |
| Wir faulenzen nicht. Wir steigen lieber auf den Berg. مونږ ورځ په لټی نه تېروو. مونږ دا ښه ګنو چي غره ته وخېژو | *Anstatt zu* faulenzen, steigen wir lieber auf den Berg. په ځای د دي چي مونږ ورځ په لټی تېره کړو، مونږ دا ښه ګنو چي غره ته وخېژو |
| Der kranke Mann geht nicht zum Arzt. Er nimmt eine Tablette. رنځور سړی ډاکټر ته نه ځي. هغه یوه ګولی خوري | *Anstatt* zum Arzt *zu* gehen, nimmt der kranke Mann eine Tablette. په ځای د دي چي ډاکټر ته ولاړ شي، رنځور سړی یوه ګولی خوري |

**Übungen**: Bilden Sie bitte Sätze mit „anstatt … zu“ bzw. „statt … zu“!

1. Der faule Schüler geht nicht zur Schule. Er schläft bis zehn Uhr.
دا لټ زده کوونکی ښوونځي ته نه ځي. هغه تر لس بجو پوري ویده وي
(anstatt … zu -Satz) ……………………………………………………………

2. Er entschuldigte sich nicht. Er war noch böse. هغه بښنه ونه غوښتله. هغه لا په قهر و
(anstatt … zu -Satz) ……………………………………………………………

3. Wir sind nicht nach Deutschland gefahren. Wir sind in die Schweiz gefahren.
مونږجرمني ته نه یو تللي. مونږ سویس ته تللي یو
(statt … zu -Satz) ……………………………………………………………

4. Wir sind nicht mit dem Zug gefahren. Wir sind mit dem Auto gefahren.
مونږ په اورګاډي کي نه یو تللي. مونږ په موټر کي تللي یو
(statt … zu -Satz) ……………………………………………………………

5. Er hilft uns nicht. Er legt sich ins Bett.
هغه په کټ کې څملي. هغه له مونږ سره مرسته نه کوي
(statt … zu -Satz) ………………………………………………………

6. Ich sende dir eine E-Mail. Ich rufe dich nicht an.
زه تا ته یو برېښنالیك استوم. زه تا ته ټېلفون نه کوم
(statt … zu -Satz) ………………………………………………………

7. Er wäscht sich gründlich. Er benutzt kein Parfüm.
هغه له عطرو نه کار نه اخلي. هغه ځان ښه ډېر پرېمينځي
(statt … zu -Satz) ………………………………………………………

8. Ich fahre nicht mit dem Bus. Ich gehe zu Fuß. زه په سروېس کې نه ځم. زه په پښو ځم
(statt … zu -Satz) ………………………………………………………

9. Er holt einen Techniker. Er repariert die Waschmaschine nicht selbst.
هغه یو تخنیکر راولي . هغه د کالو پرېمينځلو ماشين پخپله نه جوړوي
(anstatt … zu -Satz) ………………………………………………………

10. Selbst um elf Uhr nachts macht sie ihre Hausaufgaben. Sie schläft nicht.
هغه نه ویده کيږي . حتی د شپې په یوولس بجو هغه خپلې کورنۍ وظیفې کوي
(anstatt … zu -Satz) ………………………………………………………

11. Er löst die Aufgabe nicht selbst. Er schreibt sie von mir ab.
هغه سوال پخپله نه حلوي. هغه له ما نه نقل کوي
(statt … zu -Satz) ………………………………………………………

12. Er legt kein Geständnis ab. Er streitet die Tat ab.
هغه اقرار نه کوي. هغه له دې عمل نه منکر دی
(statt … zu -Satz) ………………………………………………………

**Lösungen**:

1. Anstatt zur Schule zu gehen, schläft der faule Schüler bis zehn Uhr.
په ځای د دې چې ښوونځي ته ولاړ شي، دا لټ زده کوونکی تر لس بجو پورې ویده وي
2. Anstatt sich zu entschuldigen, war er noch böse.
په ځای د دې چې بښنه وغواړي، هغه لا په قهر و
3. Statt nach Deutschland zu fahren, sind wir in die Schweiz gefahren.
په ځای د دې چې مونږ جرمني ته ولاړ شو، مونږ سويس ته ولاړو
4. Statt mit dem Zug zu fahren, sind wir mit dem Auto gefahren.
په ځای د دې چې مونږ په اورګاډي کې ولاړ شو، مونږ په موټر کې ولاړو
5. Statt uns zu helfen, legte er sich ins Bett.
په ځای د دې چې له مونږ سره مرسته وکړي، هغه په کټ کې څملاستو
6. Statt mich anzurufen, schreibt er mir eine E-Mail.
په ځای د دې چې ما ته ټېلفون وکړي، هغه ما ته یو برېښنالیك استوي

7. Statt ein Parfüm zu benutzen, wäscht er sich gründlich.

په ځای د دې چې هغه له یو عطر نه کار واخلي، هغه ځان ښه ډېر پرېمینځي

8. Statt mit dem Bus zu fahren, gehe ich zu Fuß.

په ځای د دې چې زه په سروېس کې ولاړ شم، زه په پښو ځم

9. Er holt einen Techniker, anstatt die Waschmaschine selbst zu reparieren.

په ځای د دې چې د کالو پرېمینځلو ماشین پخپله جوړ کړي، هغه یو تخنیکر راولي

10. Anstatt zu schlafen, macht sie selbst um elf Uhr nachts ihre Hausaufgaben.

په ځای د دې چې ویده شي، هغه حتی د شپې په یوولس بجو هم خپلې کورنۍ وظیفې کوي

11. Statt die Aufgabe selbst zu lösen, schreibt er sie von mir ab.

په ځای د دې چې سوال پخپله حل کړي، هغه له ما نه نقل کوي

12. Statt ein Geständnis abzulegen, streitet er die Tat ab.

په ځای د دې چې هغه اقرار وکړي، هغه له دې عمل نه انکار کوي

**Übungen:** Bilden Sie bitte Sätze mit „um … zu“, „ohne zu …“, „anstatt zu“

1. Ich bleibe noch eine Stunde im Büro, ….. den Bericht zu schreiben.

زه یو ساعت نور هم په دفتر کې پاتې کېږم چې رپوټ ولیکم

2. ….. den Bus zu nehmen, gehe ich zu Fuß.

په ځای د دې چې سروېس ونیسم، زه په پښو ځم

3. Er hat eine Kamera gekauft, ….. zu wissen, wie sie funktioniert.

هغه یوه کمره په بیه واخیسته، بې له دې چې پوه شي چې هغه څنګه کار کوي

4. ….. schneller dort zu sein, fahren wir mit dem Auto.

د دې لپاره چې مونږ ژر هلته واوسو، مونږ په موټر کې ځو

5. ….. sofort nach Hause zu gehen, geht sie erst einkaufen.

په ځای د دې چې هغه سمدلاسه کور ته ولاړه شي، هغه لومړی سودا اخیستلو ته ځي

6. Er darf das nicht entscheiden, ….. uns vorher zu informieren.

هغه ته اجازه نشته چې دا فیصله وکړي، بې له دې چې مخکې له هغې نه مونږ ته خبر راکړي

7. Ich arbeite fünf Stunden, ….. eine Pause zu machen.

زه پنځه ساعته کار کوم، بې له دې چې دمه وکړم

8. Wir brauchen noch zwei Mitarbeiter, ….. das Gebäude zu renovieren.

مونږ دوه همکارانو ته اړتیا لرو، د دې لپاره چې دا ودانۍ جوړه کړو

9. ….. fit zu werden, treibe ich Sport. د دې لپاره چې تکړه شم، زه سپورټ کوم

10. Sie isst im Restaurant, ….. selbst zu kochen.

هغه په رستوران کې ډوډۍ خوري، په ځای د دې چې پخپله پخلی وکړي

**Lösungen:**

1. um 2. anstatt 3. ohne 4. um 5. anstatt 6. ohne 7. ohne 8. um 9. um 10. anstatt

**Übungen:** Bilden Sie bitte Infinitivsätze:

Beispiel:

Der Sohn wird seine Mutter nie wieder anlügen. Das hat er ihr versprochen.
زوی به خپلې مور ته نور هېڅکله دروغ ونه وايي . هغه ورسره دا ژمنه کړېده

Infinititivsatz: Der Sohn hat der Mutter versprochen, sie nie wieder anzulügen.
زوی خپلې مور سره دا ژمنه وکړه چې هغې ته به نور هېڅکله دروغ نه وايي

1. In einer Metzgerei darf man keine Hunde halten. Das ist verboten.
په يوې قصابۍ کې د سپو ساتلو ته اجازه نشته. دا منع دي
……………………………………………………………………
2. Er gibt das Rauchen auf. Sein Arzt hat ihn dazu überreden können.
هغه سګرټ څکول خوشې کوي. د هغه ډاکټر هغه ته دا قناعت ورکړی شو
……………………………………………………………………
3. Er will mich dazu zwingen, dass ich täglich 10 Stunden bei ihm arbeite.
هغه ما دې ته مجبوروي چې له هغه سره د ورځې لس ساعته کار وکړم
……………………………………………………………………
4. Sie hat mich darum gebeten, dass ich ihre kranke Mutter besuche.
هغې له ما نه هيله وکړه چې د هغې د ناروغې مور پوښتنې ته ولاړ شم
……………………………………………………………………
5. Du brauchst mir bei den Hausaufgaben nicht zu helfen. Das ist nicht nötig.
ته له ما سره په کورنۍ وظيفه کې څه مرسته مکوه. دې ته څه اړتيا نشته
……………………………………………………………………
6. Die Schülerin ist davon überzeugt, dass sie ohne Probleme die Prüfung besteht. زده کوونکې په دې ډاډمنه ده چې هغه به بې له ستونځو په ازموينه کې بريالۍ شي
……………………………………………………………………
7. Ärgere dich nicht! Dafür gibt es keinen Grund.
ته مه په غصه کېږه. دې ته کوم علت نشته
……………………………………………………………………
8. Die dicke Frau wollte 3 kg abnehmen. Sie hat es versucht.
دې پېړې ښځې غوښتل چې درې کيلو خپل وزن وبايلي. هغې خپل کوښښ وکړو
……………………………………………………………………
9. Der Student möchte von Kiel nach München wandern. Das hat er vor.
دا محصل غواړي چې له کيل نه مونشن ته په پښو مزل وکړي. هغه دا پتېلې دي
……………………………………………………………………

**Lösungen**:
1. Es ist verboten, in einer Metzgerei Hunde zu halten.
2. Sein Arzt hat ihn dazu überreden können, das Rauchen aufzugeben.
3. Er will mich dazu zwingen, täglich 10 Stunden bei ihm zu arbeiten.
4. Sie hat mich gebeten, ihre kranke Mutter zu besuchen.
5. Es ist nicht nötig, mir bei den Hausaufgaben zu helfen.

6. Die Schülerin  ist davon überzeugt, ohne Probleme die Prüfung zu schaffen.
7. Es gibt keinen Grund, sich zu ärgern.
8. Die dicke Frau hat versucht, 3 kg abzunehmen.
9. Der Student hat vor, von Kiel nach München zu wandern.

## Uneingeleiteter Nebensatz

په لغوي مانا (eingeleitet) په پښتو کې (له سريزې سره يا له مقدمې سره) ته وايي. له (eingeleitet) جملې نه مطلب دا دی، چې د جملې په سره کې په (dass, wenn, da) د سريزې په توګه راځي، مثال:

| | |
|---|---|
| Wenn es regnet, bleiben wir zu Hause. | که باران وشو، مونږ په کور کې پاتې کيږو |
| Wer sagt, dass du nicht reich bist. | څوك وايي چې ته شتمن نه يې؟ |

نو په دې ډول (uneingeleitet) په پښتو کې (بې له کومې سريزې يا بې له کومې مقدمې) ته وايي. د (uneingeleiteter Nebensatz) نه مطلب دا دی چې يوه جمله بې له کومې سريزې پيليږي، يعني په داسي جملو کې (dass, wenn, da) د سريزې لپاره نه کارول کيږي. نو اوس به پورتنۍ جملې چې (eingeleitet) دي، په (uneingeleiter Nebensatz) بدلې کړو:

| | |
|---|---|
| Regnet es, bleiben wir zu Hause. | که باران کيږي، مونږ په کور کې پاتې کيږو |
| Wer sagt, du bist nicht reich. | څوك وايي چې ته شتمن نه يې |

(uneingeleiteter Nebensatz) هغه جملې دي چې په واقعيت کې فرعي جملې دي، خو ظاهرآ داسي ښکاري چې هغه به اصلي جملې وي، ځکه چې په دې جملو کې (Konjunktion) يا د ربط حروف نشته. له بلې خوا په دې جملو کې فعل لکه د يوې اصلي جملې په ډول په دوهم ځای کې راځي.
نو په دې ډول له هر (eingeleiteter Nebensatz) نه چې (dass, wenn) وويستل شي، نو هغه په (uneingeleiteter Nebensatz) بدليږي. اوس به دا دواړه جملې خوا په خوا وګورو:

| Eingeleiteter Nebensatz | Uneingeleiteter Nebensatz |
|---|---|
| Ich glaube, dass er recht hat.<br>زه ګمان کوم چې د هغه خبره ريښتيا ده | Ich glaube, er hat recht.<br>زه ګمان کوم چې د هغه خبره ريښتيا ده |
| Es ist besser, wenn du ihm hilfst.<br>ښه به دا وي چې له هغه سره مرسته وکړې | Es ist besser, du hilfst ihm.<br>ښه به دا وي چې ته له هغه سره مرسته وکړې |
| Man weiß nicht, ob das halbvoll oder halbleer ist.<br>سړی نپوهيږي چې دا نيم ډك او که نيم تش دی | Man weiß nicht, ist das halbvoll oder halbleer?<br>سړی نپوهيږي چې دا نيم ډك او که نيم تش دی |

**Übungen:** Bilden Sie bitte Sätze mit uneingeleiteten Nebensätzen:

1. Er ist der festen Überzeugung, dass das richtig ist.
هغه په دې ټينګ باوري دی، چې دا صحيح دی
2. Die meisten glauben, dass das nicht stimmt. زياتره کسان په دې فکر دي چې دا ريښتيا نده
3. Er glaubt, dass die Fakten eindeutig sind. هغه ګمان کوي چې دا واقعيت څرګند دی
4. Sie meint, dass ihre Behauptung falsch interpretiert worden ist.
هغه په دې فکر ده چې د هغې ادعا غلطه تعبير شويده
5. Sie denken, dass man gründlich recherchieren muss.
هغوی فکر کوي چې په دې برخه کې سړی بايد ژوره پلټنه وکړي

6. Niemand glaubt daran, dass dieser Plan eines Tages Realität wird.
هېڅ څوك په دې باور نلري چې دا پلان به يوه ورځ په واقعيت بدل شي
7. Viele befürchten, dass das Klima immer wärmer wird.
ډېر کسان له دې نه ډاريږي چې اقليم مخ په تودېدو ځي

| | |
|---|---|
| پاملرنه | د حل يا د ځوابونو په لاندينۍ برخه کې ځينې ځوابونه دي چې تر اوسه پورې مو ندي زده کړي، لکه (sei, stimme, müsse, werde). په دې برخه کې ډېر معلومات به د (Konjunktiv) په مبحث کې زده کړو. |

**Lösungen**:
1. Er ist der festen Überzeugung, das sei richtig. 2. Die meisten glauben, das stimme nicht. 3. Er glaubt, die Fakten seien eindeutig. 4. Sie meint, die Fakten seien falsch interpretiert worden. 5. Sie denken, man müsse gründlich recherchieren. 6. Niemand glaubt daran, eines Tages werde dieser Plan Realität. 7. Viele befürchten, das Klima werde immer wärmer.

## Der Objektsatz مفعولي جمله

د (transitive Verben) په مبحث کې مونږ زده کړل چې ځينې فعلونه شته چې هغه هرومرو يو (Akkusativ) ته اړتيا لري. خو اوس به زده کړو چې ځينې فعلونه شته چې هغوی سره له دې چې يو (Akkusativ) ته اړتيا لري، خو د هغوي (Akkusativ) يو لغت نه بلکې يوه اوږده جمله وي چې دې ته (Objektsatz) يا مفعولي جمله وايي. داسې جملې په پښتو کې هم شته، څرنګه چې د پښتو ژبې فلسفي شاعر، غني خان په يو شعر کې وايي:

| | |
|---|---|
| ما په ګل کې ولید چې ته يې نه مومې کتاب کې | ای ملا، ستا نيم کتاب مې واوږېده رباب کې |

په پورتني شعر کې غني خان وايي چې (ما په ګل کې ولید). دلته پوښتنه کيږي چې (ما په ګل کې څه شی ولید؟). په ځواب کې يې هغه څه چې ليدل کيږي، هغه يو کس ندی، يو شی ندی، يو لغت ندی، بلکې يوه جمله ده او هغه دا ده (چې ته يې نه مومې کتاب کې). دا شان جملې چې د (Akkusativ) په ځای راځي، دې ته (مفعولي جملې) وايي. مفعولي جملې هغه فرعي جملې دي چې له اصلي جملو سره د استعمال په وخت د مفعول وظيفه په غاړه اخلي. دا په دې مانا چې که په يوې جملې کې (Akkusativ) ته اړتيا وي، خو هلته بيا يو (Akkusativ) په سترګو ونه ليدل شي، نو همدا مفعولي جمله يا (Objektsatz) د (Akkusativ) ځای نيسي. په بل عبارت که په جمله کې (Akkusativ) نه وي، نو همدا مفعولي جمله يا (Objektsatz) د دې اصلي جملې مفعول يا (Akkusativ) ګرځي. کومې پوښتنې چې د مفعولي جملې يا (Objektsatz) په برخه کيږي، هغه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wessen = د چا | wem = چا ته | wen = څوك | was = څه شی |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| wessen = د چا<br>Genitivobjekt | Er ist sich bewusst, dass er einen Fehler begangen hat.<br>هغه په دې باندې په شعوري ډول پوهيږي چې هغه يوه غلطي کړېده<br>Frage: Wessen ist er sich bewusst?<br>پوښتنه : هغه په څه باندې په شعوري ډول پوهيږي؟ |

| | |
|---|---|
| wem = چا ته<br>Dativobjekt | Ich helfe, wem ich will.<br>هر چا ته چي زما زړه وي، له هغه سره زه مرسته کوم<br>Frage: Wem helfe ich? پوښتنه: زه له چا سره مرسته کوم |
| wen, was =<br>Akkusativobjekt | Ich sehe nicht, wer da kommt. زه نه وينم چي څوك راځي<br>Frage: Wen sehe ich nicht? پوښتنه: زه څوك يا څه شی نه وينم؟ |
| was =<br>Akkusativobjekt | Ich wollte, dass er bleibt. ما غوښتل چي هغه پاتي شي<br>Frage: Was wollte ich? پوښتنه: ما څه غوښتل |

**Mit *dass* eingeleiteter Nebensatz (dass-Satz)**
**هغه فرعي جملي چي پکی (dass) راځي**

| |
|---|
| Wir verstehen (es), dass ihr uns nicht begleiten könnt.<br>مونږ په دي نه خپه کيږو چي تاسو زمونږ بدرګه نشئ کولی |
| Sie ärgert sich (darüber), dass sie den Zug verpasst hat.<br>هغه په دي خپه ده چي اورګاډی ورځيني ولاړ |

**Mit *ob* eingeleiteter Nebensatz (ob-Satz)**
**هغه فرعي جملي چي پکی (ob) راځي**

| |
|---|
| Sie wissen nicht, ob wir auch eingeladen sind.<br>هغوی په دي نپوهيږي چي آيا مونږ هم بلل شوي يو او که نه |
| Ich zweifle, ob ich die Einladung annehmen soll.<br>زما په دي شك دی چي آيا زه به دا بلنه ومنلی شم او که نه |

**Mit Fragewort eingeleiteter Nebensatz (W-Satz)**
**هغه جملي چي سواليه الفاظ پکی راځي**

| |
|---|
| Sie fragte mich, welches Kleid sie anziehen soll.<br>هغي له ما نه پوښتنه وکړه چي هغه کومي جامي واغوندي |
| Ich wundere mich (darüber), warum du erst so spät kommst.<br>زه په دي تعجب کوم چي ته ولي دومره ناوخته راځي |

**Infinitivkonstruktion** **هغه جملي چي مصدر پکي په بشپړ ډول راځي**

| |
|---|
| Wir bedauern (es), sie enttäuschen zu müssen.<br>مونږ په دي تآسف کوو چي تاسو بايد مآيوس کړو (يعني تاسو ته منفي ځواب ووايو) |
| Sie freuten sich (darüber), ihre Freunde zu sehen.<br>هغوی د خپلو ملګرو په ليدو خوښ شول |

**uneingeleiteter Nebensatz** **هغه جملي چي په سر کي يي خا  الفاظ نه وي**

| | |
|---|---|
| Er sagt, er hat keine Zeit. | هغه ووايل چي هغه وخت نلري |
| Wir hofften, ihr würdet auch kommen. | مونږ هيله کوله چي تاسو به هم راشئ |

**mit *wie* eingeleiteter Nebensatz** **هغه فرعي جملې چې پکې (wie) راشي**

| | |
|---|---|
| Sie fühlte, wie ihre Kräfte nachließen. | ځنګه چې هغه کمزورې شوه، هغې دا احساس وکړو |

| | |
|---|---|
| دا چې په يوه اصلي جمله کې د مفعولي جملې کوم الفاظ راشي، دا دې پورې اړه لري چې په فرعي جمله کې کوم مفعول کارول کيږي، يعنې دا چې د (Akkusativ, Dativ, Genitiv) سره استعماليږي. | د بشپړتيا لپاره معلومات |

| Nebensatz فرعي جمله | Korrelat د بشپړتيا لپاره الفاظ |
|---|---|
| Akkusativobjekt | *es, das* |
| Genitivobjekt | *dessen* |
| Präpositionalobjekt | Pronominaladverb *da(r)-* |

## Nebensatz = Akkusativobjekt || Korrelat = *es, das*

کله چې يوه فرعي جمله د يو (Akkusativobjekt) حيثيت ولري، نو په اصلي جمله کې د فرعي جملې په ځای (es) راتلی شي، يا په بل عبارت (es) هغه بيانوي چې له (es) نه وروسته غونډه فرعي جمله يې بيانوي. مثال:

| |
|---|
| Wir verstehen (es), dass ihr uns nicht begleiten könnt.<br>مونږ په دې باندې نه خپه کيږو چې تاسو زمونږ بدرګه نشئ کولی |
| Wir bedauern (es), Ihnen die schlechteste Note geben zu müssen.<br>مونږ په دې باندې خواشيني يو چې تاسو ته ناچار له ټولو نه خرابه نمره درکړو |

په لومړی پورتنی جمله کې (dass ihr uns nicht begleiten könnt) فرعي جمله ده. د دې ټولې اوږدې جملې مفهوم تش په (es) باندې ذکر کېدی شي، خو په دې شرط چې سړي په مطلب يې خبر واوسي. نو له دې کبله که چېرته دومره ووېل شي چې : (.Wir verstehen es) ، نو دا جمله بشپړه اصلي جمله ده او دوهمې فرعي جملې (dass ihr uns nicht begleiten könnt) ته څه اړتيا نشته، ځکه کله چې غږېدونکي تش (es) ووايي، نو اورېدونکی پوهيږي چې مطلب يې پورتنی دوهمه فرعي جمله ده، چې هغه دا ده: (dass ihr uns nicht begleiten könnt)

همدا شان په دوهمه جمله کې (Ihnen die schlechteste Note geben zu müssen) فرعي جمله ده. د دې ټولې جملې مفهوم په (es) باندې ذکر کېدی شي. له (es) نه مطلب (په هغې) يا (پرې) دی، يعني (مونږ پرې خواشيني يو). دلته که پوښتنه وشي چې له (پرې) نه مو مطلب څه دی؟ په څه شي باندې مأيوسه ياست؟ د دې ځواب به دا وي چې له (پرې) يا (es) نه مو مطلب د جملې دوهمه برخه يا فرعي جمله ده، چې هغه دا ده : (Ihnen die schlechteste Note geben zu müssen) ، خو په هره جمله کې (es) نه شي راتلی. مثال:

| |
|---|
| FALSCH: Wir beschlossen es (= falsch), noch nicht nach Hause zu gehen.<br>په پورتنی جمله کې د (es) استعمالول غلط دي |
| FALSCH: Er sagt es, du hast das Geld gestohlen. |
| FALSCH: Sie fragt es, wann ihr kommt.<br>په پورتنيو دواړو جملو کې د (es) استعمال غلط دی |

کله چې فرعي جمله د جملې په سر کې راشي نو له کامې (,) نه وروسته د اصلي جملې په سر کې (es) نشي راتلی، خو (das) راتلی شي، مثال:

| |
|---|
| Dass ihr uns nicht begleiten könnt, (das) verstehen wir.<br>دا چې تاسو مونږ نشئ بدرګه کولی، په دې مونږ نه خپه کیږو |

دلته که پوښتنه وشي چې مونږ (په دې) پوهیږو ، مطلب د (په دې) نه څه شی دی؟ په څه شي پوهیږو؟ ځواب به دا وي چې له (په دې) نه مطلب (das) دی او (das) هغه څه بیانوي چې د جملې په سر کې یاد شول او هغه دا دي: (Dass ihr uns nicht begleiten könnt). بل مثال:

| |
|---|
| Wen ihr eingeladen habt, (den) müsst ihr auch begrüßen.<br>هغه څوك چې تاسو مېلمه کړی دی، هغه ته باید تاسو ستړي مشي ووایئ |

په پورتنی جمله کې (den) هغه مطلب بیانوي چې په (Wen ihr eingeladen habt) جمله کې یاد شوی دی.

## Nebensatz = Genitivobjekt || Korrelat = *dessen*

کله چې یوه جمله د (Genitiv) وظیفه ولري، نو په اصلي جمله کې د هغې یاد په (dessen) کېدې شي. مثال:

| |
|---|
| Er vergewisserte sich (dessen), dass alle Türen geschlossen waren.<br>هغه ځان په دې ډاډمن کړو چې ټولې دروازې تړلې وې |
| Ich schämte mich (dessen), ihn nicht wiedererkannt zu haben.<br>زه په دې وشرمېدم چې هغه مې بیا ونه پیژندو |

په پورتنیو جملو کې له (dessen) نه مطلب هغه فرعي جمله ده چې له (dessen) نه وروسته راځي.
پورتنی جملې دواړه دفتري جملې دي، خو په ویل شوې یا د خبرو کولو په ژبه کې د (Genitiv) په ځای یو (Präposition) لکه (dafür) (davon) استعمالیږي، مثال:
(sich von etwas vergewissern statt sich einer Sache vergewissern)

| |
|---|
| Er vergewisserte sich (davon), dass alle Türen geschlossen waren.<br>هغه ځان په دې باندې متیقن کړو، چې ټولې دروازې تړل شوې وې |

(sich für etwas schämen statt sich einer Sache schämen).

| |
|---|
| Ich schämte mich (dafür), ihn nicht wiedererkannt zu haben.<br>زه په دې شرمیږم چې هغه مې بیا ونه پیژاندی |

| |
|---|
| Sie ärgert sich (darüber), dass sie den Zug verpasst hat.<br>د هغه اعصاب دی ته خراب دي چې له هغې نه اورګاډی ولاړ |

## Nebensatz = Präpositionalobjekt || Korrelat = *da(r)*-

کله چې یوه فرعي جمله د (Präpositionalobjekt) ځای ونیسي، نو کېدی شي چې په اصلي جمله کې د فرعي جملې په ځای [da (r)] راشي. مثال:

| | |
|---|---|
| Sie ärgert sich (darüber), dass sie den Zug verpasst hat.<br>د هغې اعصاب دي ته خراب دي چې له هغې نه اورګاډی ولاړ | |
| Ich zweifle (daran), dass sie die Wahrheit sagt. زه په دې شك لرم چې هغه به حقيقت وايي | |
| Ich bin (damit) einverstanden, früher wegzufahren.<br>زه له دې سره موافق يم چې لږ څه مخکې ولاړ شم | |

په پورتنيو جملو کې له (darüber, daran, damit) نه مطلب هغه څه دی چې د جملې په دوهمه برخه کې له کامې (,) نه وروسته ذکر شويدي.

# Der Adverbialsatz

(Adverbialsätze) هغه فرعي جملې دي چې په اصلي جمله کې د يو قيد (Adverb) وظيفه لري او د اصلي جملې مفهوم لاپسې ښه څرګندوي. د دې مطلب د څرګندولو لپاره به لومړی دوه اصلي جملې (Hauptsätze) وګورو چې له يو بل نه بيلې بيلې دي، خو دوهمه جمله يې د لومړی جملې په برخه کې لږ څه معلومات زياتوي.

| | |
|---|---|
| Der Hund bellt. سپی غاپي | Er ist angebunden. هغه تړل شوی دی |

دا دوهمه جمله، يعني (هغه تړل شوی دی = Er ist angebunden) دا تشريح کوي چې سپی ولې غاپي. اوس به دا دواړه جملې له يو بل سره يوځای کړو چې لومړی جمله به (Hauptsatz) او دوهمه جمله به (Adverbialsatz) شي:

| |
|---|
| Der Hund bellt, weil er angebunden ist. سپی غاپي، ځکه چې هغه تړل شوی دی |

څنګه چې په پورتنی جمله کې ليدل کيږي، دوهمه جمله (Adverbialsatz) د لومړی (Hauptsatz) علت ښايي چې سپی ولې غاپي.

(Adverbialsätze) مختلف ډولونه لري چې په لانديني جدول کې ليکل شوي دي. هر ډول يې د جدول نه وروسته په مفصل ډول تشريح شوی دی :

## Mit unterordnender Konjunktion eingeleiteter Nebensatz

| | |
|---|---|
| Temporalsatz<br>د وخت بيانولو جمله | Das Haus ist abgebrannt, während sie im Kino waren.<br>کله چې هغوی په سينما کې وو، کور وسوځېد |
| Lokalsatz<br>د ځای د ښودلو جمله | Bleib, wo du bist! په کوم ځای کې چې ته يې همغلته پاتې شه |
| Modalsatz<br>د ډول ښودلو جمله | Er beleidigte mich, indem er mich negierte.<br>په دې چې هغه منفي ځواب راکړو. ما ته يې په تيته سترګه وکتل |
| Begründungssatz<br>د دليل راوړلو جمله | Sie spielen im Haus, weil es regnet.<br>په دې چې باران وريږي، هغوی په کور کې لوبيږي |
| Bedingungssatz<br>د شرط ايښودلو جمله | Du wirst bald wieder gesund sein, wenn du gut für dich sorgst. که چېرته ته خپل غم ښه وخورې، نو ژر به ښه شې |
| Einräumungssatz<br>د اعتراف کولو جمله | Er ging schwimmen, obwohl er eine leichte Grippe hatte.<br>سره له دې چې هغه لږ څه والګي نيولی و نو بيا هم هغه لامبو ته ولاړ |
| Folgesatz<br>د نتيجه اخيستلو جمله | Er hatte die Grippe, sodass er das Treffen absagen musste.<br>هغه والګي نيولی و، نو ځکه ليده کاته يې پرېښودل |

| | |
|---|---|
| Zwecksatz<br>د یو هدف لپاره جمله | Ich schreibe alles auf, damit ich es nicht vergesse.<br>د دې لپاره چې هېر مې نه شي، زه هر څه لیکم |
| Adversativsatz<br>د اختلاف بیانولو جمله | Heute scheint die Sonne, während es gestern geregnet hat.<br>په داسې حال چې پرون باران وشو، نن لمر دی |

## Mit Infinitivkonjunktion eingeleitete Infinitivkonstruktion

| | | |
|---|---|---|
| Modalsatz | ohne zu, (an)statt zu | بې له دې چې، په ځای د دې چې |
| Folgesatz | ohne zu, um zu | بې له دې چې، د دې لپاره چې |
| Zwecksatz | um zu | د دې لپاره چې |

## Temporalsätze د وخت د ښودلو جملې، مهالي جملې

کله کله د یو کار په وخت کې یوه پېښه کېږي. دا چې څه شان پېښه کېږي، دا معلومات په یوې اصلي جملې یا (Hauptsatz) کې وړاندې کېږي. دا چې دا پېښه کله یا په کوم وخت کې شوې، دا معلومات بیا په یوې فرعي جملې کې کېږي. په دې چې دا فرعي جمله د وخت یا د مهال په برخه کې معلومات وړاندې کوي، نو دې ته بیا د وخت یا د مهال بیانولو جمله یا (Temporalsatz) وايي. اوس به راشو دې ته چې دا وخت کله و چې دا پېښه پکې کېدله؟ آیا دا پېښه په همغه وخت کې کېدله چې دا کار کېدلو؟ یا دا چې دا پېښه له دې کار نه مخکې شوې ده؟ او یا دا چې له دې کار نه وروسته شوې ده؟ د منطق او د ګرامر له اړخه درېواړه امکانات شتون لرلی شي. په ګرامر کې د هر یو وخت لپاره ځانګړي د تړاو حرفونه یا (Konjunktion) شته چې په لاندې برخه کې لیکل کېږي:

| Gleichzeitigkeit<br>کار او پېښه په یو وخت کې | Vorzeitigkeit<br>پېښه له کار نه مخکې | Nachzeitigkeit<br>پېښه له کار نه وروسته |
|---|---|---|
| während په لړ کې، په ترڅ کې | kaum dass<br>په مجرد د دې چې | bis … nicht تر هغه پورې چې دا نه وي شوي |
| solange تر هغه پورې چې | sobald هرڅومره ژر چې، په مجرد د دې چې | bevor مخکې له دې چې |
| seit / seitdem<br>له هغه وخت راهیسې چې | seit / seitdem<br>له هغه وخت راهیسې چې | ehe … nicht<br>تر هله پورې ی دا نه وي شوي |
| wenn که چېرته، که | wenn که چېرته، که | bis تر، تر هغه پورې چې |
| als کله چې، هغه وخت چې | als کله چې، هغه وخت چې | |
| sooft هر څومره ډېر چې | sowie همدا شان، په مجرد د دې چې | |
| | nachdem وروسته له دې چې | |

### Temporalsätze mit „während“ په لړ کې، په جریان کې، په دې وخت کې

(während) په یوې جملې کې هغه وخت کارول کېږي چې دوه پېښې په عین وخت کې وشي. یوه پېښه کېدی شي چې په یو ځای کې وشي او بله پېښه په بل ځای کې. یا دا چې دواړه پېښې په همدغه یو ځای کې وشي، خو په دې ډول چې یو څوک یو څه کوي، خو په دې ترڅ کې بل څوک بل څه کوي. بل دا چې دا دواړه پېښې په متوازي ډول یو د بل مخ ته ورځي. یعنې دا چې کله چې په اصلي جمله کې یوه خبره بیان شي، نو په همدې وخت کې په فرعي جمله کې یو بل څه یادیږي چې کېږي. نو د (während) د استعمال

لپاره د تړاو حرف یا (Konjunktionen) په تولو وختونو کې، يعني دا چې په اوسني وخت کې، په راتلونکي وخت کې او په پخواني وخت کې استعمالېدی شي. مثالونه:

| Hauptsatz | Nebensatz (während) |
|---|---|
| Das Haus ist abgebrannt,<br>کور اور واخيست | während sie im Kino waren.<br>کله چې هغوی په سينما کې وو |
| Die Mutter kocht den Reis,<br>مور وريجې پخوي | während die Kinder schlafen.<br>په هغه وخت کې چې ماشومان ويده دي |
| Die Ehefrau stopft die Socken,<br>په دې وخت کې چې مېرمن جورابې پيوندوي | während ihr Mann Gartenarbeit macht.<br>کله چې مېړه يې په حوېلۍ کې کار کوي |
| Ihre Tochter telefonierte ständig,<br>لور يې په ټيلفون کولو بوخته وه | während die Mutter kochte.<br>په دې وخت کې چې مور يې پخلی کوه |
| Er hat fünf Flaschen Saft getrunken,<br>پنځه بوتله شربت يې وڅښنو | während er im Bett gelegen hat.<br>په دې وخت کې چې هغه په کټ کې پروت و، |

**Temporalsätze mit „seit/seitdem“ له هغه وخت راهيسې چې**

(seitdem) او (seit) هغه وخت کارول کيږي چې دوه پېښې په همغه يو وخت کې وشي. خو د يادونې خبره دا ده چې د فرعي جملې پېښه په پخواني وخت کې پيل کيږي او اغېزه يې تر اوسني وخت پورې دوام کوي. اصلي جمله په اوسني وخت يا په حال کې وي. نو په دې ډول کېدی شي فرعي جمله په پخواني وخت کې وي او اصلي جمله په اوسني وخت کې. داسې هم کېدی چې دواړه جملې په اوسني وخت کې وي. د دې جملو په برخه کې تل لپاره پوښتنه دا ده:

| | |
|---|---|
| seit wann? = له کوم وخت راهيسې | wie lange? = د څومره وخت لپاره |

مثالونه په جملو کې:

| Hauptsatz | Nebensatz (seit/seitdem) |
|---|---|
| Ich bewege mich weniger.<br>زه لږ حرکت کوم | seitdem wir keinen Hund haben.<br>له هغه وخت راهيسې چې مونږ سپی نلرو |
| Frage | |
| Seit wann bewege ich mich weniger? | له کوم وخت راهيسې زه لږ حرکت کوم؟ |
| Sie ist ganz anders geworden,<br>هغه بل شان شوې ده | seitdem sie verheiratet ist.<br>له هغه وخت راهيسې چې هغې واده کړی دی |
| Frage | |
| Seit wann ist sie ganz anders geworden? | له کوم وخت راهيسې هغه بل شان شوېده؟ |
| Er ist zufrieden, هغه راضي دی | seitdem er ein neues Haus hat.<br>له هغه وخت راهيسې چې هغه يو نوی کور لري |

| | |
|---|---|
| **Frage**<br>Seit wann ist er zufrieden? له کوم وخت راهيسې هغه راضي دی؟ | |
| Er vermisst seine Heimat,<br>هغه د خپل هېواد پسې خپه دی | seitdem er im Ausland wohnt. له هغه وخت راهيسې چې هغه په بهر کې اوسيږي |
| **Frage**<br>Seit wann vermisst er seine Heimat? له کوم وخت راهيسې هغه خپل هېواد پسې خپه دی؟ | |
| Es passieren mehr Unfälle,<br>ډېرې ترافيکي پېښې کيږي | seitdem die Autofahrer zu schnell fahren. له هغه وخت راهيسې چې ډرېوران موټرونه ډېر چټك ګرځوي |
| **Frage**<br>Seit wann passieren weniger Unfälle? له کوم وخت راهيسې ترافيکي پېښې لږې کيږي؟ | |

**Temporalsätze mit „wenn“ کله چې**

په مهالي جملو کې له (wenn) نه هغه وخت کار اخيستل کيږي چې دوه پېښې په يو وخت کې وشي. کله چې دا پېښې په اوسني وخت يا په راتلونکي کې وشي، دا مهمه نده چې دا پېښې يوځل يا ډېر ځلي وي، خو که چېرته دا پېښې په پخواني وخت کې شوې وي، نو له (wenn) نه هغه وخت کار اخيستل کېدی شي چې دا پېښې بيابيا شوې وي. که چېرته دا پېښې تش يو ځل شوې وي، نو بيا د (wenn) په ځای له (als) نه کار اخيستل کيږي . دا موضوع له دې مبحث نه وروسته په لاندې برخه کې تشريح شويده. له (wenn) نه په اصلي جمله کې هغه وخت کار اخيستل کيږي، چې په فرعي جمله کې له هغې نه دمخه يو څه شوي وي. کومه پوښتنه چې دلته کيږي هغه دا ده :

| | | | |
|---|---|---|---|
| wann? | په کوم مهال کې؟ | په کوم وخت کې؟ | کله؟ |

| Hauptsatz | Nebensatz (wenn) |
|---|---|
| Er bringt immer eine Flasche Wasser mit, هغه له ځانه سره تل يو بوتل اوبه راوړي | wenn es zu warm wird.<br>کله چې هوا ډېره توده شي |
| **Frage**<br>Wann bringt er eine Flasche Wasser mit? هغه کله يو بوتل اوبه له ځانه سره راوړي؟ | |
| Sie hat ein Buch geschrieben,<br>هغې يو کتاب ليکلی دی | immer wenn in ihrem Leben etwas Besonderes passiert ist. هرکله چې د هغې په ژوند کې کوم څه پېښ شويدي |
| **Frage**<br>Wann hat sie ein Buch geschrieben? هغې کله يو کتاب ليکلی دی؟ | |
| Ich komme nach Hause, زه کور ته راځم | wenn die Dämmerung beginnt.<br>کله چې تياره پيل شي |
| **Frage**<br>Wann kommst du nach Hause? ته کله کور ته راځې؟ | |
| Sie hat jedes Mal bitterlich geweint,<br>هر ځل به يې په سلګو سلګو ژړل | wenn sie Liebeskummer hat.<br>کله چې هغې ته به د مينې غم ورپه ياد شو |

| | |
|---|---|
| Frage<br>Wann hat sie bitterlich geweint? هغې کله په سلګو ژړلي دي؟ | |
| Es wird rasch kühl, هوا ژر سړیږي | wenn die Sonne untergeht.<br>کله چې لمر ولویږي |
| Frage<br>Wann wird es kühl? هوا کله سړیږي؟ | |
| Es war immer sehr schön,<br>نو هرڅه به ډیر ښه وو | wenn mein Vater nach Hause kam.<br>کله چې زما پلار به کور ته راغی، |
| Frage<br>Wann war es sehr schön? کله هر څه ډیر ښه وو؟ | |

**Temporalsätze mit „als“ کله چې، هغه وخت چې**

په مهالي جملو کې (als) او (wenn) یو بل ته ډیر ورته دي. یوازینی توپیر یې دا دی چې له (wenn) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې یوه پیښه یو ځل نه بلکې بیابیا وشي، خو (als) تش د یوځلي پیښې لپاره کارول کیږي او هغه هم په پخواني وخت کې، دا په دې مانا چې له (als) نه هېڅکله په اوسني وخت او په راتلونکي کې کار نشي اخیستل کېدی.(als) تل لپاره هغو پوښتنو ته ځواب ورکوي چې داسې وپوښتل شي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wann? | کوم مهال | په کوم وخت کې، | کله، |

کله چې په (als) باندې ځواب ورکړل شي، نو ځواب یې تل د پخواني وخت لپاره وي، که څه هم جمله د (اوس = Präsens) په وخت کې راشي. مثال:

| Hauptsatz | Nebensatz (als) |
|---|---|
| Er ist ausgewandert,<br>هغه بل هیواد ته کډه وکړه | als er 20 Jahre alt war.<br>کله چې هغه شل کلن و |
| Frage<br>Wann ist er ausgewandert? هغه بل هیواد ته کله کډه وکړه؟ | |
| Sein Vater ist gestorben, د هغه پلار مړ شو | als er noch ein kleiner Junge war.<br>کله چې هغه لا یو ووړوکی ماشوم و |
| Frage<br>Wann ist sein Vater gestorben? د هغه پلار کله مړ شو؟ | |
| Es begann zu regnen, باران په وریدو شو | als schwarze Wolken kamen.<br>کله چې توري وریځې راغلې |
| Frage<br>Wann begann es zu regnen? باران کله په وریدو شو؟ | |
| Der Zug war schon abgefahren,<br>اورګاډی وخته تللی و | als ich den Bahnhof erreichte.<br>کله چې زه د اورګاډي سټېشن ته ورسیدم |

| Frage |
|---|
| Wann war der Zug abgefahren?     اورګاډی کله تللی و؟ |

| | |
|---|---|
| Ich war verreist,     زه په سفر تللی وم | als du zu mir kamst. کله چې ته زما په لوري راغلی |

| Frage |
|---|
| Wann war ich verreist?     زه کله په سفر تللی وم؟ |

**Temporalsätze mit „sooft“ هر څومره وخت چې، څومره ډېر وخت چې**

په مهالي جملو کې له (sooft) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي، چې پوه پېښه په منظم ډول بیابیا وشي. څرنګه چې دمخه مو ولوستل، د بیابیا کېدلو مهالي جملې خو په (wenn) باندې هم جوړېدې شي. خو کله چې تکرار يې ډېر وي، نو بیا تش (wenn) ورته کفایت نکوي، نو ځکه باید له (wenn) سره یو بل څه یوځای شي چې هغه دا دي:

| |
|---|
| jedesmal, immer, stets + wenn = jedesmal wenn, immer wenn, stets wenn هر ځل |

د یوې پېښې دغه بیابیا کېدو ته د لوړې سویې په ګرامر کې (*iterative*s *Geschehen*) وایي.
کله چې په یوه فرعي جمله کې (اوسنی وخت = Präsens) او یا (مطلقه ماضي = Präteritum) راشي، نو په اصلي جمله یا په (Hauptsatz) کې هم همدا حال راځي.
کله چې د یوې پېښې د (څومره واره کېدو) په برخه کې پوښتنه کیږي، نو هغه په دې ډول کیږي:

| | | |
|---|---|---|
| wie oft/wann | = | څومره ډېر وخت     څومره څومره وخت، |

مثالونه په جملو کې:

| Hauptsatz | Nebensatz (sooft) |
|---|---|
| Er traf sich mit mir, هغه له ما سره لیده کاته کول | sooft es ging.     هرڅومره ډېر چې کېدل، |
| Frage | |
| Wann/wie oft traf er sich mit dir?     هغه څومره ډېر له تا سره لیده کاته کول؟ | |
| Er beginnt zu träumen, هغه خوبونه ګوري، په خوبونو کې ډوبیږي | sooft er an die Prinzessin denkt. هرڅومره ډېر چې هغه د شهزادګۍ په فکر کې شي |
| Frage | |
| Wann/wie oft beginnt er zu träumen?     هغه څومره وخت په خوبونو کې ډوبیږي؟ | |
| Er vergaß etwas im Hotel, له هغه نه به په هوټل کې یو څه هېرېدل | sooft er eine Reise machte. هرڅومره ډېر سفرونه چې هغه کول |
| Frage | |
| Wann/wie oft vergaß er etwas im Hotel?     له هغه نه به څومره یوڅه په هوټل کې هېرېدل؟ | |

اوس به همغه یوه جمله په مختلفو ډولونو کې (sooft, jedes Mal wenn, immer wenn) وګورو:

| | |
|---|---|
| sooft | Dieser Hund bellt mich an, sooft er mich sieht. هرځل چې دا سپی ما ګوري، ما پسې غاپي |

| | |
|---|---|
| jedes Mal wenn | Jedes Mal wenn dieser Hund mich sieht, bellt er mich an.<br>هرځل چي دا سپی ما ګوري، ما پسي غاپي |
| immer wenn | Immer wenn dieser Hund mich sieht, bellt er mich an.<br>هرځل چي دا سپی ما ګوري، ما پسي غاپي |

### Temporalsätze mit „bis“ تر هغه چي، تر هغه پورې چي

له (bis) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چي دوه پیښي یا دوه کاره په عین وخت کي وشي، خو دا په دي ډول چي په لومړۍ برخه کي یو شرط ایښودل کیږي. کله چي دا شرط په دوهمه برخه کي ومنل شو، نو په دي ډول د لومړۍ برخي کار تر سره کیږي او پلان عملي کیږي. دا مطلب به لومړی د پښتو په یو مثال کي وګورو: کله چي کوم چا یو ناوړه کار کړی وي او بل څوک ده پسي وي چي ویې نیسي او له ده نه دا توقع وکړي چي دی دي د خپل ناوړه کار نه پښېمانه شي. نو په دي وخت دا سړي دي بدعمله سړي ته وایي چي:

| |
|---|
| زه تا تر هغه پورې په ارامه نه پرېږدم چي ته له دي ناوړه کار نه پښېمانه شوی نه وي |

په پورتنۍ جملي کي دوه کاره په عین وخت کي کیږي: لومړی (یو څوک په ارامه نه پرېښودل) او دوهم (له دي کار نه پښېمانېدل). د لومړۍ برخي کار، یعني (په ارامه نه پرېښودل) ته هغه وخت د پای ټکی ایښودل کیږي، چي شرط یې ومنل شي او دا بدعمله سړی له خپل ناوړه کار نه پښېمانه شي.

نو څنګه چي ګورو، د (bis) په جملو کي دوه مهم فعلونه دي. لومړی فعل یا اقدام هغه وخت بسیږي چي شرط ومنل شي. که چېرته شرط نه منل کیږي، نو لومړی فعل به دوام لري. دا مطلب به د ګرامر په ژبه داسي ووایو چي په اصلي جمله یا (Hauptsatz) کي یو شرط ایښودل کیږي، یا یو امر یا یو ګواښ یا یوه ادعا کیږي، ورپسي فرعي جمله یا (Nebemsatz) په دي ډول پیل کیږي چي لومړی یوه کامه (,) لیکل کیږي او بیا ورپسي (bis) راځي او د جملي په پای کي فعل راځي. البته دا فعل هغه فعل دی چي مخکي له مخکي د دي فعل د ترسره کولو غوښتنه شوېده. اوس به پورتنۍ جمله په جرمني ژبه واورو:

| |
|---|
| Ich lasse dich so lange nicht in Ruhe, bis du die Untat bereut hast.<br>زه تا تر هغه پورې په ارامه نه پرېږدم چي ته له دي ناوړه کار نه پښېمانه شوی نه وي |

په پورتنۍ جمله کي د (ارام پرېښودل = in Ruhe lassen) شرط (پښېمانېدل = bereuen) دی.
اوس به څو نور مثالونه په جملو کي وګورو:

| Hauptsatz | Nebensatz (bis) |
|---|---|
| Du musst solange warten,<br>ته باید تر هغه پورې صبر وکړې | bis er kommt. چي هغه راشي |
| Ich warte solange hier,<br>زه تر هغه پورې دلته انتظار وباسم | bis du gesund wirst. چي ته روغ شې |
| Er suchte so lange,<br>هغه تر هغه پورې لټه وکړه | bis er das Richtige fand.<br>چي صحیح شي یې راپیدا کړو |
| Wir bleiben so lange hier,<br>مونږ تر هغه پورې دلته پاتې کیږو | bis der Bus kommt. چي سرویس راشي |

کومه پو ښتنه چي د (bis) په برخه کې کیږي، هغه دا ده:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wie lange? | څومره وخت؟ | bis wann? | تر کله پورې؟ ، تر کوم وخته پورې؟ |

د پورتنو مثالونو لپاره پوښتنه په دې ډول کیږي:

| | |
|---|---|
| Wie lange/bis wann muss ich warten? | زه څومره، تر کومه پورې صبر وکړم؟ |
| Wie lange/bis wann wartest du hier? | ته څومره، تر کومه پورې دلته انتظار وباسې؟ |
| Wie lange/bis wann suchte er? | هغه څومره، تر کومه پورې لټه وکړه؟ |
| Wie lange/bis wann warten Sie hier? | تاسو څومره، تر کومه پورې دلته انتظار وباسئ؟ |

له (bis) نه په یوه سواليه جمله کې هم کار اخيستل کېدی شي:

| |
|---|
| Wartest du auf mich, bis ich zurückgekommen bin?<br>ته ما ته تر هغه پورې انتظار وباسې چې زه بېرته راشم؟ |

دا هم کېدی شي چې لومړی (Nebensatz) راشي او ورپسې (Hauptsatz) :

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Bis der Krieg anfing,<br>تر هغه پورې چې جګړه پیلېدله | war seine Kindheit glücklich.<br>د هغه ماشومولي نیکمرغه وه |

**Temporalsätze mit „kaum dass“ , „sobald“ + „sowie“**

**په دغه شیبه کې چې، دا لا شوي نه وو چې، په مجرد د دې چې**

له دې د تړاو حرفونو یا (Konjunktionen) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې دوه پېښې په مختلفو وختونو کې وشي، خو په دې ډول چې یوه پېښه لا په بشپړ ډول پای ته رسېدلې نه وي چې سمدلاسه بله پېښه وشي. دلته لومړی په فرعي جمله کې مخکې له مخکې یوڅه وشي او بیا له هغې نه وروسته په اصلي جمله کې یو بل څه وشي. هغه څه چې مخکې له مخکې کیږي، کېدی شي چې هغه په بشپړ ډول پای ته رسېدلي وي، نو په دې وخت کې د اصلي جملې فعل په (Präteritum) کې او د فرعي جملې فعل په (Plusquamperfekt) کې کارول کیږي (په لاندې جدول کې لومړی جمله). که چېرته بیا د فرعي جملې فعل په بشپړ ډول پای ته رسېدلی نه وي او لا ادامه ولري، نو د اصلي او د فرعي جملو فعلونه دواړه په عین وخت کې ګردانیږي، یا په (Präteritum) کې او یا په (Präsens) کې (په لاندیني جدول کې وروستۍ جمله). کومه پوښتنه چې په دې وخت کې کیږي، هغه دا ده:

| | | |
|---|---|---|
| wann? | کوم وخت؟ | کله؟ |

| Hauptsatz | Nebensatz |
|---|---|
| Ich spürte die Kälte,<br>ما ساړه احساس کړل | sobald ich das Haus verlassen hatte.<br>په دغه شیبه کې چې زه له کوره ووتم |
| Ich komme nach Hause,<br>زه کور ته راځم | sobald ich mit der Arbeit fertig geworden bin.<br>په مجرد د دې چې زما کار پای ته ورسیږي |
| Wir sind in Sicherheit,<br>مونږ په امن کې یو | sobald wir das Ufer erreicht haben. په دې شیبه کې چې مونږ د سیند غاړې ته ورسېږو |
| Er stürzt sich auf den Teller,<br>هغه په قاب باندې وردانګي | kaum dass das Essen auf dem Tisch steht.<br>ډوډی لا د ډوډۍ په مېز ایښودل شوې نه وي چې |

| | |
|---|---|
| Es gibt Streit unter den Kindern, د ماشومانو تر مینځ شخړه راپیدا شي | sowie dieser Junge dabei ist. په هغه شېبه کې چې دا هلك په دې ډله کې ورګډ شي |

**Temporalsätze mit „nachdem“ وروسته له دې نه چې، کله چې**

له (nachdem) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي، چې دوه پېښې یا دوه کاره په مختلفو وختونو کې وشي. دا په دې مانا چې یو کار هغه وخت کېدی شي چې له دې نه مخکې یو بل کار شوی وي. هغه کار چې دمخه شویدی، هغه په (Nebensatz) کې بیانیږي او څه چې له دې نه وروسته کیږي، هغه په (Hauptsatz) کې راځي. (nachdem) د (bevor) په برعکس ډول کارول کیږي چې زده کړه یې په راتلونکې پاڼه کې تشریح کیږي. په هغه جمله کې چې (nachdem) استعمالیږي، یعني فرعي جمله یا (Nebensatz)، له اصلي جملې یا (Hauptsatz) نه د وخت په اساس یوه درجه مخکې وي. د دې مطلب د واضح کولو لپاره به لاندینی جدول وګورو:

| Hauptsatz | Nebensatz (nachdem) |
|---|---|
| Zukunft | Vergangenheit |
| Gegenwart | Vergangenheit |
| Vergangenheit | Plusquamperfekt |

دا مهالي جملې ډېر ورته والی لري له (sobald) سره. کومه پوښتنه چې په دې وخت کیږي،هغه دا ده:

| | | |
|---|---|---|
| wann? | په کوم وخت کې؟ | کله؟ |

| Hauptsatz | Nebensatz |
|---|---|
| Du setzt dich erst an den Tisch, ته به هغه وخت د ډوډۍ مېز ته کېنې | nachdem du dir deine Hände gewaschen hast. وروسته له دې چې خپل لاسونه دې پرېمینځلي وي |
| Der Schüler darf mit seinen Freunden spielen, زده کوونکی ته هغه وخت د خپلو ملګرو سره د لوبو اجازه ده | nachdem er seine Hausaufgaben gemacht hat. وروسته له دې هغه خپله کورنۍ وظیفه کړې وي |
| Ich legte mich schlafen, زه د خوب کولو لپاره څملاستم | nachdem ich gegessen hatte. وروسته له دې چې ما ډوډۍ وخوړله |
| Ich habe mich rasiert, ما خپله ږیره وخرېله | kurz nachdem ich aufgestanden bin. لنډ وخت وروسته له دې چې زه راجګ شوم، |
| Wir gingen spazieren, مونږ په چکر ولاړو | gleich nachdem der Regen nach-gelassen hatte. سمدلاسه وروسته له دې چې باران کم شو، |

**Temporalsätze mit „bevor“ + „ehe“**

په لغوي مانا (bevor) او (ehe) په پښتو کې (مخکې له دې چې) ته وایي. له دې دواړو د تړاو ورکولو توکو یا (Konjunktion) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې دوه پېښې یا کارونه په دوه مختلفو وختونو کې وشي، خو په دې ډول چې مخکې له دې نه چې یوه پېښه وشي، بله پېښه کیږي، چې (مخکې له دې پېښه) په (bevor) او (ehe) بیانیږي. اصلي پېښه په اصلي جمله (Hauptsatz) کې یادیږي، خو څه چې

مخکې له دې کېږي، يعنې د (bevor) جمله په فرعي جمله يا (Nebensatz) کې ياديږي. سره له دې چې د فرعي جملې کار د اصلي جملې نه وروسته کيږي، خو د گرامر په اساس اصلي او فرعي جملې دواړه په عين وخت کې ياديږي، يعنې که اصلي جمله (Hauptsatz) په تېر وخت کې وي، نو فرعي جمله (Nebensatz) به هم هرومرو په تېر وخت کې وي. خو زياتره وخت دواړه جملې په (Präteritum) او يا په (Präsens) کې وي. هره پېښه چې کيږي، هغه يوځلې وي او بيابيا نه کيږي. کومه پوښتنه چې په دې وخت کې کيږي، هغه دا ده:

| کله؟ | په کوم وخت کې_ | wann? |
|---|---|---|

اوس به مثالونه په جملو کې وګورو:

| Hauptsatz | Nebensatz (bevor) |
|---|---|
| Wasch dir die Hände, ته خپل لاسونه پرېمينځه | bevor du dich an den Tisch setzt. مخکې له دې چې ته د ډوډۍ مېز ته کېنې |
| Der Schüler muss seine Hausaufgaben machen, زده کوونکی بايد خپله کورنی وظيفه وکړي | ehe er mit seinen Freunden spielen darf. مخکې له دې چې هغه د خپلو ملګرو سره لوبې وکړي |
| Du musst dich noch umziehen, ته بايد خپلې جامې بدلې کړې | bevor wir ins Kino gehen. مخکې له دې چې مونږ سينما ته ولاړ شو |
| Ich kaufte mir eine Kamera, ما ځان ته يوه کمره واخيستله | bevor ich meine Reise antrat. مخکې له دې چې ما پخپل سفر پيل وکړ |
| Es hatte geendet, هغه پای ته ورسېد | bevor es richtig begonnen hatte. مخکې له دې چې سم پيل شي |

**Übungen:**

Verwandeln Sie bitte die adverbiale Bestimmung in einen Adverbialsatz!
(NS = Nebensatz, HS = Hauptsatz)

1. Nach dem Konzert ging sie zum Essen (NS – HS).
له کنسرت نه وروسته هغوی ډوډۍ خوړلو ته ولاړل
2. Trotz der geringen Chancen hat er sich für mich eingesetzt (HS – NS – HS).
سره له ډېره لږه چانسه هغه بيا هم له ما لپاره هلې ځلې وکړې
3. Wegen der Hitze im Zug war die Reise eine Strapaze (HS – NS).
په اورګاډي کې د ګرمۍ په وجه دا سفر لوی عذاب و
4. Bei Dunkelheit kommen die Tiere aus ihrem Versteck (NS –HS).
په تياره کې ښاروي له خپلو پټنځايونو نه راوځي
5. Zum besseren Sehen trage ich im Kino eine Brille (HS – NS).
د ښه ليدو لپاره زه په سينما کې عينکې په سترګو کوم
6. Bei starker Kälte können die Rohre platzen (HS – NS – HS).
په ډېرې يخنۍ کې نلونه چاودېدلی شي
7. Bei schönem Wetter treffen wir uns im Freien (HS – NS- HS).
په ښه هوا کې مونږ له يو بل سره بهر په ازاده هوا کې وينو

8. Trotz Überlegenheit verloren sie das Spiel (HS – NS).
له خپل سیال نه د ډېر تکړه والي سره سره هغوي لوبه بایلله
9. Vor der Flussüberquerung musste ein langer Marsch bewältigt werden (NS – HS). له سیند نه د تېرېدو نه مخکې یو اوږد مزل په مخکې پروت و
10. Er hat die Einladung wegen Kopfschmerzen abgesagt (HS – NS - HS).
د سرخوږی په وجه هغه مېلمستیا رده کړه
11. Mit einem Lächeln beruhigte sie den Kunden (HS – NS).
په یوې مسکا هغې مشتریان ارام کړل
12. Mit der Bekanntschaft zu ihr hat er sich verändert (NS – HS).
له هغې سره د اشنا کېدلو راهیسي هغه بدل شوی دی
13. Sie schaltet das Radio durch das Ziehen des Steckers aus (HS – NS).
د برق د پلك د وېستلو له لارې هغه راډیو مړه کوي
14. Ich folge dir überall hin (HS – NS). زه هره خوا تا پسې یم (هر چېرته درپسې یم)
15. Bei klarer Sicht kann man von hier aus die Insel sehen (NS –HS).
په رڼې هوا کې له دې ځایه سړی ټاپو لیدلی شي

**Lösung:**
1. Nachdem das Konzert beendet war, ging sie zum Essen.
2. Er hat sich, auch wenn nur geringe Chancen bestanden, für mich eingesetzt.
3. Die Reise im Zug war eine Strapaze, da es heiß war.
4. Wenn es dunkel wird, kommen die Tiere aus ihrem Versteck.
5. Ich trage im Kino eine Brille, damit ich besser sehe.
6. Die Rohre können, wenn starke Kälte herrscht, platzen.
7. Wir treffen uns, falls es schönes Wetter gibt, im Freien.
8. Sie verloren das Spiel, obwohl sie überlegen waren.
9. Bevor der Fluss überquert wurde, musste ein langer Marsch bewältigt werden.
10. Er hat die Einladung, weil er Kopfschmerzen hat, abgesagt.
11. Sie beruhigte den Kunden, wobei sie lächelte.
12. Seitdem er sie kennt, hat er sich verändert.
13. Sie schaltet das Radio aus, indem sie den Stecker zieht.
14. Ich folge dir, wohin du auch gehst.
15. Wenn die Sicht klar ist, kann man die Insel sehen.

مهالي جملې له (Konjunktion) نه پرته په نورو ټکو هم جوړېدی شي چې هغه دا دي:

| | |
|---|---|
| Temporale Adverbien | Temporale Präpositionen |
| Zeitausdrücke als Angabe im Akkusativ | Temporale Nebensätze |

# Temporale Adverbien مهالي یا د وخت قیدونه

مهالي قیدونه هغه قیدونه دي چې په یو وخت کې د یوې پېښې په برخه کې معلومات وړاندې کوي. دا معلومات کېدی شي د وخت د ګړی په برخه کې وي چې څو بجې دي، یا د دوه وختونو تر منځ د مودې د ښودلو په برخه کې وي چې څومره موده، یا په یو ټاکل شوي وخت کې د یوې پېښې د بیا بیا کېدلو په برخه

کي وي، او یا کېدی شي چې په دې برخه کې وي چې په يو ټاکلي شوي وخت کې يوه پېښه څومره ډېره کيږي، يعني په يو وخت کې د پېښو ډېروالي او لږوالي ښايي.

## Bezeichnung der Wiederkehr oder Wiederholung

**د پېښو د بيا بيا کېدلو او د بيا بيا راتلو قيدونه**

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| bisweilen<br>کله کله، کله نا کله | häufig اکثراً،<br>ډېر وخت | manchmal<br>کله کله، کله نا کله | mehrmals بيا<br>بيا، څو څو واره | oft<br>اکثراً، ډېر وخت |
| selten<br>نایاب، کمیاب | abends ماښامي،<br>د ماښام له مخې | nachts د شپې،<br>د شپې له مخې | vormittags<br>په څاښت کې | mittwochs<br>په چارشنبو کې |
| wochentags<br>د کار په ورځو کې | einmal<br>یو ځل، یو ځلې | zweimal دوه<br>ځله، دوه ځلې | dreimal دري<br>ځله، دري ځلې | hundertmal<br>سل ځلې |
| morgens سهاري،<br>د سهار له مخې | mittags د غرمې<br>له مخې،غرمه اي | nachmittags د<br>ماسپښين له مخې | wochenends<br>د اونۍ په پای کې | gestern<br>پرون |

**پوښتنه:** ماښام ته (Abend)، سهار ته (Morgen)، ماسپښين ته (Nachmittag) وايي. نو پورته ولي په وروو تورو (abends, morgens, nachmittags) ليکل شويدي؟
**ځواب:** (abends) هر ماښام ، (morgens) هر سهار ، (nachmittags) هر ماسپښين ته وايي. نو په دې وجه کومه پوښتنه چې د وخت په برخه کې کېدی شي هغه دا ده:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wie oft? | څومره ډېر وخت؟ | په کومو کومو وختو کې؟ | څومره څومره وخت؟ |

مثالونه په جملو کې:

| Frage | Antwort |
|---|---|
| Wann kommt dein Opa zu Besuch?<br>ستا نيکه کله ستا ليدو ته راځي؟ | Er kommt morgen zu Besuch.<br>هغه سبا زما ليدو ته راځي |
| Wann hast du deinen Freund gesehen?<br>تا خپل ملګری کله وليدو؟ | Ich habe ihn gestern gesehen.<br>ما هغه پرون وليدو |
| Ab wann sind die Schulen geschlossen?<br>له کوم وخت نه ورروسته ښوونځي تړلي دي؟ | Sie sind ab sofort geschlossen.<br>هغوی له همدې شېبې راهيسې تړلي دي |
| Seit wann haben Sie diese Schmerzen?<br>تاسو ته درد له کوم وخت راهيسې پېښ شويدي؟ | Diese Schmerzen habe ich seit heute.<br>درد ما ته له نن راهيسې پېښ شوی دی |
| Seit wann ist er verheiratet?<br>له کوم وخت راهيسې هغه واده کړی دی | Er ist seit einem Monat verheiratet.<br>هغه له يوې مياشتې راهيسې واده کړی دی |
| Bis wann haben Sie Zeit?<br>تاسو تر کوم وخت پورې وخت لرئ؟ | Ich habe nur bis morgen Zeit.<br>زه تش تر سبا پورې وخت لرم |
| Bis wann hast du geschlafen?<br>تا تر کوم وخته پورې خوب وکړو؟ | Ich habe bis vorhin geschlafen.<br>ما تر مخکې پورې خوب وکړو |
| Wie lange sind Sie schon in Berlin?<br>تاسو له کوم وخت راهيسې په برلين کې یاست؟ | Ich bin schon zehn Jahre in Berlin.<br>دا لس کاله کيږي چې زه په برلين کې يم |

| | |
|---|---|
| Wie oft gehst du ins Kino?<br>ته څومره ډېر سینما ته ځې؟ | Ich gehe sehr selten ins Kino.<br>زه ډېر لږ سینما ته ځم |
| Wie oft putzt er sich die Zähne?<br>هغه څو ځلي خپل غاښونه پاکوي؟ | Er putzt sich mehrmals am Tag die Zähne. هغه د ورځې څو واره غاښونه پاکوي |

**Temporale Präpositionen, die eine Zeitdauer anzeigen**

**مهالي نسبتي کلمې چې د وخت کچه یا اندازه یا د یوې مودې لنډوالی یا اوږدوالی راښايي**

د یو وخت موده هغه وخت ښودل کیږي چې پیل او پای یې څرګند وي. کومه پوښتنه چې دلته کېدی شي، هغه دا ده چې (تر کومې مودې پورې)، (له کومې مودې راهیسې) ، (له کومې مودې نه تر کومې مودې پورې) او داسې نور چې دا پوښتنې به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Fragen zur Zeitdauer | | |
|---|---|---|
| wie lange? څومره موده | wann کله، په کوم وخت کې | bis wann تر کوم وخته پورې |
| seit wann<br>له کوم وخته راهیسې | von wann bis wann<br>له کوم وخت نه تر کوم وخته پورې | um wieviel Uhr<br>په څو بجو |

د دې پوښتنو ځواب په دې قیدونو یا (Adverbien) کیږي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| immer<br>تل، همېشه | stets<br>د تل لپاره، همېشه | lange<br>ډېره موده | noch<br>لا تر اوسه | zeitlebens<br>د ټول عمر لپاره |

کله چې پوښتنو ته یو مطلق منفي ځواب ورکړل شي، نو هغه په دې قید یا (Adverb) کیږي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| nie<br>هېڅکله نه | niemals<br>هېڅکله نه | nie mehr<br>نور هېڅکله نه | nie wieder<br>بیا هېڅکله نه | nimmer<br>هېڅکله نه | nie und nimmer<br>په ژوند کې هم نه |

# Bezeichnung des Zeitpunktes

**مهالښېبه، د وخت ښېبه، دا چې په کوم مهال یوه پېښه شوېده**

مهالښېبه د یو کار دقیق وخت ښایي. کومه پوښتنه چې دلته کېدی شي، هغه به دا وي :

| | | | |
|---|---|---|---|
| کله، | په کوم وخت کې، | په کومه ښېبه کې، | په څو بجو |

دا لاندیني قیدونه (Adverbien) او ضمیرونه (Präpositionen) د یوې پېښې وخت یا نېټه ښایي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| anfangs په پیل کې، په شروع کې | bald په لنډو کې، په لنډ وخت کې | damals په هغه وخت کې | dann بیا، له هغې نه وروسته بیا | eben په همدغه شېبه کې |
| endlich ایله په ایله | eher د وخته ، مخکې | heutzutage نن، نن ورځ | inzwischen له هغه وخت راهیسې | jetzt اوس، همدا اوس |
| mittlerweile د وخت په تېرېدو | neulich لنډ وخت مخکې | nun اوس، په دې مهال | schließlich آخر، آخر نو | seither له هغه وخت راهیسې |
| seitdem له هغه وخت راهیسې | vorerst رومبی، په رومبي سر کې | vorhin مخکې، د مخه | zugleich په عین وخت کې | zuletzt له ټولو نه وروسته، په پای کې |
| heute نن | morgen سبا | gestern پرون | übermorgen سبا نه بل سبا | gerade سمدلاسه، په دې شېبه کې |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| augenblicklich په دي شيبه کي | danach له هغې نه وروسته | demnächst په لنډو کي | sofort په ځای ځای، فوراً | später وروسته |
| ab سر له يو وخته | an, am په يوه نيټه | aus د يوي زماني | bei په يو وخت يا يو حالت کي | gegen د يو وخت په شاوخوا کي |
| in, im په يوه زمانه کي | nach لـه يـوی پيښي نه وروسته | um د ساعت په يو وخت کي | vor له يو څه نه دمخه | |

اوس به هر يو (Präposition) په مفصل ډول د تشريحاتو سره زده کړو:

| ab | سر له يوي نېټي | سر له يوه وخته ، |
|---|---|---|

(ab) هغه وخت کارول کيږي چي د يو کار يا د يوي پيښي د پيل کېدو ټيك وخت وښودل شي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ab morgen habe ich für drei Wochen frei. | سر له سبا نه زه د دري اونيو لپاره رخصت يم |
| Ab wann haben die Geschäfte geöffnet? | له کوم وخت نه وروسته مغازي پرانيستل کيږي؟ |
| Ab dem 14. August haben wir Ferien. | د اګست د ۱۴ نه وروسته زمونږ رخصتي ده |

| an, am + Dativ | په يو وخت کي | په يوه نيټه ، |
|---|---|---|

(an, am) د ورځو، د نېټو، د ورځي د وخت او د رخصتی د ورځو د ښودلو لپاره کارول کيږي. مثال:

| |
|---|
| Wann kommt dein Vater von der Reise zurück? Am kommenden Freitag.<br>ستا پلار کله له سفر نه بېرته راځي؟ د راتلونکي جمعي په ورځ |
| Am wievielten ist Muttertag? Muttertag ist am 13.05.<br>د مور ورځ په کومه نيټه ده؟ د مور ورځ د مي د مياشتي په ديارلسمه نيټه ده |
| Wann ist dein Vater geboren? Er ist am 16.01.1955 geboren.<br>ستا پلار کله زېږېدلی دی؟ هغه د ۱۹۵۵ کال د جنوري په شپاړلسمه نيټه زېږېدلی دی |
| Fliegt ihr am Vormittag? Nein, erst am Nachmittag gegen 16 Uhr.<br>ستاسو الوتنه په ځابنت کي ده؟ نه، زمونږ الوتنه د مازديګر په څلورو بجو ده |
| Am Abend soll es schon wieder Gewitter geben.<br>ويل کيږي چي په ماښام کي به تالنده او بريښنا وشي |

| | | |
|---|---|---|
| Verneinung منفي ځواب | nie هيڅکله نه | niemals په ژوند کي هم نه |
| Frage پوښتنه | wann? کله | wann? کله |

| aus + Dativ | د يوي زماني د ښودلو لپاره |
|---|---|

(aus) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چي دا وخت يوه زمانه، يوه پيری يا يو عصر ښکاره کړي. مثالونه په جملو کي:

| |
|---|
| Das Schwert stammt aus dem 12. Jahrhundert. دا توره د دولسمي پيری له وختو ده |
| Diese Knochen dürften aus dem Mittelalter stammen.<br>دا هدوکي ښايي چي د منځنی پيري واوسي |

## bei + Dativ د یو کار یا د یوې پېښې په لړ کې

(bei) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې د یو کار یا د یوې پېښې په لړ کې یو بل څه وشي، یعني دا چې په همغه یو وخت کې څو کارونه وشي. کومه پوښتنه چې په دې برخه کې کیږي، هغه دا ده: (کله، په کوم لړ کې، په کوم مهال کې = wann?) . مثالونه په جملو کې:

| | |
|---|---|
| Beim Essen soll man nicht schmatzen. | د ډوډۍ په وخت باید سړی ونه چرپیږي |
| Er hat sich beim Wandern den Fuß verstaucht. | د قدم وهلو په وخت کې د هغه پښه واوښتله |
| Er war gerade beim Lesen. | په همدغه شیبه کې هغه لوستل کول |
| Bei so starkem Regen sind sie spazieren gegangen. | په دومره سخت بارانه کې هغوی په چکر ولاړل |
| bei Tag und bei Nacht | په ورځ او په شپه کې |

## gegen د ساعت د یو وخت په شاوخوا کې

(gegen) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې دا وخت دومره ټیک یا دومره دقیق ونښودل شي، بلکې د اټکل په اساس دومره وویل شي چې څه ناڅه په دومره بجو یا څه ناڅه په دغه وخت کې، مثالونه به په جملو کې وګورو:

| | |
|---|---|
| Wann kommst du etwa wieder? So gegen 20:00 Uhr. | ته د څو بجو په شاوخوا کې بېرته راځې؟ د ماښام د اته بجو په شاوخوا کې |
| Wie viel Uhr ist es? Ich weiß es nicht genau. Es müsste so gegen 16:00 Uhr sein. | څو بجې دي؟ زه پرې په دقیق ډول نپوهیږم. د مازدیګر څلور بجو شاوخوا به وي |

## in, im + Dativ د یو راتلونکي وخت د یوې نیټې ښودلو لپاره

(in, im) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې په یو ټاکل شوي وخت کې یوه نامعلومه نیټه ونښودل شي. دا په دې مانا چې د یوې پېښې یا د یو کار موده څرګنده ده، خو دا څرګنده نده چې د دې مودې دقیقه نیټه کومه ده، د اونۍ په کومه ورځ ، د میاشتې په کومه ورځ یوه پېښه کیږي، مثال:

| | |
|---|---|
| In den kommenden Wochen gibt es noch sehr viel zu tun. | په راتلونکو اونیو کې ډېر کار مخ ته پروت دی |
| In der letzten Zeit benimmt sich Jakob sehr seltsam. | په وروستي وخت کې د یعقوب چلند ډېر عجیب و غریب شان دی |
| Sie feierten bis in den frühen Morgen. | هغوی تر سهار پورې محفل ولمانځو |
| Es geschah im Jahre 1960. | دا په ۱۹۶۰ کال کې پېښ شو |
| Wie war das Wetter im Oktober? | د اکتوبر په میاشت کې هوا څنګه وه؟ |

## nach + Dativ څه چې له یو کار نه وروسته کیږي

(nach) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې یوه پېښه یا یو کار له یوې بلې پېښې نه وروسته وشي، مثال:

| | |
|---|---|
| Was machst du nach dem Unterricht? Ich gehe in die Mensa. | ته له درس نه وروسته څه کوې؟ زه د محصلینو کانتین ته ځم |

| | |
|---|---|
| Nach wenigen Minuten war alles vorbei. | څو دقیقې وروسته هر څه پای ته رسېدلي وو |
| Nach drei Wochen kam er wieder. | درې اونۍ وروسته هغه بېرته راغی |

| um + ´ Uhrzeit | د ګړۍ یا د ساعت په یو ټیك وخت كې |
|---|---|

كله چې (um) د یو ساعت یا یوې ګړۍ له یو وخت سره یوځای راشي، نو پرې یو دېر ټيك او یا دقیق وخت بیانیږي مثال:

| | |
|---|---|
| Der Zug fährt um 08:00 Uhr ab. | اورګاډی د سهار په اته بجو او حرکت کوي |
| Um wie viel Uhr beginnt der Film? Um 22:20 Uhr. | فلم په څو بجو بېل کیږي؟ د ماښام په لس بجو او شل دقیقو |

| um + Akkusativ | د ګړۍ یا د ساعت په یو ټیك وخت كې |
|---|---|

كه چېرته (um) د ورځې د کوم مهال او یا د یو موسم سره یوځای راشي، نو په دې وخت كې بیا (um) یو ټیك وخت نه بلکلي په اټکلي ډول څه ناڅه یو وخت او یا د یو وخت په شاوخوا كې وخت ښكاره كوي. بل دا چې له (um) نه وروسته اسمونه د (Akkusativ) سره کارول کیږي.مثال:

| | |
|---|---|
| Er fährt um die Mittagszeit nach Hause. | هغه د غرمې په شاوخوا كې كور ته ځي |
| um Weihnachten, um Mitternacht | د كرسمس په شاوخوا كې، د نیمې شپې په شاوخوا كې |

| vor + Dativ |
|---|

(vor) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې له یو کار یا یوې پېښې نه مخکې یو بل څه وشي. په بله مانا هغه څه چې له یو کار یا له یوې پېښې نه مخکې کیږي، په (vor) باندې بیانیږي. په دې برخه كې پوښتنه په دې ډول کیږي (wann). مثال:

| | |
|---|---|
| Vor dem Essen wäscht man sich die Hände. | له ډوډۍ نه مخکې سړی لاسونه پرېمینځي |
| Vor einer Stunde hat es noch geregnet. | یو ساعت مخکې لا باران وریدو |

**Temporale Präpositionen, die einen Zeitraum anzeigen**

**مهالي نومځري چې د یو وخت دوام ښکاره کوي**

| | | | |
|---|---|---|---|
| ab<br>د یوې نېټې پیل | außerhalb<br>له یو وخت نه بهر | bei<br>د یوې مودې په لړ کې | bis, bis zu …<br>تر یو وخته پورې |
| für<br>د یوې مودې لپاره | innerhalb<br>په یوه موده کې | seit<br>د یوې مودې راهیسې | über<br>د یوې مودې لپاره |
| von … an<br>سر له یوې مودې | von … bis zu<br>له دومره وخت نه تر دومره وخت پورې | während<br>د یو وخت په لړ کې | zwischen<br>د یوې مودې په مینځ کې |

| ab | د یوې نېټې پیل |
|---|---|

(ab) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې د یو کار یا د یوې پېښې پیل وښودل شي. که چېرته (für) ورسره یوځای شي، نو بیا موده یې هم ښکاره کیږي چې په کوم وخت پیل یې وشو او څومره موده به دوام وکړي. که چېرته (für) ورسره نه وي، نو پای به یې څرګند نه وي چې کله تمامیږي. کومه پوښتنه چې په دې برخه کې کیږي، هغه دا ده: (سر له کومه وخته = ab wann) . مثال:

| | |
|---|---|
| Ab kommender Woche ist mein Vater für drei Wochen nicht mehr zu Hause. | د راتلونكي اونۍ نه وروسته درې اونۍ زما پلار په كور كې نشته |
| ab morgen für immer | سر له سبا نه د تل لپاره، سر له سبا نه د ټول عمر لپاره |
| Ab dem 60. Lebensjahr benötigt man meistens eine Brille. | له شپیته كلنۍ نه وروسته د سړي ډېر وخت عینكې پكارېږي |
| Jugendliche ab 17 Jahren können den Führerschein machen. | له اولس كالو نه پورته زلمیان كوی شي چې لیسنس واخلي |

## außerhalb + Genitiv د یوې مودې نه په بهر وخت كې

(außerhalb) د هغه وخت د ښودلو لپاره كارول كېږي چې یو كار یا یوه پېښه د یوې مودې نه په بهر وخت كې وشي. كومه پوښتنه چې دلته كېدی شي، هغه دا ده چې (كله = wann). مثال:

| | |
|---|---|
| Außerhalb der Saison trifft man hier nur wenige Touristen an. | د موسم نه په بهر وخت كې دلته ډېر لږ توریستان لیدل كېږي |
| Der Unfall geschah außerhalb der Dienstzeit. | ټكر د خدمتي وخت نه په بهر وخت كې وشو |
| Man kann das Schloss auch außerhalb der Öffnungszeiten besuchen. | سړی كوی شي چې دا ماڼۍ د پرانیستي وخت نه په بهر وخت كې هم وګوري |

## bis, bis zu … + Dativ + Akkusativ تر یوې مودې پورې تر یو وخته پورې،

(bis, bis zu …) د هغه وخت د ښودلو لپاره كارول كېږي چې د یوې مودې د پای ته رسېدلو نېټه څرګنده شي. كله چې له (bis) نه وروسته د اونۍ یوه ورځ یا د میاشتې یوه نېټه راشي، نو هغه په (Akkusativ) جوړېږي. كله چې له (bis) نه وروسته یو بل (Präposition) راشي، نو دا دې پورې اړه لري چې دا (Präposition) پخپله له (Dativ) سره راځي او كه له (Akkusativ) سره. په دې چې (zu) تل له (Dativ) سره راځي، نو په دې وجه له (bis zu …) نه وروسته تل (Dativ) راځي.
كومه پوښتنه چې دلته كېدی شي، هغه دا ده چې (تر كومې نېټې پورې = bis wann) . مثالونه:

| | |
|---|---|
| Unsere Gäste wollen nur noch bis *(Akkusativ)* Freitag bleiben. | زمونږ مېلمانه غواړي چې تش تر جمعې ورځې پورې پاتې شي |
| bis *(Akkusativ)* drei Uhr | تر درې بجو پورې |
| bis an *(Akkusativ)* die Grenze | تر سرحده پورې، تر پولې پورې |
| Sie lernt jeden Tag bis um *(Akkusativ)* 10.00 Uhr abends. | هغه هره ورځ د ماښام تر لس بجو پورې درس لولي |
| Wir haben uns bis tief in die Nacht unterhalten. | مونږ تر نیمې شپې پورې خبرې وكړې |
| Die Wartezeit dauert bis zu fünf Stunden. | د انتظار وخت تر ۵ ساعتو پورې دوام كوي |
| Du musst bis *(Akk.)* nächstes Jahr warten. | ته باید تر راتلونكي كاله پورې صبر وكړې |
| Bis dahin ist alles erledigt. | تر هغه پورې هرڅه سرته رسېدلي دي |
| Du kannst bis zum *(Dativ)* nächsten Monat hier bleiben. | ته كوی شې تر راتلونكې میاشتې پورې دلته پاتې شې |
| Bis vor *(Dativ)* kurzem war er krank. | تر لنډ وخت مخكې پورې هغه ناروغ و |

| für + Akkusativ |
|---|

(für) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې د راتلونکي وخت يوه موده پرې څرګنده شي چې د يو کار لپاره څومره وخت يا څومره موده پکارېږي. کومه پوښتنه چې په دې برخه کې کيږي، هغه دا ده: (څومره موده، د څومره مودې لپاره = wie lange/für wie lange?) . مثال:

| | |
|---|---|
| Ich bleibe nur für drei Tage hier. | زه تش د درې ورځو لپاره دلته پاتې کيږم |
| Er ist für drei Wochen verreist. | هغه د درې اونيو لپاره په سفر تللی دی |
| Hält eure Liebe für immer? | ستاسو مينه تل تر تله پاتې کيږي؟ |
| Das Zimmer ist für morgen bestellt. | دا کوټه د سبا لپاره غوښتل شوېده |
| Das Konzert ist für Freitag angesetzt. | کنسرت د جمعې ورځې لپاره په نظر کې نيول شوېدی |
| für ein paar Minuten nach draußen gehen | د يو څو دقيقو لپاره بهر وتل |

| innerhalb + Genitiv | د يو وخت په موده کې |
|---|---|

(innerhalb) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې يوه پېښه د يوې ټاکل شوې مودې په چوکاټ کې وشي. کومه پوښتنه چې په دې وخت کې کېدی شي، هغه دا ده چې: (کله = wann).
مثالونه په جملو کې:

| |
|---|
| Zahlen Sie bitte Ihre Schulden innerhalb eines Monats.<br>تاسو خپل پورونه د يوې مياشتې په موده کې تحويل کړئ |
| Innerhalb von nur einer Woche verursachte der Autofahrer vier Unfälle.<br>د يوې اونۍ په موده کې دې ډرېور څلور ټکرونه وکړل |
| Innerhalb dreier Wochen muss die Arbeit beendet sein.<br>د درې اونيو په موده کې بايد کار پای ته رسېدلی وي |

| seit + Dativ | د يوې مودې راهيسې |
|---|---|

(seit) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې يوه پېښه په يوه موده کې وشي چې پخوا پيل شوي وي او لا تر اوسه پورې تر سره رسېدلې نه وي او کېدی شي چې لا څه وخت نور هم دوام وکړي. هغه فعل چې په دې وخت کې کارول کيږي هغه به تل په (Präsens) او يا په اوسني وخت يا په حال کې استعماليږي. په دې اړوند پوښتنه په دې ډول کيږي: (له کوم وخت راهيسې seit wann?) مثال:

| |
|---|
| Seit wann sind Sie in Deutschland? – Seit September 2006.<br>تاسو له کوم وخت راهيسې په جرمني کې ياست؟ د ۲۰۰۶ کال د سپتمبر راهيسې |
| Wie lange wartest du schon hier? – Seit mindestens einer halben Stunde.<br>څومره وخت کيږي چې ته دلته په انتظار يې؟ لږترلږه د نيمې ګېنټې راهيسې |
| Er hat seit dem Tod seiner Frau große Schlafprobleme.<br>هغه د خپلې مېرمنې د مړينې راهيسې له خوب سره ډېرې ستونځې لري |

| über + Akkusativ | د يوې مودې لپاره |
|---|---|

(über) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې د يوې پېښې موده ياده شي، يعنې چې دا پېښه به تر کوم وخت پورې دوام کوي. کومه پوښتنه چې دلته کېدی شي هغه دا ده چې (کله = wann?)، مثال:

| |
|---|
| Wir wollen übers Wochenende verreisen. |

| |
|---|
| مونږ غواړو چي د اونۍ د پای په ورځو کي په سفر ولاړ شو |

| | |
|---|---|
| Über die Feiertage soll es schneien. | د رخصتۍ په ورځو کي به واوره وشي |
| Er ist über Mittag immer zu Hause. | د غرمي له مخي هغه تل په کور کي وي |
| Es ist zwei Stunden über die Zeit. | د وخت نه دوه ساعته تېر شويدي |
| Den ganzen Tag über regnete es. | په ټوله ورځ کي باران وشو |
| Über Nacht hat es geregnet. | د شپې له مخي باران ورېدلی دی |

## von … an  له يوې مودې راهيسي

(von … an) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې يوه اوسنۍ يا راتلونکې موده ياده شي او د مودې د پيل کېدو وخت څرګند وي، خو د مودې د پای ته رسېدو وخت څرګند نه وي. پوښتنه په دې ډول کيږي: (له کومې مودې راهيسي = von wann an?). مثال :

| |
|---|
| Sie wissen, dass das von morgen an unsere Pflicht sein wird.<br>تاسو په دې پوهيږئ چې دا به سر له سبا نه زمونږ وظيفه وي |

| | |
|---|---|
| So ist er von Jugend an. | هغه له ځوانی راهيسي داسي دی |
| Von heute an soll alles besser werden. | سر له نن نه به هرڅه ښه شي |
| Das habe ich von Anfang an gesagt. | ما له اوله همدا خبره کړېده |
| Von wann an bist du in Deutschland? | ته له کوم وخت راهيسي په جرمني کې يې؟ |

## von … bis zu … + Dativ  له يوې مودې نه تر بلې مودې پورې

(von … bis zu …) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې د يوې پېښې پيل او پای په دقيق ډول څرګند وي. کومه پوښتنه چې دلته کيږي، هغه دا ده چې:

(له کوم وخت نه تر کوم وخته پورې = von wann bis wann) . مثال:

| |
|---|
| Unsere Praxis bleibt vom 12.08. bis zum 05.09. geschlossen.<br>زمونږ کتنځی د اګست د دولسمي نېټي نه د سپتمبر تر پينځمي نېټي پورې تړلی دی |
| In der Zeit von 9 bis 12 Uhr sind wir nicht zu Hause.<br>له نهه بجو نه تر دولس بجو پورې مونږ په کور کي نه يو |
| Gestern hat es von morgens bis abends geregnet.<br>پرون له سهار نه تر ماښامه پورې باران وورېدو |

## während + Genitiv  د يوې مودې په لړ کي

(während) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کيږي چې يوه پېښه د يوې مودې په لړ يا په جريان کي وشي. کومه پوښتنه چې په دې برخه کي کېدی شي ، هغه دا ده (کله = wann?)  مثال:

| |
|---|
| Das Kind sitzt während des ganzen Tages zu Hause vor dem Fernseher.<br>ماشوم ټوله ورځ په کور کي د ټلويزيون په مخکي ناست وي |
| Während des ganzen Sommers gab es hier keine Niederschläge.<br>د ټول اوړي په لړ کي دلته هېڅ ورښت ونشو |

## zwischen + Dativ د دوه مودو تر مینځ د وخت د ښودلو لپاره

(zwischen) د هغه وخت د ښودلو لپاره کارول کیږي چې د دوه مودو تر مینځ یو کار یا یوه پېښه ځرګنده شي. د دې پېښو پیل او پای تل ځرګند وي. کومه پوښتنه چې په دې اړوند کېدی شي، هغه دا ده: (کله = ?wann). مثالونه په جملو کې:

| |
|---|
| Zwischen den Monaten April und Juli hat es in diesem Jahr gar nicht geregnet.<br>په دې کال کې د اپریل او جولای د میاشتو ترمینځ هیڅ باران ندی وریدلی |
| Er kommt gewöhnlich zwischen 6:00 Uhr und 7:00 Uhr nach Hause.<br>معمولاً هغه د شپږو او اوه بجو تر مینځ کور ته راځي |
| Zwischen dem 05.08. und dem 08.08. bleibt das Geschäft geschlossen.<br>د اګست د پینځمي او اتمي ترمینځ دا مغازه تړلې ده |

**Übungen:**

1. ……….. ging alles gut. په لومړي سر کې هر څه ښه تیر شول
2. Er wird …………… kommen. هغه به په لنډو کې راشي
3. ………. danach. له هغې نه لنډ وخت وروسته
4. So ……. wie möglich. هر څومره په لنډ وخت کې چې کیږي
5. ……….. war vieles besser. په هغه وخت کې ډیر څه له دې نه ښه وو
6. Erst überzeuge dich von den Tatsachen, ………. urteile.
لومړی ته د حقایقو په برخه ځان متیقن کړه او بیا قضاوت وکړه
7. Ich weiß nicht, wo mein Vater ist. ………. war er noch da.
زه نپوهیږم چې پلار مي چیرته دی. تر همدي شیبي پورې خو لا هغه دلته و
8. Was hast du ………… gesagt? په همدې شیبه کې تا څه وویل؟
9. Wann bist du ………… fertig? 10.ته به ایله په ایله کله خلاص شې؟
10. Er konnte nicht ………. kommen . هغه له دې نه وخته نشو راتلی
11. Je ………, desto besser. هر څومره چې وختې وي، هومره ښه
12. So etwas ist ………. kein Problem mehr. نن ورځ داسې څه کوم ستونځمن کار ندی
13. Es geht ihm ………… besser. له هغه وخت راهیسې د هغه روغتیایي وضع ښه شوې ده
14. ……………. ist es uns gelungen, die Aufgabe zu lösen.
د وخت په تیرېدو سره مونږ په دې وتوانیدو چې دا سوال حل کړو
15. Ich habe ihn ………….. gesehen. لنډ وخت مخکې هغه ما ولید
16. ………… nahm er seine Tasche und ging. آخر هغه خپل بکس واخیست او ولاړ
17. Es kam dann ………….. zu Handgreiflichkeiten.
خبره آخر ګریوان ته لاس اچولو ته ورسیدله
18. Er ist voriges Jahr umgezogen, ……….. haben wir nichts mehr von ihm gehört. تیر کال هغه کډه وکړه، له هغه وخت راهیسې مونږ د هغه هیڅ احوال نه لرو
19. ………….. er eine bessere Wohnung hat, ist er zufrieden.
له هغه وخت راهیسې چې هغه یو نوی استوګنځی لري، هغه راضي دی
20. Zu den Gerüchten möchte der Chef ………. keine Stellung nehmen.
د دې ګنګوسو (اوازو) په برخه کې آمر په لومړي سر کې څه دریځ نه ښکاره کوي
21. Ich habe ………… Suppe gegessen. ما مخکې ښوروا وخوړله
22. Es stürmte und regnete ……….. . ډیر سخت بادونه لګیدل او په عین وخت کې باران هم و
23. Wer ……… lacht, lacht am besten. څوک چې په پای کې خاندي، دا له ټولو نه ښه خندا ده (څوک چې د لوبې په پای کې بریالی شي، دا بریالیتوب د لوبې د سر له بریالیتوبه ښه دی)

24. Ich bin ………. erst gekommen. زه په همدې شېبه کې راغلم
25. Wir waren ……….. beim Essen, als es passierte.
په همدې شېبه کې چې دا پېښه وشوه، مونږ ډوډۍ خوړله
26. Ich bin dazu ……………. nicht in der Lage. په دې شېبه کې زه د دې توان نه لرم
27. Er hat Tabletten genommen. ……….. ist ihm übel geworden.
هغه ګولۍ وخوړلې. له هغې نه وروسته ورته ګانګه ورغله
28. Wir werden …………… zu euch kommen.
مونږ به په لنډ وخت کې ستاسو کور ته درشو
29. Komm ………. herauf! ته سمدلاسه پورته راشه
30. Wie soll das erst einmal ……….. werden?
دا چې اوس داسې دی، نو وروسته به څنګه وي؟

**Lösungen:**

1. anfangs 2. bald 3. bald 4. bald 5. Damals 6. dann 07. eben 8. eben 9. endlich
10. eher 11. eher 12. heutzutage 13. inzwischen 14. mittlerweile 15. neulich
16. schließlich 17. schließlich 18. seither 19. seitdem 20. vorerst 21. vorhin
22. zugleich 23. zuletzt 24. gerade 25. gerade 26. augenblicklich 27. danach
28. demnächst 29. sofort 30. später

**Übungen:**

1. ………. dem 35. Lebensjahr fühlt man sich nicht mehr ganz jung.
د ژوندانه د پنځه دېرشم کال نه وروسته سړي ځان دومره ځوان نه احساسوي
2.. ……… vier Uhr sah ich ihn im Restaurant.
هغه ما د څلور بجو په شاوخوا کې په رستوران کې ولید
3.. ……… den Schluss geriet die Konferenz in Zeitnot.
د پای په شېبو کې کنفرانس د وخت د لږوالي سره مخامخ شو
4. Wir werden ………. 12 Uhr erwartet. 5مونږ ته د ۱۲ بجو په شاوخوا کې خلك په تمه دي.
5. Das Programm beginnt …….. 20 Uhr. پروګرام د ماښام په اته بجو پیل کیږي
6. Er fährt ……… die Mittagszeit. هغه د غرمې په شاوخوا کې حرکت کوي
د شنبو په ورځ به تل ډېره ګڼه ګونه وه
7. von heute ………. werde ich fleißig. سر له نن نه زه خواریکښ کېږم
8. Das ist ein Werk ……. dem Jahr 1750. دا د ۱۷۵۰ کال یو اثر دی
9. ……… welchem Jahrhundert stammt das Gedicht? دا د کومې پېړۍ شعر دی؟
10. Bitte treten Sie …….. Abfahrt des Zuges vom Bahnsteig zurück!
د اورګاډي د حرکت کولو په وخت تاسو اورګاډي ته د ختلو له ځایه لیرې شئ
11. Wie ging es ihm …….. Tod seines Vaters?
د هغه د پلار د مړینې په وخت د هغه وضع څنګه وه؟
12. ……… Tagesanbruch zieht die Karawane weiter.
د ورځې په پیل کې کاروان پر مخ ځي
13. ……… Sonnenaufgang ziehen wir weiter! په لمر ختو کې مونږ پر مخ ځو
14. ……… drei Jahren wird er zurückkehren. هغه به په درې کالو کې بېرته راستون شي
15. Seine Erinnerungen reichen bis…… die früheste Kindheit zurück.
د هغه د وړوکي ماشوموالي خاطرې په یاد دي

16. Sie feierten bis ………. den frühen Morgen.
هغوی تر سهار وختي پورې ساعت تېرې وکړه
17. ……… zwei Tagen ist die Arbeit fertig. په دوه ورځو کې کار خلاصیږي
18. Er ist erst ……. mir dran. د هغه وار زما پسې دی
19. ……. Ablauf der Frist د مودې د پوره کېدو نه وروسته
20. Er war …. wenigen Augenblicken noch hier. یو څو شېبې مخکې خو هغه همدلته و
21. Heute …….. genau vierzig Jahren. له نن نه پوره څلوېښت کاله پخوا
22. Es ist fünf Minuten ………. Zehn. لس بجو ته پنځه دقیقې پاتې دي

**Lösung:**

1. ab 2. gegen 3. gegen 4. gegen 5. um 6. um 7. an 8. aus 9. aus 10. bei
11. beim 12. bei 13. bei 14. in 15. in 16. in 17. in 18. nach 19. vor 20. vor
21. vor 22. vor

**Zeitausdrücke als Angabe mit Akkusativ**

ځیني اصطلاحات چې وخت پرې ښودل کیږي، کېدی شي چې هغه بې له کوم (Präposition) وي. دا هغه جملې دي چې وخت پکې په (Akkusativ) کې استعمالیږي. مثالونه به په لاندې تمرینونو کې وګورو:

**Übungen**:

1. Er hat sich verpflichtet, dort ……….. zwei Jahre zu arbeiten.
هغه ځان مؤظف کړی دی چې د دوه کالو مودې لپاره هلته کار وکړي
2. Du sollst unser Haus nur …….. drei Wochen beaufsichtigen.
ته باید تش د درې اونیو لپاره زمونږ د کور څارنه وکړې
3. Den ganzen Tag ………. regnete es. ټوله ورځ باران وشو
4. Er verreiste ………… das Wochenende. د اونۍ د پای په ورځو کې هغه په سفر ولاړ
5. Wir bleiben ……….. nächsten Dienstag hier.
مونږ تر راتلونکې سه شنبې ورځې پورې دلته پاتې کیږو
6. Ich konnte ……… Mitternacht nicht schlafen. ما تر نیمې شپې پورې خوب نشو کولی
7. ………. vor kurzem war er krank. هغه تر لنډ وخت مخکې پورې ناروغ و
8. Er schrieb ………. in die Nacht hinein. هغه تر نیمې شپې پورې لیکل وکړل
9. ………… auf den heutigen Tag blieb alles unverändert.
تر نننۍ ورځې پورې هر څه پخپل حال پاتې شول
10. Auf Wiedersehen, ……. nachher/…….. später. خدای په امان، تر وروسته پورې
11. Das geschah in der Zeit …… 9 bis 12 Uhr. دا پېښه د ۹ او ۱۲ بجو تر مېنځ وشوه
12. Komm ………. acht und neun Uhr bei uns vorbei.
ته د اتو او نهه بجو تر مینځ زمونږ کور ته راشه

**Lösungen:**
1. für 2. für 3. über 4. über 5. Bis 6. bis 7. bis 8. bis 9. bis 10. bis 11. bis
12. zwischen

# Nominalisierung, Verbalisierung

**له فعل نه اسم جوړونه، له اسم نه فعل جوړونه**

دا موضوع په (substantivisch verwendetes Adjektiv) کي هم یاده شوېده

کله چي مونږ په پښتو کي ووایو چي :

| |
|---|
| سبا د باران د وربېدلو امکانات ډېر دي |

په دې جمله کي مونږ خپل مطلب په یو فعل، یعني په (باران ورېدل) بیان کړو. مونږ کوی شو چي دا مطلب په دې ډول هم ووایو:

| |
|---|
| سبا د باران د وربښت امکانات ډېر دي |

په دې جمله کي د (ورېدل) په ځای د (وربښت) کلمه یاده شوه چي (وربښت) یو اسم یا یو نوم دی. بل مثال:

| |
|---|
| د لېږلو او رالېږلو لاره دې ازاده شي |

دلته (لېږل) او (رالېږل) دواړه فعلونه دي چي په اسمونو بدلېدلی شي او په ځای یې ویل کېدی شي چي:

| |
|---|
| د لېږد رالېږد لاره دې ازاده شي |

په پورتنی جمله کي له (لېږل او رالېږل) نه (لېږد رالېږد) جوړ شو، یعني له فعلونو نه اسمونه جوړ شول. په جرمني ژبه کي هم دا امکانات شته چي یوه خبره په یو فعل باندې او یا په یو اسم باندې بیان شي. کله چي یو مطلب په یو فعل بیانیږي، دې ته (verbal) وایي. د (verbal) په کلمه کي د (Verb) لغت پروت دی چي مانا یې ده (فعل). کله چي یو اسم په فعل بدلیږي، نو دې ته وایي (Verbalisierung) . کله چي د مطلب د بیانولو لپاره له فعل نه کار واخیستل شي نو دا مطلب په یوه لنډه اصلي جمله کي او یا په یوه فرعي جمله کي بیانیږي. مثال:

| |
|---|
| Weil er sehr reich ist, kauft er ein Flugzeug.<br>په دې چي هغه ډېر شتمن دی، نو ځکه هغه یوه الوتکه په بیه اخلي |
| Obwohl er sehr arm ist, kauft er ein Auto.<br>سره له دې چي هغه ډېر بېوزلی دی، هغه بیا هم یو موټر په بیه اخلي |

په فعل جوړي شوي جملي د معیاري جملو په نامه یادیږي، او دا هغه ژبه ده چي هر چېرته او هره خوا پرې خبرې کیږي، یعني عام ولس زیاتره وخت خپل مطلب په ساده ژبه، یعني په (فعلونو) بیانوي.

خو کله چي یو څوك ادبي خبرې کوي او یا یو لوړ مقام ته لیك استوي، نو دفتري لیکني بیا د ولس په ژبه نه کیږي. هغې ته بیا دفتري ژبه په کار ده. په بل عبارت، هلته بیا مطلب په (فعلونو) نه بلکي په (اسمونو) بیانیږي. هلته بیا د اوږدو خبرو په ځای لنډې خبرې کیږي. دوه جملي په یوې جمله بدلیږي، په بل عبارت که د ولس په ژبه یوه خبره په دوه جملو، یعني په یوه اصلي او په یوه فرعي جمله یاده شي، نو په دفتري ژبه کي فرعي جمله له مینځه ځي او له دواړو جملو نه یوه لنډه اصلي جمله جوړیږي.

کله چي یو مطلب په یو اسم بیانیږي، نو دې ته (nominal) وایي. د (nominal) په کلمه کي د (Nomen) لغت پروت دی چي مانا یې ده (اسم). نو کله چي یو مطلب په یو اسم بیانیږي، نو له (فعل) نه (اسم) جوړیږي.

| پوښتنه | د اسم جوړولو لپاره کومه قاعده شته؟ |
|---|---|

څنګه چې په پښتو کې له (وربډل) نه د (وربشت) جوړېدلو لپاره کومه خاصه قاعده نشته، نو په جرمني ژبه کې هم د (اسم) جوړولو لپاره کومه ځانګړې قاعده نشته. خو کله چې په یوې جملې کې د فعل په ځای (اسم) راشي، یعني له (Nominalisierung) نه کار واخیستل شي، نو ګرامري اصول یې دا دي:

| 1. Präposition نسبتي کلمه | 2. Nomen اسم | 3. Konstruktionen د جملې تشکل |
|---|---|---|

دا په دې مانا چې له اسم نه مخکې تل یو (Präposition) راځي او بیا د جملې پاتې برخه راځي. پورتني مثالونه په دې ډول په (Nominalisierung) بدلیږي:

د (weil) په ځای له (aufgrund) نه او د (er sehr reich ist) په ځای له (Reichtum) نه کار اخیستل کیږي او په دې ډول فرعي جمله له مینځه ځي او مطلب تش په یوې اصلي جملې داسې بیانیږي:

| Aufgrund seines Reichtums kauft er ein Flugzeug.<br>د خپلې شتمنۍ په وجه هغه یوه الوتکه په بیه اخلي |
|---|

په دوهمه جمله کې د (obwohl) په ځای له (trotz) نه او د (er sehr arm ist) په ځای له (Armut) نه کار اخیستل کیږي او مطلب تش په یوې اصلي جملې داسې بیانیږي:

| Trotz seiner Armut kauft er ein Auto. | د بې وزلۍ سره سره هغه یو موټر په بیه اخلي |
|---|---|

| پوښتنه | له یو فعل نه د اسم په جوړېدو کې په مانا کې یې څه بدلون راځي؟ |
|---|---|
| ځواب | اصلاً باید په مانا کې څه بدلون رانشي. خو کله له یو فعل نه د اسم په جوړېدو کې یوه اصطلاح جوړه شي چې د اصلي لغت سره بیا هیڅ اړه نه لري. مثال به لاندې وګورو: |

منډې وهلو ته ویل کیږي (laufen) . خو کله چې له دې فعل نه یو اسم جوړ شي، یعنې (Laufenden) وویل شي او ورنه داسې جمله جوړه شي:

| auf dem Laufenden sein | تازه او تاند معلومات درلودل، له یوې موضوع نه بالکل باخبر اوسېدل |
|---|---|

نو څنګه چې پورته لیدل کیږي، له (laufen) نه جوړ شوی لغت (Laufenden) د (laufen) له مانا سره هیڅ اړیکې نلري.

کله کله د یو لغت څرګنده او خاصه مانا په عمومي ډول بدله شي. مثال: پوهېدلو ته ویل کیږي (wissen)، کله چې له دې فعل نه یو اسم جوړ شي، نو ویل کیږي چې (das Wissen) یعني (پوهه). د (پوهې) لغت یوه ډېره عمومي او حتی خیالي مانا لري، یعني له (پوهې) نه مطلب (علم، آګاهي) دی.

| پوښتنه | له کومو الفاظو نه اسم جوړېدی شي؟ |
|---|---|
| ځواب | هر هغه څه چې اسم ورنه جوړېدی شي، په لاندیني جدول کې لیکل شویدي |

| 1. Adjektiv<br>صفت | 2. Konjunktion, Präposition, Adverb<br>قید ، نسبتي کلمه ، د ربط ټکی | 3. Verb<br>فعل |
|---|---|---|

## Substantivisch verwendetes Adjektiv ① له يو صفت نه اسم جوړېدل

له يو صفت نه د يو اسم جوړېدل په مختلفو ډولو کېدی شي چې هر يو به يې په لاندې برخه کې وګورو.

1- کله چې د يو صفت په پای کې ورسره (-es) يوځای شي، نو له دې صفت نه يو اسم جوړيږي چې (Artikel) يې تل (das) وي، په دې ډول:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| gut | + | - es | = | Gutes | ښېګڼه، نېك كار، ښه شی |
| neu | + | - es | = | Neues | نوی شی، نوې خبره |
| schön | + | - es | = | Schönes | ښايسته شی، ښکلی شی |
| dumm | + | - es | = | Dummes | احمق کار، بې عقله کار |
| gefährlich | + | - es | = | Gefährliches | خطرناك شي |

Beispielsätze:

| | |
|---|---|
| Er möchte etwas Gutes tun. | هغه غواړي چې يو نېك كار وكړي |
| Was gibt es Neues in deiner Heimat? | ستا په هېواد کې څه نوې خبرې دي؟ |
| Er hat mir etwas Schönes geschenkt. | هغه راته يو ښه شی ډالی کړو |
| So etwas Dummes habe ich noch nie gehört. | دومره يوه بې عقله خبره ما هېڅکله نده اورېدلې |
| Das ist etwas ganz Gefährliches. | دا يو ډېر خطرنال شی دی |

2- کله چې له يو صفت نه يو اسم جوړ شي، نو د صفت په وروستی برخه کې ورسره يو وروستاړی يا شاتاړی يوځای کيږي، چې هغه دا دي: (- keit) , (- heit) مثال:
ښايسته ته ويل کيږي (schön). کله چې (schön) په اسم بدليږي، نو (-heit) په شا کې ورسره يوځای کيږي او (Artikel) يې تل (die) وي، په لاندې ډول:

| | |
|---|---|
| schön + heit = Schönheit | ښايسته + والی = ښايسته والی (ښکلا) |

له نورو صفتونو نه د اسم جوړېدل به په لاندې جدول کې وګورو

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| rein | خالص ، سوچه | + | - heit | والی | = | die Reinheit | سوچه والی |
| sauber | پاك | + | - keit | والی | = | die Sauberkeit | پاکوالی |
| berühmt | مشهور، وتلی | + | - heit | والی | = | die Berühmtheit | مشهوروالی |
| klein | وړوکی | + | - heit | والی | = | die Kleinheit | وړوکی والی |
| dunkel | تیاره | + | - heit | | = | die Dunkelheit | تیاره |
| hell | روښانه | + | - keit | تیا | = | die Helligkeit | روښانتیا، رڼا |
| trocken | وچ | + | - heit | والی | = | die Trockenheit | وچوالی |
| ehrlich | اخلاصمن | + | - keit | ي | = | die Ehrlichkeit | اخلاصمني |
| blind | ړوند | + | - heit | توب | = | die Blindheit | ړوندتوب |
| fähig | وس لرونکی، توانا | + | - keit | | = | die Fähigkeit | وس، توان |

3- ځينې صفتونه شته چې په هغوی کې لږ څه بدلونونه راځي، مثال:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| groß | لوی | = | die Größe | لوی والی | warm | تود | = | die Wärme | تودوخي |
| kalt | سوړ، يخ | = | die Kälte | سوړوالی، يخ | lang | اوږد | = | die Länge | اوږدوالی |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| breit پلن | = | die Breite پلن والی | rot سور | = | die Röte سوروالی |
| blau آبي | = | das Blaue آبي رنګوالی | schwarz تور | = | die Schwärze توروالی |
| gut ښه | = | das Gute ښه والی | gut ښه | = | die Güte شفقت |

4- ځيني صفتونه شته چي په اسم د هغوی په بدلېدو کي له هغوی نه يو کس يا يو انسان جوړيږي، مثال:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| alt زوړ | = | der Alte زوړ سړی | arm بې وزلی | = | der Arme بې وزلی انسان |
| bekannt اشنا | = | der Bekannte يو اشنا کس | blind ړوند | = | der Blinde ړوند سړی |
| dumm احمق | = | der Dumme احمق انسان | fremd پردی | = | der Fremde پردی سړی |
| krank ناروغ | = | der Kranke ناروغ انسان | ledig مجرد | = | der Ledige مجرد سړی |
| schön ښايسته | = | die Schöne ښايسته نجلۍ | schwarz تور | = | die Schwarze توره نجلۍ |

5- ځيني اسمونه له (Partizipien II) نه جوړيږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| abgeordnet په رسمي ډول لیږدول شوی | = | der Abgeordnete استازی، وکیل |
| angehörig د يو چا پوري اړه، متعلق | = | der Angehörige خپل، خپلوان |
| angeklagt تورن شوی | = | der Angeklagte تورن، متهم |
| gefangen بندي شوی | = | der Gefangene بندي، زنداني |
| geliebt خوښ شوی | = | die Geliebte معشوقه، شهی، محبوبه |
| verletzt ټپي، زخمي | = | der Verletzte ټپي انسان، زخمي |
| vermisst ورك شوی | = | der Vermisste ورك شوی انسان |
| verstorben مړ شوی | = | der Verstorbene مړی، مړ شوی انسان |

| Partizip II | Infinitiv | Beispiel |
|---|---|---|
| abgeordnet | abordnen<br>استازی کول | Abgeordnete sitzen im Parlament.<br>وکيلان په پارلمان کي ناست دي |
| angehörig | angehören<br>تعلق درلودل | Sind Sie ein Angehöriger des Verstorbenen?<br>تاسو د مړي نږدې خپلوان یاست؟ |
| angeklagt | anklagen<br>تورن کول | Der Angeklagte verweigerte seine Aussage.<br>تورن د معلومات ورانډې کولو نه ډډه وکړه |
| angestellt | anstellen<br>مستخدمول | Angestellte haben bessere Gehälter als Arbeiter.<br>د مستخدمينو معاشونه د کارګرانو له معاشونو نه ښه دي |
| beamtet | beamten<br>مأموريت ورکول | Der Arbeitgeber aller Beamten ist der Staat.<br>د ټولو مأمورينو ګمارونکی دولت دی |
| betrogen | betrügen<br>ټګي کول | Der Betrogene verschwieg seinen Schaden.<br>غولول شوي خپل تاوان پټ کړو |
| betrunken | betrinken<br>د الکولو نشه کول | In diesem Hotel gibt es nur Betrunkene.<br>په دې هوټل کي تش د الکولو نشيان دي |
| gefangen | fangen<br>نيول | Diese Gefangenen sitzen lebenslang hinter Gitter.<br>دا بنديان د ټل لپاره په زندان کي دي |
| geliebt | lieben<br>مينه درلودل | Er hat eine Geliebte und seine Frau weiß von nichts.<br>هغه يوه معشوقه لري او ښځه يې له هيڅ شي نه خبره نده |

| | | |
|---|---|---|
| prostituiert | prostituieren<br>ځان کاسيرول | Die Prostituierte verkauft sich am Straßenrand.<br>کاسيره د سړك په سر خپله حيا خرڅوي |
| verdächtigt | verdächtigen<br>تومتي کول | Die Verdächtigten werden von der Polizei vernommen. له تومتيانو نه پوليس پوښتني کوي |
| verheiratet | verheiraten<br>ودول | Sind Verheiratete wirklich glücklicher als Ledige?<br>واده شوي کسان په ريښتيا له مجردانو نه بختور دي؟ |
| verletzt | verletzen<br>ټپي کېدل | Die Ärzte stoppten die Blutung des Verletzten.<br>ډاکټرانو د ټپي د وينو بهيدنه ودروله |
| verliebt | verlieben<br>مين کېدل | Dieser Ort ist ein Treffpunkt für Verliebte.<br>دا ځای يو بل سره د مينانو د ليدو ځای دی |
| vermisst | vermissen<br>تري تم کېدل | Der Vermisste tauchte wieder auf.<br>تري تم شوی بېرته راپيدا شو |
| verstorben | versterben<br>مړکېدل | Der Verstorbene wurde beigesetzt.<br>مړی خاورو ته وسپارل شو |

② له يو **(Konjunktion)**، **(Präposition)** او **(Adverb)** نه اسم جوړونه:

| Präp./ Konj./ Adv./ | Nominalisierung | Beispiele |
|---|---|---|
| aber<br>خو، مګر | das Aber<br>شك او ترديد | Sein Ja habe ich schon gehört, doch sein Aber wird wohl auch noch kommen.<br>د هغه هو مي اورېدلي دي، د هغه شك به هم راشي |
| wenn<br>كه چېرته | das Wenn<br>شك او ترديد | Es gibt noch viele Wenns.<br>په دې کې لا ډېر شکونه پراته دي |
| ob آيا | das Ob<br>په يو څه کې شك | Hier geht es nicht um das Ob, sondern um das Wie. دلته پوښتنه دا نه ده چې دا به وشي او كه نه ، پوښتنه دا ده چې دا به څنګه وي |
| wann<br>كله | das Wann<br>د وخت شببه | Das Wann entscheidet. د وخت شېبه فيصله کوي |
| auf und ab ښکته او پورته | das Auf und Ab<br>لوړې او ژورې | Sie verschwieg nicht das Auf und Ab ihres Lebens. هغې د خپل ژوندانه لوړې او ژورې پټې نکړې |
| wenn und aber | das Wenn und Aber شك او ترديد | Das ist ohne Wenn und Aber richtig.<br>دا بې له کوم شك او ترديده صحيح دی |
| nein<br>نه | das Nein<br>منفي ځواب | Ab wann versteht ein Kind ein Nein?<br>له کوم وخت نه وروسته يو ماشوم په (نه) باندې پوهيږي؟ |
| gestern und heute پرون او نن | das Gestern und das Heute<br>پخوا او اوس | Du lebst noch immer im Gestern.<br>ته اوس هم په پخواني وخت کې ژوند کوي<br>Man sollte das Heute genießen.<br>سړی بايد د اوسني وخت نه خوند واخلي |
| morgen<br>سبا | das Morgen<br>راتلونکی | Das Morgen gehört uns ganz allein.<br>راتلونکی يوازې او يوازې زمونږ دی |

### ③ له فعلونو نه اسم جوړونه:

له فعلونو نه د اسم جوړول په څو ډولو کیږي چې په لاندې برخه کې تشریح کیږي.

(a) همدغه فعل د اسم په شان غټ لیکل کیږي او (Artikel) یې (das) کیږي، مثال:

| | | |
|---|---|---|
| gehen تلل | das Gehen تګ | Er hat Beschwerden beim Gehen.<br>هغه د تګ په وخت کې په عذاب دی |
| einschlafen ویده کېدل | das Einschlafen خوب ورتلل | Das Einschlafen fällt mir sehr schwer.<br>ما ته ډېر په سختی خوب راځي |

(b) کله کله له یو فعل نه (en) او یا (n) وویستل شي او په پای کې (-rei) او یا (-erei) ورسره یو ځای شي. مثال:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| saufen شراب څښل | - n | = | sauf | + | erei | = | die Sauferei د شرابو ډېر څښل |
| Die Sauferei hat ihn ruiniert. | | | | | | | د ډېرو شرابو څښلو هغه برباد کړو |

| Verb | | Nomen | |
|---|---|---|---|
| fischen | کب نیول | die Fischerei | د کب نیولو کمپنی |
| metzgern | حلالول | die Metzgerei | قصابي |
| gärtnern | ملیاري کول، کلان کرل | die Gärtnerei | باغواني، د ملیار هټی |
| nähen | ګنډل | die Näherei | د ګنډنې هټی، د خیاط دکان |
| schreinern | ترکاڼي کول، نجاري کول | die Schreinerei | ترکاڼی، د نجارۍ هټی |
| tischlern | ترکاڼي کول، نجاري کول | die Tischlerei | ترګاڼی، د نجارۍ هټی |
| drucken | چاپول | die Druckerei | چاپخونه، چاپخانه |
| malen | رسمول | die Malerei | رسامي |
| backen | پخول | die Bäckerei | نانوایي، نانبایي |
| schneidern | ګنډل | die Schneiderei | د ګنډنې هټی، خیاطي |

(c) ځینې فعلونه شته چې په پای کې یې (ln) راځي. نو که چېرته له دې فعلونو نه (n) وویستل شي او په پای کې (-ei) ورسره یو ځای شي، نو بیا له دې فعل نه یو اسم جوړیږي. مثال: (schmeicheln) چې غوړه مالی یا چاپلوسی کولو ته وایي. کله چې (n) ورځینې وویستل شي او (-ei) ورسره یوځای شي، نو له دې نه (Schmeichelei) جوړیږي چې (چاپلوسی یا غوړه مالی ته وایي). نور مثالونه:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| schmeicheln چاپلوسي کول | - n | = | schmeichel | + | ei | = | die Schmeichelei چاپلوسي، غوړه مالي |
| Trotz seiner Schmeicheleien wollte sie nicht mit ihm reden.<br>د هغه د چاپلوسی سره سره هغې نه غوښتل چې له هغه سره خبرې وکړي | | | | | | | |

| Verb | | Nomen | |
|---|---|---|---|
| betteln | ګدایي کول | die Bettelei | ګدایي |
| blödeln | چټیات کول | die Blödelei | چټیات |
| bummeln | په بازار کې ګرځېدل | die Bummelei | په بازار کې ګرځېدنه |
| ferkeln | بدبد کارونه کول | die Ferkelei | بدبدکارونه |
| fummeln | په یو شي کې ګوتې وهل | die Fummelei | په یو شي کې ګوته وهنه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| grübeln | چورت وهل | die Grübelei | چورت وهنه |
| heucheln | د درواغو کارونه کول | die Heuchelei | د درواغو کارونه |
| mogeln | چل ول کول | die Mogelei | چل ول |
| prügeln | يو څوك وهل | die Prügelei | د يو چا وهنه ، ډبونه |

(d) کله کله د يو فعل په پای کې چې (-en) ورځيني وېستل شوی وي (-ung) ورسره يوځای کيږي. مثال: تمرين کولو ته وايي (üben) :

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| üben<br>تمرين کول | - en | = | üb | + | ung | = die Übung<br>تمرين |

| Verb | | Nomen | |
|---|---|---|---|
| ändern | بدلول | die Änderung | بدلون، تغير |
| messen | اندازه کول | die Messung | اندازه کونه |
| bestellen | غوښتل، فرمايش کول | die Bestellung | غوښتنه، فرمايش |
| abdanken | استعفا کول | die Abdankung | استعفا |
| genehmigen | منظورول | die Genehmigung | منظوري |
| vorstellen | ځان راپيژندل، معرفي کول | die Vorstellung | معرفي، ځان راپيژندنه |
| anerkennen | په رسميت پيژندل | die Anerkennung | په رسميت پيژندنه |
| verstopfen | بندول | die Verstopfung | بندوالی، قبضيت |
| bestechen | رشوت ورکول | die Bestechung | رشوت، بډه |
| abkürzen | لنډول، لنډون ورکول | die Abkürzung | لنډون، مخفف |

(e) پاتې نور اسمونه چې له فعلونو نه جوړيږي، د هغوی لپاره څه قاعده نشته چې په څه شان له يو فعل نه يو اسم جوړيږي، نو ناچار هغه اسمونه بايد سړي له ياده زده کړي. د بېلګې په توګه يو څو لغات په لاندينې جدول کې ليکل کيږي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| abreisen | سفر کول | die Abreise | سفر |
| analysieren | تحليلول، تجزيه کول | die Analyse | تحليل، تجزيه |
| annehmen | منل، قبلول، فرضول | die Annahme | قبليدنه، قبلونه، فرضيه |
| sich ärgern über | خپل اعصاب خرابول | der Ärger | اعصاب خرابي |
| ankommen | يو ځای ته رسيدل | die Ankunft | رسيدنه |
| abfahren | حرکت کول | die Abfahrt | حرکت |
| aussprechen | تلفظول | die Aussprache | تلفظ |
| begreifen | په يو شي د يو چا سر خلاصيدل | der Begriff | مفهوم |
| beabsichtigen | د يو شي قصد يا نيت درلودل | die Absicht | قصد، نيت |
| sich engagieren | د يو شي لپاره فعاليت کول | das Engagement | خواري، زحمت، کوښښ |
| einsehen | خپله سهوه ليدل | die Einsicht | تعقل، ليدنه، پوهيدنه |
| erleben | په يو چا يو څه تيريدل | das Erlebnis | خاطره، په يو چا تير شوی حال |
| sich freuen über/auf | يو شي ته خوښ اوسيدل | die Freude | خوشحالي ، خوښي |
| heiraten | واده کول | die Heirat | واده |
| hoffen auf | هيله درلودل، اميد درلودل | die Hoffnung | هيله، اميد |
| herkommen | له يوه ځايه راتلل | die Herkunft | اصل، منشآ |
| beantragen | يو شي ته عريضه کول | der Antrag | عريضه، غوښتنليك |

| | | | |
|---|---|---|---|
| produzieren | تولیدول | die Produktion | تولید، تولیدات |
| prüfen | ازمایل، امتحانول | die Prüfung | ازموینه، امتحان |
| resultieren aus | له یو شي نه نتیجه راتلل | das Resultat | نتیجه، پایله |
| zurückgehen | په شا تلل | der Rückgang | په شا تګ |
| strömen | بهېدل | der Strom | برېښنا، برق |
| tun | کول | die Tat | عمل، کړنه |
| untergehen | ښکته کېدل | der Untergang | زوال، ښکته کېدنه |
| transportieren | انتقالول | der Transport | ترانسپورت ، وړنه |
| wollen | غوښتل | der Wille | اراده، عزم |
| reisen | سفر کول | die Reise | سفر |
| helfen | مرسته کول | die Hilfe | مرسته |
| fortschreiten | پرمخ تلل | der Fortschritt | پرمختګ |
| bitten um | له یو چا نه د یو شي هیله کول | die Bitte | هیله ، خواهش |
| zulassen | اجازه ورکول | die Zulassung | اجازه، جواز |
| verbinden | وصلول، تړل | die Verbindung | اړیکي، رابطه |
| abgeben | ورکول | die Abgabe | ورکوونه |
| ansteigen | پورته کېدل | der Anstieg | پورته کېدنه |
| denken an | د یو شي په برخه کې فکر کول | der Gedanke | فکر، سوچ |
| profitieren von | له یو شي نه ګټه اخیستل | der Profit | ګټه |
| verstehen unter/von | په یو شي پوهېدل | das Verständnis | پوهېدنه، تفاهم |
| reparieren | ترمیمول، جوړول | die Reparatur | ترمیم، جوړونه |
| korrigieren | تصحیح کول | die Korrektur | تصحیح، اصلاح |
| sich interessieren für | علاقه درلودل | das Interesse | علاقه |
| krank sein /erkranken an | ناروغ اوسېدل | die Krankheit | ناروغي، مریضي |
| sprechen über (von) | په یو شي غږېدل | das Gespräch | خبرې، خبرې اترې |
| studieren | تحصیل کول | das Studium | تحصیل |
| kontrollieren | کنټرولول | die Kontrolle | کنټرول |
| zurückgehen | بېرته تلل | die Rückkehr | بېرته راتګ، عودت |
| begraben | ښخول | das Begräbnis | ښخونه |
| schützen vor | له یو شي نه بچول، ساتل | der Schutz | ساتنه، حفاظت |
| ermöglichen | ممکنول | die Möglichkeit | امکان، امکانات |
| anbieten | وړاندې کول، تقدیمول | das Angebot | عرضه ، وړاندې کونه |
| sich ereignen | پېښېدل | das Ereignis | پېښه، حادثه |
| entscheiden | فیصله کول | die Entscheidung | فیصله، پرېکړه |
| eintreten | ننوتل | der Eintritt | ننوتنه، دخول |
| verbrauchen | لګول، مصرفول | der Verbrauch | لګښت، مصرف |
| ablehnen | ردول، تردیدول | die Ablehnung | ردي، تردید |
| beginnen | پیلېدل، شروع کېدل | der Beginn | پیل، شروع |
| erinnern | په یادول، په یاد راتلل | die Erinnerung | یاد، خاطره، حافظه |
| tolerieren | زغمل، تحملول | die Toleranz | زغم ، تحمل |
| einsteigen | یو ځای ته ختل | der Einstieg | ختنه، د ختلو ځای |
| austreten | وتل، خارجېدل | der Austritt | وتنه، خارجېدنه، اخراج |
| sich bemühen um | یو شي ته کوښښ کول | die Bemühungen | کوښښ، خواري |

| | | | |
|---|---|---|---|
| beenden | پای ته رسول، تمامول | die Beendung | پای ته رسونه، انجام |
| operieren | عملیاتول | die Operation | عملیات |
| sich irren in | سهوه کول، اشتباه کول | der Irrtum | سهوه، اشتباه |
| fähig sein | د يو شي توان درلودل | die Fähigkeit | وس، توان |
| schreiben | ليکل | die Schrift | ليك، خط |
| reißen | شکېدل، څيرې کېدل | der Riss | درز، شکېدنه، شکېدلی ځای |
| akzeptieren | منل، قبلول | die Akzeptanz | قبولي، منل کېدنه |
| fahren | په ګاډي کې تلل | die Fahrt | په ګاډي کې تګ |
| einnehmen | عايد درلودل، درمل خوړل | die Einnahme | عايد، د درمل خوړنه |
| arm sein | بېوزلي اوسېدل | die Armut | بې وزلي، غربت |
| fließen | بهېدل | der Fluss | سیند، بهېدنه |
| verlieren | بايلل، له لاسه ورکول | der Verlust | تاوان، له لاسه ورکونه |
| reich sein | شتمن اوسېدل، بډا اوسېدل | der Reichtum | شتمني، بډايي |

د (Modalverben) له فعلونو نه اسم **نه جوړيږي**، خو دې ته يو معادل اسم کارول کيږي، چې دا اسم د (Modalverb) پورې څه اړه نلري. دا شان فعلونه او اسمونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Modalverben | | Nomen | |
|---|---|---|---|
| müssen | يو شي ته مجبور اوسېدل | der Zwang, der Befehl | جبر، امر |
| können | يو شی کوی شول | die Fähigkeit/Vermögen/Möglichkeit | توان، وس، شونتيا (امکانات) |
| nicht können | يو شی کوی نشول | die Unfähigkeit/die Unmöglichkeit | بې وسي، ناتواني |
| dürfen | يو شي ته اجازه درلودل | die Erlaubnis | اجازه |
| nicht dürfen | يو شي ته اجازه نه درلودل | das Verbot | ممانعت، منع توب |
| wollen | يو شی غوښتل | die Absicht | قصد، نيت |
| möchten | يو شي ته خوښه کول | der Wunsch | هيله، خواهش |
| sollen | بايد يو څه کول | die Aufforderung, Pflicht | غوښتنه، وظيفه |

## Nominalisierung kausaler Nebensätze

## د سبب ښودلو په جملو کې اسم جوړول

کله چې (Kausalsatz) په اسم بدل شي نو بيا د (weil) په ځای (wegen, aufgrund, aus, vor) استعماليږي. لاندينی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| weil | wegen (+ Genitiv) |
| | aufgrund (+ Genitiv) |
| | aus (Dativ, Nomen mit Nullartikel) |
| | vor (Dativ, Nomen mit Nullartikel) |

کله چې په يوې جملې کې د فعل په ځای يو اسم راشي، نو دا جمله له يوې خوا لنډيږي، له بلې خوا د داسې جملو جوړول سختيږي، ځکه هرهر څوك داسې جملې نشي جوړولی. په بله مانا داسې جملې ادبي جملې دي او په ورځينې ژوند کې د خبرو په وخت يا هيڅ نه او يا ډېرې لږې استعماليږي. کوم ځای چې هلته

داسي جملې ډېرې استعمالیږي، هغه ادبي، دفتري، سیاسي او پوهنیزه ژبه ده. اوس به نو یو څو مثالونه وګورو چې د یو فعل نه یو اسم جوړیږي.

| Hauptsätze + Nebensätze | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Ich bin heute nicht in die Schule gegangen, weil ich starke Kopfschmerzen hatte. زه نن ښوونځي ته ولاړ نه شوم، ځکه چې زما سر ډېر خوږېدو | Aufgrund starker Kopfschmerzen bin ich heute nicht in die Schule gegangen. د ډېر سرخوږي په لامل زه نن ښوونځي ته ولاړ نشوم |
| Das kleine Kind weint, weil es vor dem großen Hund Angst hat. ماشوم ورړوکی ژاړي، ځکه چې د دې لوی سپي نه ډاریږي | Aus Angst vor dem großen Hund weint das kleine Kind. له لوی سپي نه د ډار په وجه وړوکی ماشوم ژاړي |
| Sie freut sich so, weil sie eine Prüfung bestanden hat. هغه ډېره خوشحاله ده، ځکه چې په یوه ازموینه کې بریالی شوېده | Sie freut sich so aufgrund ihrer bestandenen Prüfung. په ازموینه کې د بریالیتوب په وجه هغه ډېره خوشحاله ده |
| Ich konnte den Rasen nicht mähen, weil der Rasenmäher kaputt gegangen ist. ما کبله نشوه ریبله، ځکه چې کبله ریبونکی ماشین مات شوی و | Ich konnte den Rasen wegen des kaputt gegangenen Rasenmähers nicht mähen. د مات شوي کبلې ریبونکي ماشین په وجه ما کبله ونشوه ریبله |
| Da ich schwer krank bin, gehe ich heute nicht zur Arbeit. په دې چې زه سخت ناروغ یم، نو نن کار ته نه ځم | Wegen schwerer Krankheit gehe ich heute nicht zur Arbeit. د سختې ناروغۍ په وجه زه نن کار ته نه ځم |
| Er zitter, weil er Angst hat هغه رپیږي، ځکه چې ډاریږي | Er zittert vor Angst. د ډار له لاسه هغه رپیږي |

**Übungen:**

1. Ich sehe, dass er sich bemüht. زه وینم چې هغه زحمت وباسي
2. Weil ich Erfahrung habe, bekomme ich den Job.
په دې چې زه تجربه لرم، ما ته دا کار راکول کیږي
3. Wenn es regnet, kommen wir nicht. که چیرته باران وشو، نو مونږ نه راځو
4. Es wurde kalt, so dass wir nach Hause gegangen sind.
هوا سړه شوه، نو په دې وجه مونږ کور ته ولاړو
5. Er trainiert regelmäßig, dadurch verbessert er sich.
هغه په منظم ډول تمرین کوي، په دې باندې هغه لاپسې تکړه کیږي
6. Er war krank, trotzdem ging er zur Arbeit.
هغه ناروغ و، له دې سره سره هغه هم بیا هم کار ته ولاړ
7. Der Unterricht begann. Da klopfte jemand an die Tür.
درس پیل شو. په دې وخت کې کوم چا دروازه وټکوله
8. Bevor ich esse, wasche ich mir die Hände.
مخکې له دې چې زه یو څه وخورم، خپل لاسونه پرېمینځم
9. Nachdem ich gegessen hatte, ging ich spazieren.
وروسته له دې چې ما ډوډۍ وخوړله، نو بیا په چکر ووتم

10. Seit ich trainiere, geht es mir besser.
له هغه وخت راهيسي چې زه تمرين کوم، زه مخ په ښه کېدو يم

**Lösungen:**

1. Ich sehe seine Bemühung. زه د هغه زحمت وينم
2. Wegen der Erfahrung bekomme ich den Job. د تجربې په وجه ما ته دا کار راکول کيږي
3. Bei Regen kommen wir nicht. د باران په صورت کې مونږ نه راځو
4. Infolge der Kälte sind wir nach Hause gegangen.
د سړې هوا په وجه مونږ کور ته ولاړو
5. Durch ein regelmäßiges Training hat er sich verbessert.
په منظم تمرين باندې هغه لاپسې تکړه شو
6. Trotzt der Erkrankung ging er zur Arbeit. د ناروغی سره سره هغه بيا هم کار ته ولاړ
7. Zu Beginn des Unterrichts klopfte jemand an die Tür.
د درس په پيل کې کوم چا دروازه وټکوله
8. Vor dem Essen wasche ich mir die Hände. له ډوډۍ نه مخکې زه خپل لاسونه پرېمينځم
9. Nach dem Essen ging ich spazieren. له ډوډۍ نه وروسته زه په چکر ولاړم
10. Seit meines Trainings geht es mir besser. د تمرين کولو راهيسې زه مخ په ښه کېدو يم

## Nominalisierung konzessiver Nebensätze

## د اعترا□ په جملو کې اسم جوړونه

(trotz, ungeachtet) په ځای (obwohl) کله چې (Konzessivsatz) په اسم بدل شي نو بيا د
استعماليږي. لاندينی جدول ته وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| obwohl, obgleich | trotz (+ Genitiv), ungeachtet (+ Genitiv) |

مثالونه به لاندې جملو کې وګورو:

| Konzessivsatz (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Der Filmschauspieler bekommt keine neuen Rollen angeboten, obwohl er sehr berühmt ist. د فلم لوبغاړي ته کوم نوی رول نه وړاندې کيږي، سره له دې چې هغه ډېر شهرت لري | Trotz seiner Berühmtheit bekommt der Filmschauspieler keine neuen Rollen angeboten. سره له شهرته د فلم لوبغاړي ته کوم نوی رول نه وړاندې کيږي |
| Das Kind kann noch nicht rechnen, obgleich es schon zwei Jahre die Schule besucht. دا ماشوم لا تر اوسه پورې حساب نشي کولی، سره له دې چې دوه کاله ښوونځي ته ځي | Trotz seines zweijährigen Schulbesuchs kann das Kind immer noch nicht rechnen. سره له دوه کاله ښوونځي ته له تګه دا ماشوم لا تر اوسه پورې حساب نشي کولی |

| | |
|---|---|
| Der Student ist durch die Prüfung gefallen, obgleich er sich wochenlang darauf vorbereitet hat. دا محصل په ازموینه کې پاتې راغی، سره له دې چې څو اونۍ يې چمتووالی نيولی و | Trotz wochenlanger Prüfungsvorbereitung ist der Student durchgefallen. د څو اونيو چمتووالي نيولو سره سره دا محصل په ازموينه كې پاتې راغی |
| Der Mann fährt mit dem Auto nach Hause, obwohl er sehr viel Alkohol getrunken hat. سره له دې چې دی سړی ډېر الكول څښلي دي، بيا هم په موټر کې كور ته ځي | Der Mann fährt ungeachtet seines enormen Alkoholkonsums mit dem Auto nach Hause. دا سړی ډېر الكولو څښل له پامه غورځوي او په موټر کې کور ته ځي |
| Der Angestellte geht heute arbeiten, obgleich er sehr stark erkältet ist. دا مستخدم نن كار ته ځي، سره له دې چې ډېر سخت ريزش يې كړی دی | Trotz seiner starken Erkältung geht der Angestellte heute arbeiten. له ډېر سخت ريزش سره سره دا مستخدم نن كار ته ځي |

## Nominalisierung finaler Nebensätze
## د نيت يا قصد كولو په جملو كې اسم جوړونه

كله چې (Finalsatz) په اسم بدل شي نو بيا د (damit) په ځای (zwecks, zu, für) استعماليږي. لاندينی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| damit | zwecks (+ Genitiv), zu (+ Dativ)<br>für (+ Akkusativ) |

مثالونه به په لانديني جدول كې وګورو:

| Finalsatz (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Man baut Fabriken, damit neue Arbeitsplätze geschaffen werden. نوي فابريكې جوړيږي، د دې لپاره چې خلكو ته كار پيدا شي | Zwecks Schaffung neuer Arbeitsplätze baut man Fabriken. خلكو ته د كار پيداكولو په موخه فابريكې جوړيږي |
| Autos werden gebaut, damit wir uns schneller fortbewegen können. موټرونه د دې لپاره جوړيږي چې مونږ له يوه ځايه بل ځای ته په چټكۍ سره تللی وشو | Zur schnelleren Fortbewegung werden Autos gebaut. له يوه ځايه بل ځای ته د چټك تګ لپاره موټرونه جوړيږي |
| Man sollte neue Straßen bauen, damit der Verkehr schneller fließen kann. نوي سړكونه بايد جوړ شي، د دې لپاره چې ترافيك په چټكۍ تللی وشي | Für einen schnelleren Verkehrsfluss sollte man neue Straßen bauen. په چټكۍ د ترافيك د تللو لپاره بايد نوي سړكونه جوړ شي |
| Er geht zum Arzt, damit er gesund wird. هغه ډاكټر ته ځي، د دې لپاره چې روغ شي | Zur Genesung geht er zum Arzt. د رغېدو لپاره هغه ډاكټر ته ځي |

## Nominalisierung konditionaler Nebensätze په شرطیه جملو کې اسم جوړونه

کله چې (Konditionalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (wenn) په ځای (bei, zu, ohne, durch) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| wenn, falls | bei (+ Dativ), zu (+ Dativ)<br>für (+ Akkusativ), durch (+ Akkusativ)<br>im Falle (+ Genitiv) |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Konditionalsatz (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Ich ärgere mich, wenn du dich verspätest. کله چې ته ناوخته راشي، نو زما اعصاب خرابیږي | Im Falle deiner Verspätung ärgere ich mich. ستا د ناوخته راتګ په صورت کې زما اعصاب خرابیږي |
| Jeder wird entlassen, wenn Diebstahl begangen wird. که غلا وشي، نو هر څوك شړل کیږي | Bei Diebstahl wird jeder entlassen. د غلا په صورت کې هر څوك شړل کیږي |
| Jeder wird belohnt, falls er besonders fleißig ist. که یو څوك ډیر زحمت کښ وي، ورته انعام ورکول کیږي | Bei besonderem Fleiß wird jeder belohnt. د ډیر زحمت په صورت کې هرچا ته انعام ورکول کیږي |
| Wenn es regnet, machen wir den Ausflug nicht. که چیرته باران وشي، نو مونږ مېلې ته نه ځو | Bei Regen machen wir den Ausflug nicht. په باران کې مونږ مېلې ته نه ځو |
| Wenn es keinen Sauerstoff gibt, ist man tot. که اکسیجن نه وي، نو سړی مړ دی | Ohne Sauerstoff ist man tot. بې له اکسیجنه سړی مړ دی |
| Wenn er aus der Partei austritt, wird seine Position sehr schwach werden. که چیرته هغه له ګوند نه ووځي، نو د هغه دریځ به ډیر کمزوری شي | Durch seinen Austritt aus der Partei wird seine Position sehr schwach werden. له ګوند نه د هغه د وتلو په صورت کې به د هغه دریځ ډیر کمزوری شي |

## Nominalisierung konsekutiver Nebensätze
## د نتیجه اخیستلو په جملو کې اسم جوړونه

کله چې (Konsekutivsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (dass, so dass) په ځای (infolge) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| dass, so dass | infolge (+ Genitiv) |

مثالونه به په لاندیني جدول کي وګورو:

| Konsekutivsatz<br>(Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung<br>(nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Es war so heiß, dass viele ältere Menschen starben.<br>هوا دومره توده وه چي ډېر زاړه انسان مړه شول | Infolge der großen Hitze starben viele ältere Menschen.<br>د ډېري ګرمی په وجه ډېر زاړه انسانان مړه شول |
| Es gab viel zu wenig Wasser, so dass viele Pflanzen eingingen. اوبه ډېري لږي وې چي په پایله کي یې ډېر بوټي وچ شول | Infolge des Wassermangels gingen viele Pflanzen ein.<br>د اوبو د کموالي په وجه ډېر بوټي وچ شول |
| Es fielen keine Niederschläge, so dass es vielerorts zu Waldbränden kam.<br>څه ورښت ونشو، چي په پایله کي یې په ډېرو ځایونو کي ځنګلونو اور واخیست | Infolge mangelnder Niederschläge kam es vielerorts zu Waldbränden.<br>د ورښت د کموالي په پایله کي په ډېرو ځایونو کي ځنګلونه وسوځېدل |
| Es war so trocken, dass viele Flüsse austrockneten. هوا دومره وچه وه چي ډېر سیندونه وچ شول | Viele Flüsse trockneten infolge der Trockenheit aus.<br>د وچي هوا په پایله کي سیندونه وچ شول |

## Nominalisierung adversativer Nebensätze

### د اختلا□ بیانولو په جملو کي اسم جوړونه

کله چي (Adverbialsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (während) په ځای (im Gegensatz zu) کارول کیږي. لاندینی جدول ته وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| während | im Gegensatz zu (+ Dativ) |

مثالونه به په لاندیني جدول کي وګورو:

| Adversativsatz<br>(Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung<br>(nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Seine Frau ist sehr fleißig, während er selbst sehr faul ist.<br>د هغه مېرمن ډېره خواري کښه ده، په داسي حال کي چي هغه پخپله ډېر لټ دی | Im Gegensatz zu seiner Frau ist er selbst sehr faul.<br>د خپلي مېرمني په پرتله هغه ډېر لټ دی |
| Die Mutter ist sehr klein, während ihre Kinder sehr groß sind. مور یې ډېره ټیټه ده، په داسي حال کي چي ماشومان یې ډېر دنګ دي | Im Gegensatz zu ihrer Mutter sind die Kinder sehr groß.<br>د خپلي مور په پرتله ماشومان ډېر دنګ دي |
| Der Vater ist ein Pessimist, während sein Sohn alles optimistisch sieht.<br>پلار یې هر شي ته نهیلی دی، په داسي حال کي چي زوی یې هر څه ته خوشبین دی | Im Gegensatz zu seinem Vater ist der Sohn ein Optimist. د خپل پلار په پرتله زوی یې هر شي ته خوشبین دی |
| Während die einen sich freuten, waren die anderen eher enttäuscht.<br>په داسي حال کي چي یوه ډله ډېره خوښه وه، بله ډله ډېره مأیوسه وه | Im Gegensatz zu den einen waren die anderen eher enttäuscht.<br>د یوي ډلي په پرتله دا بله ډله ډېره مأیوسه وه |

## Nominalisierung modaler Nebensätze

## د ځرنګوالي ښکاره کولو په جملو کې اسم جوړونه

کله چې (Modalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (indem + dadurch dass) په ځای (durch, mittels, unter, mit) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| indem, dadurch dass | durch (+ Akkusativ), unter (+ Akkusativ) mit (+ Dativ), mittels (+ Genitiv) |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Modalsatz (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Man kann das Herz einer Frau erobern, indem man ihr Komplimente macht. سړی کولی شي چې د یوې ښځې زړه په دې لاس ته راوړي چې ستاینه یې وکړي | Das Herz einer Frau kann man durch Komplimente erobern. سړی د یوې ښځې زړه په ستاینې لاس ته راوړی شي |
| Man kann ihr Herz dadurch erobern, dass man ihr Interesse weckt. سړی د هغې زړه هغه وخت ګټلی شي چې سړی د هغې علاقه راوېښه کړي | Mit dem Wecken ihres Interesses kann man ihr Herz erobern. د هغې د علاقې په راویښولو سړی د هغې زړه ګټلی شي |
| Er erreichte sein Ziel, indem er sehr fleißig arbeitete. هغه خپل هدف ته په دې ورسیدو چې هغه ډېر زحمت وویستو | Durch viel Fleiß erreichte er sein Ziel. په ډېر زحمت ویستلو هغه خپل هدف ته ورسیدو |

## Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „wenn“ und „als“

## د (wenn + als) د مهال یا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه

کله چې (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (wenn + als) په ځای (bei, mit, in, an) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| wenn, als | bei (+ Dativ), mit (+ Dativ), an (+ Dativ) in (+ Dativ) |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „wenn + als“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Ich komme nach Hause, wenn die Dämmerung beginnt. زه کور ته هغه وخت راځم چې تیاره پیل شي | Bei Beginn der Dämmerung komme ich nach Hause. د تیاره کېدو په پیل کې زه کور ته راځم |

| | |
|---|---|
| Das Kind ist immer glücklich, wenn der Opa zu Besuch kommt. ماشوم تل ډېر خوشحاله وي چې نيکه يې ليدو ته ورشي | Bei Opas Besuch ist das Kind immer glücklich. د نيکه په ورتګ ماشوم تل خوشحاله وي |
| Sie hat jedes Mal bitterlich geweint, wenn sie Liebeskummer hatte. کله به چې هغې ته د مينې غم به ورپه ياد شو، نو هر ځل به يې په اوښکو اوښکو ژړل | Bei Liebeskummer weinte das Mädchen immer bitterlich. د مينې د غم په ورپه يادېدو به هغې نجلۍ په اوښکو اوښکو ژړل |
| Er ist ausgewandert, als er 20 Jahre alt war. کله چې هغه شل کلن و، بل هېواد ته يې کډه وکړه | Er ist mit 20 Jahren ausgewandert. هغه په شل کلنۍ کې بل هېواد ته کډه وکړه |
| Sein Vater ist gestorben, als er noch ein Kind war. د هغه پلار هغه وخت مړ شو چې دی لا ماشوم و | Sein Vater ist bereits in seiner Kindheit gestorben. د هغه پلار د هغه په ماشومولۍ کې مړ شو |
| Wenn es Abend wird, werden wir aufhören zu arbeiten. کله چې ماښام شو، نو مونږ به کار بس کړو | Am Abend hören wir mit der Arbeit auf. په ماښام کې مونږ کار بسوو |

**Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „während“**

**د (während) د مهال یا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه**

کله چې (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بيا د (solange) په ځای (während) کارول کيږي. خو داسي هم کېدی شي چې (während) په اصلي او فرعي جملو کې راشي. لاندينی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| solange | während (+ Genitiv) |
| während | während (+ Genitiv) |

مثالونه به په لانديني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „solange, während“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Die Frau stopft die Socken, während das Fußballspiel lief. په هغه وخت کې چې د فوټبال لوبه روانه وه، ښځې جورابي پيوندوي | Während des Fußballspiels stopft die Frau die Socken. د فوټبال د لوبې په وخت دا ميرمن جورابي پيوندوي |
| Während mein Vater das Geschirr abwusch, schälte meine Mutter Kartoffeln. په هغه وخت کې چې زما پلار چيني لوښي پرېمينځلې، زما مور کچالان سپينول | Während des Abwaschens des Geschirrs schälte meine Mutter Kartoffeln. د چيني لوښو د پرېمينځلو په وخت کې زما مور کچالان سپينول |

| | |
|---|---|
| Während wir feierten, haben wir uns gestritten. په هغه وخت کې چې مونږ محفل لمانځو، مونږ له یو بل سره شخړه وکړه | Während der Feier haben wir uns gestritten. د محفل د لمانځلوپه مهال کې مونږ له یو بل سره شخړه وکړه |
| Solange du abwesend bist, betrete ich die Wohnung nicht. تر هغه پورې چې ته غیرحاضر یې، زه استوګنځي ته نه ننوځم | Während deiner Abwesenheit betrete ich die Wohnung nicht. ستا د غیرحاضرۍ په وخت زه استوګنځي ته نه ننوځم |

**Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „seitdem“**
**د (seitdem) د مهال یا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه**

کله چې (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (seitdem) په ځای (seit) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| seitdem | seit |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „seitdem“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung mit „seit“ (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Ich lerne Deutsch, seitdem ich in Deutschland lebe. له هغه وخت راهیسي چې زه په جرمني کې یم، زه جرمني ژبه زده کوم | Ich lerne seit meiner Ankunft in Deutschland Deutsch. جرمنی ته د راتګ له وخت راهیسي زه جرمني ژبه زده کوم |
| Ich wohne hier, seitdem ich verlobt bin. له هغه وخت راهیسي چې ما کوژده کړېده، زه دلته اوسیږم | Ich wohne hier seit meiner Verlobung. د خپلې کوژدې راهیسي زه دلته اوسیږم |
| Ich liege im Krankenhaus, seitdem ich den schweren Unfall hatte. له هغه وخت راهیسي چې ما سخت ټکر کړی و، زه په روغتون کې پروت یم | Seit meinem schweren Unfall liege ich im Krankenhaus. زما له سخت ټکر راهیسي زه په روغتون کې پروت یم |

**Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „solange“**
**د (solange) د مهال یا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه**

کله چې (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (solange) په ځای (während) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| solange | während (+ Genitiv) |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „solange“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung mit „während“ (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Das Kind muss still sitzen bleiben, solange der Frisör seine Haare schneidet. تر هغه پورې چې نايي وېښته يې بياتي کوي، ماشوم بايد غلی ناست واوسي | Während des Haareschneidens muss das Kind still sitzen bleiben. د وېښتو د بياتي کولو په وخت کې ماشوم بايد غلی ناست واوسي |
| Der Schnee bleibt liegen, solange der Winter bleibt. تر هغه پورې چې ژمی دی، واوره پرته پاتې ده | Während des ganzen Winters bleibt der Schnee liegen. د ټول ژمي په موده کې واوره پرته پاتې کېږي |

**Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „bis“**
**د (bis) د مهال يا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه**

کله چې د (bis) سره (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بيا (bis) په دواړو جملو کې استعمالیږي، خو په فرعي جمله کې د فعل سره او په اصلي جمله کې د اسم سره. له (bis zu) نه هم کار اخيستل کيږي. لاندینی جدول ته وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| bis | bis, bis zu (+ Dativ) |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „bis“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung mit „bis“ (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Sein Vater hat ihn finanziell unterstützt, bis er mit dem Studium fertig war. تر هغه پورې چې د هغه تحصیل خلاص شو، د هغه پلار ورسره مالي مرسته کړېده | Sein Vater hat ihn bis zum Ende seines Studiums finanziell unterstützt. د هغه پلار د هغه د تحصيل تر خلاصېدو پورې له هغه سره مالي مرسته وکړه |
| Ich habe in diesem Haus gewohnt, bis ich geheiratet habe. تر هغه پورې چې ما واده وکړو، زه په دې کور کې اوسېدم | Bis zu meiner Hochzeit habe ich in diesem Haus gewohnt. زما تر واده پورې زه په دې کور کې واوسېدم |
| Das Schwimmbad hat geöffnet, bis der Sommer zu Ende geht. تر هغه پورې چې اوړی پای ته رسیږي د لامبو ډنډ پرانيستی دی | Das Schwimmbad hat bis Endes des Sommers geöffnet. د اوړي تر پایه پورې د لامبو ډنډ پرانيستی دی |

## Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „bevor + ehe“
## د (bevor + ehe) د مهال يا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه

کله چې د (bevor + ehe) سره (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بيا د (bevor + ehe) په ځای (vor) کارول کيږي. لاندینی جدول ته وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| bevor, ehe | vor (+ Dativ) |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „bevor + ehe“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung mit „vor“ (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Es geschah, zwei Wochen bevor er starb. دوه اونۍ مخکې له دې نه چې هغه مړ شي، دا پېښه وشوه | Es geschah zwei Wochen vor seinem Tod. دا پېښه دوه اونۍ د هغه له مړینې نه مخکې وشوه |
| Der kleine Junge las das Buch aus, bevor er sich schlafen legte. مخکې له دې چې دا وړوکی هلک ځملي، کتاب یې تر پایه پورې ولوست | Vor dem Schlafen las der kleine Junge das Buch noch aus. د ځملاستو نه مخکې وړوکي هلک کتاب تر پایه پورې ولوست |

## Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „nachdem“
## د (nachdem) د مهال یا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه

کله چې له (nachdem) سره (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (nachdem) په ځای (nach) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| nachdem | nach |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „nachdem“ (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung mit „nach“ (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Du setzt dich erst an den Tisch, nachdem du dir deine Hände gewaschen hast. وروسته له دې چې تا لاسونه دې پرېمینځل، بیا د ډوډۍ مېز ته کښېنه | Setz dich erst nach dem Händewaschen an den Tisch. ته د لاسونو د پرېمینځلو نه وروسته بیا د ډوډۍ مېز ته کښېنه |
| Das Kind darf spielen, nachdem es seine Hausaufgaben gemacht hat. وروسته له دې چې ماشوم خپله کورنۍ وظیفه وکړه، بیا ورته اجازه ده چې لوبې وکړي | Das Kind darf nach den Hausaufgaben spielen. د کورنۍ وظیفې د خلاصولو نه وروسته ماشوم ته اجازه ده چې لوبې وکړي |
| Nachdem ich gegessen hatte, legte ich mich hin. وروسته له دې چې ما ډوډۍ وخوړله، بیا ځملاستلم | Nach dem Essen legte ich mich hin. له ډوډۍ نه وروسته بیا زه ځملاستم |

## Nominalisierung temporaler Nebensätze mit „sobald“
## د (sobald) د مهال یا وخت ښودلو په جملو کې اسم جوړونه

کله چې له (sobald) سره (Temporalsatz) په اسم بدل شي نو بیا د (sobald, sowie) په ځای (sofort nach, gleich nach) کارول کیږي. لاندینی جدول به وګورو:

| Konjunktion | Präposition |
|---|---|
| sobald, sowie | sofort nach, gleich nach |

مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Temporalsatz mit „sobald" (Hauptsatz + Nebensatz) | Nominalisierung mit „sofort nach + gleich nach" (nur Hauptsatz) |
|---|---|
| Ich komme nach Hause, sobald ich mit der Arbeit fertig geworden bin. هرڅومره ژر چې زما کار خلاص شو، زه کور ته راځم | Ich komme sofort nach der Arbeit nach Hause. د کار له خلاصېدو نه وروسته زه سمدلاسه کور ته راځم |
| Ich mähe den Rasen, sobald ich den Wagen gewaschen habe. هرڅومره ژر چې ما دا موټر پرېمينځو، بیا کبله رېبم | Gleich nach der Wagenwäsche mähe ich den Rasen. د موټر مینځلو نه وروسته زه سمدلاسه کبله رېبم |
| Ich richte es ihm aus, sowie er nach Hause gekommen ist . هر څومره ژر چې هغه کور ته راغی، زه یې ورته وایم | Sofort nach dem Nachhausekommen richte ich es ihm aus. کور ته له راتګ سره سم زه سمدلاسه یې ورته وایم |

**Übungen**: Bilden Sie Nominalsätze!

1. Es gab große Hitze, deshalb starben viele ältere Menschen.
   ډېره ګرمي وه، نو ځکه ډېر زاړه انسانان مړه شول
   Nominalsatz: ……………………………………………………………
   د ډېرې ګرمۍ په وجه ډېر انسانان مړه شول
2. Obwohl der Arbeiter stark erkältet ist, geht er heute arbeiten.
   سره له دې چې کارګر والګي (زکام) نیولی دی، هغه نن بیا هم کار ته ځي
   Nominalsatz: ……………………………………………………………..……..
   د خپل والګي سره سره مستخدم بیا هم کار ته ځي
3. Obwohl ich ihm schon geholfen habe, schaffte er die Prüfung nicht.
   سره له دې چې ما ورسره مرسته وکړه، هغه بیا هم په ازموینه کې بریالی نشو
   Nominalsatz: ……………………………………………………………………
   زما د مرستې سره سره هغه په ازموینه کې بریالی نشو
4. Er wartete unter einem Baum, solange der Regen dauerte.
   تر هغه پورې چې باران ورېدو، هغه له یوې ونې لاندې صبر وکړو
   Nominalsatz: ……………………………………………………………
   د ټول باران د ورېدو په وخت هغه د یوې ونې لاندې انتظار وویست
5. Der Schnee bleibt liegen, solange der Winter dauert.
   تر هغه پورې چې ژمی دوام کوي، واوره پرته پاتې کیږي
   Nominalsatz: ……………………………………………………………
   د ټول ژمي په موده کې واوره پرته پاتې کیږي

6. Seitdem die Diktatur zusammengebrochen ist, sind nun viele Jahre vergangen. له هغه وخت راهیسې چې دیکتاتوري نسکوره شوېده، اوس ډېر کلونه تېر شوي دي
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د دیکتاتورۍ له نسکورېدو راهیسې اوس سل کاله تېر شوي دي
7. Seitdem der Bericht veröffentlicht worden ist, ist es um dieses Thema still geworden. له هغه وخت راهیسې چې دا رپوټ خپور شوی دی، دا موضوع غلې شوېده
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د دې رپوټ له خپرېدو راهیسې دا موضوع غلې شوې ده
8. Sobald ich den Wagen gewaschen habe, mähe ich den Rasen.
کله چې ما موټر پرېمینځو، زه کبله رېبم
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د موټر له مینځلو نه وروسته سمدلاسه زه کبله رېبم
9. Sobald das Spiel beginnt, musst du laut schreien.
په هغه شېبه چې لوبه پیل شوه، ته په زوره چیغه ووهه
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د لوبې له پیل نه وروسته ته سمدلاسه په زوره چیغه ووهه
10. Bevor er starb, schrieb er sein bekanntes Werk.
مخکې له دې چې هغه مړ شي، هغه خپل مشهور اثر ولیکو
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د خپلې مړینې نه مخکې هغه خپل مشهور اثر ولیکو
11. Es ist nicht möglich, die Bewertung durchzuführen, bevor dieses Programm zu Ende ist. مخکې له دې چې دا پروګرام پای ته ورسیږي، دا نشي کېدی چې ارزونه یې وشي
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د دې پروګرام له پای ته رسېدو نه مخکې ارزونه یې نشي کېدی
12. Nachdem der Schüler überlegt hatte, beantwortete er die Frage des Lehrers.
وروسته له دې چې زده کوونکي سوچ وکړو، نو بیا د ښوونکي پوښتنې ته یې ځواب ورکړو
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د سوچ وهلو نه وروسته زده کوونکي د ښوونکي پوښتنې ته ځواب ورکړو
13. Nachdem der Krieg zu Ende war, begannen die Friedensverhandlungen.
وروسته له دې چې جګړه پای ته ورسېده، د سولې خبرې اترې پیل شوې
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د سرې جګړې له پای ته رسېدو نه وروسته د سولې خبرې اترې پیل شوې
14. Ich habe hier gewohnt, bis ich heiratete.
تر هغه پورې چې ما واده وکړو، زه دلته اوسېدم
Nominalsatz: ……………………………………………………………
زما تر واده پورې زه په برلین کې واوسېدم
15. Bis der Bericht veröffentlicht wird, bleibe ich still.
تر هغه پورې چې دا رپوټ خپرول کیږي، زه غلی پاتې کیږم
Nominalsatz: ……………………………………………………………
د رپوټ تر خپرېدو پورې زه غلی پاتې کیږم
16. Während sie sich die Zähne putzt, schaut sie in den Spiegel.
په هغه وخت کې چې هغه خپل غاښونه پاکوي، هغه په هینداره کې ګوري
Nominalsatz: …………………………………………………………….
د غاښونو د پاکولو په وخت کې هغه په هینداره کې ګوري

17. Während wir im Urlaub sind, kümmern sich die Nachbarn um unser Haus.
په هغه وخت کې چې مونږ په رخصتۍ تللي يو، زمونږ ګاونډيان زمونږ د کور پالنه کوي
Nominalsatz: ………………………………………………………………..
زمونږ د رخصتۍ په موده کې زمونږ ګاونډيان زمونږ د سپي پالنه کوي
18. Als der Film begann, fühlte ich mich sehr müde.
کله چې فلم پيل شو، ما ځان ډېر ستړی احساسو
Nominalsatz: ………………………………………………………………
د فلم د پيل په وخت کې ما ځان ډېر ستړی احساسو
19. Wenn uns die Oma besucht, ist unser Kind immer glücklich.
کله چې انا زمونږ ليدو ته راشي، زمونږ ماشوم تل خوشحاله وي
Nominalsatz: ………………………………………………………………
د انا د راتګ په وخت زمونږ ماشوم تل خوشحاله وي
20. Der Schüler löste die Aufgabe, indem er das Wörterbuch benutzte.
زده کوونکي پوښتنه په دې حله کړه چې له ډکشنرۍ نه يې کار واخيست
Nominalsatz: ………………………………………………………………
زده کوونکي پوښتنه له ډکشنرۍ نه د کار اخيستنې په مرسته حله کړه
21. Ich kann das Radio ausschalten, indem ich den Knopf unten rechts drehe.
زه راډيو په دې مړه کوی شم، چې په لاندې ځای کې ښي اړخ ته تنۍ تاوه کړم
Nominalsatz: ………………………………………………………………
ښي اړخ ته د لانديني تنۍ په تاوولو زه راډيو مړه کوی شم
22. Du kannst abnehmen, indem du viel trainierst.
ته خپل وزن په دې کموی شې چې ډېر تمرين وکړې
Nominalsatz: ………………………………………………………………
په ډېر تمرين باندې ته خپل وزن کموی شې
23. Wenn du dich verspätest, dann ärgere ich mich.
کله چې ته ناوخته راشې، نو زما اعصاب په دې خرابيږي
Nominalsatz: ………………………………………………………………
زما د همکارانو په ناوخته راتګ زما اعصاب خرابيږي
24. Wenn du dich verbesserst, bekommst du eine Belohnung.
که ته لاپسې ښه شې، تا ته يو انعام درکول کيږي
Nominalsatz: ………………………………………………………………
د لاپسې ښه کېدو په صورت تا ته انعام درکول کيږي
25. Wenn er so gut verdient, kann er sich ein neues Auto kaufen.
که هغه دومره ډېرې پيسې ګټي، نو کوی شي چې ځان ته يو نوی موټر په بيه واخلي
Nominalsatz: ………………………………………………………………
په دومره ډېرو پيسو ګټلو هغه کوی شي چې په اسانۍ سره هسپانيې ته په رخصتۍ ولاړ شي
26. Wenn du nicht mitgehst, gehe ich nirgendwohin.
که چېرته ته راسره رانشې، زه هېڅ چېرته نه ځم
Nominalsatz: ………………………………………………………………
بې له تا زه هېڅ چېرته نه ځم
27. Wenn der Tag anbricht, machen wir uns auf den Weg.
کله چې ورځ پيل شوه، مونږ حرکت کوو
Nominalsatz: ………………………………………………………………
د ورځې د پيل کېدو سره مونږ حرکت کوو

28. Wir treffen uns, um Informationen auszutauschen.

مونږ له يو بل سره د دې لپاره ګورو چې معلومات تبادله کړو

Nominalsatz: …………………………………………………………

د معلوماتو د تبادلې په موخه مونږ د يو بل سره ګورو

29. Er ist sehr schnell. Dafür ist er bekannt. هغه ډېر چټك دی. په دې هغه مشهور هم دی

Nominalsatz: …………………………………………………………

هغه پخپلې چټکتيا مشهور دی

30. Wir müssen handeln. Dazu sind wir gezwungen.

مونږ بايد عمل وکړو. دې ته مونږ مجبور يو

Nominalsatz: …………………………………………………………

مونږ عمل کولو ته مجبور يو

**Lösungen**:

1. Infolge der großen Hitze starben viele ältere Menschen.
2. Trotz seiner starken Erkältung geht der Arbeiter heute arbeiten.
3. Trotz meiner Hilfe hat er die Prüfung nicht geschafft.
4. Während des dauernden Regens wartete er unter einem Baum.
5. Während des ganzen Winters bleibt der Schnee liegen.
6. Seit dem Zusammenbruch der Diktatur sind nun viele Jahre vergangen.
7. Seit der Veröffentlichung des Berichts ist es um dieses Thema still geworden.
8. Gleich nach der Wagenwäsche mähe ich den Rasen.
9. Sofort nach dem Beginn des Spieles musst du laut schreien.
10. Vor seinem Tode schrieb er sein bekanntes Werk.
11. Es ist nicht möglich, die Bewertung vor dem Ende dieses Programms durchzuführen.
12. Nach der Überlegung beantwortete der Schüler die Frage des Lehrers.
13. Nach dem Ende des Krieges begannen die Friedensverhandlungen.
14. Bis zu meiner Hochzeit habe ich hier gewohnt.
15. Bis zur Veröffentlichung des Berichts bleibe ich still.
16. Während des Zähneputzens schaut sie in den Spiegel.
17. Während unseres Urlaubs kümmern sich die Nachbarn um unser Haus.
18. Bei Beginn des Films fühlte ich mich müde.
19. Bei Omas Besuch ist unser Kind immer glücklich.
20. Der Schüler löste die Aufgabe durch das Benutzen des Wörterbuchs.
21. Durch die Drehung des Knopfes rechts unten kann man dieses Radio ausschalten.
22. Durch viel Training kannst du abnehmen.
23. Im Falle deiner Verspätung ärgere ich mich.
24. Im Falle deiner Verbesserung bekommst du eine Belohnung.
25. Bei dem Verdienst kann er sich ein neues Auto kaufen.
26. Ohne dich gehe ich nirgendwohin.
27. Bei Tagesanbruch machen wir uns auf den Weg.
28. Zwecks Austausch von Informationen treffen wir uns.

29. Er ist für seine Schnelligkeit bekannt.
30. Wir sind zur Handlung gezwungen.

## Kausale Nebensätze (Nebensätze des Grundes)
## علت بیانوکي جملې، سبب ښودونکي جملې

علت بیانونکي جملې هغه جملې دي چې په فرعي جملې کې د یوې خبرې علت یا موخه (انګېزه) وښايي. د دې خبرو په برخه کې سرې داسې پوښتنې کولی شي:

| warum ولې | weshalb په کومه وجه | weswegen د څه لپاره | wieso څنګه | aus welchem Grund په کوم علت، په کومه موخه |
|---|---|---|---|---|

د دې پوښتنو د ځواب لپاره دا الفاظ راتلی شي:

| weil ځکه چې | da ځکه چې، په دې چې | zumal په تېره بیا په دې چې |
|---|---|---|

مثالونه:

| Hauptsatz | | Nebensatz |
|---|---|---|
| warum | Warum hast du den Rasen nicht gemäht? تا ولې کبله نده رېبلې؟ | |
| | Ich konnte den Rasen nicht mähen, ما کبله نشوه رېبلی | weil der Rasenmäher kaputt gegangen ist. ځکه چې د وښو رېبلو ماشین خراب شوی دی |
| weshalb | Weshalb bist du nicht in der Schule? ته په کوم علت ښوونځي ته نه يې تللی | |
| | Ich bin heute nicht in die Schule gegangen, زه نن ښوونځي ته نه یم تللی | weil ich starke Kopfschmerzen hatte. ځکه چې زما ډېر سر خوږېدو |
| weswegen | Weswegen weint das kleine Mädchen?دا وړه نجلی ولې ژاړي؟ | |
| | Es weint, هغه ژاړي | weil es vor dem großen Hund Angst hat. ځکه چې هغه له دې غټ سپي نه داریږي |
| wieso | Wieso freut sie sich so? هغه ولې دومره خوشحاله ده؟ | |
| | Sie freut sich so, هغه خوشحاله ده | weil sie eine wichtige Prüfung bestanden hat. ځکه چې هغه په یوې مهمې ازموینې کې بریالۍ شوه |

د (weil) او (da) په مانا کې څه توپیر نشته. د دواړو مانا ده (په دې چې، ځکه چې). خو بیا هم لږ څه توپیر پکې شته او هغه دا دی چې کله چې یو مهم علت یادیږي، نو هغه وخت (weil) استعمالیږي، خو کله

چي علت دومره قوي نه وي يا دا چي دا علت له پخوا راهيسي څرګند وي، نو هغه وخت (da) کارول کيږي. راځي.

| Nebensatz | Hauptsatz |
| --- | --- |
| Da ich starke Kopfschmerzen hatte, په دې چې زما ډېر سر خوږېدو | bin ich heute nicht in die Schule gegangen. زه نن ښوونځي ته ولاړ نشوم |
| Da es vor dem großen Hund Angst hat, په دې چې هغه د دې غټ سپي نه ډارېږي | weint das kleine Mädchen. دا وړه نجلۍ ژاړي |

د (zumal) مانا هم لکه د (weil) او (da) په شان (په دې چې، ځکه چې) ده، خو استعمال يې ځانته ځای لري. (zumal) هغه وخت استعماليږي چې په جمله کې د دليل لپاره له دې نه مخکې يو علت ليکل شوی وي، يا په بل عبارت علت يې لږ او ډېر له پخوا نه څرګند وي. نو د علت د ټينګولو يا قوي کولو لپاره بيا (zumal) ورسره يوځای کيږي. مثال:

| Hauptsatz | Nebensatz |
| --- | --- |
| Ich hole gerne das Buch für dich ab, زه به تا ته دا کتاب درووړم | zumal ich heute Nachmittag sowieso in die Stadt fahre. په دې چې زه هسې هم نن ماسپښين ښار ته ځم |
| Wir sollten ihn nicht mit Fragen belästigen, مونږ بايد په ډېرو پوښتنو د هغه مزاحمت ونکړو | zumal wir ihn gar nicht kennen. په دې چې مونږ هغه هسې هم هيڅ نه پيژنو |
| Bei dem schlechten Wetter bleiben wir heute lieber zu Hause, ښه به دا وي چې په دې خرابې هوا کې مونږ نن په کور کې پاتې شو | zumal auch ein guter Film im Fern-sehen kommt. په دې چې هسې هم په ټلويزيون کې يو ښه فلم راځي |

د هغه ځا چې جرمني ژبه يې پر مخ تللي وي، نو د هغوی لپاره لاندينې اصطلاحات ياديږي:

| | |
| --- | --- |
| umso mehr als/umso weniger als | په دې چې ځکه چې، |

د دې اصطلاحاتو نه هغه وخت کار اخيستل کيږي چې د اصلي دليل يا علت نه غير يو بل علت هم ورسره يوځای شي.
مثال:

| Hauptsatz | Nebensatz |
| --- | --- |
| Ich hole gerne das Buch für dich ab, زه به تا ته دا کتاب درووړم | umso mehr als ich heute Nachmittag sowieso in die Stadt fahre. په تېره بيا په دې چې زه هسې هم نن ماسپښين ښار ته ځم |
| Wir sollten ihn nicht mit Fragen belästigen, مونږ بايد په ډېرو پوښتنو د هغه مزاحمت ونکړو | umso weniger als wir ihn gar nicht kennen. په تېره بيا په دې چې مونږ هغه هسې هم هيڅ نه پيژنو |

## Temporale Adverbien mit „solange + währenddessen“

مهالي جملې په لاندې ليکل شوو دواړو قيدونو باندې هم جوړېدی شي:

| | |
|---|---|
| währenddessen = په دې لړ کې، په دغه وخت کې | solange = ترهغه پورې |

دا به په دې ډول وي چې دا به دوه بېلې اصلي جملې وي او د دواړو جملو ترمينځ به يو ټکی وي چې جملې له يو بل نه بېلې شي. مثالونه لاندې وګورئ:

| Hauptsatz 1 لومړی اصلي جمله | Hauptsatz 2 دوهمه اصلي جمله |
|---|---|
| Der Mann sieht sich das Fußballspiel an. سړی د فوټبال لوبه ګوري | Solange stopft seine Frau die Socken. تر هغه پورې مېرمن يې جورابې پيوندوي |
| Die Mutter kocht. مور پخلی کوي | Währenddessen telefoniert die Tochter ständig. په دغه ټول وخت کې لور يې په ټيلفون کولو بوخته ده |

دا شان جملې په يو (Hauptsatz) او په يو (Nebensatz) هم جوړېدی شي، په لاندې ډول:

| 1. Nebensatz | 2. Hauptsatz |
|---|---|
| Während die Mutter kochte, په دغه وخت کې چې مور پخلی کوه، | telefonierte die Tochter ständig. لور يې په ټيلفون کولو بوخته وه |
| **1. Hauptsatz** | **2. Nebensatz** |
| Die Tochter telefonierte ständig, لور پرله پسې په ټيلفون کولو بوخته وه، | während die Mutter kochte. په دغه وخت کې چې مور يې پخلی يې کوه |

په دريمه جمله کې دا شان مطلب تش په يو (Hauptsatz) هم بيانېدلی شي، په دې ډول:

| Hauptsatz |
|---|
| Während des Kochens telefonierte die Tochter ständig. د پخلي په وخت لور ټيلفون کوه |

| | |
|---|---|
| په پورتنی برخه کې يو مطلب په دوه بېلو بېلو اصلي جملو (Hauptsatz 1 + Hauptsatz 2) بيان شوېدی. په منځنۍ برخه کې همدا مطلب په يوې جملې بيان شوېدی چې يوه يې اصلي او بله يې فرعي جمله ده چې دا دواړه جملې (1. Nebensatz + 2. Hauptsatz) په يوې کامې (,) له يو بل نه بېلې دي. په لاندينۍ برخه کې همدا مطلب په يوه لنډه جمله کې بيان شوېدی چې هغه تش (Hauptsatz) ده. | تشريحات |

په پورتنی برخه کې يو مطلب په دوه بېلو بېلو اصلي جملو (Hauptsatz 1 + Hauptsatz 2) بيان شوېدی.
په منځنۍ برخه کې همدا مطلب په يوې جملې بيان شوېدی چې يوه يې اصلي او بله يې فرعي جمله ده چې دا دواړه جملې (1. Nebensatz + 2. Hauptsatz) په يوې کامې (,) له يو بل نه بېلې دي.
په لاندينۍ برخه کې همدا مطلب په يوه لنډه جمله کې بيان شوېدی چې هغه تش (Hauptsatz) ده.

## Temporale Adverbien mit „seitdem“

مهالي جملې په دوه اصلي جملو یا (Hauptsatz) کې راتلی شي، د دواړو جملو تر مینځ یو تکی لیکل کیږي. مثال:

| Hauptsatz 1 لومړی اصلي جمله | Hauptsatz 2 دوهمه اصلي جمله |
|---|---|
| Ich lebe seit 2 Jahren in Deutschland. زه د دوه کلو راهیسې په جرمني کې اوسیږم | Seitdem lerne ich Deutsch. له هغه وخت راهیسې زه جرمني ژبه زده کوم |
| Ich bin ihr das erste Mal auf einer Party begegnet. زه له هغې سره د لومړي ځل لپاره په یو محفل کې مخامخ شوم | Seitdem liebe ich sie. له هغه وخت راهیسې له هغې سره زما مینه ده |
| Wir haben uns vor 1 Jahr verlobt. مونږ یو کال مخکې کوژده وکړه | Seitdem arbeite ich auch in dieser Firma. له هغه وخت راهیسې زه په دې کمپنۍ کې کار هم کوم |
| Anfang des Jahres hatte ich einen Autounfall. د کال په پیل کې ما یو د موټر ټکر وکړو | Ich muss seither im Krankenhaus liegen. له هغه وخت راهیسې زه باید په روغتون کې پاتې شم |

همدا مطلب په یو(Hauptsatz) او په یو (Nebensatz) کې، په لاندې ډول:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Seitdem ich ihr das erste Mal begegnet bin, له هغه وخت راهیسې چې زه له هغې سره د لومړي ځل لپاره مخامخ شوی یم | liebe ich sie. له هغې سره زما مینه ده |
| **Hauptsatz** | **Nebensatz** |
| Ich liebe sie, له هغې سره زما مینه ده | seitdem ich ihr das erste Mal begegnet bin. له هغه وخت راهیسې چې زه له هغې سره د لومړي ځل لپاره مخامخ شوی یم |

همدا مطلب په تش په یو (Hauptsatz) کې، په لاندې ډول:

| Hauptsatz |
|---|
| Seit unserer ersten Begegnung liebe ich sie. زمونږ د لومړي ځل د مخامخېدو راهیسې هغه زما خوښه ده |

## Temporale Adverbien mit „solange“

مهالي جملې په دوه اصلي جملو یا (Hauptsatz) کې راتلی شي، د دواړو جملو تر مینځ یو تکی لیکل کیږي. مثال:

| Hauptsatz 1 | Hauptsatz 2 |
|---|---|
| Der Frisör schneidet die Haare des Kindes. نایي د ماشوم ویښته بیاتي کوي | Es muss solange still sitzen bleiben. تر هغه پورې باید هغه غلی ناست پاتې شي |

| | |
|---|---|
| Die Autobahn ist nach dem Unfall noch gesperrt. د ټکر نه وروسته لویه لار لا تر اوسه پورې تړلې ده | Solange müssen die Autofahrer im Stau stehen bleiben. تر هغه پورې دریوران مجبور دي چې په بندیز کې ولاړ پاتې شي |
| Der Winter bleibt bis März. ژمی تر مارچ میاشت پورې پاتې کیږي | Solange bleibt auch der Schnee liegen. تر هغه پورې به واوره هم پرته وي |

همدا مطلب په یو (Hauptsatz) او په یو (Nebensatz) کې په لاندې ډول:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Solange der Winter bleibt,<br>تر هغه پورې چې ژمی دی | bleibt auch der Schnee liegen.<br>واوره به هم پرته پاتې ویوي |
| **Hauptsatz** | **Nebensatz** |
| Der Schnee bleibt liegen,<br>واوره به پرته پاتې وي | solange der Winter bleibt.<br>تر هغه پورې چې ژمی پاتې دی |

همدا مطلب تش په یو (Hauptsatz) کې په لاندې ډول:

| Hauptsatz |
|---|
| Während des Winters bleibt der Schnee liegen. د ژمي په لړ کې واوره پرته پاتې وي |

# Temporale Adverbien mit „bis dahin“

د وخت بیانولو یا مهالي جملې په (bis dahin) هم ویل کېدی شي چې مانا یې ده (تر هغه پورې). خو دا به په دوه اصلي جملو وي چې دا دواړه جملې به په یو تکي د یو بل نه بېلې وي.

| Hauptsatz 1 لومړی اصلي جمله | Hauptsatz 2 دوهمه اصلي جمله |
|---|---|
| Im Herbst geht der Sommer zu Ende.<br>په مني کې اوړی پای ته رسیږي | Bis dahin bleibt der Laden geöffnet.<br>تر هغه پورې دکان پرانیستی دی |
| In einem Monat habe ich Prüfungen.<br>په یوې میاشتې کې زما ازموینې دي | Bis dahin muss ich viel lernen.<br>تر هغه پورې زه باید ډېر درس ووایم |
| Der Bus kommt in einer Stunde.<br>سرویس په یو ساعت کې راځي | Bis dahin musst du hier warten.<br>تر هغه پورې ته باید دلته انتظار وباسې |

همدا مطلب په یو (Hauptsatz) او په یو (Nebensatz) کې په لاندې ډول:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Bis der Sommer zu Ende geht,<br>تر هغه پورې چې اوړی پای ته رسیږي | bleibt der Laden geöffnet.<br>دکان پرانیستی دی |
| **Hauptsatz** | **Nebensatz** |
| Der Laden bleibt geöffnet,<br>دکان به پرانیستی وي | bis der Sommer zu Ende geht.<br>تر هغه پورې چې اوړی پای ته رسیږي |

| Nebensatz | |
|---|---|
| Bis der Sommer zu Ende geht, | تر هغه پورې چې اوړی پای ته رسيږي |

همدا مطلب تش په يو (Hauptsatz) کې په لاندې ډول:

| Hauptsatz |
|---|

**Ungleichzeitigkeit د مختلفو وختونو پېښې**

د وخت بيانولو جملې يا مهالي جملې چې يوه پېښه په دوه مختلفو وختونو کې بيانوي، يعنې لومړی يو کار کيږي او وروسته بل کار، د (Präposition-Nomen-Konstruktionen) يعني د يو اسم سره د نسبتي حرف په يوځای کولو هم جوړېدی شي. دا په دې مانا چې دا جمله به يوه جمله او هغه به تش اصلي جمله وي او فرعي جمله به پکې هېڅ نه وي. کوم نسبتي حرف يا (Präposition) چې په دغه جمله کې پکارېږي، هغه (vor + Dativ) دی، چې مانا يې ده (له يو کار نه مخکې). دا مطلب په لاندينيو جملو کې وګورو:

| | |
|---|---|
| Wasch dir vor dem Hinsetzen an den Tisch deine Hände.<br>د ډوډۍ مېز ته د کېناستلو نه مخکې ته لاسونه دې پرېمينځه | |
| Vor der Antwort überlegte er noch kurz.<br>له ځواب نه مخکې هغه لنډ غوندې له ځانه سره فکر وکړو | |
| Das Kind muss vor dem Spielen seine Hausaufgaben machen.<br>د لوبې نه مخکې ماشوم بايد خپله کورنۍ وظيفه سرته ورسوي | |
| Vor dem Schlafen las sie das Buch noch aus.<br>په کټ کې د څملاستلو نه مخکې هغې دا کتاب تر پايه پورې ولوست | |

د وخت بيانولو يا مهالي جملې په (davor), (vorher), (zuvor) هم استعمالېدی چې د درېواړو مانا ده: (له دې نه مخکې) . د دې څرګندولو لپاره به لاندينۍ جملې وګورو:

| Hauptsatz 1 | Hauptsatz 2 |
|---|---|
| Du möchtest dich an den Tisch setzen?<br>ته غواړې چې د ډوډۍ مېز ته کېنې؟ | Wasch dir vorher deine Hände.<br>له هغې نه مخکې ته لاسونه دې پرېمينځه |
| Er anwortete mir. هغه ما ته ځواب راکړو | Zuvor überlegte er jedoch noch kurz.<br>له هغې نه مخکې هغه د لنډ وخت لپاره له ځانه سره فکر وکړو |
| Das Kind darf spielen.<br>ماشوم ته اجازه ده چې لوبې وکړي | Davor muss es aber seine Hausaufgaben machen. له هغې نه مخکې هغه بايد خپله کورنۍ وظيفه سر ته ورسوي |
| Sie legte sich endlich schlafen.<br>هغه ايله په ايله په کټ کې څملاسته | Vorher las sie allerdings das Buch noch aus. خو له هغې نه مخکې يې دا کتاب تر پايه پورې ولوست |

همدا مطلب په يو (Hauptsatz) او په يو (Nebensatz) کې په لاندې ډول:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Bevor du dich an den Tisch setzt,<br>مخکې له دې چې ته د ډوډۍ مېز ته کېنې | wasch dir deine Hände.<br>ته لاسونه دې پرېمينځه |

| Hauptsatz | Nebensatz |
|---|---|
| Du sollst dir deine Hände waschen,<br>ته باید لاسونه دې پرېمينځې | bevor du dich an den Tisch setzt.<br>مخکې له دې چې ته د ډوډۍ ميز ته کېنې |

همدا مطلب تش په يو (Hauptsatz) کې په لاندې ډول:

| Hauptsatz |
|---|
| Wasch dir vor dem Hinsetzen deine Hände. د ناستې نه مخکې ته لاسونه دې پرېمينځه |

weitere Temporale Adverbien نور مهالي قيدونه

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| anschließend<br>د دې په پای کې | erst<br>لومړی دا | zuerst<br>لومړی دا | dann<br>له دې نه<br>وروسته | sofort<br>سمدلاسه | gleich<br>سمدلاسه |

| Hauptsatz 1 | Hauptsatz 2 |
|---|---|
| Zuerst muss ich die Arbeit beenden.<br>ړومبی باید زه کار خلاص کړم | Erst dann kann ich nach Hause gehen.<br>او بيا له هغې نه وروسته کوی شم چې کور ته<br>ولاړ شم |
| Der Krieg war ausgebrochen.<br>جګړه پيل شوې وه | Danach ging er sofort nach Hause.<br>له هغې نه وروسته هغه سمدلاسه کور ته ولاړ |
| Der Schaden wurde festgestellt.<br>تاوان څرګند کړی شو | Sofort danach wurde der Eigentümer benachrichtigt. لـه هـغـې نه وروسـتـه سـمـدلاسه<br>خاوند ته يې احوال ورکړل شو |

همدا مطلب په يو (Hauptsatz) او په يو (Nebensatz) کې په لاندې ډول:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Sobald die Arbeit beendet ist, ډېر ژر<br>وروسته له دې چې کار مې خلاص شو | komme ich nach Hause. زه کور ته راځم |
| **Hauptsatz** | **Nebensatz** |
| Ich komme nach Hause, زه کور ته راځم | sobald die Arbeit beendet ist. ډېر ژر<br>وروسته له دې چې کار خلاص شو |

همدا مطلب تش په يو (Hauptsatz) کې په لاندې ډول:

| Hauptsatz |
|---|
| Gleich nach der Arbeit komme ich nach Hause. ډېر ژر د کار نه وروسته زه کور ته راځم |

# Konditionalsätze = Bedingungssätze د شرط ايښودلو جملې، شرطيه جملې

شرطيه جملې هغه جملې دي چې د يو کار د ترسره کولو لپاره پرې يو شرط کېښودل شي. هغه پوښتنې چې په دې حالت کې کيږي هغه دا دي:

| | |
|---|---|
| wann und unter welchen Bedingungen | کله او په کوم شرط |

د مثال په توګه کله چې يو هلك له يوې نجلی نه پوښتنه وکړي چې:

| | |
|---|---|
| Unter welcher Bedingung heiratest du mich? | ته په کوم شرط له ما سره واده کوې؟ |

نو نجلی ورته په ځواب کې ووايي چې:

| | |
|---|---|
| Wenn du Millionär bist. | کله چې ته مليونر شوې |

شرطيه جملې هغه فرعي جملې دي چې د تړاو په دغه حرفونو يا (Konjunktionen) پيل شي:

| | | |
|---|---|---|
| wenn که چېرته | falls که چېرته | sofern که چېرته ، په دې شرط چې |

کومه پوښتنه چې دغه حالاتو کې کيږي، هغه دا ده: (کله = wann?). اوس به مثالونه له دريواړو (Konjunktion) سره په جملو کې وګورو:

| sofern په دې شرط چې، هله چې | |
|---|---|
| Nebensatz | Hauptsatz |
| Sofern ich es schaffe,<br>که چېرته زه په دې وتوانيږم | werde ich früher kommen.<br>زه به وخته راشم |
| Sofern das Wetter schön bleibt,<br>که چېرته هوا ښه پاتې شي | machen wir morgen einen Ausflug.<br>مونږ سبا په مېله ځو |
| Hauptsatz | Nebensatz |
| Ich komme morgen, زه سبا راځم | sofern du nichts dagegen hast.<br>که چېرته ستا څه مخالفت نه وي |
| Ich fahre mit dem Fahrrad,<br>زه په بايسکل ځم | sofern es nicht regnet.<br>که چېرته باران ونشي |

فرعي جملې ځينې شرايط يادوي چې د هغې نتيجه او د ترسره کېدلو حالات په اصلي جملو کې بيانيږي. کله چې سړی يو شرط ردوي، نو د هغې تر سره کېدل په پخواني وخت کې نه بلکې په اوسني وخت کې وي. نو په دې اساس شرطيه جملې يا (Bedingungssätze) په پخواني وخت کې نشي ويل کېدی.

| falls که چېرته، که خامخا | |
|---|---|
| Nebensatz | Hauptsatz |
| Falls du Probleme hast,<br>که چېرته ته څه ستونځې لرې | ruf mich unbedingt an.<br>ما ته هرومرو تيلفون وکړه |
| Falls es regnet, که چېرته باران وشي | bleiben wir zu Hause.<br>مونږ په کور کې پاتې کيږو |
| Falls wir uns nicht noch einmal sehen,<br>که چېرته مونږ يوبل يوځل بيا نه وينو | gebe ich dir den Schlüssel gleich.<br>زه درته سمدلاسه کيلي درکوم |

| Hauptsatz | Nebensatz |
|---|---|
| Wir können es auch verschieben,<br>مونږ کوی شو چې دا کوم بل وخت ته وځنډو | falls du heute keine Zeit hast.<br>که چیرته ته نن وخت نلرې |
| Ich habe zusätzliche Kopien gemacht,<br>ما څه اضافه کاپي ګاني وکړې | falls wir noch mehr brauchen.<br>که چیرته زمونږ نورې ډیرې پکارې شي |
| Ich werde selbst kommen,<br>زه به پخپله راشم | falls nötig! که چیرته اړتیا وي |

د شرط په حیث (falls) هغه وخت کارول کیږي چې په جمله کې هېڅ شك نه وي او خبره سل په سلو کې ډاډمنه وي.

| wenn که چیرته | |
|---|---|
| **Hauptsatz** | **Nebensatz** |
| Wann ärgerst du dich? ته کله په قهریږې؟ | |
| Ich ärgere mich, زه په قهرکیږم | wenn du dich verspätest.<br>که چیرته ته ناوخته راشي |
| Wann werden Mitarbeiter entlassen? کله همکاران له کاره شړل کیږي؟ | |
| Mitarbeiter werden entlassen,<br>همکاران له کاره شړل کیږي | wenn sie stehlen. که چیرته هغوی غلا وکړې |
| Wann gibt es Lohnerhöhungen? کله به حق الزحمې لوړې شي؟ | |
| Es gibt Lohnerhöhungen,<br>حق الزحمې لوړیږي | wenn die Mitarbeiter fleißig sind.<br>که چیرته همکاران خوریکښ واوسي |

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Wenn du dich verspätest,<br>کله چې ته ناوخته کار ته راشي | ärgere ich mich. زه په قهریږم |
| Wenn die Mitarbeiter stehlen,<br>کله چې همکاران غلا وکړې | werden sie fristlos entlassen.<br>هغوی سمدلاسه له کاره شړل کیږي |
| Wenn meine Mitarbeiter fleißig sind,<br>که چیرته زما همکاران خواریکښ واوسي | gibt es Lohnerhöhungen.<br>حق الزحمې لوړیږي |

د شرط په حیث (wenn) ډیر وخت په اوسني وخت کې کارول کیږي. که چیرته په راتلونکي وخت کې وکارول شي، نو دا جمله به ډاډمنه او یقیني جمله نه وي، بلکې احتمالي او شکمنه جمله وي.

په پخواني وخت کې سرې شرط نشي ایښودلی، نو که څوك بیا هم کوم شرط ږدي، نو دا به یو خیالي شرط وي. خیالي خبرې په (Konjunktiv) کیږي چې دا مبحث څو پاڼې وروسته تشریح شوی دی. نو اوس به په لنډ دول په پخواني وخت کې یوه شرطیه جمله ووینو:

| |
|---|
| Wenn ich gestern ein Fahrrad gehabt hätte, wäre ich zu dir gekommen.<br>که ما پرون یو بایسکل درلودلی، نو زه به تا ته درغلی وای |

کله کله یوه شرطیه فرعي جمله د جملي په سر کي راځي او د جملي په دوهمه برخه کي د شرط د ادا کېدو په وجه نتیجه یې راځي. نو په داسي یوه جمله کي د اصلي جملي په سر کي (dann) او یا (so) راځي. مثال.

| | |
|---|---|
| Wenn er sein Diplom hat, dann kann er als Ingenieur arbeiten.<br>کله چي هغه خپل دیپلوم واخیستو نو بیا هغه کوی شي چي کي د انجنیر په حیث کار وکړي | |
| Falls der Ölpreis sinken sollte, so wird auch das Benzin wieder billiger werden.<br>که چېرته د تېلو نرخ ټیټ شي، نو پټرول به بیا ارزانه شي | |

دا ضرور ندي چي (wenn) هرومرو د یوي شرطیه جملي په سر کي راشي. د (wenn) په ځای د جملي په سر کي یو فعل هم راتلی شي. په دې وخت کي د جملي جوړښت داسي دی لکه یوه سوالیه جمله چي جوړیږي. دا په دې مانا چي د جملي په سر کي تش یو فعل راځي. مثال:

| Verb Position 1 د جملي په سر کي فعل | Hauptsatz اصلي جمله |
|---|---|
| Verspätest du dich,<br>که چېرته ته ناوخته راشي | ärgere ich mich. زه په قهرېږم |
| Stehlen die Mitarbeiter,<br>که چېرته همکاران غلا وکړي | werden sie entlassen.<br>هغوی له کاره شړل کیږي |
| Sind die Mitarbeiter fleißig,<br>که چېرته همکاران خواریکښ واوسي | gibt es Lohnerhöhungen.<br>حق الزحمه به لوړه شي |

یوه شرطیه جمله د (Präposition-Nomen-Konstruktionen) یعني له یو اسم سره د نسبتي حرف په یوځای کولو هم جوړېدی شي. دا په دې مانا چي دا جمله به یوه جمله او هغه به تش اصلي جمله وي او فرعي جمله به پکي هېڅ نه وي. کوم نسبتي حرف یا (Präposition) چي په دغه جمله کي پکاریږي، هغه دا دي:

| | | |
|---|---|---|
| bei په ... صورت کي | im Falle په ... صورت کي | ohne... بې له |

مثالونه:

| | |
|---|---|
| im Falle | Im Falle eines Autounfalls sollte man die Polizei benachrichtigen. د موټر د ټکر په صورت کي سړی باید پولیس ته خبر ورکړي |
| | Im Falle meines Todes bekommt mein Sohn mein Auto.<br>زما د مړیني په صورت کي زما موټر زما د زوی په لاس کي ولیږي |
| | *Im Falle eines Falles* که چېرته په ریښتیا همداسي پېښه وشي |
| bei | Bei so starkem Regen sind sie spazierengegangen.<br>په داسي سخت باران کي هغوي په چکر ولاړل |
| | Bei Regen gehen wir nicht spazieren.<br>د باران په صورت کي مونږ په چکر نه ځو |
| | Er hat sich beim Sport das Bein gebrochen.<br>د سپورټ په وخت کي د هغه پښه ماته شوه |
| | Bei schönem Wetter machen wir morgen eine Bergwanderung.<br>د ښې هوا په صورت کي مونږ سبا په غرو کي قدم وهو |
| | Beim Tod seines Vaters war er erst 25 Jahre alt.<br>د خپل پلار د مړیني په وخت کي هغه ۲۵ کلن و |
| ohne | Er ging ohne Gruß an mir vorbei. هغه بې له سلامه زما له څنګ نه تېر شو |

| | |
|---|---|
| | Das Spiel endete ohne Verletzungen. لوبه بې له ټپي کېدو پای ته ورسېدله |
| | *ohne Fleiß kein Preis* بې زحمته راحت نشته (متل) |
| | Sie trennten sich ohne Abschied. هغوی بې له خدای پامانی له یو بل نه بېل شول |

**Differenzierte Bedingungssätze بېلې بېلې تشریح شوی شرطیه جملې**

د دې لپاره چې یو شرط په ډېر څرګند ډول بیان شي، نو له دې لاندې لیکل شوو اصطلاحاتو نه هم کار اخیستل کیږي. خو په داسې حالت کې (dass-Satz) په فرعي جمله کې راځي او د اصلي جملې په سر کې (dann) او یا (so) راځي. د فرعي جملو په سر کې دغه الفاظ راځي چې لاندې لیکل شویدي:

| | |
|---|---|
| angenommen فرضاً، دا سې فرض وکړه چې | unter der Bedingung په دې شرط چې |
| vorausgesetzt شرط یې دا دی چې | gesetzt den Fall که داسې وشي چې |

مثالونه په جملو کې:

| |
|---|
| Angenommen, dass der Angeklagte die Wahrheit sagt, dann muss er freigesprochen werden. که فرضاً تورن (متهم) حقیقت ووایي، نو باید هغه برائت واخلي |
| Vorausgesetzt, dass ich den Zug erreiche, dann komme ich schon morgens um 8 Uhr. په دې شرط چې زه اورګاډي ونیولی شم، نو زه د سهار له مخې په ۸ بجو راځم |
| Gesetzt den Fall, dass Herr Jakob unser Chef wird, so gibt es viel Ärger im Büro. که داسې وشي چې ښاغلی یعقوب زمونږ آمر شي، نو په دفتر کې به ډېرې شخړې وشي |
| Unter der Bedingung, dass du ehrlich arbeitest, bekommst du den Posten. په دې شرط چې ته په اخلاصمندی کار وکړې، تا ته دا منصب درکول کیږي |

که چېرته (dass-Satz) استعمال نشي، نو په ځای یې یوه اصلي جمله یا (Hauptsatz) راتلی شي:

| |
|---|
| Gesetzt den Fall, Herr Jakob wird unser Chef, dann gibt es viel Ärger im Büro. که داسې وشي چې ښاغلی یعقوب زمونږ آمر شي، نو په دفتر کې به ډېرې شخړې راپېښې شي |
| Angenommen, der Angeklagte sagt die Wahrheit, dann muss er freigesprochen werden. فرضاً تورن حقیقت ووایي، نو باید هغه برائت واخلي |
| Vorausgesetzt, ich erreiche den Zug, so komme ich schon morgens um 8 Uhr. په دې شرط چې زه اورګاډي ونیولی شم، نو زه د سهار له مخې په ۸ بجو راځم |

**Konditionale Adverbien شرطیه قیدونه**

ځینې شرطیه قیدونه د دوه اصلي جملو تر منځ اړیکې راتینګولی شي. دا قیدونه دا دي:

| | |
|---|---|
| anderenfalls او که داسې ونشي نو، او کنه نه نو | sonst او که نه نو |

دا دواړه قیدونه په دوه بېلو بېلو اصلي جملو کې استعمالیږي. خو د دې دوه جملو نه یوه جمله یې باید منفي وي، یعني یو کار چې باید وشي، په هغه جمله کې نکیږي. د دې مطلب د څرګندولو لپاره به لاندینیو جملو ته وګورو:

| Hauptsatz 1 | Hauptsatz 2 |
|---|---|
| Geh spielen, wenn du keine Kopf-schmerzen hast.<br>که سر دې نه خوږیږي، نو لوبو ته ولاړ شه | Anderenfalls leg dich ins Bett.<br>او که نه نو په کټ کې څمله |
| Ich muss jetzt schlafen.<br>زه باید اوس ویده شم | Sonst bin ich Morgen zu Nichts zu gebrauchen.<br>او که نه نو سبا هیڅ شی زما له واکه پوره ندي |
| Ich muss einen Kredit aufnehmen.<br>زه باید یو کرېډت واخلم | Anderenfalls muss ich meinen Laden schließen. او که نو زه باید خپله هټی وتړم |
| Du solltest besser lernen.<br>ته باید لاپسې ښه درس ولولې | Andernfalls wirst du die Prüfung nicht bestehen.<br>او که نه نو په ازموینه کې به بریالی نشي |
| Ich schließe immer meine Tür ab.<br>زه تل خپله دروازه تړم | Sonst könnte ja jeder einfach so hineinkommen.<br>او که نه نو هر څوك په اسانی راننوتلی شي |

## Konsekutivsätze (Nebensätze der Folge)
## د نتیجې اخیستلو، پند یا د عبرت اخیستلو جملې

د یوې پېښې نه د نتیجې، د پند یا عبرت اخیستلو او یا د متقابل اقدام کولو جملې (Konsekutivsätze) په دې ډول جوړیږي چې لومړی یو مطلب یا یوه خبره یا یوه پېښه په یوې اصلي جملې (Hauptsatz) کې یادول کیږي. د دې مطلب د نتیجې او یا د متقابل اقدام کولو لپاره فرعي جملې بیا د اصلي جملې نه وروسته راځي. د دې لپاره چې دا دواړه جملې له یو بل سره ونښلول شي، نو په مینځ کې یې دغه (Konjunktion) لیکل کیږي چې په لاندې برخه کې لیدل کیږي:

| | |
|---|---|
| so dass په نتیجه کې یې، په پایله کې یې | sodass په نتیجه کې یې، په پایله کې یې |

دا (Konjunktion) د 2006 کال د لیکدود د ریفورم په اساس په پورتنو دواړو ډولو لیکل کېدی شي.

Der Sommer war viel zu heiß. Es gab über Monate keinen Regen. Was war die Folge? اوړی ډېر تـود و. ډېـرې میاشتې باران ونشو. د دې په نتیجه کې څه پیښ شول؟

د پورتنی جملې پایله یا عاقبت په لاندې (Hauptsatz) او (Nebensatz) کې یاد شوېدی:

| Hauptsatz | Nebensatz / Infinitivkonstruktion |
|---|---|
| Es gab viel zu wenig Wasser,<br>اوبه ډېرې لږې وې | so dass viele Pflanzen eingingen.<br>چې په نتیجه کې یې ډېر بوټي وچ شول |
| Es fielen keine Niederschläge,<br>هیڅ ورښت ونشو | so dass es vielerorts zu Waldbränden kam. چې په پایله کې په ډېرو ځایو کې ځنګلونو اور واخیست |

(so dass)  په دوه برخو وېشل کېدی هم شي، یعني (so) په اصلي جمله کې او (dass) په فرعي جمله

مانا د دوه برخي کېدلو په وجه لږ څه بدلیږي. مانا به یې داسي وي:(so dass)کې. د

| |
|---|
| (so)  دومره ....                او           (dass)  چې .... |

کله  چې سړی وایي  (دومره = so) ، نو دلته پوښتنه پیدا کیږي چې دومره ډېر، دومره لږ، دومره تنګ، دومره ارت، دومره خوښ او که دومره خپه او یا دومره څه شی؟ نو په دې وجه (دومره = so) د یو صفت کچه او یا اندازه ښایي. خو دوهمه جمله بیا دا ښایي چې دا صفت چې ډېر یا لږ دی، عاقبت یې څنګه دی؟ د دې په نتیجه کې د یو چا عکس العمل څنګه دی؟ ګټه او تاوان یې څه دی؟ نو د نتیجې د بیانولو لپاره د (dass) کلمه استعمالیږي. یعني  دومره ډېر یا دومره لږ چې په نتیجه کې یې ...

د (دومره = so) په ځای (په دا شان = derart) او یا (په دې اندازه = dermaßen) هم استعمالېدی شي.
مثال:

| |
|---|
| Das Kind erschrak so heftig, dass es laut weinte.<br>ماشوم دومره ډېر وډار شو، چې په ژړا شو |
| Ich war dermaßen müde, dass ich es nicht mehr allein nach Hause schaffte.<br>زه دومره ستړی وم چې ومې نکړی شول چې یوازې کور ته ولاړ شم |

کله چې د یو شي اندازه دومره مهمه نه وي، بلکې نتیجه یې مهم وي، نو بیا په جمله کې (sodass) استعمالیږي، مثال:

| |
|---|
| Er hat sich verletzt, sodass er beim Spiel nicht eingesetzt werden konnte.<br>هغه ټپي شو، چې په دې وجه لوبې ته پرې نښودل شو |

د نتیجې اخیستلو جمله د (Präposition-Nomen-Konstruktionen) یعني له یو اسم سره د  نسبتي حرف په یوځای کولو هم جوړېدی شي. دا په دې مانا چې دا جمله به یوه جمله او هغه به تش اصلي جمله وي او فرعي جمله به پکې هېڅ نه وي. کوم نسبتي حرف یا (Präposition) چې په دغه جمله کې پکاریږي، هغه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| infolge (+ Genitiv) | د یو کار په وجه | infolge von (+ Dativ) | د یو کار په وجه |

دا مطلب به په لاندینیو جملو کې وګورو:

| |
|---|
| Infolge der großen Hitze starben viele ältere Menschen.<br>د ډېري ګرمی په وجه ډېر زاړه انسانان مړه شول |
| Infolge des Wassermangels gingen viele Pflanzen ein.<br>د اوبو د لږوالي په وجه ډېر بوټي وچ شول |

| | |
|---|---|
| Infolge mangelnder Niederschläge kam es vielerorts zu Waldbränden.<br>د ورښت د لږوالي په وجه په ډېرو ځايو کي ځنګلونو اور واخيست | |
| Viele Flüsse trockneten infolge der Trockenheit aus.<br>ډېر سيندونه د وچه وچوبي (وچکالی) په وجه وچ شول | |

### Konsekutive Adverbien د نتيجې اخيستلو قيدونه

د نتيجې اخيستلو جملې د لاندينو قيدونو په مرسته هم جوړيدی شي، خو دا به له يو بل نه بېلې بېلې دوه اصلي جملې وي چې د دواړو جملو تر مينځ به يو ټکی وي. دا قيدونه دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| deshalb<br>نو په دې وجه | deswegen<br>په دې وجه | daher<br>له دې کبله | also<br>ښه نو |
| darum<br>نو ځکه | folglich<br>په نتيجه کې يې | infolgedessen<br>د دې په نتيجه کې | |

په دې چې نتيجه له يوې پېښې نه وروسته لاس ته راځي، نو په دې وجه د نتيجې اخيستلو قيدونو سره جملې تل په دوهمه برخه کې راځي.

| Hauptsatz 1 | Hauptsatz 2 |
|---|---|
| Der Sommer war viel zu heiß.<br>دا اوړی زښت ډېر تود و | Infolgedessen starben viele ältere Menschen.<br>د دې په نتيجه کې ډېر زاړه انسانان مړه شول |
| Es gab viel zu wenig Wasser.<br>ډېرې لږې اوبه وې | Viele Pflanzen gingen deshalb ein.<br>نو له دې کبله ډېر بوټي وچ شول |
| Es fielen keine Niederschläge.<br>هيڅ ورښت ونشو | Folglich kam es vielerorts zu Waldbränden. نو<br>په نتيجه کې يې په ډېرو ځايو کې ځنګلونو اور واخيست |
| Der Sommer war sehr trocken.<br>اوړی ډېر وچ و | Daher trockneten viele Flüsse aus.<br>نو له دې کبله ډېر سيندونه وچ شول |
| Er war krank. هغه ناروغ و | Deswegen konnte er nicht zum Dienst kommen. نو ځکه هغه ونشو کړی چې دندې ته راشي |
| Ich brauche etwas frische Luft.<br>ما ته لږ څه تازه هوا پکار ده | Darum gehe ich jetzt nach draußen.<br>نو ځکه زه اوس بهر وځم |

### Konzessive Nebensätze (Nebensätze der Einschränkung)
### د اعترا□ کولو جملې، د محدوديت جملې

دا هغه جملې دي چې د يوې خبرې يا د يوې موضوع په بدل کې متقابل دليل وړاندې کوي، په يوه ادعا کې محدوديت راولي او يا په يوه خبره اعتراف کوي. د (Konzessivsatz) په فرعي جمله کې په يو چا يو شرط ايښودل کيږي او يا يوه ټينګه ادعا کيږي، په اصلي جمله کې هغه څه ويل کيږي چې د دې شرط په بدل کې پېښيږي او يا د دې ادعا په بدل کې کيږي، خو هغه به داسې نه وي څنګه چې دا شرط ايښودل شوی دی او يا ادعا شوېده، بلکې په هغه کې به محدوديت وي او يا هغه به بالکل برعکس وي. دې ته بې منطقه نتيجه اخيستنه هم وايي (unlogische Folge) .

دا مطلب که نور هم اسانه کړو نو دا سې به ووايو چې: يوه جمله داسې وايي چې يو چا ډېر کلونه زحمت وېستلی دی. په دې چې هغه دومره زحمت وېستلی دی، دا توقع کيږي چې نتيجه به يې ډېره ښه وي، نو

ځکه په بله جمله کې د یوې بنې نتیجې د یادولو تمه کیږي. خو د بنې نتیجې په ځای د توقع په خلاف خرابه نتیجه یادیږي. نو څنګه چې لیدل کیږي، په پښتو کې مونږ هم داسې وایو چې:

| | | |
|---|---|---|
| سره له دې چې هغه داسې ....، | خو بیا هم داسې ..... | دې سره سره بیا هم .... |

په جرمني ژبه کې (Konzessivsätze) په دغه (Konjunktion) یا ربطي حرفونو پیل کیږي:

| | |
|---|---|
| wenn … auch noch …, so … (doch)<br>که څه هم ...، نو بیا هم ... | obwohl, obgleich, obschon<br>سره له دې چې |

مثالونه به په جدولونو کې وینو:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| obwohl es regnete. سره له دې چې باران و | Er ging spazieren. هغه په چکر ولاړ |
| obgleich er schon zwei Jahre die Schule besucht. سره له دې چې هغه د دوه کلو راهیسې ښوونځي ته ځي | Der 8-jährige Josef kann noch nicht rechnen, اته کلن یوسف لا تر اوسه پورې حساب نشي کولی |
| obgleich er sich wochenlang darauf vorbereitet hat. سره له دې چې هغه د ډېرو اونیو راهیسې چمتووالی نیولی و | Der Student ist durch die Prüfung gefallen, محصل په ازموینه کې ناکام شو |
| obgleich er sehr krank ist. سره له دې چې هغه ډېر ناروغه دی | Er geht heute schwimmen, هغه نن لامبو ته ځي |
| wenn es auch noch sehr früh war. سره له دې چې ډېره وخته وه | Sie ging schon schlafen, هغه ویده شوه |
| wenn es auch sehr kalt ist. سره له دې چې ډېر ساړه دي | Ich fahre mit dem Rad zur Arbeit, زه په بایسکل کور ته ځم |
| wenn es auch heftig regnete. سره له دې چې ډېر باران ورېدو | Sie gingen im Park spazieren, هغوی په پارك کې چکر ووهو |

| Hauptsatz | Nebensatz |
|---|---|
| ging er spazieren. هغه په چکر ولاړ | Obwohl es regnete, سره له دې چې باران و |
| kann er immer noch nicht rechnen. هغه لا تر اوسه پورې حساب نشي کولی | Obschon Josef schon zwei Jahre die Schule besucht, سره له دې چې یوسف د دوه کلو راهیسې ښوونځي ته ځي |
| ist er durchgefallen. هغه په ازموینه کې پاتې راغی | Obwohl sich der Student wochenlang auf die Prüfung vorbereitet hatte, سره له دې چې محصل د ډېرو اونیو راهیسې چمتووالی نیولی و |
| geht er heute schwimmen. هغه نن لامبو ته ځي | Obgleich er sehr krank ist, سره له دې چې هغه ډېر ناروغه دی |
| ging sie dennoch schon schlafen. هغوی بیا هم ویده شول | War es auch noch so früh, سره له دې چې ډېره وخته وه |
| gingen sie im Park spazieren. هغوی په پارك کې چکر ووهو | Wenn es auch noch so heftig regnete, سره له دې چې ډېر باران ورېدو |

په ځینو جملو کې ځینې (Konjunktionen) په اصلي جمله کې ورسره یوځای کېدی شي. خو دا جبري ندي چي هرومرو به ورسره یوځای کیږي، خو که ورسره یوځای شي، نو په خبره کې به لاپسې نور ټینګار او تآکید راشي. دا (Konjunktionen) دا دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| dennoch بیا هم | doch بیا هم | trotzdem بیا هم | so بیا هم |

مثالونه:

| |
|---|
| Obwohl es noch sehr früh war, ging sie trotzdem schon schlafen.<br>سره له دې چي ډېره وخته وه، هغه بیا هم ویده شوه |
| Obgleich wir ihn nicht mögen, werden wir ihn dennoch einladen müssen.<br>سره له دې چي هغه زمونږ نه خوښیږي، خو بیاهم مونږ مجبور یو چي هغه ته بلنه ورکړو |
| Obwohl wir uns ständig streiten, sind wir doch gute Freunde.<br>سره له دې چي مونږ تل له یو بل سره شخړه کوو، خو بیا هم مونږ ښه ملګري یو |

کله کله له یو چا او یا له یو کار نه ډېره زیاته توقع کیږي، خو که چېرته بیا د توقع په خلاف توقع تر سره نشي او یا بالکل یو بل کار وشي، نو په دغه وخت کې د توقع د ښکاره کولو لپاره (obwohl) کفایت نکوي او په ځای یې لاندیني الفاظ راوستل کیږي:

| | |
|---|---|
| wenn … auch noch … , so … doch | سره له دې چي دومره ډېر ...، خو بیا هم ... |

مثالونه:

| |
|---|
| Wenn er sich auch noch so sehr bemühte, so gelang es ihm doch nicht, mit dem Rauchen aufzuhören. هرڅومره کوښښونه چي هغه وکړل، نو بیا هم هغه په دې بریالی نشو چي سګرټ خوشي کړي |
| Wenn es auch noch sehr früh war, gingen sie trotzdem schon schlafen.<br>سره له دې چي ډېره وخته وه، هغوی بیا هم ویده شول |
| Wenn es auch heftig regnete, gingen sie doch im Park spazieren.<br>سره له دې چي سخت باران وشو، هغوی بیا هم په پارك کې چکر ووهو |

په ځینو حالاتو کې کېدی شي چي په جمله کې (wenn) هېڅ یاد نشي او په بدل کې یې ګردان شوی فعل راځي، مثال:

| |
|---|
| Bemühte er sich auch noch so sehr, so gelang es ihm doch nicht, mit dem Rauchen aufzuhören. هرڅومره چي هغه خپل کوښښونه وکړل، خو بیا هم هغه په دې بریالی نشو چي سګرټ بس کړي |
| Ist es auch sehr kalt, fahre ich dennoch mit dem Rad zur Arbeit.<br>که هرڅومره ساړه هم وي، زه بیا هم په بایسکل کار ته ځم |

په دفترونو او په ادبي ژبه کې دا لاندې (Konjunktionen) هم کارول کیږي:

| | |
|---|---|
| obzwar, wiewohl, wenngleich... | سره له دې چي ... |

| |
|---|
| Ich beherrschte mich, wiewohl es mir nicht leicht fiel.<br>سره له دې چي ماته اسانه نه وه، خو بیا هم ځان مي کنټرول کړو |
| Sie nickte zustimmend, wiewohl sie es nicht recht verstanden hatte.<br>هغې د موافقې لپاره سر وخوځو، سره له دې چي پرې سمه پوهه شوې نه وه |

| | |
|---|---|
| Wiewohl es mir nicht gleichgültig war, musste ich zustimmen.<br>سره له دې چې ما ته بې تفاوته نه وه، زه مجبور وم چې ورسره موافقه وکړم | |
| Die Bankzinssätze blieben niedrig, obzwar sie im Herbst angehoben werden mussten.<br>د بانك سود ټيټ پاتې شو، سره له دې چې هغه بايد په منې كې جګ شوي واى | |

د (Konzessivsatz) لپاره نور (Konjunktion) يا ربطي حروف هم شته چې دا دي:

| sogar wenn, selbst wenn | ولو که ... ، حتی ....، ولو چې ... |
|---|---|

| | |
|---|---|
| Ich sage immer die Wahrheit, sogar wenn ich lüge.<br>زه هر وخت واقعيت وايم، حتی هغه وخت چې زه دروغ هم وايم | |
| Sogar wenn es regnet, ist die Regierung schuld!<br>ولو كه باران هم وشي، نو ګناه د حكومت ده | |
| Selbst wenn Sie Fleisch mögen, können Sie Tieren helfen.<br>ولو كه ستاسو غوښه خوښه هم وي، نو تاسو له ځارويو سره مرسته كولى شئ | |
| Lächle einfach, selbst wenn du innerlich zerbrichst.<br>ولو كه په دننه كې ستا زړه كې ماتيږي، خو بيا هم مسكى شه | |
| Wir verpassen den Bus, selbst wenn/sogar wenn wir rennen.<br>ولـو كـه مونږ منـډې هـم ووهو، سرويس له مونږ نه ځي | |

## Modale Nebensätze (Nebensätze der Art und Weise)
## څرنګوالی ښودونكي جملې، ډول ښودونكي جملې

(Modalsätze) هغه شان جملې دي چې لوستونكي ته ښايي چې يوه پيښه په كوم ډول، په څه شان، په كومه لار، په كومه وسيله شوېده. (Modalsätze) په خو ډولو دي چې هر ډول يې ځانته د تړاو حرف يا (Konjunktion) ته اړتيا لري. په لاندېني جدول كې په كيڼ اړخ كې د جملو ډولونه او په ښي اړخ كې د هغوی لپاره لازمه ربطي حرف يا (Konjunktion) ليكل شويدی. د جدول په پای كې د جملو هر ډول بېل بېل په تفصيل سره تشريح شوی دی.

| | |
|---|---|
| Instrumentalsatz د وسيلې ښودلو جمله | indem په دې وسيله، په دې لارې چې |
| | dadurch…dass په دې لارې چې |
| Modalsatz des fehlenden Begleit-umstandes<br>د ورسره نورو حالاتو د نه ښودل كېدو جمله | ohne dass بې له دې چې |
| | ohne…zu بې له دې چې |
| Modalsatz des stellvertretenden Begleitumstandes<br>د يو حالت په ځای د بل حالت د ښودلو جمله | (an) statt…dass په ځای د دې چې |
| | (an) statt…zu په ځای د دې چې |
| Restriktivsatz د محدوديت راوستلو جمله | (in) sofern, (in) soweit, soviel<br>په دې كې، په دې ټكي كې |
| | insofern…als, insoweit…als<br>په دې كي په دې ټكي كې |
| | außer dass, außer wenn, außer…zu<br>بې له دې چې |

| | |
|---|---|
| Vergleichssatz مقایسوي جمله، د يوبل سره د پرتله کولو جمله | wie, als, als ob, als wenn, wie wenn,<br>فقط لکه چې، ته به وايي چې |
| | je …desto …,   je…umso …<br>څومره چې … هومره … |

## 1. Instrumentalsatz   د وسيلې ښودلو جمله

په لغوي مانا (Instrument) ته په پښتو کې (وسيله، آله، اسباب) وايي. په ګرامر کې له دې نه مطلب دا دی چې په کومه وسيله، په کومه لار يو کار وشو يا يوه پيښه وشوه. دلته دا پوښتنه کيږي چې:

| | |
|---|---|
| Wie wird eine Handlung ausgeführt? | يو کار په کوم ډول او يا په څه شي باندې کيږي؟ |

د ځواب لپاره وسيله يې ياديږي. د وسيلې يادول په (indem) کيږي چې مانا يې ده (په دې، په دې شان، په دې وسيله). کله چې په يوه جمله کې (indem) راشي، نو فعل تل د جملې په پای کې راځي. مثالونه په جدول کې ګورو:

| |
|---|
| Du bekommst bessere Noten, indem du mehr lernst.<br>ستا نمرې په دې باندې نورې هم ښې کيږي چې ته لاپسې ډېر درس ولولې |
| Man kann Rückenschmerzen verhindern, indem man gymnastische Übungen macht. سړی کولی شي چې د ملا درد مخنيوی په دې وکړي چې جمناستيکي تمرينونه وکړي |
| Ich half ihm, indem ich ihm Geld gab.<br>ما له هغه سره په دې شان مرسته وکړه چې ما هغه ته پيسې ورکړې |
| Du kannst ihm eine Freude bereiten, indem du ihn einmal besuchst.<br>ته هغه په دې خوشحالولی شې چې يو ځل د هغه ليدو ته ورشې |
| Indem man Probleme einfach unterdrückt, löst man sie nicht.<br>که سړی ستونځې د پښو لاندې کړي، نو په دې ډول حلولی يې نشي |

د وسيلې د ښودلو جملې په (dadurch dass …) او (damit dass …) هم استعمالېدی شي چې مانا يې ده (په دې، په دې وسيله، په دې لار). د دې جملو لپاره پوښتنې په (wodurch, womit) کيږي چې مانا يې ده (په کومه وسيله، په څه شي باندې، په کومه لار) . مثالونه په لاندينې جدول کې ووينو.

| |
|---|
| Dadurch, dass sie zu spät kam, hat sie das Vorwort verpasst.<br>په دې چې هغه ناوخته راغله، نو سريزه ورنه پاتې شوه |
| Man kann Probleme nicht dadurch lösen, dass man sie unterdrückt.<br>سړی ستونځې په دې نشي حلولی چې سړی يې د پښو لاندې کړي |
| Dadurch, dass er uns sein Auto zur Verfügung stellte, hat er uns sehr geholfen.<br>په دې چې هغه خپل موټر زمونږ په اختيار کې کېښود، نو مونږ سره يې ډېره مرسته وکړه |
| Dadurch, dass sie jünger und hübscher ist, hat sie viele Vorteile.<br>په دې چې هغه له نورو نه ځوانه او ښايسته ده، نو ډېرې ګټې يې په لاس کې دي |

**Übungen:**

Bilden Sie bitte Instrumentalsätze mit „indem“ bzw. mit „dadurch … dass“!

1. Wie kann man eine Sprache lernen? Man muss täglich viele Stunden üben.
سړی څنګه کولی شي چې یوه ژبه زده کړي؟ سړی باید هره ورځ ډېر ساعتونه تمرین وکړي

……………………………………………………………………………

2. Wie kann man bei Regen trocken bleiben? Man bleibt zu Hause.
سړی څنګه په بارانه کې وچ پاتې کېدی شي؟ سړي په کور کې پاتې کیږي

……………………………………………………………………………

3. Wie begrüßen wir uns? Wir geben uns die Hand.
مونږ له یو بل سره څنګه ستړي مشي کوو؟ مونږ یو بل ته لاس ورکوو

……………………………………………………………………………

4. Wie begrüßen sich zwei Japaner? Sie verbeugen sich tief.
دوه جاپانیان له یو بل سره څنګه ستړي مشي کوي؟ هغوي یو بل ته سر ټیټوي

……………………………………………………………………………

5. Wie schützt man sich vor Kopfverletzungen? Man trägt einen Helm.
سړی څنګه خپل سر له ټپي کېدلو نه ژغوري؟ سړی د اوسپنې خولۍ په سروي

……………………………………………………………………………

6. Wie kann man sein Fahrrad vor Dieben schützen? Man schließt es ab.
سړی څنګه خپل بایسکل له غلو نه بچولی شي؟ سړي ورته کلپ اچوي

……………………………………………………………………………

7. Wie kann man eine schlechte Regierung loswerden? Man wählt sie ab.
سړی څنګه کولی شي چې یو خراب حکومت هیسته کړي؟ سړي د اعتماد رآی ورنه اخلي

……………………………………………………………………………

8. Wie kann man einsamen Menschen eine Freude machen? Durch einen Besuch.
سړی څنګه د یوازې انسانانو زړونه خوشحالولی شي؟ سړی لیدو ته یې ورځي

……………………………………………………………………………

9. Wie vermehren sich Bakterien? Durch Teilung.
مکروبونه څنګه زیاتیږي؟ په دوه برخې کېدو

……………………………………………………………………………

10. Wie kann man das Unfallrisiko vermindern? Durch vorsichtiges Verhalten.
سړی څنګه د ټکر خطر کمولی شي؟ په احتیاطي چلند

……………………………………………………………………………

11. Wie kann man Probleme nicht lösen? Man unterdrückt sie.
سړی څنګه ستونځې نشي حلولی؟ سړی یې د پښو لاندې کوي

……………………………………………………………………………

12. Wie entstehen Wege? Man geht sie.
لارې څنګه جوړیږي؟ سړی پرې ځي

……………………………………………………………………………

13. Wie rächt man sich an seinen Feinden am besten? Man wird besser als sie.
سړی له خپلو دښمنانو نه ډېر ښه غچ څنګه اخلي؟ سړی له هغوی نه لاپسې ښه کیږي

……………………………………………………………………………

14. Wie wächst ein Gerücht? Es geht umher.

یوه ګنګوسه (اوازه) څنګه غټیږي؟ هغه هره خوا خپریږي

.................................................................................

15. Wodurch wird dort die Lage erschwert? Es gibt dort keine Straßen.

دا حالت په څه باندې سختیږي؟ هلته سړکونه نشته

.................................................................................

**Lösungen:**

1. Man kann eine Sprache lernen, indem man täglich viele Stunden übt.
سړي په دې باندې یوه ژبه زده کوی شي چې سړی هره ورځ ډېر ساعتونه تمرین وکړي
2. Man kann bei Regen trocken bleiben, indem man zu Hause bleibt.
سړی په بارانه کې په دې وسیلـه وچ پاتې کېدی شي چې سړی په کور کې پاتې شي
3. Wir begrüßen uns dadurch, dass wir uns die Hand geben.
مونږ له یو بل سره په دې ډول ستړي مشي کوو، چې یو بل ته لاس ورکوو
4. Zwei Japaner begrüßen sich, indem sie sich tief verbeugen.
دوه جاپانیان له یو بل سره په دې ډول ستړي مشي کوي، چې هغوی یو بل ته سر ټیټوي
5. Man schützt sich vor Kopfverletzungen, indem man einen Helm trägt.
سړی خپل سر په دې وسیله له ټپي کېدو نه ژغوري چې سړی خولی په سروي
6. Man kann sein Fahrrad vor Dieben schützen, indem man es abschließt.
سړی خپل بایسکل د غلو نه په دې بچولی شي, چې سړي یې کلپ کړي
7. Man kann eine schlechte Regierung loswerden, indem man sie abwählt.
سړی یو خراب حکومت په دې لارې لیرې کولی شي چې سړی ورنه د باور رآی بېرته واخلي
8. Man kann einsamen Menschen eine Freude machen, indem man sie besucht.
د یوازې انسانانو زړونه سړی په دې خوشحالولی شي چې لیدو ته یې ورشي
9. Bakterien vermehren sich dadurch, dass sie sich teilen.
بکتریا خپله شمېره په دې زیاتوي چې هغوی دوه برخې کیږي
10. Man kann das Unfallrisiko dadurch vermindern, dass man sich vorsichtig verhält. سړی کوی شي چې د ټکر خطره په دې راټیټه کړي چې سړي په احتیاط چلند وکړي
11. Man kann Probleme nicht dadurch lösen, dass man sie unterdrückt.
سړی ستونځې په دې نشي حلولی، چې سړی یې د پښو لاندې کړي
12. Wege entstehen dadurch, dass man sie geht. (*Franz Kafka*)
لارې په دې جوړیږي چې سړی پرې ولاړ شي (فغنځ کفکا ـ جرمنی شاعر)
13. An seinen Feinden rächt man sich am besten dadurch, dass man besser wird als sie. د خپلو دښمنانو نه ښه غچ سړی په دې اخیستلی شي چې سړی له هغوی نه لاپسې ښه شي
14. Ein Gerücht wächst dadurch, dass es umhergeht.
یوه ګنګوسه په دې غټیږي چې له یو نه بل ته او له بل نه بل ته خپره شي
15. Erschwert wird die Lage noch dadurch, dass es dort keine Straßen gibt.
حالت په دې باندې لاپسې سختیږي چې هلته هېڅ سړکونه نشته

## 2. Modalsatz des fehlenden Begleitumstandes

## د ورسره نورو حالاتو د نه پيښېدلو جمله

دا هغه شان جملې دي چې په اصلي جمله کې يو خبر يا يوه ادعا وشي، چې يو کار شوېدی. خو په فرعي جمله کې يادېږي چې په دې برخه کې ورسره نه موافقه شوېده، نه ورنه پوښتنه شوې او يا نه ورته کومه اړتيا وه. په بل عبارت په دوهمه جمله کې يو منفي اړخ يادېږي چې دا منفي اړخ کېدی شي د يو چا په ډېره ګټه وي او يا د يو چا په ډېر تاوان وي. د دې شان جملو په سر کې (ohne dass) راځي چې مانا يې ده (بې له دې چې، بې له ...). مثال:

| |
|---|
| Er schwamm im kalten Wasser, ohne dass er sich erkältete.<br>هغه په سړو اوبو کې لامبو وکړه، بې له دې چې هغه ته زکام ورپيدا شي |

ځنګه چې په پورتنۍ جمله کې ليدل کيږي، د جملې په دوهمه برخه کې يو منفي خبر دی، يعني هغه ته والګی يا زکام نه پيداکيږي. دا منفي خبر د هغه سړي په تاوان نه بلکې د هغه په ګټه دی. اوس به يوه جمله وګورو چې د هغې منفي اړخ د يو چا په تاوان دی:

| |
|---|
| Das Kind lief auf die Straße, ohne dass es dabei auf den Verkehr achtete.<br>ماشوم سړك ته ورمنډه وکړه، بې له دې چې ترافيك ته پام ونيسي |

ځنګه چې په دې مثال کې ليدل کيږي، د جملې د دوهمې برخې منفي خبر د دې ماشوم په تاوان دی، ځکه هغه ترافيك ته پام نه نيسي، چې دا يو له خطر نه ډك کار دی.

که چېرته د اصلي او فرعي جملې فاعل همغه يو کس وي، نو بيا د جملې په سر کې له (ohne dass) نه (dass) هيسته کيږي، او تش (ohne) پاتې کيږي، او د جملې په پای کې فعل په ژوندي ډول، يعنې د مصدر يا د (Infinitiv) په توګه استعماليږي، د مصدر نه مخکې ورسره (zu) ليکل کيږي. مثال:

| |
|---|
| Ohne ein Geräusch zu machen, schlichen sie aus dem Zimmer.<br>بې له دې چې ټك و ټوك وکړي، هغوی له کوټې نه ووتل |
| Sie fährt ins Ausland, ohne die fremde Sprache gelernt zu haben.<br>بې له دې چې پردی ژبه يې زده کړې وي، هغه بهر هېواد ته ځي |
| Ohne zu überlegen, stellte er viele unnötige Fragen.<br>بې له دې چې فکر وکړي هغه ډېرې بې ضرورته پوښتنې وکړې |
| Er ging, ohne ein Wort zu sagen. بې له دې چې يوه کلمه خبره وکړي، هغه ولاړ |
| Er nahm das Geld, ohne zu fragen. بې له دې چې پوښتنه وکړي، هغه پيسې واخيستلې |

**Übungen:**

1. Der Dummkopf ging über Glasscherben. Er trug keine Schuhe.
   دا احمق د ښيښو په ټترو وګرځېدو. د هغه بوټان په پښو نه وو
2. Er schoss auf das Wild. Er traf es nicht.
   هغه په وحشي ښاروي باندې ډز وکړو. وحشي ښاروی ونه لګېدله
3. Das Kind aß sehr viel Süßigkeiten. Ihm wurde es nicht schlecht.
   ماشوم ډېره خوږه وخوړله. د هغه زړه بدبد نشو
4. Wir spielen Lotto. Wir gewinnen niemals etwas.
   مونږ په لاترۍ کې برخه اخلو. مونږ يکې هېڅکله کوم شی نه ګټو

5. Er betrat den Raum. Niemand bemerkte es. هغه کوټې ته ننوت. د هېڅ چا پام ورته ونشو
6. Sie schälte Zwiebeln. Ihre Augen tränten nicht.
هغې پیاز ځنګه سپین کړل؟ له سترګو نه یې اوښکې ونه بهېدې
7. Er verließ die Wohnung. Er schloss sie nicht ab. 8.هغه له کوره ووت. کلپ یې نکړو
8. Sie hat den Aufsatz gelesen. Sie hat ihn nicht verstanden
هغې مقاله ولوستله. هغه پرې پوهه نشوه
9. Er entscheidet alles selbst. Er fragt die anderen nicht.
هغه هره فیصله پخپله کوي. هغه له نورو نه پوښتنه نه کوي
10. Er wurde aus dem Amt entlassen. Es gab keinen Grund dafür.
هغه له خپلې دندې نه ووېستل شو. د دې لپاره کوم دلیل موجود نه و

**Lösungen:**

1. Der Dummkopf ging über Glasscherben, ohne dass er Schuhe trug.
دا احمق د ښیښو په پترو وګرځېدو، بې له دې چې بوټان یې په پښو وو
2. Er schoss auf das Wild, ohne dass er es traf.
هغه په وحشي ځاروي ډز وکړو، بې له دې چې ډز یې پرې ولګېږي
3. Das Kind aß sehr viel Süßigkeiten, ohne dass ihm schlecht wurde.
ماشوم ژبنته ډېره خوږه وخوړله، بې له دې چې زړه یې بدبد شي
4. Wir spielen Lotto, ohne jemals etwas zu gewinnen.
مونږ په لاټري کې برخه اخلو، بې له دې چې په ژوند کې مو څه ګټلي وي
5. Er betrat den Raum, ohne dass es jemand bemerkte.
هغه کوټې ته ننوت، بې له دې چې د چا ورته پام شوی وي
6. Sie schälte Zwiebeln, ohne dass ihre Augen tränten?
سړی ځنګه پیاز سپینوی، بې له دې چې له سترګو نه اوښکې راوبهیږي؟
7. Er verließ die Wohnung, ohne dass er sie abschloss.
هغه له کوره ووت، بې له دې چې هغه یې کلپ کړی واوسي
8. Sie hat den Aufsatz gelesen, ohne dass sie ihn verstanden hätte.
هغې مقاله ولوستله، بې له دې چې پرې پوهه شوې وي
9. Er entscheidet alles selbst, ohne die anderen zu fragen.
هغه هره فیصله پخپله کوي، بې له دې چې له نورو نه پوښتنه وکړي
10. Er wurde aus dem Amt entlassen, ohne dass es dafür einen Grund gab.
هغه له خپلې دندې ووېستل شو، بې له دې چې د دې لپاره کوم دلیل موجود و

## 3. Modalsatz des stellvertretenden Begleitumstandes
## د یو حالت په ځای د بل حالت د ښودلو جمله

دا هغه شان جملې دي چې یو کار یا یوه پېښه چې شوېده د یو چا په فکر باید نه وای شوې او په ځای یې باید بل څه شوي وای. نو په دې وجه دا هغه جملې دي چې اکثرآ د یو چا مأیوسي ښکاره کوي چې په ځای د دې چې دا کار شوی وای، بل کار وشو. دا شان جملې په دې (Konjunktion) پیل کیږي:

| | | |
|---|---|---|
| anstatt dass | anstatt … zu | anstatt + Genitiv |
| statt dass | statt …zu | statt + Genitiv |
| د دې ټولو لغاتو مانا ده : په ځای د دې چې … | | |

مثالونه به په دې لاندې جدول کې وګورو

| | |
|---|---|
| Er schläft den ganzen Tag, anstatt dass er arbeitet. | په ځای د دې چې کار وکړي، هغه ټوله ورځ خوب کوي |
| Statt dass sie noch blieben, gingen sie. | په ځای د دې چې نور هم پاتې شي، هغوی ولاړل |
| Anstatt mir zu helfen, lachte er mich aus. | په ځای د دې چې هغه له ما سره مرسته وکړي، په ما يې وخندل |
| Statt zu arbeiten, ging er ins Kino. | په ځای د دې چې کار وکړي، هغه سینما ته ولاړ |
| Anstatt des Ministers sprach der Direktor. | د وزير په ځای مدير خبرې وکړې |
| Statt eines Freundes kam sein Vater. | د يو ملګري په ځای د هغه پلار راغی |

**Übungen:** Bilden Sie Modalsätze mit „anstatt dass, anstatt zu, statt dass, statt zu“!

1. Die dicke Frau bleibt im Bett liegen. Sie steht nicht auf.
دا پيړه ښځه په کټ کې پاتې کيږي. هغه نه راجګيږي
2. Wir müssen uns vor Krankheiten schonen. Wir nehmen nur Tabletten.
مونږ بايد ځان له ناروغيو نه وژغورو. مونږ تش دواګانې خورو
3. Du redest nur. Du  löschst das Feuer nicht. ته هسې خبرې کوي. ته اور نه مړ کوې
4. Er ist nicht froh. Er beschwert sich wieder. هغه خوښ نه دی. هغه بيا ‌پريادونه کوي
5. Du siehst fern. Du solltest dich auf die Prüfung vorbereiten.
ته ټلويزيون ګورې. ته بايد ازموينې ته ځان چمتو کړې
6. Er arbeitet nicht. Er plaudert nur mit seinen Kollegen.
هغه کار نکوي. هغه د خپلو همکارانو سره هسې کړتې کوي
7. Die Schüler sollen den Lehrer fragen. Sie suchen alles im Wörterbuch.
زده کوونکي بايد له ښوونکي نه پوښتنه وکړي. هغوی هر څه په ډکشنرۍ کې لټوي
8. Er soll sich die Antworten überlegen. Er antwortet gleich.
هغه بايد د پوښتنو په برخه کې له ځانه سره سوچ ووهي. هغه سمدلاسه ځواب ورکوي
9. Er arbeitet nicht. Er spielt immer nur mit kleinen Kindern.
هغه کار نکوي. هغه تل د وړوکو ماشومانو سره لوبې کوي
10. Er sagt die Wahrheit nicht. Er lügt die ganze Zeit.
هغه حقيقت نه وايي. هغه تل دروغونه وايي
11. Wir unternehmen nichts. Wir plaudern nur darüber.
مونږ کوم اقدام نه کوو. مونږ په برخه کې يې هسې غړيږو
12. Sie ist ihm böse. Sie verzeiht ihm nicht. هغه ورپسې په قهره ده. هغه يې نه بښي
13. Die Soldaten wollten dem General nicht folgen. Sie liefen weiter.
عسکرو نه غوښتل چې د جنرال خبره ومني. هغوی نور هم پرمخ ولاړل

**Lösungen:**

1. Die dicke Frau bleibt im Bett liegen, anstatt dass sie aufsteht.
دا پيړه ښځه په کټ کې پاتې کيږي، په ځای د دې چې راجګه شي
2. Wir müssen uns vor Krankheiten schonen, anstatt nur Tabletten zu nehmen.
مونږ بايد کوښښ وکړو چې ځان له ناروغيو وشغورو، په ځای د دې چې تش ګولۍ وخورو
3. Du redest nur, statt dass du das Feuer löschst.
ته هسې خبرې کوي، په ځای د دې چې ته اور نه مړ کړي

4. Anstatt dass er froh ist, beschwert er sich wieder.
په ځای د دې چې هغه خوښ واوسي، هغه بیا پریادونه کوي

5. Du siehst fern, anstatt dass du dich auf die Prüfung vorbereitest.
ته ټلوېزيون ګورې، په ځای د دې چې ته ازموينې ته ځان چمتو کړې

6. Anstatt dass er arbeitet, plaudert er nur mit seinen Kollegen.
په ځای د دې چې هغه کار وکړي، هغه د خپلو همکارانو سره هسې کړتې کوي

7. Die Schüler sollen den Lehrer fragen, anstatt alles im Wörterbuch zu suchen.
په ځای د دې چې تل له ښوونکي نه پوښتنه وکړي، ته هرڅه په کمپيوټر کې لټوې

8. Anstatt dass er sich die Antworten überlegt, antwortet er gleich. په ځای د دې چې
هغه د پوښتنو په برخه کې له ځانه سره سوچ ووهي، هغه سمدلاسه ځواب ورکوي

9. Anstatt dass er arbeitet, spielt er immer nur mit kleinen Kindern.
په ځای د دې چې هغه کار وکړي، هغه تل د وړوکو ماشومانو سره لوبې کوي

10. Anstatt dass er die Wahrheit sagt, lügt er die ganze Zeit.
په ځای د دې چې هغه حقيقت ووايي، هغه تل دروغونه وايي

11. Anstatt dass wir etwas unternehmen, plaudern wir nur darüber.
په ځای د دې چې مونږ کوم اقدام وکړو، مونږ په برخه کې يې هسې غړېږو

12. Sie ist ihm böse, anstatt dass sie ihm verzeiht.
هغه ورپسې په قهره ده، په ځای د دې چې هغه وبښي

13. Anstatt dass die Soldaten dem General folgten, liefen sie weiter.
په ځای د دې چې عسکر د جنرال خبره ومني، هغوی نور هم پرمخ ولاړل

## 4. Restriktivsatz په يوې جملې کې د محدوديت راوستلو جمله

دا هغه جملې دي چې په يو کار يا يوې پېښې کې محدوديت راولي. دا په دې مانا چې هېڅ ادعا په مطلق ډول او سل په سلو کې نکيږي، بلکې په نسبتي ډول کيږي. که دا مطلب نور هم اسان کړو نو يو مثال به وګورو: يو څوک وايي چې:

| |
|---|
| هغه سړی سل په سلو کې مړ شوی دی، ځکه چې په جنازه کې يې زه حاضر وم. |

دا يوه مطلقه او يقيني خبره ده چې څه شك پکې نشته. يو بل څوك داسې وايي چې:

| |
|---|
| څومره چې ما ته پته ده، دا سړی مړ شوی دی. |

په دې خبره کې لږ څه محدوديت راغی. دې سړي وويل چې څومره چې ماته پته ده، کېدی شي چې د ده پته سمه نه وي. نو د داسې محدوديت ښکاره جملو ته (Restriktivsatz) وايي چې په لاندېني جدول کې د خپلو (Konjunktionen) سره راځي :

| | | | |
|---|---|---|---|
| insofern | insofern … als … | sofern | soweit |
| insoweit | soviel | außer dass | außer wenn |
| außer | außer … zu … | | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| insofern … als … | په دې چې | په دې دليل، | په دې وجه، ځکه چې، |

په (insofern ... als ...) باندې هسې فرعي جملې جوړيږي، چې د يوې خبرې لپاره يو دليل راوستل شي، چې په کوم دليل، په کومه وجه دا شی داسې دی. څنګه چې پورته ليدل کيږي، (insofern ... als) د دوه برخو نه جوړ شوی دی. لومړی برخه يې، يعنې (insofern) په اصلي جمله کې له فاعل او فعل نه وروسته راځي او دوهمه برخه يې، يعنې (als) له کامې (,) نه وروسته د فرعي جملې په سر کې راځي. مثال:

| | |
|---|---|
| Er war insofern schuld an dem Unfall, als er zu schnell gefahren ist. | په دې تکر کې د هغه ګناه په دې کې وه چې هغه موټر ډېر ګړندی چلولی دی |
| Seine Meinung ist insofern wichtig, als er ein wichtiger Zeuge ist. | د هغه نظر په دې مهم دی چې هغه يو مهم شاهد دی |
| Das ist insofern unglaubwürdig, als er kein einziges Wort verstanden hat. | دا ځکه د باور کولو ندی چې هغه په يوه خبره هم پوه نه شو |

کله چې له (insofern) نه وروسته سمدلاسه (als) راشي، نو د دې دواړو تر مينځ بيا کامه (,) نه ليکل کيږي، ځکه چې دا دواړه حرفونه په ګډه د تړاو د حرف يو واحد جوړوي، مثال:

| | |
|---|---|
| Du hast mehr geholfen als alle anderen, insofern als du sofort geholfen hast. | تا له نورو ټولو نه ډېره مرسته وکړه، په دې چې تا سمدلاسه مرسته وکړه |
| Der Vorschlag ist gut, insofern als er niemandem schadet. | دا وړانديز په دې ښه دی چې هغه هيڅ چا ته تاوان نه رسوي |

(insofern) بې له (als) هم کارول کېدی شي، خو د يوې ځانګړې اصلي جملې په توګه، يعنې کله چې فرعي جمله پکې نه وي. مثال:

| | |
|---|---|
| Insofern hast du sicher Recht. | په دې دليل ستا خبره يقيناً ريښتيا ده |
| Er war zu der Tatzeit verreist und kommt insofern als Verbrecher nicht in Betracht. | د کار په وخت کې هغه په سفر تللی و، نو ځکه هغه ته د جنايتکار په سترګه نشي کتل کېدی |

## sofern که چېرته

په (sofern) باندې هغسې جملې جوړيږي چې د يو کار په کېدلو کې يو شرط راشي. مثال:

| | |
|---|---|
| Er wird uns helfen, sofern er dazu in der Lage ist. | که چېرته د هغه وس ورسيږي، هغه به له موږ سره مرسته وکړي |
| Ich komme morgen, sofern du nichts dagegen hast. | که چېرته ستا څه مخالفت نه وي، نو زه به سبا درشم |
| Sofern das Wetter gut ist, machen wir einen Spaziergang. | که چېرته هوا ښه وي، موږ چکر وهو |

## soweit تر هغه حده چې، څومره چې

په (soweit) باندې هغسې جملې جوړيږي، چې د يو شي په اندازه کې يو څه محدوديت راشي. مثال:

| | |
|---|---|
| Soweit ich weiß, kommt er morgen. | څومره چې ما ته پته ده، هغه سبا راځي |

| |
|---|
| Nach der Operation geht es ihr gut, soweit ich es beurteilen kann.<br>تر هغه حده چې زه قضاوت کوی شم، د عملیات نه وروسته د هغه وضع ښه ده |
| Soweit ich weiß, ist er verreist. خومره چې زه خبر یم ، هغه په سفر تللی دی |
| Er ist wieder gesund, soweit mir bekannt ist.<br>خومره چې ما ته پته ده، هغه بېرته روغ شوی دی |
| Alle Beteiligten, soweit ich sie kenne, waren Fachleute.<br>ټول برخه وال، څومره چې زه يې پېژنم، متخصصين وو |

## insoweit … als ځکه چې تر هغه پورې چې، تر دې حده پورې چې، که چیرته،

په (insoweit … als) باندې هغسې جملې جوړيږي چې په يوې موضوع کې يو محدوديت راوستل شي. څنګه چې پورته ليدل کيږي، دا د تړاو حرف له دوه برخو نه جوړ شويدی. لومړی برخه يې، يعني (insoweit) د فرعي جملې په سر کې راځي او وروسته بيا دوهمه برخه يې، يعني (als) کارول کيږي. مثال:

| |
|---|
| Man kann ihm insoweit zustimmen, als er alles richtig organisiert hat.<br>سړی په دې له هغه سره موافقه کولی شي چې هغه هرڅه په صحيح ډول تنظيم کړي دي |
| Er kann auch ohne uns entscheiden, insoweit als er im Rahmen der allgemeinen Bestimmungen bleibt. هغه کوی چې بې له مونږه هم فيصله وکړي، تر هغه پورې چې هغه د عمومي اصولو په چوکاټ کې پاتې کيږي |
| Die Diskussion war insoweit interessant, als sie wichtige Fragen berührte.<br>دا بحث په دې په زړه پورې و چې پکې مهمې پوښتنې مطرح شوې |

(insoweit) په يوازې توګه، يعنې بې له (als) هم کارول کېدی شي. مثال :

| |
|---|
| Insoweit das zutrifft, werden wir intervenieren.<br>که چيرته دا همداسې وي، نو مونږ به مداخله وکړو |
| Das wird möglich sein, insoweit ich die Lage beurteilen kann.<br>تر هغه پورې چې زه د حالاتو په برخه کې قضاوت کوی شم، دا امکان لري |
| Sie werden sich um das Problem kümmern, insoweit sie dafür Zeit haben.<br>څومره چې هغوی ته وخت اجازه ورکوي، هغوی به د دې ستونځې غم وکړي |

## soviel تر هغه حده چې خومره چې،

په (soviel) باندې د يو مطلب محدوديت ښکاره کول کيږي. مثال:

| |
|---|
| Soviel ich weiß, wird das Wetter morgen wieder besser.<br>څومره چې زه پوهيږم، سبا هوا ښه کيږي<br>Soviel mir bekannt ist, fällt der Unterricht morgen aus.<br>څومره چې ماته پته ده، سبا درس نشته<br>Soviel ich sehe, ist die Arbeit fertig. څومره چې زه ګورم، کار پای ته رسيدلی دی |

## außer په استثنآ الا، پرته، غير،

په (außer) باندې هغسې جملې جوړيږي چې په يو مطلب کې د يو کار د نه کېدلو يا د يو شي د محرومولو شرط اينسودل کيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Wir gehen morgen schwimmen, außer es regnet.<br>مونږ سبا چکر ته ځو، خو که باران وشو، نو بیا نه ځو | |
| Wir kommen zu dir, außer du hast keine Zeit.<br>مونږ ستا کور ته درځو، په استثنآ د دې چې ته وخت ونلرې | |
| Ich habe am Sonntag nichts getan, außer den ganzen Tag zu lesen.<br>پرته له دې چې ټوله ورځ ما مطالعه کړېده، بل مې هېڅ ندي کړي | |

(außer) د فرعي جملو د جوړولو لپاره د خو نورو (Konjunktionen) سره یوځای کیدی شي چې هغه به په لاندې برخه کې بېل نېل وګورو:

| außer wenn | که داسې وي نو بیا به ... نکیږي |
|---|---|

په (außer wenn) جمله کې کې سرې لومړی یو اقدام ته خوښه کوي، خو په عین وخت کې مخکې له مخکې یو شرط ږدي چې که چېرته دا شی داسې نه وي او داسې وي، نو دا اقدام به نکیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Wir kommen zu dir, außer wenn du keine Zeit hast.<br>مونږ ستا کور ته درځو، هغه وخت نه درځو چې ته وخت ونلرې | |
| Ich fahre mit dem Fahrrad zur Arbeit, außer wenn es zu kalt ist.<br>زه کار ته په بایسکل ځم، خو کله چې باران وشو، بیا په بایسکل نه ځم | |

| außer dass | غیر له دې چې | پرته له دې چې، |
|---|---|---|

په (außer dass) جمله کې سړی په لومړۍ برخه کې د یو شي په برخه کې څه معلومات یا یو نظر ښکاره کوي، خو په دوهمه برخه کې بیا د همدې معلومات په برخه کې محدودیت یا یوه نیمګړتیا بیانیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Ich habe nichts Besonderes an ihm bemerkt, außer dass er etwas mürrisch war.<br>پرته له دې چې هغه لږ څه ګوزموز غوندې و، بل شی مې د هغه په لیدو په نظر رانغی | |
| Das Konzert war sehr gut, außer dass es zu laut war.<br>دا کنسرت ډېر ښه و، خو غږ یې ډېر لوړ و | |
| Es war alles gut, außer dass es dort kein Wasser gab.<br>هلته هرڅه ښه وو، پرته له دې چې هلته اوبه نه وې | |

**Übungen:** Bilden Sie Restriktivsätze mit „insofern, insofern … als, sofern, soweit, insoweit, soviel, außer, außer dass…, außer wenn …“

1. Nichts hat mir Freude gemacht. Nur du warst so nett zu mir. (außer dass)
هېڅ شي زما زړه خوشحاله نکړو. تش تا په ما مهرباني کوله
……………………………………………………………………………………
2. Wir gehen spazieren, wenn es nicht den ganzen Tag regnet. (außer wenn)
مونږ چکر وهو، که چېرته ټوله ورځ باران ونشي
……………………………………………………………………………………
3. Es gibt keinen anderen Ausweg. Wir müssen ihn um Hilfe bitten. (außer dass) بله چاره نشته . مونږ مجبور یو چې له هغه نه د مرستې هیله وکړو
……………………………………………………………………………………

4. Nichts hat mich interessiert. Interessiert hat mich nur, ob mein Sohn zu Hause angekommen ist. (außer dass)
بل هېڅ شي سره زما علاقه نه وه. پرته له دې چې زما زوی کور ته رسېدلی دی او که نه

………………………………………………………………………………

5. Du hast sonst nichts getan. Du hast heute nur eingekauft. (außer dass)
تا بل هېڅ شی ندي کړي. تا نن تش سودا اخیستي ده

………………………………………………………………………………

6. Ich fahre mit dem Zug, wenn ich ihn nicht verpasse. (außer dass)
زه په اورګاډي کې ځم، خو که رانه ولاړ نشي

………………………………………………………………………………

7. Hilf ihm, wenn es deine Zeit erlaubt. (soweit)
ته ورسره مرسته وکړه، که چېرته وخت درته اجازه درکړي

………………………………………………………………………………

8. Das weiß ich. Die Türen werden morgen gestrichen. (soviel)
زه په دې پوهېږم. سبا دروازو ته رنګ ورکول کیږي

………………………………………………………………………………

9. Er hat sich immer ehrlich gezeigt. In dieser Hinsicht kannst auch du ihm vertrauen. (insofern) هغه ځان تل اخلاصمن ښودلی دی. په دې وجه ته پرې باور کوی شي

………………………………………………………………………………

10. Wir werden ihm etwas schenken. Er lehnt das Geschenk ab. (außer dass)
مونږ به هغه ته یو څه ډالی ورکړو، هغه دا ډالی ردوي

………………………………………………………………………………

11. Nächstes Jahr fahre ich nach Italien, wenn ich genug Geld habe. (außer wenn) په راتلونکي کال کې زه ایټالیې ته ځم، که چېرته زه په کافي اندازه پیسې ولرم

………………………………………………………………………………

12. Ich schreibe immer gute Noten, wenn ich lerne. (außer wenn)
زه تل ښې نمرې اخلم، که چېرته زه سبق ووایم

………………………………………………………………………………

13. Über ihn weiß man nicht viel. Man weiß nur, dass er lebt. (außer dass)
د هغه په برخه کې ډېر معلومات نشته. دومره معلومات شته چې هغه ژوندی دی

………………………………………………………………………………

14. Fünf Tage lang ging alles gut. Am sechsten Tag haben die Arbeiter gestreikt. (außer dass) پنځه ورځې هرڅه ښه وو. پرته له دې چې په شپږمه ورځ کارګرانو اعتصاب وکړ

………………………………………………………………………………

15. Mir gefällt alles, wenn ich nicht arbeiten muss. (außer dass)
زما هر څه خوښیږي، که چېرته زه کار کولو ته مجبور نشم

………………………………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Nichts hat mir Freude gemacht, außer dass du so nett zu mir warst.
پرته له ستا مهربانی زه په بل هېڅ شي خوښ نه وم
2. Wir gehen spazieren, außer wenn es den ganzen Tag regnet.
مونږ په چکر وځو، خو که چېرته باران وي، بیا نو نه ځو

3. Es gibt keinen anderen Ausweg, außer dass wir ihn um Hilfe bitten.
پرته له دې چې مونږ له هغه نه د مرستې هیله وکړو، بله لاره نشته
4. Nichts hat mich interessiert, außer dass mein Sohn zu Hause angekommen ist.
پرته له دې چې زما زوی کور ته راغی، کوم بل شي سره زما علاقه نه وه
5. Außer dass du eingekauft hast, hast du heute sonst nichts getan.
پرته له سودا اخیستلو تا نن بل هېڅ څه ونکړل
6. Ich fahre mit dem Zug, außer dass ich ihn verpasse.
زه په اورګاډي کې ځم، پرته له دې چې که هغه له ما نه ولاړ شي
7. Hilf ihm, soweit es deine Zeit erlaubt.
څومره چې ستا وخت تاته اجازه درکوي، ورسره مرسته وکړه
8. Soviel ich weiß, werden die Türen morgen gestrichen.
څومره چې ماته پته ده، سبا دروازو ته رنګ ورکول کیږي
9. Er hat sich immer ehrlich gezeigt, insofern kannst auch du ihm vertrauen.
هغه ځان تل اخلاصمن ښودلی دی، نو په دې وجه ته وربانديې اعتماد کوی شي
10. Wir werden ihm etwas schenken, außer wenn er das Geschenk ablehnt.
مونږ به هغه ته یو څه ډالی ورکړو، خو که هغه ډالی رده کړه، نو بیا یې نه ورکوو
11. Nächstes Jahr fahre ich nach Italien, außer wenn ich nicht genug Geld habe.
راتلونکی کال زه ایټالیې ته ځم، خو که چېرته زه پیسې ونلرم، بیا نو نه ځم
12. Ich schreibe immer gute Noten, außer wenn ich nicht lerne.
زه تل ښې نمرې اخلم، خو که چېرته زه درس ونه لولم، بیا نو نه
13. Über ihn weiß man nicht viel, außer dass er lebt.
پرته له دې معلومات نه چې هغه مړ دی، د هغه په برخه کې نور هېڅ معلومات نشته
14. Fünf Tage lang ging alles gut, außer dass am sechsten Tag die Arbeiter gestreikt haben. پرته له دې چې په شپږمه ورځ کارګرانو اعتصاب وکړو، په نورو پنځه ورځو کې هر څه ښه وو
15. Mir gefällt alles, außer dass ich arbeiten muss.
پرته له دې چې زه کار کولو ته مجبور نشم، نور هرڅه زما خوښیږي

## 5. Vergleichssatz مقایسوي جمله، د پرتله کولو جمله

دا هغه شان جملې دي چې دوه حالات له یو بل سره پرتله یا مقایسه کیږي. دا په دې مانا چې کېدی شي دوه شیان له یو بل سره یو برابر وي، او یا دا چې له یو بل سره لکه د ځمکې او اسمان په شان توپیر ولري. کېدی شي چې په دواړو جملو کې همغه یوه خبره شوې وي، یعني دا چې دواړو جملو یوه خبره تصدیقه کړې وي. همدا شان کېدی شي چې یوې جملې یوه خبره په مثبت ډول ښودلې وي، خو بلې جملې په منفي ډول ښودلې وي. په مقایسوي جملو کې لاندیني ربطي حرفونه یا (Konjunktion) کارول کیږي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| wie لکه، په شان | als لکه، په شان | als ob ته به وایې چې | als wenn فقط لکه چې |
| wie wenn ته به وایې چې | je…desto … څومره چې... هومره | je…umso څومره چې ... هومره | |

| wie | څومره چې | څنګه چې، |
|---|---|---|

(wie) هغه وخت په جمله کې کارول کیږي چې په اصلي او فرعي جمله کې د یو شي صفت زیات او کم نه وي، یعني دواړه صفتونه په همغه یوه اندازه وي. دې ته د مساوات جملې یا (Gleichheit) هم ویل شویدي. زیاتره وخت صفتونه په مثبت ډول یادیږي. مثالونه په جدول کې ګورو:

| | |
|---|---|
| Er ist so groß, wie sein Vater es war. | هغه په ونه کې دومره لوړ دی، څومره لوړ چې د هغه پلار و |
| Man ist nur so alt, wie man sich fühlt. | څنګه چي سړی ځان احساسوي، نو د سړی عمر هم هومره وي |
| Er ist so reich, wie wir vermutet hatten. | څنګه چي مونږ اټکل کړی و، هغه هومره شتمن دی |
| Er machte einen so hohen Gewinn bei seinen Geschäften, wie er gehofft hatte. | پخپلې سوداګرۍ کې هغه دومره ډېره ګټه وکړه، څنګه چي د هغه هیله وه |
| Er verhielt sich genau so, wie wir gedacht hatten. | هغه همغسې چلند وکړ، څنګه چي مونږ فکر کوه |
| Ihr könnt so lange hier bleiben, wie ihr wollt. | تاسو تر هغه پورې دلته پاتې کېدی شئ، څومره چي ستاسو خوښه ده |

کله چي په اصلي او فرعي جمله کې همغه یو فعل راشي، نو بیا به فرعي جمله نه جوړیږي او د دواړو جملو ترمینځ کامه (,) هم هیسته کیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Er ist so groß wie sein Bruder es ist. | هغه دومره لوړ دی څومره چي د هغه ورور لوړ دی |

په دواړو پورتنیو جملو کې (ist) استعمال شوی، نو په دي وجه دا دواړه جملې سره یوځای کیږي او وروستی (ist) او د جملې تر مینځ کامه له مینځه ځي. په بل عبارت د دې دوه جملو نه یوه جمله جوړیږي، په لاندي ډول:

| | |
|---|---|
| Er ist so groß wie sein Vater. | هغه دومره لوړ دی لکه د هغه پلار |

نور مثالونه به لاندي وګورو:

| | |
|---|---|
| Meriam ist genauso hübsch wie ihre ältere Schwester. | مریم لکه د خپلې مشرې خور په شان ښکلې ده |
| Du bist ebenso faul wie dein Vater. | ته لکه د خپل پلار په شان لټ یې |
| Morgen wird es genauso kalt wie heute. | سبا به لکه د نن په شان هوا سړه شي |
| Er ist so groß wie ich. | هغه په ونه کې لکه زما په شان لوړ دی |
| Er ist doppelt so alt wie deine Mutter. | د هغه عمر ستا د مور د عمر دوه چنده دی |

د (wie) نه د کار اخیستلو په وخت کله کله صفتونه بیا په منفي مانا هم استعمالیږي، او یا په اصلي جمله کې یوه ادعا کیږي او په فرعي جمله کې بله. مثال:

| | |
|---|---|
| Die Vorstellung begann nicht so pünktlich, wie wir es erwartet hatten. | څنګه چي زمونږ تمه وه، ننداره پخپل وخت کې پیل نشوه |
| Er ist nicht so reich wie du. | هغه لکه تا په شان شتمن ندی |
| Es ist alles nicht mehr so wie früher. | اوس هیڅ شی لکه د پخوا په شان ندي |
| Es ist nicht alles so schlecht, wie es draußen manchmal dargestellt wird. | دا هیڅ شی دومره بد ندی لکه څنګه چي کله کله بهر ښودل کیږي |

| wie | ځنګه |
|---|---|

په لاندې برخه کې (wie) د (ځنګه) مانا لري چې مطلب د يو سوال نه ندی بلکې د يو شي د حد او اندازې د ښودلو لپاره دی، يعني ځنګه يا څومره بد، څومره ښه، ځنګه يا څومره ښکلی او داسي نور.

| | |
|---|---|
| Wie es mir geht, weißt du ja. | دا چې زه ځنګه يم، ته خو پوهيږې |
| Wie schön er gesungen hat, haben wir alle gehört. | دا چې هغه څومره ښايسته سندرې ووېلې، مونږ ټولو واورېدلې |

| als | د يو چا يا يو شي نه | د يو شي په مقايسه، | د يو چا په پرتله، |
|---|---|---|---|

(als) هغه وخت کارول کيږي چې د دوه جملو په صفتونو کې زيات او کم راشي، په يوه جمله کې ډېر صفت وي او په بله جمله کې لږ. دې ته د غيرمساوات جملې او يا (Ungleichheit) هم وايي. په ډېرو جملو کې د دوه صفتونو زياتوالی او يا کموالی تصديقيږي، په ځينو جملو کې سره له دې چې توپير يې ياديږي، خو بيا زياتوالی او يا کموالی يې نه تصديقيږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Morgen wird es kälter als heute. | سبا د نن په پرتله هوا نوره هم سړيږي |
| Das ist besser als gar nichts. | له هيڅ نه دا بيا هم ښه دی |
| Meriam ist hübscher als ihre ältere Schwester. | مريم د خپلې مشرې خور په پرتله نور هم ښايسته ده |
| Du bist fauler als dein Vater. | ته د خپل پلار په پرتله نور هم لټ يې |

ځنګه چې تاسو په پورتنو جملو کې وينئ، کله چې په يوې جملې کې (als) راشي، نو له هغې نه مخکې يو صفت راغلی دی او دا صفت بيا د (Komparativ) په حالت کې دی چې په عربي کې ورته تفضيل وايي چې په پښتو کې (لاپسې ډېر صفت) ته وايي. په ځينو جملو چې بيا چې صفت نشته، هلته بيا له (als) نه مخکې يوه قيديه جمله راغلې ده چې بيا له (als) نه وروسته جمله د لومړی جملې په خلاف بله ادعا کوي. مثال:

| | |
|---|---|
| Es kam ganz anders, als wir dachten. | ځنګه چې مونږ فکر کوه، کيسه داسې ونشوه بلکې بالکل بل شان وشوه |
| Es kommt meist anders, als man denkt. | زياتره وخت کيسه بالکل بل شان کيږي نسبت دی ته چې سړی فکر کوي |
| Das war weniger schlimm als erwartet. | دا دومره بد نه و لکه ځنګه چې توقع کېدله |
| Es hat sich anders zugetragen, als er erzählt. | ځنګه چې هغه کيسه کړېده، اصل کيسه هغسې نه وه شوې، هغه بل شان شوې وه |

**Übungen:** Bilden Sie Sätze mit „wie“ und „als“!

1. Mein Zeugnis ist etwas besser …………… deins.
زما برى ليك ستا له بري ليك نه ښه دى
2. Der linke Tisch ist so groß …………… der rechte Tisch.
د کيڼ لاس ميز له ښي لاس ميز نه غټ دی
3. So schön …………… deine Blumen sind meine auch.
زما ګلان هم ستا د ګلانو په شان ښايسته دي

4. Diese Baumaßnahmen sind viel teurer …………… kleine Reparaturen.
دا د جوړوني اقدامات د وړو ترميمونو نه ډېر ګران دي
5. Bist du schneller …………… der Blitz? ته له برېښنا نه هم لاپسي تېز يې؟
6. Du bist hungriger …………… ein Löwe. ته له زمري نه هم لاپسي ډېر وږی يې

**Lösungen:**

1. Mein Zeugnis ist etwas besser als deins.
2. Der linke Tisch ist so groß wie der rechte Tisch.
3. So schön wie deine Blumen sind meine auch.
4. Diese Baumaßnahmen sind viel teurer als kleine Reparaturen.
5. Bist du schneller als der Blitz?
6. Du bist hungriger als ein Löwe.

| als ob | فقط لکه چې | ته به وايي چې، |
|---|---|---|

(als ob) هغه وخت استعماليږي چې د يوې خبرې د لامل لپاره يو غيرواقعي دليل راوستل شي او يا د يو شي سره مقايسه شي چې واقعيت ونلري. په دې چې دا فرعي جمله واقعيت نلري، نو په جرمني ژبه کې ورته دا اصطلاحات راوستل شويدي:

| hypothetische Gleichheit | فرضي مساوات | irrealer Vergleichssatz | غيرواقعي مقايسه |
|---|---|---|---|

مثالونه به په جملو کې وګورو:

| |
|---|
| Er sieht so aus, als ob er die ganze Nacht nicht geschlafen hätte.<br>هغه داسي ښکاري ، ته به وايي چې ټوله شپه يې خوب ندی کړی |
| Mir kam es vor, als ob ich schon Stunden gewartet hätte.<br>ما ته داسي ښکاره شوه، فقط لکه چې ما په ساعتو ساعتو انتظار ويستلی وي |
| Er tut so, als ob er uns nicht gesehen hätte.<br>هغه ځان داسي ښکاره کوي فقط لکه چې مونږ يې نه يو ليدلي |
| Tu so, als ob du zu nicht Hause wärest. ته ځان داسي وښايه چې ته په کور کې نه يې |
| Er tat so, als ob er es nicht verstünde. هغه ځان داسي وښود لکه چې هغه پرې نه پوهېږ |
| Es kam mir vor, als ob er gerade erst aufgestanden wäre.<br>ما ته داسي ښکاره شوه، فقط لکه چې هغه همدا اوس له خوبه راپاڅېدلی وي |
| Als ob es etwas Neues gewesen wäre! ته به وايي چې دا کوم نوی شی واوسي |
| Als ob ich das nicht wüsste! ته به وايي چې زه په دې نه پوهېږم (يعني زه پرې ښه پوهېږم) |

له (als ob) غيرواقعي جملو نه کېدی شي چې (ob) راوويستل شي او تش (als) پاتي شي، خو شرط دا دی چې له (als) نه وروسته ځای په ځای يو فعل راشي چې د (Konjunktiv) په حالت کې وي. د (Konjunktiv) په برخه کې بشپړ معلومات د دې مبحث نه وروسته ليکل شوی دی. مثال:

| |
|---|
| Er sieht so aus, als hätte er die ganze Nacht nicht geschlafen.<br>هغه داسي ښکاري چې ته به وايي چې ټوله شپه يې خوب نه وي کړی |
| Er tut so, als wäre nichts passiert.<br>هغه ځان داسي ښکاره کوي فقط لکه چې هيڅ نه وي پېښ شوي |

| | |
|---|---|
| Tu nicht so, als wäre es nicht passiert. | ته ځان داسې مه ښايه چې هېڅ پېښ شوي ندي |
| Heute liefen sie aneinander vorbei, als hätten sie sich nie gekannt. نن هغوی د يو بل له خوا نه داسې تېر شول فقط لکه چې هغوی يو بل هېڅکله نه وي پېژندلی | |

| als wenn | فقط لکه چې | ته به وايې چې، |
|---|---|---|

(als wenn) داسې استعماليږي لکه د (als ob) په شان. مثال:

| |
|---|
| Das Meer ist so blau, als wenn jemand Farbe hinein geschüttet hätte.<br>بحر دومره آبي رنګی دی فقط لکه چې کوم چا پکې رنګ اچولی وي |
| Ich fühlte mich, als wenn die Sonne nur für mich scheinen würde.<br>ما ځان داسې احساسوه چې ته به وايې چې لمر تش زما لپاره راځيژي |

| wie wenn | فقط لکه چې | ته به وايې چې، |
|---|---|---|

(wie wenn) دا هم داسې استعماليږي لکه (als ob) په شان. مثال:

| |
|---|
| Das ist so, wie wenn man Wasser ins Feuer gießt.<br>دا داسې دی، فقط لکه چې سړي په اور باندې اوبه واچوي |
| Das ist so, wie wenn man einen Geldschein verbrennt.<br>دا داسې دی، فقط لکه چې سړی د پيسو يو لوټ وسوځوي |
| Es ist nicht so, wie wenn man ein Huhn schlachtet.<br>دا داسې نده لکه سړی چې يو چرګ حلال کړي |

**Übungen:**

Wandeln Sie bitte folgende Paschtosätze ins Deutsche um!

۱ـ هغوی ما ته په غصه دي، ته به وايې چې په دې غلطي کې زما ګناه ده
۲ـ ما ځان داسې احساسوه، ته به وايې چې دا لمر زما لپاره دی
۳ـ هغه داسې ښکاري، ته به وايې چې هغه ټوله شپه خوب ندی کړی
۴ـ هغوی په ډوډۍ باندې داسې ورودنګل، ته به وايې چې نور به په ژوند کې د خوړو څه نه وي
۵ـ ما ته داسې ښکاره شوه، ته به وايې چې هغه همدا اوس له خوبه راجګ شو
۶ـ هغه داسې جرمني غږيږي، ته به وايې چې هغه په جرمني کې زيږېدلی دی
۷ـ ماشوم ټپي ندی. هغه داسې چيغې وهي، ته به وايې چې هغه سخت ټپي دی
۸ـ هغه داسې زګېروي کوي، ته به وايې چې سخت درد لري
۹ـ هغه داسې وږی دی، ته به وايې چې دوه ورځې يې هېڅ ندي خوړلي
۱۰ـ زمونږ ګاونډی هېڅ پيسې نلري. هغه داسې چلند کوي چې ته به وايې چې هغه يو ميليونر دی

**Lösungen:**
1. Sie schimpfen auf mich, wie wenn der Fehler meine Schuld wäre.
2. Ich fühlte mich, als ob die Sonne nur für mich scheinen würde.
3. Er sieht aus, als ob er die ganze Nacht nicht geschlafen hätte.
4. Sie stürzten sich aufs Essen, als würde es nie wieder etwas zu essen geben.
5. Es kam mir vor, als wenn er gerade erst aufgestanden wäre.
6. Er spricht Deutsch, als wenn er in Deutschland geboren wäre.

7. Das Kind ist nicht verletzt. Es schreit so, als ob es schwer verletzt wäre.
8. Er stöhnt so, als ob er heftige Schmerzen hätte.
9. Er hat einen Hunger, als wenn er zwei Tage nichts gegessen hätte.
10. Unser Nachbar hat kein Geld. Er benimmt sich, als ob er ein Millionär wäre.

## je … desto ... خومره چي دا ... هومره دا هم ...

په (je … desto) باندې هغسې جملې جوړېږي چې يو بل سره د دوه پېښو سيالي وشي، څومره چې په يوې پېښې کې زياتی او يا کمی راځي، نو په همغه اندازه په بلې پېښې کې هم څه زياتی او يا کمی راځي.
مثال:

| | |
|---|---|
| Je schneller ihr arbeitet, desto schneller werdet ihr fertig sein. هر څومره ژر چې تاسو کار کوئ، هومره ژر به تاسو خلاص شوي ياست | |
| je mehr, desto besser | هرڅومره چې ډېر وي، هومره به ښه وي |
| Je schneller man fährt, desto gefährlicher ist es. هرڅومره چټك چې سړی موټر چلوي، هومره نور خطر زياتيږي | |
| Je älter man wird, desto größer wird die Lebenserfahrung. هرڅومره چې د سړي عمر زياتيږي، د ژوندانه تجربه هم هومره ورسره زياتيږي | |
| „Eine Lüge ist wie ein Schneeball: Je länger man ihn wälzt, desto größer wird er.“ *Martin Luther* دروغ د واورې د غونډړاى په شان دي. هر څومره چې سړی يې توغروي، هغه هومره لويېږي (د پروتستانت مذهب لاربنود، ماغتين لوته) | |
| Je mehr ich weiß, desto mehr erkenne ich, dass ich nichts weiß. هر څومره چې زما پوهه زياتيږي، زه په دې هومره رسيږم، چې زه هيڅ نيوهيږم | |

## je … umso ... خومره چي دا ... هومره دا هم ...

دا هم داسې استعماليږي لکه (je …, desto …) په شان. مثال:

| |
|---|
| Je mehr man isst, umso dicker wird man. هوڅومره ډېره ډوډی چې سړی خوري، سړی هومره ډېر چاغيږي |
| Je fleißiger man ist, umso besser schreibt man die Prüfung. هرڅومره ډېر زحمت چې سړی وباسي، هومره ښه نتيجه په ازموينه کې سړي اخلي |
| Je älter er wird, umso vernünftiger wird er auch. هرڅومره چې د هغه عمر زياتيږي، هغه هومره هوښياريږي هم |
| Je mehr man von der Welt weiß, umso interessanter wird sie.هرڅومره ډېر معلومات چې سړی د نړۍ په برخه کې لاس ته راوړي، نړۍ هومره ډېر په زړه پورې کيږي |

**د ( je … desto) د جملو د جوړولو لار:**
لومړی د فرعي جملې په سر کې (je) راځي. ورپسې يو صفت راځي، خو په (Komparativ) حالت کې، يعني يا د لاپسې ډېر او يا لاپسې کم حالت کې. ورپسې د جملې فاعل راځي. د جملې په پای کې بيا فعل راځي. ورپسې يوه کامه (,) ليکل کيږي . له کامې نه وروسته (desto) او يا (umso) راځي او ورپسې بيا يو صفت د (Komparativ) حالت کې راځي. له صفت نه وروسته بيا لومړی فعل او ورپسې فاعل راځي. له فاعل نه وروسته د جملې پاتې برخې ليکل کيږي.

که چېرته ستاسو د (Komparativ) حالت زده نه وي، نو د (Steigerung der Adjektive) مبحث ته مراجعه وکړئ.
کله چې په يوې فرعي جملې کې له (desto, umso) نه وروسته يو صفت نه وي، بلکې يو اسم وي، نو اسم خو (Komparativ) نلري، نو په دې وجه له اسم نه مخکې بيا زيات او يا کم ليکل کيږي، يعني (mehr) او يا (weniger). دا خبره به په لاندينی جمله کې وګورو:

| |
|---|
| Je schöner der Sommer ist, umso mehr Badeunfälle passieren.<br>هر څومره چې په اوړي کې هوا ښه وي، هومره ډېرې په اوبو کې د لامبو ناوړي پېښې کيږي |

په پورتنی جمله کې له (umso) نه وروسته د (د لامبو ناوړي پېښې = Badeunfälle) لغت راغلی دی، په دې چې د (لامبو نوړي پېښې) يو اسم دی او نه يو صفت، نو په دې وجه (Komparativ) نلري، نو په دې وجه له (Badeunfälle) نه مخکې د (mehr) يعني (زيات) کلمه ياده شوېده، يعني زياتې پېښې.

کله چې يوه خبره ډېره مهمه وي، نو د جملې په لومړنی برخه کې راځي، نو په دې ډول په مقايسوي جملو کې کله کله هغه جمله چې (umso) پکې راځي، له (je) جملې نه مخکې راځي: مثال:

| |
|---|
| Man weiß das Geld umso mehr zu schätzen, je weniger man davon hat.<br>هرڅومره لږې پيسې چې سړي ولري، هومره ډېر يې سړي په قدر پوهيږي |
| Die Impfung ist umso wichtiger, je mehr Infektionskrankheiten es gibt.<br>واکسين هومره مهم دی، هرڅومره چې تېرېدونکي ناروغۍ ډېرې وي |

**Übungen**: Bilden Sie bitte Sätze mit „je … desto“ bzw. „je … umso“!

1. Ich arbeite viel. Ich verdiene viel Geld. زه ډېر کار کوم. زه ډېرې پيسې ګټم

…………………………………………………………………………………

2. Ich habe viel gegessen. Ich bin dick geworden. ما ډېره ډوډۍ وخوړله . زه پېړ شوی يم

…………………………………………………………………………………

3. Man streitet viel. Es wird schlimm. سړی ډېرې شخړې کوي. حالات خرابيږي

…………………………………………………………………………………

4. Du schläfst lange. Du hast wenig Zeit. ته ډېر خوب کوې. ته لږ وخت لرې

…………………………………………………………………………………

5. Ich fahre schnell. Ich bin früh zu Hause.
زه په موټر کې په چټک سرعت ځم. زه د وخته کور ته رسيږم

…………………………………………………………………………………

6. Es ist kalt. Wir ziehen uns warm an. هوا سړه ده. مونږ تودې جامې اغوندو

…………………………………………………………………………………

7. Er wird alt. Er wird bescheiden. هغه زړيږي. هغه کمينه کيږي

…………………………………………………………………………………

8. Ein Land wird reich. Seine Einwohner fühlen sich sicher.
يو هېواد شتمن کيږي. د هغه وګړي ځان مطمئن احساسوي

…………………………………………………………………………………

9. Man hat wenig Geld. Da muss man sparsam sein.
له سړي سره لږې پيسې وي. په دې وخت کې بايد سړی له سپما نه کار واخلي

…………………………………………………………………………………

10. Der Wortschatz ist groß. Das Lesen fällt leicht. د لغاتو ذخیره لویه ده. لوستل اسانه دي

……………………………………………………………………………………

11. Die Sonne scheint lange. Die Temperatur steigt hoch.

ډېر وخت لمر وي. د تودوخې درجه جګیږي

……………………………………………………………………………………

12. Das Essen schmeckt gut. Man isst viel. ډوډۍ خوندوره ده. سړی ډېره ډوډۍ خوري

……………………………………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Je mehr ich arbeite, umso mehr Geld verdiene ich.
هر څومره چې زه ډېر کار کوم، زه هومره ډېرې پیسې ګټم
2. Je mehr ich gegessen habe, desto dicker bin ich geworden.
هر څومره ډېره ډوډۍ چې ما وخوړله، زه هومره پېړ شو
3. Je mehr man streitet, umso schlimmer wird es.
هر څومره چې سړی ډېرې شخړې کوي، حالات هومره خرابیږي
4. Je länger du schläfst, desto weniger Zeit hast du.
هر څومره ډېر خوب چې ته کوې، ته هومره لږ وخت لرې
5. Je schneller ich fahre, desto früher bin ich zu Hause.
هر څومره ژر چې زه په موټر کې ځم، هومره ژر زه کور ته رسیږم
6. Je kälter es wird, umso wärmer ziehen wir uns an.
هر څومره چې هوا سړیږي، مونږ هومره ډېرې تودې جامې اغوندو
7. Je älter er wird, desto bescheidener wird er.
هر څومره چې هغه زړیږي، هغه هومره کمینه کیږي
8. Je reicher ein Land wird, desto sicherer fühlen sich seine Einwohner.
هر څومره چې یو هېواد شتمن کیږي، د هغه هېواد وګړي ځان هومره مطمئنه احساسوي
9. Je weniger Geld man hat, desto sparsamer muss man da sein.
هرڅومره لږې پیسې چې سړي لري، هومره ډېره سپما باید سړي په دې وخت کې وکړي
10. Je größer der Wortschatz ist, desto leichter fällt das Lesen.
هر څومره چې د لغاتو ذخیره لویه وي، لوستل هومره اسانیږي
11. Je länger die Sonne scheint, desto höher steigt die Temperatur.
هر څومره ډېر چې لمر وي، د تودوخې درجه هومره نوره جګیږي
12. Je besser das Essen schmeckt, umso mehr isst man.
هر څومره چې ډوډۍ خوندوره وي، سړی هومره ډېره خوري

## Finalsätze (Absichtssätze) د نیت کولو جملې، د قصد کولو جملې

دا هغه جملې دي چې د یو کار کولو لپاره د یو چا نیت او یا قصد ښکاره کوي. په بل عبارت په دې جملو باندې د یو شي موخه یا هدف بیانیږي. کومه پوښتنه چې په دې وخت کې کیږي، هغه دا ده:

| wozu?<br>د څه لپاره؟ | zu welchem Zweck?<br>په کومه موخه، د څه هدف لپاره؟ | mit welcher Absicht?<br>په کوم قصد؟ په کوم نیت؟ |
|---|---|---|

هغه (Konjunktionen) چې د نیت کولو جملو لپاره پکاریږي، هغه دا دي:

| د دي لپاره چي ... damit | د دي لپاره چي... um ... zu | د دي لپاره چي ... dass |
|---|---|---|

د دې جملو جوړښت په دې ډول دی چې په اصلي جمله کې یوه موضوع یادیږي، بیا په دوهمه یا فرعي جمله کې د هغې دلیل یادیږي چې د څه لپاره دا موضوع کیږي.

## د دې لپاره چې damit

له (damit) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې د اصلي جملې او فرعي جملې فاعلان بېل بېل کسان واوسي، نو بیا د فرعي جملې په سر کې (damit) راځي. مثال:

| Hauptsatz اصلي جمله | Nebensatz فرعي جمله |
|---|---|
| Wozu werden Autos gebaut? موټرونه د څه لپاره جوړیږي؟ | |
| Autos werden gebaut, موټرونه جوړیږي | damit wir uns schneller fortbewegen können. د دې لپاره چې مونږ چټک تللی وشو |
| Wozu soll man neue Straßen bauen? نوي سرکونه دې د څه هدف لپاره جوړ شي؟ | |
| Man sollte neue Straßen bauen, نوي سرکونه دې جوړ شي | damit der Verkehr schneller fließen kann. د دې لپاره چې ترافیك په چټکۍ تللی وشي |
| Wozu sind Kontrollen nötig? کنترول د څه لپاره ضرور دی؟ | |
| Kontrollen sind deswegen nötig, کنترول ضرور دی | damit Unterschlagungen sofort entdeckt werden. د دې لپاره چې درغلي سمدلاسه رابنکاره شي |

که چېرته د اصلي او فرعي جملې فاعل همغه یو کس وي، نو بیا هم (damit) استعمالیدی شي. مثال:

| | |
|---|---|
| Wozu beeilt er sich? هغه د څه لپاره بیړه کوي؟ | |
| Er beeilt sich, هغه بیړه کوي | damit er rechtzeitig ankommt. د دې لپاره چې هغه پخپل وخت کې ورسیږي |
| Wozu schreibe ich alles auf? زه د څه لپاره هر څه لیکم؟ | |
| Ich schreibe alles auf, زه هر څه لیکم | damit ich es nicht vergesse. د دې لپاره چې هېر مې نشي |

## د دې لپاره چې um ... zu

له (um ... zu) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې په اصلي او فرعي جمله کې همغه یو فاعل وي. لومړی په اصلي جمله کې یوه خبره یا یوه ادعا کیږي او بیا په فرعي جمله کې موخه یاهدف یې یادیږي. فرعي جمله په (um) پیلیږي او فعل د جملې په وروستی برخه کې راځي، خو په ژوندي ډول، یعنې د مصدر یا (Infinitiv) په توګه. له مصدر نه مخکې (zu) ورسره لیکل کیږي. مثال:

| Hauptsatz | Nebensatz |
|---|---|
| Man braucht Geld, پیسې پکاریږي | um sich etwas Schönes kaufen zu können. د دې لپاره چې سړی یو ښه شی واخیستلی شي |
| Ich schreibe alles auf, زه هر شی لیکم | um es nicht zu vergessen. د دې لپاره چې هېر مې نشي |

| | |
|---|---|
| Wir fahren in die Stadt, مونږ ښار ته ځو | um ins Kino zu gehen. د دې لپاره چې مونږ سینما ته ولاړ شو |
| Er kam, هغه راغی | um mir zu gratulieren. د دې لپاره چې هغه ما ته مبارکي ووایي |
| Lebt der Mensch, انسان ژوند کوي<br>oder arbeitet der Mensch, او یا انسان کار کوي | um zu arbeiten, د دې لپاره چې کار وکړي<br>um zu leben? د دې لپاره چې ژوند وکړي؟ |

د (um … zu …) جمله کېدی شي چې د جملې په سر کې راشي، يعنې لومړی فرعي جمله راشي، بيا اصلي جمله. مثال:

| Nebensatz | Hauptsatz |
|---|---|
| Um vorwärts zu kommen, د دې لپاره چې سړي پر مخ ولاړ شي | muss man manchmal einen Schritt zurückgehen. کله کله سړی باید یو قدم په شا ولاړ شي |
| Um Erfolg zu haben, د دې لپاره چې بري لاس ته را شي | brauchst du nur eine einzige Chance! تا ته تش یو چانس پکار دی |
| Um gesund zu werden, د دې لپاره چې روغ شم | bin ich hier. زه دلته راغلی يم |
| Um reich zu werden, د دې لپاره چې سړی شتمن شي | gibt es viele Wege. دې ته ډېرې لارې شته |
| Um in dieser Stadt überleben zu können, د دې لپاره چې په دې ښار کې یوه کورنۍ ژوند وکړی شي | benötigt eine Familie 2000 Euro pro Monat. په یوې میاشتې کې دوه زره یورو پکارېږي |

**Übungen:** Bilden Sie bitte Finalsätze mit „damit“ und „um … zu“!

1. Ich bin nach Deutschland gekommen. Ich will Medizin studieren.
زه جرمني ته راغلی يم. زه غواړم چې د طب تحصیل وکړم
2. Mein Vater hat mir Geld geschickt. Ich soll mir einen Computer kaufen.
زما پلار ما ته پیسي راولیږي. زه باید ځانته پرې یو کمپیوټر واخلم
3. Meine Schwester ging in die Küche. Sie wollte mir das Essen holen.
زما خور پخلنځي ته ولاړه. هغې غوښتل چې ماته خواړه راوړي
4. Hast du dich mit deinem Freund verabredet? Wollt ihr einen Film anschauen? تا د خپل ملګري سره وعده وکړه؟ ته له هغه سره یو فلم لیدل غواړې؟
5. Der Arzt hat dem Kranken eine Tablette verschrieben. Er soll besser schlafen können. ډاکټر رنځور ته یوه ګولی ولیکله. هغه دې ښه خوب وکړي
6. Wir heizen im Winter die Wohnung. Sie soll warm werden.
مونږ په ژمي بخاری لګوو. استوګنځی باید تود شي
7. Wir bringen unser Geld auf die Bank. Es soll Zinsen bringen.
مونږ خپلې پیسي بانك ته وړو. هغه باید ګټه (سود) وکړي
8. Nachts schließen wird unser Haus zu. Es soll kein Fremder in das Haus kommen. د شپې له مخې مونږ خپل کور کلپوو. هیڅ پردی باید کور ته رادننه نشي
9. Ich habe mir ein Radio gekauft. Ich will täglich Nachrichten hören.
ما ځانته یوه راډیو په بیه واخیستله. زه غواړم چې هره ورځ خبرونه واورم

10. Der Patient ist ins Krankenhaus gegangen. Er will behandelt werden.
رنځور روغتون ته ولاړ. هغه غواړي چې درملنه یې وشي

**Lösungen:**

1. Ich bin nach Deutschland gekommen, um Medizin zu studieren.
زه د دې لپاره جرمني ته راغلی یم چې د طب تحصیل وکړم
2. Mein Vater hat mir Geld geschickt, damit ich mir einen Computer kaufe.
زما پلار ما ته د دې لپاره پیسې راولیږلې چې پرې ځانته یو کمپیوټر واخلم
3. Meine Schwester ging in die Küche, um mir das Essen zu holen.
زما خور د دې لپاره پخلنځي ته ولاړه چې ماته خواړه راوړي
4. Hast du dich mit deinem Freund verabredet, um mit ihm einen Film anzuschauen? تا د خپل ملګري سره د دې لپاره وعده وکړه چې له هغه سره یو فلم وګورې؟
5. Der Arzt hat dem Kranken eine Tablette verschrieben, damit er besser schlafen kann. ډاکټر رنځور ته د دې لپاره یوه ګولی ولیکله چې هغه ښه خوب وکړی شي
6. Wir heizen im Winter die Wohnung, damit sie warm wird.
مونږ په ژمي کې بخارۍ لګوو، د دې لپاره چې استوګنځی تود شي
7. Wir bringen unser Geld auf die Bank, damit es Zinsen bringt.
مونږ خپلې پیسې د دې لپاره بانك ته وړو چې ګټه (سود) لاس ته راشي
8. Nachts schließen wir unser Haus zu, damit kein Fremder ins Haus kommt.
د شپې له مخې مونږ د دې لپاره خپل کور کلپوو چې هېڅ کوم پردی کور ته رادننه نشي
9. Ich habe mir ein Radio gekauft, um täglich Nachrichten zu hören.
ما ځانته د دې لپاره یوه راډیو واخیستله چې هره ورځ خبرونه واورم
10. Der Patient ist ins Krankenhaus gegangen, um behandelt zu werden.
رنځور د دې لپاره روغتون ته ولاړ چې درملنه یې وشي

## Fragesätze als Nebensätze سوالیه جملې د فرعي جملو په توګه

مونږ په تېرو مبحثونو کې زده کړل چې یوه پوښتنه په دې ډول کیږي چې فعل د جملې په سر کې راشي. مثال: (Gehst du nach Hause?) یعنې ته کور ته ځې؟. دا جمله اصلي جمله یا (Hauptsatz) ده چې په یوازې ځان د یوې جملې په توګه استعمالیدی شي. کله چې د سرې پوښتنه اوږده شي او له اصلي جملې نه پرته یوې فرعي جملې ته اړتیا شي، نو د هغې لپاره د سوالیې ځانګړې کلمات یا (Fragewort) پکارېږي چې په لاندې جدول کې لیکل شویدي. که چېرته بیا د پوښتنو کولو کلمه د جملې په سر کې نه وي، نو هرومرو به د فرعي جملې په سر کې (ob) چې یو (Konjunktion) دی، راځي. د (ob) مانا ده (آیا). مثالونه به په جملو کې وګورو:

| | | |
|---|---|---|
| ohne Fragewort<br>بې د سوالیې له کلمې | ob آیا | Ich weiß nicht, ob ich dir helfen kann.<br>زه نیوهېږم چې آیا زه له تا سره مرسته کوی شم او که نه |
| temporal وخت | wann کله | Ich weiß, wann er gekommen ist.<br>زه پوهېږم چې هغه کله راغلی دی |
| kausal علت | warum ولې<br>weswegen<br>په کوم علت | Ich weiß, warum er nicht kommt.<br>زه پوهېږم چې هغه ولې نه راځي<br>Ich weiß, weswegen das Spiel nicht stattfindet.<br>زه پوهېږم چې په کوم علت دا لوبه نکیږي |

| | | |
|---|---|---|
| modal ډول، رقم | wie څنګه<br>wie څومره | Ich weiß, wie das Spiel ausgegangen ist.<br>زه پوهیږم چې د لوبې پایله څنګه ده<br>Ich weiß, wie groß die Stadt ist.<br>زه پوهیږم چې دا ښار څومره غټ دی |
| lokal ځای | woher<br>له لومه ځایه<br>wohin<br>کوم ځای ته | Ich weiß, woher er kommt.<br>زه پوهیږم چې هغه له کومه ځایه راځي<br>Ich weiß, wohin er geht.<br>زه پوهیږم چې هغه کوم ځای ته ځي |
| Person شخص | wer څوك<br>wessen<br>د چا | Ich weiß, wer dir helfen kann.<br>زه پوهیږم چې څوك له تا سره مرسته کوی شي<br>Ich weiß, wessen Leben in Gefahr ist.<br>زه پوهیږم چې د چا ژوند په خطر کې دی |
| Sache شی | was څه شی<br>welche کوم | Ich weiß, was der Grund dafür ist.<br>زه پوهیږم چې د دې علت څه شی دی<br>Ich weiß, welche Pläne er verfolgt.<br>زه پوهیږم چې هغه کوم پلانونه تعقیبوي |
| Präposition + Person | mit wem<br>له چا سره<br>für wen<br>د چا لپاره | Ich weiß, mit wem er befreundet ist.<br>زه پوهیږم چې هغه له چا سره ملګری دی<br>Ich weiß, für wen er arbeitet.<br>زه پوهیږم چې هغه د چا لپاره کار کوي |
| Präposition + Sache | worauf<br>څه شي ته<br>wodurch<br>په څه شي | Ich weiß, worauf er sich freut.<br>زه پوهیږم چې هغه څه شي ته خوښ دی<br>Ich weiß, wodurch das passiert ist.<br>زه پوهیږم چې دا په څه شي وشو |

| | |
|---|---|
| یادونه | د (worauf) او (wodurch) ماناګانې ډېرې دي او مانا يې دې پورې اړه لري چې له کوم فعل سره دا لغات استعمالیږي. د بېلګې په توګه به یو څو مختلف لغات وګورو |

| | |
|---|---|
| stellen اېښودل | Ich weiß, worauf du das Glas stellen willst.<br>زه پوهیږم چې ته په څه شي غواړې دا ګیلاس کېږدې |
| zurückführen<br>د یو شي علت اوسېدل | Ich weiß, worauf das zurückzuführen ist.<br>زه پوهیږم چې د دې علت به څه وي |
| fahren<br>په موټر کې تلل | Ich weiß, wodurch ihr gefahren seid.<br>زه پوهیږم چې تاسو د څه شي له مینځ نه په موټر کې تېر شوئ |
| unterscheiden<br>توپیر اوسېدل | Ich weiß, wodurch er sich von seinen Mitschülern unterscheidet. زه پوهیږم چې د نورو ټولګیوالانو سره د هغه څه توپیر دی |

**Übungen:** Bilden Sie indirekte Fragen mit Fragewort!

1. Wie heißt er? Ich habe keine Ahnung, ……………………………………………
د هغه نوم څه دی؟ زه هېڅ نپوهیږم چې د هغه نوم څه دی

2. Wo hast du den Anzug gekauft? Ich weiß nicht mehr, ………………………
دا دریشي تا چېرته په بیه اخیستې ده؟ دا مي اوس په یاد ندي چې دریشي مې چېرته اخیستې ده

3. Wann kommt er uns besuchen? Er hat nicht gesagt, …………………………..
هغه زمونږ لیدو ته کله راځي؟ هغه ندي ویلي چې زمونږ لیدو ته کله راځي

4. Warum hat sie so schlechte Laune? Ich kann dir nicht sagen, ………………
د هغې مزاج ولې خراب دی؟ زه درته نشم ویلی چې د هغې مزاج ولې خراب دی

5. Wer kommt zur Party? Ich verrate dir nicht, ………………………………..
د ساعت تېرۍ محفل ته څوك راځي؟ زه درته دا نه وایم چې د ساعت تېرۍ محفل ته څوك راځي

**Lösungen**:

1. Ich habe keine Ahnung, wie er heißt.
2. Ich weiß nicht mehr, wo ich den Anzug gekauft habe.
3. Er hat nicht gesagt, wann er uns besuchen kommt.
4. Ich kann dir nicht sagen, warum sie so schlechte Laune hat.
5. Ich verrate dir nicht, wer zur Party kommt.

**Übungen:** Bilden Sie indirekte Fragen mit ob!

1. Haben die Geschäfte sonntags geöffnet? مغازې د یکشنبو په ورځو کې پرانیستې دي؟
   Ich bin mir nicht sicher, ………………………………………………………..
   زه ډاډمن نه یم چې مغازې پرانیستې دي او که نه
2. Sind unsere Nachbarn schon verreist? زمونږ ګاونډیان په سفر تللي دي؟
   Ich weiß nicht, ……………………………………………………………………
   زه نپوهېږم چې زمونږ ګاونډیان په سفر تللي دي او که نه
3. Hat er geraucht? هغه سګرټ څکولي دي؟
   Ich verrate dir nicht, ……………………………………………………………
   زه درته دا راز نه وایم چې هغه سګرټ څکولي دي او که نه
4. Sprechen sie über uns? هغوی زمونږ په برخه کې خبرې کوي؟
   Ich verstehe nicht, ………………………………………………………………
   زه پرې نپوهېږم چې هغوی زمونږ په برخه کې خبرې کوي او که نه
5. Ist das gut oder schlecht? دا ښه دی او که بد؟
   Ich möchte nicht darüber urteilen, ………………………………………………
   زه نه غواړم چې په دې برخه کې قضاوت وکړم چې دا ښه دی او که بد

**Lösungen:**

1. Ich bin mir nicht sicher, ob die Geschäfte sonntags geöffnet haben.
2. Ich weiß nicht, ob unsere Nachbarn schon verreist sind.
3. Ich verrate dir nicht, ob er geraucht hat.
4. Ich verstehe nicht, ob sie über uns sprechen.
5. Ich möchte nicht darüber urteilen, ob das gut oder schlecht ist.

**Übungen**: Bilden Sie bitte Fragesätze! Beispiel: Wir haben Angst vor Schlangen. Fragesatz: Weißt du, wovor wir Angst haben?

مونږله مارانو نه ډاریږو پوښتنه: ته پوهیږې چې مونږ له څه شي نه ډاریږو؟ .

1. Er hat gestohlen. Er ist beim Stehlen erwischt worden.
هغه غلا کړیده. هغه په غلا کې نیول شوی دی
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې هغه په څه شي کې نیول شوی دی؟

2. Er unterscheidet sich von seinem Bruder durch seinen Fleiß.
پخپل زیار باندې هغه له خپل ورور نه توپیر لري
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې په څه کې هغه له خپل ورور نه توپیر لري؟

3. Er braucht für sein Haus viel Geld. د خپل کور لپاره د هغه ډیرې پیسې په کار دي
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته پوهیږې چې د هغه د څه لپاره ډیرې پیسې په کارې دي؟

4. Die Demonstranten protestieren gegen die Pläne der Regierung.
مظاهره چیان د حکومت د پلانونو په وړاندې لاریون کوي
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې د څه شي په وړاندې مظاهره چیان لاریون کوي؟

5. Ich habe eine Strafe bekommen. Die Strafe habe ich nicht verdient.
ما ته سزا راکړل شوه. زه د سزا لایق نه یم
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې د څه لپاره ما ته سزا راکړل شوه؟

6. In seiner Rede sucht er nach den richtigen Worten.
پخپله وینا کې هغه صحیح الفاظ لټوي
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې هغه پخپله وینا کې څه شی لټوي؟

7. Du denkst gerade sicher an deine Prüfung. ته یقیناً د خپلې ازموینې په فکر کې یې؟
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې زه د څه شي په فکر کې یم؟

8. Dass das nicht klappt, liegt daran, dass du faul bist.
دا چې دا نکیږي، لامل یې دا دی چې ته لټ یې
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې د دې لامل څه دی چې دا نکیږي؟

9. Sie warten seit zwei Stunden auf den Zug.
هغوی د دوه ساعتو راهیسې اورګاډي ته انتظار ولاړ دی
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې څه شي ته هغوی د دوه ساعتو راهیسې انتظار ولاړ دي؟

10. Mehl macht man aus Weizen. سړی اوړه له غنمو نه جوړوي
Fragesatz: Weißt du, ..........................................................
پوښتنه: ته په دې پوهیږې چې سړی اوړه له څه شي نه جوړوي؟

11. Wir wollen ein Haus bauen. Das Problem liegt nur noch darin, den richtigen Platz dafür zu finden.
مونږ غواړو چې یو کور جوړ کړو. ستونځه په دې کې ده چې صحیح ځای ورته پیدا کړو

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې په څه شي کې ستونځه پرته ده؟

12. Er erzählte einen Witz, und alle lachten laut darüber.

هغه یوه ټوکه وکړه، او ټولو پرې وخندل

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې ټولو په څه شي وخندل؟

13. Es geht hier um den Bart des Kaisers. خبره دلته د باچاه د ږیرې پورې ده

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې خبره څه شي پورې ده؟

14. Er hat sich unter einem Baum versteckt. هغه د یوې ونې لاندې پټ شو

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې هغه د څه شي لاندې پټ شو؟

15. Er lebt nur noch von seinen Ersparnissen. هغه تش د خپلې سپما نه ژوند کوي

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې هغه له څه شي نه ژوند کوي؟

16. Er hat Angst vor Spinnen. هغه له غنو نه ډارېږي

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې هغه له څه شي نه ډارېږي؟

17. Ich brauche heute etwas Geld. نن زما لږې پیسې پکارې دي

Fragesatz: Weißt du, ……………………………………………………………

پوښتنه: ته په دې پوهېږې چې زما څه شي پکار دي؟

**Lösungen**:

1. Weißt du, wobei er erwischt worden ist?
2. Weißt du, worin er sich von seinem Bruder unterscheidet?
3. Weißt du, wofür er viel Geld braucht?
4. Weiß du, wogegen die Demonstranten protestieren?
5. Weißt du, wofür ich eine Strafe bekommen habe?
6. Weißt du, wonach er in seiner Rede sucht?
7. Weißt du, woran ich gerade denke?
8. Weißt du woran das liegt, dass das nicht klappt?
9. Weißt du, worauf sie seit zwei Stunden warten?
10. Weißt du, woraus man Mehl macht?
11. Weißt du, worin das Problem liegt?
12. Weißt du, worüber alle lachten?
13. Weißt du, worum es hier geht?
14. Weißt du, worunter er sich versteckt hat?
15. Weißt du, wovon er noch lebt?
16. Weißt du, wovor er Angst hat?
17. Weißt du, wozu ich heute Geld brauche?

# Der Konjunktiv

(Konjunktiv) د ګرامر هغه برخه ده چې که څوك پرې ښه وپوهيږي نو د ګرامر له دې برخې نه به ډېر خوند واخلي. دا ځکه چې په (Konjunktiv) باندې هغه شان خبرې کېدی شي چې د سړي طبيعت پرې تازه کيږي. څه چې په واقعيت کې کېدونکی ندي، هغه کله کله په خوب او خيال کې ليدل کيږي، نو د خوب، خيال او تصور خبرې بيا په (Konjunktiv) کيږي. څنګه چې رحمان بابا ويلي دي:

| | |
|---|---|
| کاشکي زه خاورې ايرې دا ستا د در وای | چې قدم دې همېشه زما په سر وای |

نو څنګه چې رحمان بابا خپل ارمان ښودلی دی چې (کاشکي زه خاورې ايرې ستا د در وای)، نو دا شان د زړه ارمانونه هم په (Konjunktiv) بيانيږي. له بلې خوا ارمانی هيلې او ارماني امېدونه د سبا او د راتلونکي لپاره هم په (Konjunktiv) ويل کيږي. نو څنګه چې ښکاري د (Konjunktiv) مبحث ډېر په زړه پورې دی چې په لاندې برخه کې به په کراره کراره يوه يوه برخه يې زده کړو. د (Konjunktiv) لغت د لاتيني *(coniungere)* نه اخيستل شويدی چې يو بل سره نښلولو يا وصلولو ته وايي. په انګليسي کې ورته (subjunctive) وايي. په ځينو پښتو منابعو کې ورته (ارماني صيغه) او يا (ارماني جملې) ويل شويدي.
اوس به لږ څه وچ ګرامر زده کړو او بيا به ښايسته (Konjunktiv) ته بېرته راوګرځو او ښکلي ښکلي جملې، د خوبونو او خيالونو او د تصور او د ارمانونو جملې ولولو.

**د يو چا خبرې يا مطلب په درې ډولو بيانېدی شي**

| | | |
|---|---|---|
| 1 | | نېغ په نېغه يا کټ مټ د يو چا خپلې خبرې تکرارول چې دې ته (Indikativ) وايي |
| 2 | | نېغ په نېغه په يو چا امر کول، چې دې ته (Imperativ) وايي |
| 3 | | په (Konjunktiv) کې خبرې چې هغه په درې ډولو دي |
| | a | د يو دريمګړي سړي خبرې د هغه په غياب کې د يو بل چا له خولې |
| | b | د خوبونو، خيالونو او ارمانونو خبرې |
| | c | د امکاناتو خبرې چې دې ته (Möglichkeitsform) وايي |

(Konjunktiv) په دوه ډولو دی.

| | |
|---|---|
| Konjunktiv II | Konjunktiv I |

په (Konjunktiv I) کې د دريمګړي سړي خبرې د هغه په غياب کې کيږي چې دې ته ويل کيږي: (indirekte Rede) ، يعنې غير مستقيمې خبرې. په (Konjunktiv II) کې هغه نورې په زړه پورې خبرې کيږي چې پورتنی مقدمه کې يادې شوې.

## د (Konjunktiv I) د جوړولو لار

### ① (Konjunktiv I) په اوسني وخت يا په (Präsens) کې

په اوسني وخت يا په حال کې لومړی له هر فعل نه (-en) هيسته کيږي. څه چې پاتې شول، له هغې سره د (Konjunktiv I) خاص توري يوځای کيږي چې دا خاص توري په لاندېنې جدول کې ليکل شويدي:

## Konjunktiv I im Präsens

| اشخاص | Konjunktiv د خاص توري | له مصدر نه چې -en وویستل شي | د فعل پاتې برخه د Konjunktiv توري سره | Konjunktiv I |
|---|---|---|---|---|
| ich | ~e | geh | geh + e | gehe |
| du | ~est | geh | geh + est | gehest |
| er/sie/es | ~e | geh | geh + e | gehe |
| wir | ~en | geh | geh + en | gehen |
| ihr | ~et | geh | geh + et | gehet |
| sie | ~en | geh | geh + en | gehen |

### ② (Konjunktiv I) په تېر وخت کې

مخکې له دې چې د (Konjunktiv I) د پخواني وخت جوړول زده کړو، تاسو ته دا زيرى درکوم چې (Konjunktiv I) او (Konjunktiv II) تش يو پخوانى وخت لري. تاسو ته پته ده چې په ګرامري واقعي نړۍ يا په (Indikativ) کې درې پخواني وختونه شته چې هغه (Imperfekt) ، (Perfekt) او (Plusquamperfekt) دي. د (Konjunktiv I) د پخواني وخت جوړول د واقعي نړۍ يا د (Indikativ) په مقايسه ډېر اسان دى. اسانتيا يې په دې کې ده چې په (Konjunktiv I) کې د درې پخوانو وختونو د جوړولو څه جنجال نشته. د (Konjunktiv I) جوړول د (Perfekt) سره ورته والى لري. نو له دې کبله کله چې سړى د يو فعل د (Konjunktiv I) پخوانى وخت جوړوي، نو اسانه دا ده چې لومړى د دې فعل د واقعي نړۍ يا (Indikativ) لنډ پخوانى وخت يا (Perfekt) جوړ کړي، مثال: د (sagen) نږدې پخواني وخت يا (Perfekt) لپاره مونږ وايو : (ich habe gesagt) . نو له دې کبله د پخواني وخت د جوړولو لپاره سړى بايد پوه شي چې د (haben) او (sein) د (Konjunktiv I) بڼه څه شان ده. نو مخکې له دې چې بشپړې جملې جوړې کړو، بايد په دې پوه شو چې د (haben + sein) د (Konjunktiv I) ګردان څه شان دى. دا به په لاندينې جدول کې وګورو.

| اشخاص | Indikativ von haben + sein | | Konjunktiv I von haben + sein | |
|---|---|---|---|---|
| ich | habe | bin | habe | sei |
| du | hast | bist | habest | seist/seiest |
| er/sie/es | hat | ist | habe | sei |
| wir | haben | sind | haben | seien |
| ihr | habt | seid | habet | seiet |
| sie | haben | sind | haben | seien |

**يادونه**

په پورتني جدول کې د (Konjunktiv I) ګردان د (haben) د مصدر لپاره په هغه ډول چې ليکل شوى دى، يعني (ich habe) ، (wir haben) او (sie haben) په ورځينۍ ژوند کې هيڅ شان عملي بڼه نه لري، يعني دا چې نه ليکل کيږي او نه ويل کيږي. دا چې ولې په دې کتاب کې بيا هم ليکل کيږي، علت يې تش ژبني بشپړتيا ده. له (Konjunktiv I) نه ډېر وخت په (indirekte Rede) کې کار اخيستل کيږي چې په دې برخه کې به په لاندينو پاڼو کې ډېر څه زده کړو. کله چې (Konjunktiv I) او (Indikativ) يو شان وي لکه : (ich habe gesagt) نو د دې لپاره چې د (Konjunktiv I) او د (Indikativ) تر مينځ توپير وشي، نو په دې وخت کې له (Konjunktiv II) نه کار اخيستل کيږي. نو له دې کبله د (habe) په ځاى (hätte) استعماليږي.

د (indirekte Rede) د پخواني وخت په جوړولو کې تش د (habe + bin) په ځاى ويل کيږي:

| | |
|---|---|
| او یا (gekommen) لکه (Partizip Perfekt) یعني او پاتي برخه یې، (hätte + sei) او یا (gesagt) او یا (gegessen) او یا (getrunken) دا ټول د (Indikativ) په ډول پخپل حال پاتي کیږي. | |

| | |
|---|---|
| په (Indikativ) کي دري پخواني وختونه موجود دي<br>په indirekte Rede) کي تش یو پخوانی وخت دی | تکرار |

| Vergangenheit im Indikativ | | | | Vergangenheit in der indirekten Rede |
|---|---|---|---|---|
| | Imperfekt | Perfekt | Plusquamperfekt | für alle Formen gleich |
| ich | kam<br>sagte | bin gekommen<br>habe gesagt | war gekommen<br>hatte gesagt | sei gekommen<br>hätte gesagt |
| du | kamst<br>sagtest | bist gekommen<br>hast gesagt | warst gekommen<br>hattest gesagt | seiest gekommen<br>habest gesagt |
| er | kam<br>sagte | ist gekommen<br>hat gesagt | war gekommen<br>hatte gesagt | sei gekommen<br>habe gesagt |
| wir | kamen<br>sagten | sind gekommen<br>haben gesagt | waren gekommen<br>hatten gesagt | seien gekommen<br>haben gesagt |
| ihr | kamt<br>sagtet | seid gekommen<br>habt gesagt | wart gekommen<br>hattet gesagt | seiet gekommen<br>habet gesagt |
| sie | kamen<br>sagten | sind gekommen<br>haben gesagt | waren gekommen<br>hatten gesagt | seien gekommen<br>haben gesagt |
| Sie | kamen<br>sagten | sind gekommen<br>haben gesagt | waren gekommen<br>hatten gesagt | seien gekommen<br>haben gesagt |

**Übungen:**

Setzen Sie das Verb *sein* im Konjunktiv I ein.
1. Meine Lehrer sagen, ich …… sehr begabt. — زما ښوونکي وایي چي زه ډېر باستعداد یم
2. Er behauptet, du …… in Hamburg. — هغه ادعا کوي چي ته په همبورګ کي یې
3. Alle glauben, wir …… Zwillinge. — ټول فکر کوي چي مونږ غبرګوني یو
4. Er träumte, er …… durch die Prüfung gefallen. — هغه خوب لیدو چي هغه په ازموینه کي پاتي راغلی دی
5. Sie dachte, ihr …… Brüder. — هغي فکر وکړو تاسو سره ورونه یاست

**Lösungen:**
1. Meine Lehrer sagen, ich *sei* sehr begabt.
2. Er behauptet, du *seiest* in Hamburg.
3. Alle glauben, wir *seien* Zwillinge.
4. Er träumte, er *sei* durch die Prüfung gefallen.
5. Sie dachte, ihr *seiet* Brüder.

**Übungen:** Feste Wendungen – Setzen Sie die Verben im Konjunktiv I ein.

1. Es (leben) …… die Revolution! تل دې وي انقلاب
2. Man (nehmen) …… 4 Eier, 500 g Mehl und 250 g Zucker.
سړی څلور هګی، ۵۰۰ ګرامه اوړه او ۲۵۰ ګرامه بوره کاروي
3. Dein Wille (geschehen) ……. ستا اراده دې تر سره شي
4. (mögen) …… die Macht mit dir sein! قدرت دې له تا سره وي
5. Einer (tragen) …… des anderen Last. یو تن دې د بل تن بار په شا کړي

**Lösungen:**
1. Es *lebe* die Revolution!
2. Man *nehme* 4 Eier, 500 g Mehl und 250 g Zucker.
3. Dein Wille *geschehe*!
4. *Möge* die Macht mit dir sein!
5. Einer *trage* des anderen Last.

**Übungen**: Indirekte Rede – Setzen Sie die Verben im Konjunktiv I ein.

1. Viele denken: „Es ist höchste Zeit für Veränderungen.“
ډېر خلك په دې فکر دي چې: ,, اوس نو په ریښتیا د بدلونونو وخت رارسېدلی دی“
Indirekte Rede: زمونږ آمر وویل چې اوس نو په ریښتیا د بدلونونو وخت رارسېدلی دی
Viele denken, es (sein) ………….. höchste Zeit für Veränderungen.
2. Der Sprecher sagte: „Die Konferenz wird ein Zeichen setzen.“
ویاند په خبرو کې په ټینګه وویل: ,,دا کنفرانس به خلکو ته خپل اغېز وښايي ,,
Indirekte Rede: ویاند په خبرو کې په ټینګه وویل چې دا کنفرانس به خلکو ته خپل اغېز وښايي
Der Sprecher sagte, dass die Konferenz ein Zeichen setzen (werden) …….
3. Der Gärtner meint: „Der Baum wächst ca. 1 m pro Jahr.“
باغوان په دې فکر دی چې: ,, دا ونه په کال کې یو متر وده کوي“
Indirekte Rede: باغوان په دې فکر دی چې دا ونه په کال کې یو متر وده کوي
Der Gärtner meint, der Baum (wachsen) …… ca. 1 m pro Jahr.
4. Er behauptet: „Der Preis hat sich geändert.“
هغه ادعا کوي چې : ,, نرخ بدل شوی دی“
Indirekte Rede: هغه ادعا کوي چې: نرخ بدل شوی دی
Er behauptet, dass sich der Preis geändert (haben) …….
5. Ein kleines Kind denkt: „Eine Gottesanbeterin betet den Gott an.“
یو وړوکی ماشوم فکر کوي چې: ,, یوه پیل پیلکه (ملخ په شان حشره) خدای ته عبادت کوي “
Indirekte Rede: یو وړوکی ماشوم فکر کوي چې یوه پیل پیلکه خدای ته عبادت کوي
Ein kleines Kind denkt, eine Gottesanbeterin (beten) …… den Gott an.

**Lösungen**:
1. Viele denken, es *sei* höchste Zeit für Veränderungen.
2. Der Sprecher sagte, dass die Konferenz ein Zeichen setzen *werde*.
3. Der Gärtner meint, der Baum *wachse* ca. 1 m pro Jahr.

4. Er behauptet, dass sich der Preis geändert *habe*.
5. Ein kleines Kind denkt, eine Gottesanbeterin *bete* den Gott an.

**Übungen:** Bilden Sie bitte „indirekte Rede“.

1. Er sagt immer: „Ich weiß nichts!“ هغه تل وايي چې: زه له هېڅ شي نه خبر نه يم
   Indirekte Rede: هغه تل وايي چې هغه په هېڅ شي خبر ندی
   Er sagt immer, dass er nichts …….
2. Der Kunde sagt: „Ich bin nicht interessiert.“ مشتري وايي چې:“ زه څه علاقه نلرم„
   Indirekte Rede: مشتري وايي چې هغه څه علاقه نلرې
   Der Kunde sagt, dass er nicht interessiert …….
3. Jeder fragt dich: „Warum bist du so faul?“
   هر څوك له تا نه پوښتنه کوي: „ ته ولې دومره لټ يې؟“
   Indirekte Rede: هر څوك له مانه پوښتنه کوي چې کوي چې زه ولې دومره لټ يم
   Jeder fragt mich, warum ich so faul …….
4. Unser Lehrer informierte uns: „Ich mache die Prüfung nicht allzu schwierig.“
   زمونږ ښوونكي مونږ ته دا معلومات راکړو: „ زه ازموينه ډېره نه سختوم“
   Indirekte Rede: زمونږ ښوونكي مونږ ته داڼ راکړو چې هغه به ازموينه ډېره سخته نکړي
   Unser Lehrer informierte uns, dass er die Prüfung nicht allzu schwierig …….
5. Mein kleiner Sohn sagt: „Ich will jetzt nach Hause!“
   زما وړوکی زوی وايي چې: زه اوس کور ته تګ غواړم
   Mein kleiner Sohn sagt, dass er jetzt nach Hause …….
   زما وړوکی زوی وايي چې هغه اوس کور ته تګ غواړي
6. Er sagte: „Alle Angaben sollen noch überprüft werden.“
   هغه وویل: „ دا ټول معلومات دې له سره کنټرول شي“
   Indirekte Rede: هغه وویل چې دا ټول معلومات دې له سره کنټرول شي
   Er sagte, dass alle Angaben noch …….
7. Der Gärtner behauptete: „Ich schaffe die Arbeit allein.“
   مالیار ادعا وکړه: „ زه دا ټول کار په یوازې ځان کوی شم“
   Indirekte Rede: مالیار ادعا وکړه چې هغه دا ټول کارونه په یوازې ځان کوی شي
   Der Gärtner behauptete, dass er die Arbeit allein …….
8. Der Schaffner fragte: „Wo haben Sie Ihre Fahrkarte hingelegt?“
   نګران پوښتنه وکړه: „ تاسو خپل ټیکس چېرته ایښی دی؟“
   Indirekte Rede: نګران پوښتنه وکړه چې ما خپل ټکس چېرته ایښی دی
   Der Schaffner fragte, wo ich meine Fahrkarte …….
9. Der Zeuge sagte : „Ich kann mich nicht daran erinnern.“شاهد وویل: دا زما په یاد ندي“
   Indirekte Rede: شاهد وویل چې دا د هغه په یاد ندي
   Der Zeuge sagte, dass er sich nicht mehr daran …….
10. Dieser Mann behauptet: „Ich bin achtzig Jahre alt.“
    دا سړي ادعا کوي چې: „ زه اتیا کلن یم“
    Indirekte Rede: دا سړی ادعا کوي چې هغه اتیا کلن دی
    Dieser Mann behauptet, dass er achtzig Jahre alt …….

**Lösungen:**
1. wisse  2. sei  3. sei  4. mache  5. wolle  6. überprüft werden sollten  7. schaffe
8. hingelegt hätte  9. erinnern könne  10. sei

### ③ (Konjunktiv I) په راتلونکي وخت او یا په (Futur) کې

مخکې له دې چې د (Konjunktiv I) راتلونکی او یا (Futur) زده کړو، دا به تکرار کړو چې د (Futur) په جوړولو کې له (werden) له ګردانولو نه کار اخیستل کیږي. نو ښه به دا وي چې لومړی مونږ پوه شو چې د (werden) د راتلونکي وخت په (Konjunktiv I) کې په کوم شان جوړیږي.

| اشخاص | Indikativ | Konjunktiv I |
|---|---|---|
| ich | werde | werde |
| du | wirst | werdest |
| er, sie, es | wird | werde |
| wir | werden | werden |
| ihr | werdet | werdet |
| sie | werden | werden |

**Konjunktiv I im Futur I**

| اشخاص | Indikativ | Konjunktiv I | چې Indikativ او Konj. I یو شان وي، نو بیا Konj. II استعمالیږي |
|---|---|---|---|
| ich | werde kommen | werde kommen | würde kommen |
| du | wirst kommen | werdest kommen | |
| er/sie/es | wird kommen | werde kommen | |
| wir | werden kommen | werden kommen | würden kommen |
| ihr | werdet kommen | werdet kommen | würdet kommen |
| sie | werden kommen | werden kommen | würden kommen |

**Übungen:**

1. Er sagte, er wird morgen um acht Uhr kommen.
هغه وویل چې هغه به سبا په اته بجو راشي
Konjunktiv: ……………………………………………………………………
2. Du hast gesagt, dass du ihn heute noch besuchen wirst.
تا وویل چې ته به همدا نن د هغه لیدو ته ورشي
Konjunktiv: ……………………………………………………………………
3. Wir meinen, ihr werdet die Prüfung bestehen.
مونږ فکر کوو چې تاسو به په ازموینه کې بریالي شئ
Konjunktiv: ……………………………………………………………………

4. Ihr behauptet, wir werden dafür bestraft werden.
تاسو ادعا کوئ چي مونږ ته به له دی کبله سزا راکړل شي
Konjunktiv: ……………………………………………………………………
5. Du hast gehört, sie werden morgen verreisen.
تا اورېدلي دي چي هغوی به سبا په سفر ولاړ شي
Konjunktiv: ……………………………………………………………………
6. Mein Vater ist der Meinung, ich werde ein guter Ingenieur werden.
زما پلار په دې فکر دی چي زه به یو ښه انجنیر شم
Konjunktiv: ……………………………………………………………………

**Lösungen**:
1. Er sagte, er *werde* morgen um acht Uhr kommen.
2. Du hast gesagt, du *werdest* ihn heute noch besuchen.
3. Wir meinen, ihr *würdet* die Prüfung bestehen.
4. Ihr behauptet, wir *würden* dafür bestraft werden.
5. Du hast gehört, sie *würden* morgen verreisen.
6. Mein Vater ist der Meinung, ich *würde* ein guter Ingenieur werden.

## Konjunktiv I im Futur II

مخکي له دې چي د (Konjunktiv I) دوهم راتلونکی وخت یا (Futur II) زده کړو، دا به تکرار کړو چي په عادي حالت یا (Indikativ) کي (Futur II) داسې جوړيږي چي (werden) د مرستندوی فعل په حیث ګردانیږي او د یو مصدر له (Perfekt) سره یوځای کیږي. مثال:

| Ich werde gesagt haben. | ما به ویلي وي |
|---|---|

څنګه چي په پورتنی جملي کي لیدل کیږي (gesagt haben) د (sagen) د مصدر نږدې تېر وخت یا (Perfekt) دی. نو کله چي (Futur II) په (Konjunktiv I) کي راځي، نو قاعده یې دا ده چي د یو مصدر (Perfekt) پخپل حال پاتي کیږي، خو (werden) د (Konjunktiv I) په توګه ګردانیږي. دا مطلب که په پورتنی جملي کي تطبیق کړو، نو وبه وایو چي (gesagt haben) پخپل حال پاتي کیږي او تش (werden) د (Konjunktiv I) په ډول ګردانیږي. د دې مطلب لپاره لاندینی جدول وګورو:

| Futur II Indikativ | | | Futur II Konjunktiv I | | |
|---|---|---|---|---|---|
| Person | Hilfsverb | Infinitiv | Person | Hilfsverb | Infinitiv |
| ich | werde | gesagt haben<br>gegangen sein | ich | werde | gesagt haben<br>gegangen sein |
| du | wirst | gesagt haben<br>gegangen sein | du | werdest | gesagt haben<br>gegangen sein |
| er, sie, es | wird | gesagt haben<br>gegangen sein | er, sie, es | werde | gesagt haben<br>gegangen sein |
| wir | werden | gesagt haben<br>gegangen sein | wir | werden | gesagt haben<br>gegangen sein |
| ihr | werdet | gesagt haben<br>gegangen sein | ihr | werdet | gesagt haben<br>gegangen sein |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| sie | werden | gesagt haben<br>gegangen sein | sie | werden | gesagt haben<br>gegangen sein |
| Sie | werden | gesagt haben<br>gegangen sein | Sie | werden | gesagt haben<br>gegangen sein |

څنګه چې په پورتني جدول کې لیدل کیږي، د (ich, wir, ihr, sie) په حالتو کې د (Indikativ) او د (Konjunktiv I) تر مینځ هیڅ توپیر نه لیدل کیږي، نو ځکه په دې حالاتو کې د (Konjunktiv I) په ځای له (Konjunktiv II) نه کار اخیستل کیږي او د (werden) په ځای (würden) استعمالیږي.
د ډیر معلومات لپاره تاسو دې مبحث ته مراجعه وکړئ چې نوم یې دی:

*Bildung des Konjunktivs II mit dem Hilfsverb „würden“.*

# Das Passiv im Konjunktiv I

Das Passiv im Konjunktiv I im Präsens

په اوسني وخت کې د (Konjunktiv I) د (Passiv) حالت په دې ډول جوړیږي:

| Konjunktiv I | von | „werden“ | + | Partizip II |
|---|---|---|---|---|

**Vorgangspassiv im Konjunktiv I im Präsens**

په ځینو حالاتو کې سړی نشي پوهیدی چې دا (Konjunktiv I) دی او که (Indikativ)، نو په دې وجه بیا له (Konjunktiv II) نه کار اخیستل کیږي چې د جدول په ښي اړخ کې په سور رنګ لیدل کیدی شي.

| | Konjunktiv I | سور رنګ (Konjunktiv II) حالت ښایي |
|---|---|---|
| ich | werde informiert | würde informiert ما ته به معلومات راکړل شي |
| du | werdest informiert | werdest informiert تا ته به معلومات درکړل شي |
| er | werde informiert | werde informiert هغه ته به معلومات ورکړل شي |
| wir | werden informiert | würden informiert مونږ ته به معلومات راکړل شي |
| ihr | werdet informiert | würdet informiert تاسو ته به معلومات درکړل شي |
| sie | werden informiert | würden informiert هغوی ته به معومات ورکړل شي |
| Sie | werden informiert | würden informiert تاسو ته به معلومات درکړل شي |

Übungen: Bilden Sie den Konjunktiv I in Passivform!

1. Der Arzt operiert den Patienten. ډاکټر رنځور عملیاتوي
   Konjunktiv I: ……………………………………………………………………..
   رنځور د ډاکټر له خوا عملیاتیږي
2. Der Arzt hat den Patienten operiert. ډاکټر رنځور عملیات کړی دی
   Konjunktiv I: ……………………………………………………………………..
   رنځور د ډاکټر له خوا عملیاتیږي

10. Wir müssen morgen zeitig aufstehen. مونږ باید سبا د وخته له خوبه راجګ شو
Konjunktiv II: ……………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Ich sollte morgen kommen. ماته داسي وويل شول چي زه باید سبا راشم
2. Könntest du mir morgen helfen? ته به سبا له ما سره مرسته وکړی شې؟
3. Ich könnte dir auch übermorgen helfen. زه به بل سبا هم له تا سره مرسته وکړی شم
4. Er müsste nächste Woche gehen. هغه باید په راتلونکې اونی کې ولاړ شي
5. Der Arzt müsste in einer Stunde den Mann operieren.
ډاکټر باید په یو ساعت کې ددا سړی عملیات کړي
6. Du dürftest heute früher nach Hause gehen.
تا ته به اجازه وي چي نن وخته کور ته ولاړ شي
7. Ihr solltet heute eure Hausaufgaben machen. تاسو باید نن خپله کورنی وظیفه وکړئ
8. Wir könnten heute unsere Hausaufgaben machen, aber wir wollen nicht.
مونږ به وکولی شو چي نن خپله کورنی وظیفه وکړو، خو دا مونږ نه غواړو
9. Sie wollten nachher einkaufen gehen. هغوی غوښتل چي ورروسته سودا اخیستلو ته ولاړ شي
10. Wir müssten morgen zeitig aufstehen. مونږ ته لازمه ده چي سبا د وخته له خوبه راجګ شو

## د (Modalverben) د (Konjunktiv II) د پخواني وخت جوړولو لار

د (Konjunktiv II) د (Modalverb) د پخواني وخت د جوړولو لپاره د (haben) فعل د (Konjunktiv II) په بڼه ګردانیږي او یو بل فعل له (Modalverb) سره یوځای کیږي. (Modalverb) بیا د جملي په پای کې راځي، په لاندې ډول:

| hätten | + | Infinitiv | + | Modalverb im Infinitiv |
|---|---|---|---|---|

| | Position 1 | Verb 1 | Mittelfeld | Infinitiv | Modalverb im Infinitiv |
|---|---|---|---|---|---|
| Präteritum | mein Vater | musste | gestern | arbeiten | |
| Perfekt | mein Vater | hat | gestern | arbeiten | müssen |
| Konj.II mit Modalverb | mein Vater | hätte | gestern | arbeiten | müssen |
| Präteritum | mein Vater | durfte | nach Berlin | | fahren |
| Perfekt | mein Vater | hat | nach Berlin | fahren | dürfen |
| Konj.II mit Modalverb | mein Vater | hätte | nach Berlin | fahren | dürfen |

| | |
|---|---|
| پاملرنه | د (Konjunktiv II) جملي د واقعي جملو یا (Indikativ) برعکس یا سرچپه حالت ښکاره کوي، دا په دې مانا چي کوم شی چي په واقعیت کې شوی دی، نو په (Konjunktiv II) کې هغه شی هیڅ ندی شوی. دا مطلب به په لاندینوجملو کې وګورو: |

| Indikativ | Konjunktiv |
|---|---|
| Mein Vater hat gestern arbeiten müssen. زما پلار پرون مجبور و چې کار وکړي (یعني پرون یې کار وکړو) | Mein Vater hätte gestern arbeiten müssen. زما پلار باید پرون کار کړی وای (یعني دا چې پرون یې کار ونکړو) |

**Übungen:**

1. Ich konnte dir gestern gar nicht helfen. پرون ما له تا سره هيڅ مرسته نشوه کولی
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
2. Du durftest gestern eine Stunde früher nach Hause gehen.
   پرون تا ته اجازه وشوه چې يو ساعت د وخته کور ته ولاړ شې
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
3. Er konnte letzte Woche einkaufen gehen.
   هغه تېره اونۍ کوی شول چې سودا اخیستلو ته ولاړ شي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
4. Wir hatten dich gestern bei der Arbeit nicht stören dürfen.
   مونږ ته پرون اجازه نه وه چې په کار کې ستا مزاحمت وکړو
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
5. Vor zwei Monaten durfte ich es euch gar nicht sagen.
   دوه میاشتې دمخه ما ته هيڅ اجازه نه وه چې تاسو ته يې ووايم
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
6. Das Fußballspiel konntet ihr gestern gar nicht sehen.
   د فوټبال لوبه پرون تاسو هيڅ نشوه ليدلی
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
7. Letzte Woche hat er hier bleiben können, diese Woche aber nicht.
   تېره اونۍ هغه وکولی شو چې دلته پاتې شي، خو دا اونۍ نه
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
8. Vorgestern hatte ich mit dir gar nicht streiten wollen.
   وړمه ورځ ما هيڅ نه غوښتل چې له تا سره شخړه وکړم
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
9. Bis vor kurzem durften sie uns nicht anrufen.
   تر لنډ وخت مخکې پورې هغوی ته اجازه نه وه چې مونږ ته ټيلفون وکړي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
10. Unsere Gäste haben gestern sehr lange auf das Essen warten müssen.
    زمونږ مېلمنو پرون مجبوراً ډېر وخت ډوډۍ ته انتظار وويست
    Konjunktiv II: ……………………………………………………………
11. Der Arzt hatte gestern unbedingt zu dem Patienten gemusst.
    پرون ډاکټر مجبور و چې هرومرو رنځور ته ولاړ شي
    Konjunktiv II: ……………………………………………………………
12. Vor 5 Jahren hatte ich es gekonnt. پنځه کاله مخکې ما دا کوی شو
    Konjunktiv II: ……………………………………………………………
13. Bis vor einem Jahr hatten die Kinder nicht ins Kino gehen dürfen.
    تر يو کال مخکې پورې ماشومانو ته اجازه نه وه چې سينما ته ولاړ شي
    Konjunktiv II: ……………………………………………………………

14. Wir hatten in seiner Gegenwart nie reden dürfen.
مونږ ته هېڅکله اجازه نه وه چي د هغه په حضور کي خبري وکړو
Konjunktiv II: ……………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Ich hätte dir gestern gar nicht helfen können. پرون ما له تا سره هېڅ مرسته کوی نشوه
(مطلب دا چي که ما له تا سره مرسته کول غوښتل او که نه غوښتل، خو مرسته مي نشوه کولی)
2. Du hättest gestern eine Stunde früher nach Hause gehen dürfen.
پرون تا ته اجازه وه چي يو ساعت د وخته کور ته تللی وای (خو ته بيا هم ولاړ نشوي)
3. Er hätte letzte Woche einkaufen gehen können.
هغه تېره اونی کولای شول چي سودا اخيستلو ته ولاړ شي (خو هغه دي سره سره ولاړ نشو)
4. Wir hätten dich gestern bei der Arbeit nicht stören dürfen.
ښه به دا وای چي پرون مونږ په کار کي ستا مزاحمت نه وای کړی (خو بيا هم مزاحمت مو وکړو)
5. Vor zwei Monaten hätte ich es euch gar nicht sagen dürfen.
دوه مياشتي دمخه ما ته هېڅ اجازه نه وه چي تاسو ته يي ووايم (خو اوس اجازه ده)
6. Das Fußballspiel hättet ihr gestern gar nicht sehen können.
د فوټبال لوبه پرون تاسو هېڅ نشوه ليدلی (که هرڅومره خپله وسه مو هم کړي وای، ګټه يي نکوله)
7. Letzte Woche hätte er hier bleiben können, diese Woche aber nicht.
تېره اونی هغه دلته پاتي کېدی شو، خو دا اونی نه (خو هغه پاتي نشو)
8. Vorgestern hätte ich mit dir gar nicht streiten wollen.
وړمه ورځ ما هېڅ نه غوښتل چي له تا سره شخړه وکړم (خو شخړه بيا هم وشوه)
9. Bis vor kurzem hätten sie uns nicht anrufen dürfen.
تر لنډ وخت مخکي پوري هغوی ته اجازه نه وه چي مونږ ته ټېلفون وکړي (خو اوس اجازه ده)
10. Unsere Gäste hätten gestern sehr lange auf das Essen warten müssen.
زمونږ مېلمنو بايد پرون ډوډۍ ته ډېر وخت انتظار وېستلی وای (خو وېي نه وېست)
11. Der Arzt hätte gestern unbedingt zu dem Patienten gemusst.
پرون ډاکټر هرومرو رنځور ته بايد تللی وای (خو ولاړ نشو)
12. Vor 5 Jahren hätte ich es gekonnt. پنځه کاله مخکي ما به دا کوی شو (خو اوس نشم کولی)
13. Bis vor einem Jahr hätten die Kinder nicht ins Kino gehen dürfen.
تر يو کال مخکي پوري ماشومانو ته اجازه نه وه چي سينما ته تللي وای (خو اوس اجازه ده)
14. Wir hätten in seiner Gegenwart nie reden dürfen.
مونږ ته هېڅکله اجازه نه وه چي د هغه په حضور کي مو خبري کړي وای (خو اوس اجازه ده)

## Konjunktiv II und Passiv

Konjunktiv II der Gegenwart plus Passiv (= würde + Partizip II)

| | Indikativ | Konjunktiv II<br>würde + Partizip |
|---|---|---|
| Aktivsatz | Der Lehrer korrigiert bald den Aufsatz. ښوونکی په لنډو کي مقاله اصلاح کوي | |

| | | |
|---|---|---|
| Passivsatz | Der Aufsatz wird bald korrigiert.<br>مقاله په دې لنډو کې اصلاح کيږي | Der Aufsatz würde bald korrigiert.<br>مقاله به په لنډو کې اصلاح شي |
| Aktivsatz | Der Mann schließt jetzt den Laden.<br>دا سړی اوس هټۍ تړي | |
| Passivsatz | Der Laden wird jetzt geschlossen.<br>هټۍ اوس تړل کيږي | Der Laden würde jetzt geschlossen .<br>هټۍ به اوس وتړل شي |

**Übungen:**

1. Das Auto wird nächste Woche repariert. دا موټر په راتلونکې اونۍ کې جوړيږي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
2. Die Banane wird heute gegessen. دا کيله نن خوړل کيږي
   Konjunktiv II:
3. Die Häuser werden erst nächstes Jahr gebaut. کورونه په راتلونکي کال کې جوړيږي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
4. Ihr werdet in einer Stunde vom Minister persönlich begrüßt.
   تاسو ته په يو ساعت کې شخصاً د وزير له خوا ستړي مشي ويل کيږي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
5. Wir werden von allen Seiten beschimpft. مونږ ته له هرې خوا نه بدې ردې ويل کيږي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
6. Du wirst von deinem Vater finanziell unterstützt.
   له تا سره ستا د پلار له خوا مالي مرسته کيږي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………
7. Wegen ihrer Verbrechen werden sie von allen gehasst.
   د هغوی د جنايت په وجه له هغوی نه د ټولو کرکه راځي
   Konjunktiv II: ……………………………………………………………

**Lösungen**:

له لاندې جملو نه دې دا مانا واخيستل شي چې دا کومه مطلقه ادعا نده او کوم ثبوت ورته هم نشته چې دا به همداسې وي، بلکې دا مانا دې ترېنه واخيستل شي چې: داسې ويل کيږي چې ...

1. Das Auto würde nächste Woche repariert. دا موټر به راتلونکې اونۍ کې جوړ شي
2. Die Banane würde heute gegessen. دا کېله به نن وخوړل شي
3. Die Häuser würden erst nächstes Jahr gebaut.
   کورونه به په راتلونکي کال کې جوړ شي
4. Ihr würdet in einer Stunde vom Minister persönlich begrüßt.
   تاسو ته به په يو ساعت کې شخصاً د وزير له خوا ستړي مشي وويل شي
5. Wir würden von allen Seiten beschimpft. مونږ ته به له هرې خوا نه بدې ردې ويل کيږي
6. Du würdest von deinem Vater finanziell unterstützt.
   له تا سره به ستا د پلار له خوا مالي مرسته کيږي
7. Wegen ihrer Verbrechen würden sie von allen gehasst.
   د هغوی د جنايت په وجه به له هغوی نه له ټولو کرکه وشي

**Konjunktiv II der Vergangenheit plus Passiv**
(= wären + Partizip II + worden)

| | Indikativ | Konjunktiv II<br>wäre + Partizip II + worden |
|---|---|---|
| Aktivsatz | Er reparierte gestern das Auto.<br>هغه پرون موټر جوړ کړو | |
| Passivsatz | Das Auto wurde gestern repariert.<br>موټر پرون جوړ کړی شو | Das Auto wäre gestern repariert worden.<br>موټر به پرون جوړ کړی شوی وی |
| Aktivsatz | Er hat den Schlüssel gefunden.<br>هغه کیلي پیدا کړه | |
| Passivsatz | Der Schlüssel ist gefunden worden.<br>کیلي پیدا شوه | Der Schlüssel wäre gefunden worden.<br>کیلي به پیدا شوې وی |

**Übungen:**

1. Das Buch ist von allen Schülern gelesen worden.
دا کتاب د ټولو زده کوونکو له خوا لوستل شوی دی
Konjunktiv II: ..................................................................
2. Der alte Baum ist gestern gefällt worden. زړه ونه پرون وهل شوې ده
Konjunktiv II: ..................................................................
3. Der Patient ist operiert worden. رنځور عملیات شوی دی
Konjunktiv II: ..................................................................
4. Die Tür ist nicht geöffnet worden. دروازه پرانیستل شوې نده
Konjunktiv II: ..................................................................
5. Der Aufsatz ist gestern vom Lehrer korrigiert worden.
دا مقاله پرون د ښوونکي له خوا اصلاح شوې ده
Konjunktiv II: ..................................................................
6. Der verlorene Schlüssel ist vorgestern gefunden worden.
ورکه شوې کیلي ورمه ورځ پیدا شوې ده
Konjunktiv II: ..................................................................
7. Wir sind vor 10 Jahren in der Wüste entführt worden.
لس کاله مخکي مونږ په دښته کي تښتول شوي وو
Konjunktiv II: ..................................................................
8. Ihr seid bei der Demonstration von der Polizei geschlagen worden.
په لاریون کي تاسو د پولیسو له خوا وهل شوي یاست
Konjunktiv II: ..................................................................
9. Du bist zum Glück nicht von dem Auto angefahren worden.
له نیکه مرغه ته موټر ونه وهلې، موټر په تا ونه لګېدو
Konjunktiv II: ..................................................................

10. Du bist von dem Autohändler betrogen worden.
ته د موټر خرڅوونکي له خوا غولول شوی يې
Konjunktiv II: ……………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Das Buch wäre von allen Schülern gelesen worden.
(داسي ويل کيږي، اورېدل کيږي چي) دا کتاب د ټولو زده کوونکو له خوا لوستل شوی دی
2. Der alte Baum sei gestern gefällt worden. (ويل کيږي چي) زړه ونه پرون وهل شوې ده
3. Der Patient wäre operiert worden. (ويل کيږي چي) رنځور عمليات شوی دی
4. Die Tür wäre nicht geöffnet worden. (ويل کيږي چي) دروازه پرانيستل شوې نه وه
5. Der Aufsatz wäre gestern vom Lehrer korrigiert worden.
(ويل کيږي چي) دا مقاله پرون د ښوونکي له خوا اصلاح شوې وه
6. Der verlorene Schlüssel wäre vorgestern gefunden worden.
(ويل کيږي چي) ورکه شوې کيلي ورمه ورځ پيدا شوې وه
7. Wir wären vor 10 Jahren in der Wüste entführt worden.
(ويل کيږي چي) لس کاله مخکي مونږ په دښته کي تښتول شوي وو
8. Ihr wäret bei der Demonstration von der Polizei geschlagen worden.
(ويل کيږي چي) د لاريون په وخت کي تاسو د پوليسو له خوا وهل شوي واست
9. Zum Glück wärest du von dem Auto nicht angefahren worden.
(ويل کيږي چي) له نېکه مرغه ته د موټر له خوا ونه وهل شوی، موټر په تا ونه لګېدو
10. Du wärest von dem Autohändler betrogen worden.
(ويل کيږي چي) ته د موټر خرڅوونکي له خوا غولول شوی وې

## (Konjunktiv II) له غيرمنظم او يا (starke Verben) سره

څنګه چي په لومړی برخه کي ليکل شويدي، (Konjunktiv II) له مطلق تېر وخت يا (Präteritum) نه جوړيږي. کله چي د يو فعل دوهم توری په (Präteritum) کي (a, o, u) وي، نو په دې تورو باندي په (Konjunktiv II) کي دوه ټکي اېښودل کيږي، يعني (Umlaut) پرې راځي، يعني دا توري په (ä,ö, ü) بدليږي. مثال:

| Infinitiv | Präteritum | Konjunktiv II |
|---|---|---|
| kommen | er kam | er käme |
| singen | er sang | er sänge |
| liegen | er lag | er läge |
| werden | er wurde | er würde |
| sein | er war | er wäre |
| haben | er hatte | er hätte |
| wissen | er wusste | er wüsste |
| müssen | er musste | er müsste |

| | |
|---|---|
| استثنا | ځيني فعلونه شته چي د هغوی په (Präteritum) کي (a) راځي خو په (Konjunktiv II) کي د (ä) په ځای (ü) او يا بل څه راځي چي په لانديني جدول کي ليکل شوي دي: |

| Infinitiv | Präteritum | Konjunktiv II |
|---|---|---|
| werfen | er warf | er würfe |
| verderben | er verdarb | er verdürbe |
| sterben | er starb | er stürbe |
| helfen | er half | er hülfe |
| empfehlen | er empfahl | er empföhle |
| beginnen | er begann | er begänne/begönne |
| befehlen | er befahl | er befähle/beföhle |
| beginnen | er begann | er begänne/begönne |
| stehen | er stand | er stünde/er stände |
| gewinnen | er gewann | er gewönne/gewänne |
| gelten | er galt | er gölte (selten)/gälte |
| brennen | er brannte | er brennte |

**Übungen:**

1. Er kommt mogen auf jeden Fall ins Stadion. هغه سبا هرومرو لوبغالي ته راځي
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
2. Du hast ein wunderschönes Schloss gekauft. تا يوه ښايسته مانۍ په بيه واخيستله
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
3. Du weißt darüber ganz genau Bescheid. ته په دي برخه كي ډېر ښه خبر يي
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
4. Er glaubt, für ihn liegt das Geld auf der Straße.
   هغه گمان كوي چي د هغه لپاره پيسي د سرك په سر پرتي دي
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
5. Der Bäcker backt ein weißes Brot. نانبای يوه سپينه ډوډۍ پخوي
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
6. Vor allem die Nachtigall singt sehr schön. په تېره بيا بلبله ډېرې ښكلي سندرې وايي
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
7. Ihr glaubt, ihr werdet gesund. تاسو فكر كوئ چي تاسو به روغ شئ
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
8. Wir sind gutgläubige Menschen. مونږ خوش باوره انسانان يو
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
9. Ich muss noch einmal nach Hause gehen. زه بايد يو ځل بيا كور ته ولاړ شم
   Konjunktiv II: ………………………………………………………………
10. Die Polizei wirft dich bald ins Gefängnis. پوليس تا په دي لنډو كي په زندان كي اچوي

**Lösungen:**

1. Er käme morgen auf jeden Fall ins Stadion.
   (ويل كيږي چي) هغه سبا هرومرو لوبغالي ته راځي
2. Du hättest ein wunderschönes Schloss gekauft.
   (ويل كيږي چي) تا يوه ډېره ښايسته مانۍ په بيه اخيستي ده

3. Du wüsstest darüber ganz genau Bescheid.

(ویل کیږي چې) ته په دې برخه کې ډېر ښه خبر یې

4. Er glaubt, für ihn läge das Geld auf der Straße.

هغه فکر کوي چې د هغه لپاره به پیسې د سړك په سر پرتې وي

5. Der Bäcker bücke ein weißes Brot. (ویل کیږي چې) نانبای یوه سپینه ډوډی پخوي

6. Vor allem die Nachtigall sänge sehr schön. (ویل کیږي چې) په تېره بیا بلبله ډېرې ښکلې سندرې وایي

7. Ihr glaubt, ihr würdet gesund. (داسې ویل کیږي چې) تاسو فکر کوئ چې تاسو به روغ شئ

8. Wir wären gutgläubige Menschen. (ویل کیږي چې) مونږ خو ش باوره انسانان یو

9. Ich müsste noch einmal nach Hause gehen.

(دا مجبوریت دی چې) زه باید یو ځل بیا کور ته ولاړ شم

10. Die Polizei würfe dich bald ins Gefängnis.

(داسې ویل کیږي چې) پولیس به تا په دې لنډو کې په زندان کې وغورځوي

## Bildung des Konjunktivs II mit dem Hilfsverb „würden"

د (Konjunktiv II) په جوړولو کې کله چې د یو فعل (Indikativ) او (Konjunktiv II) یو شان وي نو سړی پرې نشي پوهېدی چې دا (Indikativ) جمله ده او که (Konjunktiv II) . نو له دې کبله بیا له (würden) نه کار اخیستل کیږي. مثال: د (kaufen) یعني په بیه اخیستل (Konjunktiv II) کیږي: (er kaufte) . په عین وخت کې (kaufte) د (kaufen) د فعل مطلق پخوانی وخت یا (Präteritum) هم دی. د (er kaufte) مانا ده : (هغه یو شی په بیه واخیستو). خو د (Konjunktiv II) مطلب دا دی چې هغه یو شی په بیه اخیستی ندی، هغه به یې په بیه واخلي، که چېرته ....

نو د دې لپاره چې د (Konjunktiv II) او (Indikativ) توپیر وشي، نو په (Konjunktiv II) کې له (würde) نه کار اخیستل کیږي او ویل کیږي: (Er würde kaufen) چې مانا یې ده: (هغه به یو شی په بیه واخلي، که چېرته... ) . اوس به لاندینی جدول وګورو:

| | Futur Konjunktiv II | کله چې Indikativ او Konjunktiv II یو شان وي، نو würde کارول کیږي |
|---|---|---|
| ich | werde gesagt haben<br>werde gegangen sein | würde gesagt haben<br>würde gegangen sein |
| du | werdest gesagt haben<br>werdest gegangen sein | werdest gesagt haben<br>werdest gegangen sein |
| er, sie, es | werde gesagt haben<br>werde gegangen sein | werde gesagt haben<br>werde gegangen sein |
| wir | werden gesagt haben<br>werden gegangen sein | würden gesagt haben<br>würden gegangen sein |
| ihr | werdet gesagt haben<br>werdet gegangen sein | würdet gesagt haben<br>würdet gegangen sein |
| sie | werden gesagt haben<br>werden gegangen sein | würden gesagt haben<br>würden gegangen sein |
| Sie | werden gesagt haben<br>werden gegangen sein | würden gesagt haben<br>würden gegangen sein |

**Übungen**:

Bilden Sie Sätze im Konjunktiv I, Futur I und Futur II

1. Du wirst morgen freudig nach Hause laufen. ته به سبا په خوشحالۍ کور ته ولاړ شي
   Konjunktiv: Er sagte, dass du……………………………………………
2. Du wirst morgen wieder zurückgekommen sein. ته به سبا بېرته راغلی يې
   Konjunktiv: Er sagte, dass du ……………………………………………
3. Der Rasen wird morgen gedüngt werden. کبلې ته به سبا سره واچول شي
   Konjunktiv: Er sagte, ……………………………………………………
4. Der Rasen wird morgen gemäht worden sein. کبله به سبا رېبل شوې وي
   Konjunktiv: Er sagte, dass ……………………………………………
5. Wir werden morgen viel Glück haben. زمونږ به سبا ډېره طالع وي
   Konjunktiv: Er sagte, dass ……………………………………………
6. Wir werden morgen viel Glück gehabt haben. مونږ به سبا ډېره طالع درلودلې وي
   Konjunktiv: Er sagte, das wir …………………………………………..
7. Das werde ich morgen bestimmt vergessen. دا به سبا زما هرومرو هېر شي
   Konjunktiv: Das ………………………………………………
8. Das werde ich morgen bestimmt vergessen haben. سبا به دا هرومرو زما هېر شوي وي
   Konjunktiv: Das ………………………………………………
9. Ihr werdet dort bestimmt krank werden. تاسو به هلته هرومرو ناروغه شئ
   Konjunktiv: Ihr ……………………………………………………
10. Ihr werdet morgen dort bestimmt krank geworden sein.
    تاسو به سبا هلته هرومرو ناروغه شوي یاست
    Konjunktiv: Ihr …………………………………………………

**Lösungen**:

1. Er sagte, dass du morgen freudig nach Hause laufen werdest.
   هغه وويل چې ته به سبا په خوشحالۍ کور ته ولاړ شي
2. Er sagte, dass du morgen wieder zurückgekommen sein werdest.
   هغه وويل چې ته به سبا بېرته راغلی واوسې
3. Er sagte, dass der Rasen morgen gedüngt werden werde.
   هغه وويل چې سبا به کبلې ته سره واچول شي
4. Er sagte, dass der Rasen morgen gemäht worden sein werde.
   هغه وويل چې سبا به کبله رېبل شوې واوسي
5. Er sagte, dass wir morgen viel Glück haben würden.
   هغه وويل چې سبا به زمونږ ډېره طالع وي
6. Er sagte, dass wird morgen viel Glück gehabt haben würden.
   هغه وويل چې سبا به مونږ ډېره طالع درلودلې وي
7. Das würde ich morgen bestimmt vergessen.
   (داسې ښکاري چې) سبا به دا زما هرو مرو هېر شي
8. Das würde ich morgen bestimmt vergessen haben.
   (داسې ښکاري چې) دا به سبا زما هرومرو هېر شوي وي

9. Ihr würdet dort bestimmt krank werden.
(داسې په نظر کې راځي چې) تاسو به هلته هرومرو ناروغه شئ
10. Ihr würdet morgen dort bestimmt krank geworden sein.
(داسې په نظر کې راځي چې) تاسو به سبا هلته هرومرو ناروغه شوي یاست

**Übungen:**

1. Wenn du eines Tages in Deutschland bist, lernst du sehr schnell Deutsch.
که ته په کومه ورځ جرمني کې واوسې، نو ته ډېر ژر جرمني ژبه زده کوې
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
2. Wenn ich Lust habe, arbeite ich sehr gerne. که زما زړه وي، نو ډېر په مینه کار کوم
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
3. Wir essen niemals verdorbene Lebensmittel.
مونږ هېڅکله خوسا شوي خوراکي توکي نه خورو
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
4. Ihr bezahlt morgen fünf Euro statt zehn Euro.
سبا تاسو د لس یورو په ځای پنځه یورو ورکوئ
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
5. Du putzt den Boden nicht richtig. ته مځکه سمه نه پاکوې
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
6. Bei dieser Arbeit verdienen sie sehr wenig Geld.
هغوی په دې کار کې ډېرې لږې پیسې ګټي
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
7. Du redest viel zu viel. ته له حده ډېرې خبرې کوې
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
8. Heute schneit es nicht mehr. نن نوره واوره نه وریږي
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
9. Morgen regnet und hagelt es überall. سبا هره خوا باران او ږلۍ وریږي
Konjunktiv II: ………………………………………………………………
10. Wir backen morgen ein leckeres Brot. مونږ سبا یوه خوندوره ډوډۍ پخوو
Konjunktiv II: ………………………………………………………………

**Lösungen:**

1. Wenn du eines Tages in Deutschland bist, würdest du sehr schnell Deutsch lernen. که ته کومه ورځ په جرمني کې واوسې، نو ته به ډېر ژر جرمني ژبه زده کړې (دا یو عام اټکل دی، نه کومه سل په سلو کې خبره ده)
2. Wenn ich Lust habe, würde ich sehr gerne arbeiten.
که زما زړه وي، نو ډېر په مینه به کار وکړم (خو داسې لا تر اوسه پورې ندي شوي)
3. Wir würden niemals verdorbene Lebensmittel essen.
مونږ به هېڅکله خوسا شوي خوراکي توکي ونه خورو (ځکه چې داسې کار څوك نه کوي)
4. Ihr würdet morgen fünf Euro statt zehn Euro bezahlen.
(داسې ویل کیږي چې ) سبا به تاسو د لس یورو په ځای پنځه یورو ورکړئ
5. Du würdest den Boden nicht richtig putzen. (داسې ویل کیږي چې) ته مځکه سمه نه پاکوې

6. Bei dieser Arbeit würden sie sehr wenig Geld verdienen.
(داسې ویل کیږي چې) هغوی په دې کار کې ډېرې لږې پیسې ګټې
7. Du würdest viel zu viel reden. (داسې ویل کیږي چې) ته له حده ډېرې خبرې کوې
8. Heute würde es nicht mehr schneien. (داسې ویل کیږي چې) نن به نوره واوره ونه وریږي
9. Morgen würde es überall regnen und hageln.
(داسې ویل کیږي چې) سبا به هره خوا باران او ږلۍ ووریږي
10. Wir würden morgen ein leckeres Brot backen.
(که هرڅه له پلان سره سم وشي، نو) مونږ به سبا یوه خوندوره ډوډۍ پخه کړو

### له (Konjunktiv II) نه په کومو حالاتو کې کار اخیستل کیږي؟

په پورتنیو پانو کې مو تش وچ ګرامر ولوست. اوس به راشو له (Konjunktiv II) نه خوند اخیستلو ته. څنګه چې په لومړۍ برخه کې یاده شوه، (Konjunktiv) د ټول ګرامر خوږه او په زړه پورې برخه ده. نو اوس به د (Konjunktiv II) ښایسته برخه وپیژنو.

کله چې مونږ (Konjunktiv II) ته راشو، نو د واقعیت له نړیه وځو او غیر واقعي نړۍ ته ورتېرېږو. د غیرواقعي نړۍ نه مطلب دا دی چې خیالونه او تصورونه، هیلې او خوبونه، ارمانونه او دعاګانې په (Konjunktiv II) کې بیانیږي. له بلې خوا برعکس هم کېدی شي چې لکه د خوب په شان یوه کېدونکي خبره یوناڅاپه نه کېدونکي شي. کله کله د یو خیال د رینتیا کېدو لپاره یو شرط ایښودل کیږي چې دا شرط هم په (Konjunktiv II) ایښودل کیږي. له بلې خوا له مهربانۍ او له احترام نه ډکې خبرې هم په (Konjunktiv II) کیږي.

## Irreale Bedingungssätze = Irreale Konditionalsätze
### شرطیه جملې چې ترسره کېدل یې غیر واقعي دي

دا هغه جملې دي چې ترسره کېدل یې له یوې خوا له یوه شرط پورې تړلي دي. له بلې خوا په ترسره کېدو کې یې ډېر شك پروت دی. په بل عبارت ترسره کېدل یې غیرواقعي دي او دا یوازې او یوازې د یو چا په خیال کې ګرځي. مثالونه یې په لاندیني جدول کې وګورو:

| | |
|---|---|
| Gegenwart<br>اوسنی وخت | Wenn ich Zeit *hätte*, dann *käme* ich sofort zu dir.<br>*Hätte* ich Zeit, dann *käme* ich sofort zu dir.<br>Ich *käme* sofort zu dir, wenn ich Zeit *hätte*.<br>که چېرته ما وخت درلودلی، نو زه به سمدلاسه ستا خوا ته درغلی وای<br>Wenn ich ein Vöglein *wär'* und zwei Flüglein hätt', flög' ich zu Dir. که زه یو مرغه وای او دوه وزرونه مې درلودلی، نو زه به ستا په لوري درالوتلی وای (دا یوه مشهوره جرمنی سندره ده) |
| Zukunft<br>راتلونکی | Wenn ich dich einmal *wiedersehen könnte*, *wäre* ich glücklich.<br>که چېرته ما ته یو ځل بیا ولیدلی شوې، نو زه به بختور واوسم |
| Vergangenheit<br>پخوانی وخت | Wenn wir damals *gespart hätten*, so *hätten* wir das Auto *gekauft*. که چېرته مونږ هغه وخت کې سپما کړې وای، نو دا موټر به مو په بیه اخیستی وای<br>*Hätten* wir damals *gespart*, so *hätten* wir das Auto *gekauft*.<br>Es *wäre* mir lieber *gewesen*, wenn du gleich *gekommen wärest*.<br>که چېرته ته سمدلاسه راغلی وای، نو دا به ماته له هرڅه نه ښه وای |

Es *wäre* besser *gewesen*, wir *hätten* miteinander *gesprochen*.
ښه به دا وای چې مونږ له یو بل سره خبرې کړې وای

ځنګه چې تاسو په پورتنیو جملو کې ګورئ، یوه شرطیه جمله په (wenn) پیلیږي. که چیرته بیا په (wenn) پیل نشي، نو د جملې په سر کې فعل راځي.همدا شان په شرطیه جمله کې د (wenn) په ځای د جملې په سر کې (Es wäre …) هم راتلی شي.

**Übungen:** Bilden Sie irreale Bedingungssätze! Beispiel: مثال
Ich verpasste den Bus, deshalb musste ich den ganzen Weg zu Fuß laufen.
له ما نه سرویس ولاړ، نو ځکه زه مجبور شوم چې دا ټوله لار په پښو مزل وکړم
Irrealer Bedingungssatz:
Wenn ich den Bus nicht verpasst hätte, hätte ich nicht den ganzen Weg zu Fuß laufen müssen. که چیرته له ما نه سرویس نه وای تللی، نو زه به دې ته مجبور شوی نه وای چې دا ټوله لار به مې په پښو مزل کړی وای

1. Du hast nicht fleißig genug gelernt. Deshalb musstest du die Prüfung wiederholen. تا په کافي اندازه درس ونه لوست. نو ځکه ته د ازموینې د تکرار لپاره مجبور شوې
2. Es war nicht hell genug. Deshalb konnte er den Radfahrer nicht sehen.
په کافي اندازه رڼا نه وه . نو ځکه هغه بایسکل ځغلوونکی ونه لیدو
3. Der Cricketspieler hat sich den Fuß verstaucht. Deshalb konnte er an dem Spiel nicht teilnehmen.
د کریکټ د لوبغاړي پښه واوښتله. نو ځکه یې په دې لوبه کې ګډون ونکړی شو
4. Du hast nicht aufgepasst, deshalb hast du den Brief verloren.
تا پام ونه نیو. نو ځکه دا لیك درنه ورك شو
5. Er ist bei Rot gefahren. Deshalb musste er eine Geldstrafe zahlen.
هغه له سرې اشارې نه تېر شو. نو ځکه هغه د یوې نقدي جریمې ورکولو ته مجبور شو
6. Der Parkplatz war so voll, dass er sei Auto nicht parken konnte.
د پارکولو ځای دومره ډك و چې هغه خپل موټر پارکولی ونشو
7. Ein Cricketspieler ist verletzt worden. Deshalb hat die Mannschaft das Spiel verloren. د کریکټ یو لوبغاړی ټپي شو، نو ځکه لوبډلې لوبه وبایلله
8. Der Torwart stand nicht im Tor, deshalb konnte der Gegner ein Tor schießen.
ګولکیپر په ګول کې ولاړ نه و، نو ځکه مقابل لونغاړي یو ګول ووهلی شو
9. Der Schuss war schwach, deshalb konnte der Torwart den Ball halten.
شوټ کمزوری و، نو ځکه ګولکیپر توپ ونیولی شو
10. Es gab Glatteis, deshalb sind Fußgänger auf der Straße ausgerutscht.
مځکه کنګل وهلې وه، نو ځکه په پښو تلونکي د سړك په سر ښوییدل

**Lösungen:**

1. Wenn du fleißig genug gelernt hättest, hättest du die Prüfung nicht wiederholen müssen. که چیرته تا په کافي اندازه درس لوستی وای، نو دې ته به مجبور شوی نه وای چې ازموینه دې یوځل بیا لیکلې وای
2. Wenn es hell genug gewesen wäre, hätte er den Radfahrer sehen können.
که چیرته په کافي اندازه رڼا وای، نو هغه به بایسکل ځغلوونکی لیدلی شوای

3. Wenn sich der Cricketspieler den Fuß nicht verstaucht hätte, hätte er an dem Spiel teilnehmen können.
که چېرته د کریکټ لوبغاړي پښه نه وای اوښتي، نو په دې لوبه کې به يې ګډون کولی شوای
4. Wenn du aufgepasst hättest, hättest du den Brief nicht verloren.
که چېرته تا پام نیولی وای، نو دا لیك به درنه ورك شوی نه وای
5. Wenn er nicht bei Rot gefahren wäre, hätte er keine Geldstrafe zahlen müssen.
که چېرته هغه له سرې اشارې نه تېر شوی نه وای، نو نقدي جريمه به يې نه وای تحویله کړې
6. Wenn der Parkplatz nicht so voll gewesen wäre, hätte er sein Auto parken können.
که چېرته د پارکولو ځای دومره ډك نه وای، نو هغه به خپل موټر پارك کړی وای
7. Wenn ein Cricketspieler nicht verletzt worden wäre, hätte die Mannschaft das Spiel nicht verloren. که چېرته د کریکټ یو لوبغاړی ټپي شوی نه وای، نو لوبډلې به لوبه نه وای بایللې
8. Wenn der Torwart im Tor gestanden hätte, hätte der Gegner kein Tor schießen können. که چېرته ګولکيپر په ګول کې ولاړ وای، نو مقابل لوبغاړي به ګول وهلی نه شوای
9. Wenn der Schuss nicht so schwach gewesen wäre, hätte der Torwart den Ball nicht halten können. که شوټ دومره کمزوری نه وای، نو ګولکيپر به دا توپ کرځولی نه شوای
10. Wenn es kein Glatteis gegeben hätte, wären Fußgänger auf der Straße nicht ausgerutscht. که چېرته مځکه کنګل نه وای وهلې، نو په پښو تلونکي به د سړك په سرښويېدلي نه وای

## Irreale Wunschsätze

### له هيلو، خواهشاتو نه ډکې يا ارماني جملې چې ترسره کېدی نشي

د نه ترسره کېدونکو هيلو جملې داسې هيلې بيانوي چې هېڅکله ترسره کېدی نشي. د نه ترسره کېدونکو هيلو جملې يا (irreale Wunschsätze) تل د واقعي جملو يا د (Indikativ) برعکس حالت ښايي. په بل عبارت د يوې واقعي جملې يو خواشينوونکی حالت د هيلو او ارمانونو په جملو کې تل مثبت او د انسان په طبع برابر وي . نو د همدې موخې لپاره د يو واقعي بد صفت لپاره چې خواشينوونکی دی، د هيلو او ارمانونو په جملو کې د دې صفت برعکس صفت، يعني يو ښه او په طبع برابر صفت لټول کيږي. د بېلګې په توګه کله چې په يوې واقعي جملې کې (يخ = kalt) ياد شي، نو په غير واقعي جملې کې بيا د (يخ) په ځای (تود = warm, wärmer) کارول کيږي. هغه صفت چې په غير واقعي يا له ارمان نه ډکو جملو کې استعماليږي، زياتره وخت لاپسې ډېر صفت يا (Komperativ) ښايي، لکه (لاپسې ښه، لاپسې تود، لاپسې ژر = besser, wärmer, schneller) او داسې نور. د دې لپاره چې سړی خپل ارمان بيان کړی شي، نو فعل بايد تل په (Konjunktiv II) کې راشي.

### د هيلو او ارمانونو د جملو جوړولو لار

۱ـ د جملې په سر کې (wenn) راځي، ورپسې فاعل (Subjekt) راځي او بيا ورپسې (doch) او يا (nur) يا (bloß) او يا (doch nur) او د جملې په پای کې فعل راځي او د ټکي په ځای تل يوه ندائيه (!) ليکل کيږي.

| irrealer Wunschsatz | = | wenn | + | Subjekt | + | doch … | + | Verb | + | (!) |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

د بېلګي په توګه به اوس يوه واقعي خواشينونکي جمله وو‌ينو چي يو څوك يي د بدلېدو يا ښه کېدو په ارمان وي:

| Indikativsatz واقعي جمله | Irrealer Wunschsatz غير واقعي ارماني جمله |
|---|---|
| Ich bin kein berühmter Dichter.<br>زه کوم مشهور شاعر نه يم | Wenn ich doch ein berühmter Dichter wäre!<br>کاشکي زه يو مشهور شاعر واى |

۲ـ د جملي په سر کي يو فعل (Verb) په (Konjunktiv II) کي راځي، وروسته فاعل (Subjekt) راځي او بيا وروسته (doch) او يا (nur) يا (bloß) او يا (doch nur) او وروسته د جملي په پاى کي هغه څه راځي چي سړى يي ارمان کوي. دا ارمان کېدى شي چي يو صفت (Adjektiv) ، يو قيد (Adverb) ، يو نوم يا اسم (Substantiv) يا يو فعل (Verb) او يا (Partizip Perfekt) واوسي. جمله د ټکي په ځاى په ندائيه (!) پاى ته رسيږي. اوس به دا موضوع به په بېلو بېلو مثالونو کي وګورو.

Verb im Konjunktiv II + Subjekt + doch … + Adjektiv + (!)

| Indikativ | Irrealer Wunschsatz |
|---|---|
| Es ist so kalt. ډېر ساړه دي | Wäre es doch nur ein wenig wärmer!<br>کاشکي چي هوا لږ څه توده واى |

Verb im Konjunktiv II + Subjekt + doch … + Adverb + (!)

| Indikativ | Irrealer Wunschsatz |
|---|---|
| Ich bin immer traurig. زه تل غمجن يم | Wäre ich doch nicht immer traurig.<br>کاشکي چي زه تل غمجن نه واى |

Verb im Konjunktiv II + Subjekt + doch … + Substantiv + (!)

| Indikativ | Irrealer Wunschsatz |
|---|---|
| Ich habe kein Geld. زه هېڅ پيسي نه لرم | Hätte ich doch nur ein wenig Geld.<br>کاشکي چي ما لږ څه پيسي درلودلى |

Verb im Konjunktiv II + Subjekt + doch … + Verb + (!)

| Indikativ | Irrealer Wunschsatz |
|---|---|
| Mein Kopf schmerzt sehr.<br>زما سر ډېره خوږيږي | Würde mein Kopf doch nicht so schmerzen.<br>کاشکي زما سر دومره ډېره نه خوږېدلى |

Verb im Konjunktiv II + Subjekt + doch … + Partizip Perfekt + (!)

| Indikativ | Irrealer Wunschsatz |
|---|---|
| Schade, dass ich es getan habe.<br>دا د خواشيني ځاى دى چي ما دا کار وکړو | Hätte ich es nur nicht getan!<br>کاشکي چي ما دا کار نه واى کړى |

**Übungen**: Bilden Sie bitte irreale Wunschsätze!

1. Das Büro ist zu weit von meinem Haus entfernt. دفتر زما له کور نه ډېره لیرې دی
2. Sie liebt mich nicht. د هغې زه نه خوښېږم، له ما سره یې مینه نشته
3. Sie haben mir gestern nicht die Wahrheit gesagt. تاسو ماته پرون واقعیت نه و ویلي
4. Ich bin kein bekannter Politiker. زه کوم مشهور سیاستوال نه یم
5. Die Suppe schmeckt scheußlich. ښوروا ډېره بې خونده ده
6. Die Lebensmittel sind viel zu teuer. خوراکي توکي ډېر ګران دی
7. Es gibt keinen Laden in der Nähe. دلته په دې نږدو کې کومه هټۍ نشته
8. Hier ist es so langweilig. دلته د سړي زړه ډېر تنګیږي
9. Sie hat keine Zeit für mich. هغه زما لپاره هېڅ وخت نلري
10. Der Junge spricht so undeutlich. دا هلك ډېر غیر واضح غږیږي
11. Der Bus kommt immer zu spät. سروېس تل ناوخته راځي
12. Meine Großmutter ist gestorben. زما نیا مړه شوېده
13. Meine Schwester kann nicht gut kochen. زما خور ښه پخلی نشي کولی
14. Ich habe meine Mutter nie gesehen. ما خپل مور هېڅ نده لیدلې

*Und nun bilden Sie Sätze mit einem Verb auf Position 1!*

*اوس نو تاسو داسې جملې جوړې کړئ چې فعل یې په سر کې راشي*

15. Dort ist es so kalt. هلته ډېر ساړه دي
16. Ich habe keine Geduld. زه هېڅ حوصله نلرم
17. Mein kleiner Bruder ist so faul. زما وړکی ورور ډېر لټ دی
18. Mein Nachbar hatte einen Unfall. زما ګاونډي ټکر کړی و
19. Der Zug fährt so spät ab. اورګاډی ډېر ناوخته حرکت کوي
20. Du hast mir nicht geholfen. تا له ما سره مرسته ونکړه

**Lösungen**:

1. Wenn das Büro doch nicht so weit von meinem Haus entfernt wäre!
کاشکې چې دفتر زما له کوره ډېره لیرې نه وای
2. Wenn sie mich doch lieben würde! کاشکې چې له ما سره د هغې مینه وای
3. Wenn Sie mir gestern doch nur die Wahrheit gesagt hätten!
کاشکې چې پرون تاسو ماته واقعیت ویلي وای
4. Wäre ich doch ein berühmter Politiker ! کاشکې چې زه یو مشهور سیاستوال وای
5. Wenn die Suppe doch besser schmecken würde!
کاشکې چې ښوروا لږ څه خوندوره وای
6. Wenn die Lebensmittel doch billiger wären. کاشکې چې خوراکي توکي ارزانه وای
7. Wenn es doch nur einen Laden in der Nähe geben würde!
کاشکې چې په دې نږدیو کې یوه هټۍ وای
8. Wenn es hier doch nur interessanter wäre! کاشکې چې دا ځای لږ څه په زړه پورې وای
9. Wenn sie nur mehr Zeit für mich hätte! کاشکې چې هغې زما لپاره ډېر وخت درلودلی
10. Wenn er doch nur etwas deutlicher sprechen würde!
کاشکې چې هغه لږ څه واضح خبرې کولی
11. Wenn der Bus doch nur pünktlicher wäre! کاشکې چې سروېس پخپل وخت راتلی شوای
12. Wenn meine Großmutter doch leben würde! کاشکې چې زما نیا لا ژوندی وای

13. Wenn meine Schwester doch etwas besser kochen könnte!
کاشکي چې زما خور لږ څه ښه پخلی کولی شوای
14. Wenn ich sie doch nur gesehen hätte! کاشکي چې ما هغه لیدلي وای
15. Wäre es doch dort nur wärmer! کاشکي چې هوا توده وای
16. Hätte ich doch nur etwas Geduld! کاشکي ما لږڅه حوصله درلودلی
17. Wäre mein kleiner Bruder doch etwas fleißiger!
کاشکي چې زما وړوکی ورور لږڅه خواریکښ وای
18. Hätte mein Nachbar doch nur keinen Unfall gehabt.
کاشکي چې زما ګاونډي ټکر نه وای کړی
19. Würde der Zug doch nur früher abfahren! کاشکي چې اورګاډي مخکي حرکت وکړي
20. Hättest du mir doch bloß geholfen! کاشکي چې تا له ما سره مرسته کړی وای

## Bildung der Wunschsätze mit Konjunktiv II und „gerne"

د هیلو او ارمانونو جملي له (gerne) سره هم جوړېدلی شي. دا جملي د پورتنیو مبحثونو په پرتله سل په سلو کي د خوب او خیال، غیر واقعي او یا نه کېدونکي جملي ندي. دا جملي تش د یو چا هیلي یا ارمانونه ښکاره کوي او بس. په بل عبارت دا جملي هغه هیلي ښکاره کوي چي د یو چا په زړه کي ګرځي. دا هیلي کېدی شي چي کوم وخت تر سره شي. د داسي جملو د جوړولو لار په دې ډول ده:

| Wunschsatz | = | Nomen | + | Konjunktiv II | + | gerne … | + | Verb/Nomen |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|

Beispiele:

| | |
|---|---|
| Ich würde gerne einmal ein Cricketspiel sehen. | زما ډېر زړه کیږي چي یو ځل د کریکټ یوه لوبه وګورم |
| Mein Sohn wäre jetzt gerne in Amerika. | زما د زوی ډېر زړه کیږي چي اوس په امریکه کي وای |
| Ich wüsste gerne, warum unsere Mannschaft alle Spiele verloren hat. | زه دې ته حیران یم او غواړم په دې پوه شم چي زمونږ لوبډلي ولي ټولي لوبي بایللي |
| Ich hätte gerne ein schönes Auto. | زه دې ته ارماني یم چي یو ښایسته موټرولرم |

## Konjunktiv II und „gern" als Standardbestellung in Geschäften

دا هغسي جملي دي چي سل په سلو کي واقعي دي او په یوې هټی او یا په یوې مغازې کي د یو چا غوښتنه ښکاره کوي. په بل عبارت په یو دکان کي دا د یو مشتري غوښتنه ده چي له یو دکاندار یې د سودا اخیستلو لپاره کوي. د داسي جملو د جوړولو لار دا ده:

| Personalpronomen | + | Konjunktiv II | + | gerne | + | Akkusativ |
|---|---|---|---|---|---|---|

Beispiele:

| | |
|---|---|
| Ich hätte gern ein Brot. | زه یوه ډوډی غواړم |
| Wir hätten gern zwei Kilo Reis. | مونږ دوه کیلو وریجي غواړو |

د هڅې وال له خوا د پوښتنې لپاره بیا جمله په دې ډول جوړېږي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| Fragepronomen | + | Konjunktiv II | + | Nomen | + | gern |

Beispiele:

| | |
|---|---|
| Was hätten Sie gern? | تاسو څه شی غواړئ (چې په بیه واخلئ) ؟ |
| Wie viel hätten Sie gern? | تاسو څومره غواړئ؟ |

د وروستي ځواب لپاره ويل کيږي :

| | |
|---|---|
| Das wäre alles. | څه چې مي غوښتل، همدومره به بس وي، نور څه نه غواړم |

## Empfehlung und Vorschläge د سلا يا مشورې ورکولو جملې

دا هغه جملې دي چې سړی يو چا ته د يو کار په برخه کې دومره وايي چې د دې کار کول ښه دي او که ښه ندي. او داسې هم کېدی شي چې سړی يو چا ته ووايي چې که زه ستا په ځای وای، نو ما دا کار کوه او يا نه کوه. څنګه چې پورته ليکل شويدي، دا شان جملې مشورتی جملې دي. خو دا مشوره داسې نده چې يو پلار خپل زوی ته يې ورکوي، بلکې دا يوه بې غرضه او د يو ليرې کس مشوره ده. د داسې جملو لپاره مختلف عبارات موجود دي چې يو څو يې په دې لاندې برخه کې يادول کيږي:

| | |
|---|---|
| Es wäre besser, …… | ښه به دا وای چې ..... |
| An deiner Stelle hätte ich/würde ich ….. | ستا په ځای ما داسې کوه ...... |
| Ich würde dir empfehlen, ….. | زه تا ته دا توصيه کوم چې ...... |

داسې جملې د تېرې زمانې لپاره هم کارول کېدی شي، سره له دې چې د مشورې ورکولو لپاره تېره زمانې ته ناوخته ده، خو د هغه تېر وخت لپاره دا مشوره په همغه وخت کې ډېره ښه پکارېدله، که چېرته يو چا پرې عملي کړې وای. مثال:

| |
|---|
| Es wäre für ihn gestern besser gewesen, wenn …… |
| د هغه لپاره به پرون ښه دا وای چې هغه داسې کړې وای ....... |

اوس به يو څو نور مثالونه په جملو کې وګورو:

| Indikativ | Konjunktiv |
|---|---|
| Es ist besser, nicht zu fliegen.<br>ښه دا ده چې په الوتکه کې تګ ونشي | Es wäre besser, nicht zu fliegen.<br>ښه به دا وي چې په الوتکه کې تګ ونشي |
| Ich empfehle Ihnen, den Brief per Einschreiben zu versenden. زه تاسو ته دا توصيه کوم چې دا ليك په راجستر ډول ولېږئ | Ich würde Ihnen empfehlen, den Brief per Einschreiben zu versenden. ښه به دا وي چې تاسو دا ليك د راجستر په ډول ولېږئ |
| Ich weiß nicht, was ihr tun könnt.<br>زه نپوهېږم چې تاسو څه کوی شئ | Ich wüsste nicht, was ihr tun könntet.<br>ماته څه پته نشته چې تاسو څه کوی شئ |
| Es ist ratsam, zum Arzt zu gehen.<br>دا توصيه ده چې ډاکټر ته دې تګ وشي | Es wäre ratsam, zum Arzt zu gehen.<br>د دې توصيه ده چې ډاکټر ته تګ دې وشي |

**Übungen:** Wandeln Sie bitte folgende Paschtosätze ins Deutsche um!

۱ـ ستا په ځای زه په الوتکه کې نه تلم

Konjunktiv II: ....................................................................

۲ـ که زه ستا په ځای وای، نو ما به بالکل بل څه کړي وای

Konjunktiv II: ....................................................................

۳ـ هغه ته به ښه دا وي چې هغه یو نوی کار پیدا کړي

Konjunktiv II: ....................................................................

۴ـ هغه ته ښه دا وای چې هغه بېرته خپل هېواد ته ستون شوی وای

Konjunktiv II: ....................................................................

۵ـ ښه به دا وي چې اوس یو نوی تحصیل پیل شي

Konjunktiv II: ....................................................................

۶ـ دا به ډېر ښه وي چې هېڅ څه ونه ویل شي

Konjunktiv II: ....................................................................

۷ـ تاسو لپاره به ښه دا وای چې دعوه مو بېرته اخیستې وای

Konjunktiv II: ....................................................................

۸ـ دا سپارښتنه د کولو ده چې واکسین دې باید وشي

Konjunktiv II: ....................................................................

۹ـ دا به یوه ستره تېروتنه وي چې ورنه صرف نظر وشي

Konjunktiv II: ....................................................................

۱۰ـ د هغه د زړه لپاره به دا ډېره ګټوره وي چې سګرټ څکول پرېښودل شي

Konjunktiv II: ....................................................................

**Lösungen:**

1. An deiner Stelle flöge ich nicht.
2. An deiner Stelle hätte ich etwas ganz anderes getan.
3. Es wäre gut für ihn, wenn er eine neue Arbeit fände.
4. Für ihn wäre es gut gewesen, wenn er in seine Heimat zurückgeflogen wäre.
5. Es wäre besser, jetzt ein neues Studium anzufangen.
6. Es wäre viel besser, nichts zu sagen.
7. Für Sie wäre es besser gewesen, die Klage zurückzunehmen.
8. Es wäre empfehlenswert, sich impfen zu lassen.
9. Es wäre ein großer Fehler, darauf zu verzichten.
10. Es wäre für sein Herz von großem Nutzen, das Rauchen aufzugeben.

## د خطر ښودلو جملې، یو مثبت او یا منفي شي ته دنږدې کېدو جملې

دا جملې یو حالت ښايي چې پکې یوه پېښه کېدلو ته ډېره نږدې وي، خو د کومې ستونځې په وجه بیا دا پېښه ونشي. دا پېښه کېدی شي چې ډېره خطرناکه او وژونکې پېښه وي چې سړی بیا شکر وباسي چې دا پېښه ونشوه. او داسې هم کېدی شي چې دا پېښه یوه ډېره نېکمرغه پېښه وي، چې سړی په نه کېدو یې ډېر خواشینی کېږي. د دې مطلب د پوهېدلو لپاره به دوه مثالونه وګورو. یو سړی وایي چې:

Ich wäre beinahe daran gestorben. Gott sei Dank, dass du aufgepasst hast.
نږدې و چې زه وربانذې مړ شوی وای، خو شکر چې تا پام ونیو

Er aß und trank so viel, dass er beinahe geplatzt wäre.
هغه دومر ډېر خه وخوړل او وڅښل چې نږدې و چې چاودلی وای

د یوې مثبتې پېښې لپاره مثال. یو سړی وای چې:

Ich wäre beinahe Millionär geworden. Nun bin ich ein armer Mensch.
نږدې و چې زه میلیونر شوی وای. له بده مرغه زه اوس یو بې وزلی انسان یم

**Übungen:** Bitte wandeln Sie die Paschtosätze ins Deutsche um!
تاسو دا پښتو جملې په جرمني ژبه واړوئ.

۱- نږدې و چې له ما نه اورګاډي تللی وای
……………………………………………………………………………
۲- نږدې و چې هغه د بوکس (سوک وهلو) نړیوال اتل شوی وای
……………………………………………………………………………
۳- نږدې و چې ته د موټر لاندې شوی وای
……………………………………………………………………………
۴- نږدې و چې هغه په دې کار کې بریالی شوی وای
……………………………………………………………………………
۵- نږدې و چې یو لوی ناورین پېښ شوی وای
……………………………………………………………………………
۶- نږدې و چې مونږ په دې ترافیکي ټکر کې ډېر سخت ټپي شوي وای
……………………………………………………………………………
۷- هغه دومره ډېر څکلي وو چې نږدې و چې سر یې چاودلی وای
……………………………………………………………………………
۸- په دې سیالۍ کې نږدې و چې هغه له ما نه مخکې شوی وای
……………………………………………………………………………
۹- نږدې و چې زه د ټولګي اولنمره شوی وای
……………………………………………………………………………
۱۰- نږدې و چې تاسو ته یو انعام درکړل شوی وای
……………………………………………………………………………

**Lösungen:**
1. Ich hätte beinahe meinen Zug verpasst.
2. Er wäre beinahe Boxweltmeister geworden.
3. Du wärest beinahe vom Auto überfahren worden.
4. Das wäre ihm beinahe gelungen.
5. Beinahe hätte es eine Katastrophe gegeben.
6. Wir wären bei dem Verkehrsunfall beinahe verunglückt.
7. Er trank so viel, dass sein Kopf beinahe explodiert wäre.
8. Bei dem Wettbewerb hätte er mich beinahe überholt.
9. Ich wäre beinahe der Klassenbeste geworden.
10. Ihr wäret beinahe ausgezeichnet worden.

## Irrealer Aussagesatz غیرواقعي بیانیه جمله

دا هغه جمله ده چې د یو شي اوسنی حال بیانوي، خو په څنګ کې یې دا یادوي چې اصلاً باید دا حال په کوم شان وای، څکه چې په اصلي یا واقعي حالت کې به دا حال بالکل بل شان وای. خو خبره دا ده چې هغه کار چې اصلاً باید شوی وای، هسې ونشو، بلکې په بل شان وشو. نو دا حالت واقعي حالت نشو، بلکې غیر واقعي حالت ته ولاړ. مثال:

| | |
|---|---|
| Allein hättest du das nie geschafft. | په یوازې ځان باندې تا هیڅکله دا کار تر سره کولی نشو |
| Ohne deine Hilfe hätte ich die Prüfung nicht bestanden. | بې له ستا له مرستې به زه هیڅکله په دې ازموینه کې بریالی شوی نه وای |
| Um ein Haar wäre es zu einem Unfall gekommen. | ډېر لږ پاتې وو چې یو ټکر شوی وای |

**یو شی چې د یوې ستونځې په وجه اجرا کېدلی نشي**

**Irreale Folgesätze = irreale Konsekutivsätze, Nebensatz (Variante): als dass**

دا شان جملې د یو کار لپاره د یو چا لیاقت او یا نالیاقت ښایي. خو عجیبه دا ده چې همدغه لیاقت او یا نالیاقت د همدې کار د کېدلو مخنیوی کوي. کېدی شي چې دغه پلان د یو چا په ګټه او یا د یو چا په تاوان وي، خو هر څه چې وي، دغه پلان نه عملي کیږي، څکه چې همدغه لیاقت او یا نالیاقت یې مخنیوی کوي. مثال: که یو وزیر وغواړي چې خپل یو دوست ته یوه لوړه دولتي رتبه ورکړي، خو دغه دوست نالایقه وي، نو دا وزیر بیا وایي چې: ما خو غوښتل چې درته یوه لوړه رتبه درکړم، خو څه وکړم چې ته نالایقه یې او تا ته دا چوکی د نالایقتوب په وجه نشم درکولی. نو دا وزیر په ادبي ژبه داسې وایي:

| | |
|---|---|
| Du bist viel zu unqualifiziert, als dass ich dir diesen hohen Posten vergeben würde. | ته د دې لوړې رتبې لپاره ډېر نالایقه یې چې زه یې درته درکړم |

همدا شان د یو جنس ښه والی یا بدوالی د همدغه جنس په برخه کې د یو کار د عملي کولو مخنیوی کوي. مثال: که یو څوک خپل لالي ته یو د مینې لیك لیکل غواړي، نو هغه داسې یو ښایسته کاغذ لټوي چې پرې یو عاشقانه لیك ښه وځلیږي. خو که چېرته یو څوك ورته یو ناولی کاغذ ورکړي او ورته ووایي چې واخله، ته خپل عاشقانه لیك په دې ناولي کاغذ ولیکه، نو څرګنده ده چې په دې ناولي کاغذ دا سړی خپل عاشقانه لیك نه لیکي او وایي چې:

.

| | |
|---|---|
| Dieses Papier ist viel zu schmutzig, als dass ich darauf einen Liebesbrief schreiben würde. | دا کاغذ ډېر ناولی دی چې ما پرې یو عاشقانه لیك لیکلی وای |

د دارنګه جملو جوړول په دې ډول کیږي:

① له یو صفت نه مخکې (zu) راځي او د جملې په پای کې (Konjunktiv II) کارول کیږي:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| zu | + | Adjektiv, | als dass … | + | Konjunktiv II |

مثال:

| |
|---|
| Er ist viel zu stolz, als dass er das Geschenk annähme. |
| هغه دومره ډېر غرور لري چې هغه به دا سوغات ونه مني |

| |
|---|
| Die Aufgabe ist viel zu schwierig, als dass man sie auf Anhieb lösen könnte.<br>دا سوال دې ته ډېر ګران دی چې سړی يې سمدلاسه حل کړی وشي (يعني دا سوال نه حليږي) |
| Er ist viel zu anständig, als dass er so etwas tun würde.<br>د دې کار کولو ته هغه ډېر مؤدبه دی (يعني هغه داسې کار نکوي) |

② کله چې (zu + Adjektiv) ونه کارول شي، نو په ځای يې دا کارول کيږي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| nicht | + | Adjektiv | + | genug, als dass …… | + | Konjunktiv II |
| niemand/ keiner | + | Verb | + | so | + Adjektiv , als dass | …… Konjunktiv II |

| |
|---|
| Das Wasser ist nicht warm genug, als dass man im Meer baden könnte.<br>دا اوبه نو دومره تودې ندي چې سړی په بحر کې لامبو وکړی شي |
| Niemand ist so klug, als dass er alles wüsste.<br>هيڅ څوك نشته چې هغه دومره هوښيار واوسي چې هغه په هر څه باندې پوه شي |

**Übungen:**

1. Hier scheint die Sonne selten. Man kann dadurch keinen Strom gewinnen.
دلته لمر ډېر لږ دی. له دې لارې بريښنا لاس ته راتلی نشي
2. Das Problem ist nicht so winzig. Man kann es nicht so einfach lösen.
دا ستونځه دومره وړه نده. هغه په اسانی نشي حليدلی
3. Die Risiken sind sehr groß. Man kann sie nicht einfach ignorieren.
د دې خطرونه ډېر ستر دي. له هغو نه سړی سترګې نشي پټولی
4. Unsere Gehälter sind sehr niedrig. Man kann sie noch weiter nicht verringern.
زمونږ معاشونه ډېر ټيټ دی. هغه له دې نه نور نشي ټيټول کېدی
5. Ein Krieg ist zu ernst. Man kann ihn nicht den Kriegsfürsten überlassen.
جګړه يوه ډېره جدي خبره ده. سړی يې جنګ سالارانو ته نشي پريښودلی
6. Die Berichte sind sehr ernst. Man kann sie nicht überhören.
ريوټونه ډېر جدي دي. سړی ورنه ځان کوڼ نشي نيولی
7. Die Umwelt ist stark verschmutzt. Man kann sie nicht übersehen.
چاپېريال ډېر ککړ شوېدی. سړی ورنه سترګې نشي پټولی
8. Wir sind sehr in Not. Man muss diese Chance ergreifen.
مونږ ډېر اړ يو. سړی بايد له دې چانس نه کار واخلي
9. Das Museum ist sehr groß. Man kann in einer Stunde nicht alles anschauen.
دا موزيم ډېر غټ دی. سړی په يو ساعت کې هر څه نشي ليدلی
10. Es gibt keinen anderen Ausweg. Wir müssen ihn um Hilfe bitten.
بله چاره نشته. مونږ مجبور يو چې له هغه نه د مرستې هيله وکړو

**Lösungen:**

1. Hier scheint die Sonne zu selten, als dass man dadurch Strom gewinnen könnte.
دلته لمر ډېر لږ دی چې سړی پرې بريښنا لاس ته راوړی وشي
2. Das Problem ist nicht so winzig, als dass wir es so einfach lösen könnten.
دا ستونزه دومره وړه نده چې سړی يې په دومره اسانی حل کړی وشي
3. Risiken sind zu groß, als dass man sie ignorieren könnte.
د دې خطرونه ډېر ستر دي چې سړی ورنه سترګې پټې کړی وشي

4. Unsere Gehälter sind viel zu niedrig, als dass man sie noch weiter verringern könnte. زمونږ معاشونه ډیر ټیټ دي چې سړی یې له دي نه نور هم ټیټ کړی وشي
5. Ein Krieg sei zu ernst, als dass man ihn nur den Kriegsfürsten überlassen könnte. جګړه یوه ډیره جدي خبره ده چې سړی یې یوازې جنګ سالارانو ته پرېښودلی وشي
6. Die Berichte sind zu ernst, als dass man sie einfach überhören könnte.
خبرونه ډیر جدي دي چې سړی ورنه ځان کوڼ نشي نیولی
7. Die Umwelt ist zu stark verschmutzt, als dass man sie übersehen könnte.
چاپېریال ډیر ککړ شوېدی چې سړی ورنه سترګي نشي پټولی
8. Wir sind zu sehr in Not, als dass man diese Chance nicht ergreifen müsste.
مونږ دومره ډېر اړ یو چې له دي چانس نه استفاده ونکړو
9. Das Museum ist zu groß, als dass man in einer Stunden alles anschauen könnte. دا موزیم ډیر غټ دی چې سړی په یو ساعت کي هرڅه ولیدلی وشي
10. Es gibt keinen anderen Ausweg, als dass wir ihn um Hilfe bitten müssen.
بل چاره نشته، پرته له دي چې مونږ له هغه نه د مرستي هیله وکړو1

## د پرتله کولو یا مقایسه کولو غیر واقعي جمله

## Irreale Vergleichsätze = Irreale Komparationssätze

دا هغه جمله ده چې یو څوک یو شي له یو بل شي سره پرتله کوي، خو پرتله یې غیر واقعي ده. دا په دي مانا چې له هغه شي سره چې یو شی پرتله کیږي، هغه یا نه کېدونکی دی او یا په واقعیت هیڅ نشته. دا به تش د یو چا ارمان وي او په تصور کي به یې ګرځي چې دا به داسې وي. مثال:

| |
|---|
| Ich fühle mich, *als wäre* ich im siebten Himmel.<br>زه ځان داسي احساسوم فقط لکه چې په اوم اسمان کي واوسم |
| Sie kam sich vor, *als wäre* sie gerade gestorben. هغې ته ځـان داسي ښکـاره شو، فقط لکه چې هغه همدا اوس مړه شوې وي (خو په حقیقت کي مړه شوې نده) |
| Es war, *als* hätt´der Himmel die Erde still geküsst. *(Joseph von Eichendorff)*<br>داسي ښکارېدل چې اسمان به مځکه په غلي ډول ښکل کړې وي (جرمنی شاعر Eichendorff) |

## Höfliche Frage احترامانه پوښتنه

پوښتنه کول خو مو په مخکینو څېرکو کي زده کړل، او دا مو هم زده کړل چې د احترام لپاره (bitte) کارول کیږي، نو اوس کېدی شي چې لوستونکو ته دا سوال پیدا شي چې که یوه احترامانه پوښتنه بې له (Konjunktiv) هم کېدی شي، نو بیا (Konjunktiv) ته څه اړتیا ده؟ دا پوښتنه په ځای ده، خو ځواب به دا وي چې په (Konjunktiv) باندي نه یوازي احترامانه، بلکي ډېره مؤدبه پوښتنه کیږي. په بل عبارت د لوړې سویې خلك د پوښتنو په وخت تل له (Konjunktiv) نه کار اخلي. اوس به یو څو مثالونه وګورو. که یو څوک له یو چا نه په لار کي د یو چا د نوم په برخه کي داسي پوښتنه وکړي چې:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| Wie | heißen | Sie? | | دی؟ | څه | نوم | ستاسو |

هغه څوك چې ورنه پوښتنه کیږي، کېدی شي چې په ځواب کې ورته په قهر ووایي چې (زما له نامه سره ستا څه غرض دی؟ ته څوك یې چې زما د نامه پوښتنه کوې؟). که چېرته په همدغه پوښتنه کې یو څو عبارتونه نور ورزیات شي او دا جمله په (Konjunktiv II) بدله شي، نو هغه به داسي وي:

| |
|---|
| Könnten Sie mir bitte sagen, wie Sie heißen?<br>کېدی شي چې تاسو ماته ووایئ چې ستاسو نوم څه دی؟ |

سره له دې چې د دې دواړو پوښتنو ماهیت همغه یو شی دی، خو د لاندینی پوښتنې په وړاندې کېدی شي چې څوك یو داسي قهرجن غبرګون یا عکس العمل ښکاره نکړي، ځکه چې دا پوښتنه په ډېر احترام او په مؤدبانه ډول شوېده.
ځنګه چې لیدل کیږي، په پورتنو مثالونو کې دوه کسان له یو بل سره د لارې په سر مخامخیږي. پوښتنه دا ده چې په رسمیاتو او په دفترونو کې هم په (Konjunktiv II) لیکنې کیږي؟ ځواب به دا وي چې ډېر لږ. له (Konjunktiv II) نه د پوښتنې لپاره په دغه مهالو کې کار اخیستل کیږي:

| |
|---|
| په ورځینې ژوند کې کله چې یو پردی سړی له یو بل پردي سړي نه د یو څه په برخه کې پوښتنه وکړي، لکه د سړك په سر، په هوټل، په بازار، په بانك، په پوسته خونه او یا په کوم بل ځای کې. |

زیاتره وخت هغه کسان چې له یو بل سره په پوښتنه کې له (Konjunktiv II) نه کار اخلي، هغوی له یو بل سره ډېر صمیمیت نلري، یعني په خطاب کې یو بل ته (ته = du) نه وایي، بلکې (تاسو= Sie) وایي. خو کله کله له یو بل سره ډېر صمیمي کسان هم له (Konjunktiv II) نه د پوښتنې لپاره کار اخلي.  اوس به یو څو نورې جملې په دواړو ډولونو وګورو:

| Indikativ | Konjunktiv II |
|---|---|
| Machst du bitte die Tür zu?<br>ته دروازه پورې کوې؟ (هسې یوه پوښتنه)<br>Kannst du bitte die Tür zu machen?<br>ته دروازه پورې کولی شې؟ (احترامانه پوښتنه) | Würdest du bitte die Tür zumachen?<br>ته به دروازه پورې کړې؟ (احترامانه پوښتنه)<br>Könntest du bitte die Tür zumachen?<br>ته کوی شې چې دروازه پورې کړې؟ (مؤدبه او احترامانه پوښتنه) |

که چېرته پورتنی جمله لاپسې په احترامانه او مؤدب ډول وویل شي، نو په دې ډول به وویل شي:

| |
|---|
| Dürfte ich dich bitten, die Tür zuzumachen?<br>اجازه ده چې له تا نه د دروازې پورې کولو هیله وکړم؟<br>Wärst du so freundlich und könntest die Tür zumachen?<br>ته به دا مهرباني وکړې او دروازه به پورې کړې؟ |

## **یوه احترامانه غوښتنه او یا یو احترامانه امر**

یوه غوښتنه یا یو امر کېدی شي چې په ډېر کلك او په عسکري ډول وشي. همدا شان کېدی شي چې په ډېر احترامانه او مؤدب ډول وشي. اوس به یو څو امرونه وګورو چې په تدریجي ډول احترام او ادب پکې زیاتیږي. کله چې یو څوك له یو چا نه یو ګیلاس اوبه وغواړي، نو هغه کوی شي چې خپله غوښتنه په دې ډولونو وکړي:

| | |
|---|---|
| sehr unfreundlich<br>ډېر بې احترامه | Ein Glas Wasser!                                   یو ګیلاس اوبه ! |
| unfreundlich<br>بې احترامه | Bringen Sie mir ein Glas Wasser!<br>تاسو ما ته یو ګیلاس اوبه راوړئ ! |

| | |
|---|---|
| etwas freundlicher<br>لږ څه احترامانه | Bringen Sie mir bitte ein Glas Wasser!<br>تاسو مهرباني وکړئ او ماته یو ګیلاس اوبه راوړئ |
| viel freundlicher<br>ډېر احترامانه | Würden Sie mir bitte ein Glas Wasser bringen?<br>تاسو به دا مهرباني وکړئ او ما ته به یو ګیلاس اوبه راوړئ؟ |
| sehr freundlich und höflich<br>ډېر احترامانه او مؤدب | Dürfte ich Sie bitten, mir ein Glas Wasser zu bringen?<br>اجازه ده چې زه له تاسو نه د یو ګیلاس اوبو د راوړلو هیله وکړم؟<br>Könnten Sie mir bitte ein Glas Wasser bringen?<br>تاسو به ما ته یو ګیلاس اوبه راکړی شئ؟ |

یو څو نور مثالونه په جملو کې:

| Indikativ<br>Imperativ, Befehl امر | Konjunktiv II<br>(höfliche Aufforderung) احترامانه غوښتنه |
|---|---|
| Reich mir bitte das Salz!<br>ته مهرباني وکړه او ماته مالګه راکړه | Würdest du mir bitte das Salz reichen?<br>ته به دا مهرباني وکړې او ماته به مالګه راکړې؟<br>Könntest du mir bitte das Salz reichen?<br>ته ما ته مالګه راکوی شې؟ دا به ستا مهرباني وي |
| Zeigen Sie mir bitte den Weg zum Bahnhof! تاسو مهرباني وکړئ او ماته د اورګاډي د سټېشن لار وښایئ | Wären Sie so freundlich, mir den Weg zum Bahnhof zu zeigen? تاسو به دا مهرباني وکړئ او ماته به د اورګاډي د سټېشن لار وښایئ؟ |
| Verlassen Sie das Zimmer!<br>تاسو له کوټې نه وځئ | Würden Sie bitte das Zimmer verlassen?<br>تاسو به مهرباني وکړئ او له دې کوټې نه به وځئ؟<br>Könnten Sie bitte das Zimmer verlassen?<br>تاسو له دې کوټې نه وتلی شئ؟ دا به ستاسو مهرباني وي |

## احترامیه جملې، احترامانه خبرې او یا غوښتنې

کله چې سړی په احترام یوه غوښتنه کوي، نو هغه په دې ډول کیږي چې له (Konjunktiv II) نه وروسته تل (gerne/gern) راځي. مثالونه به په لاندیني جدول کې وګورو:

| Indikativ<br>مستقیمه، په زور او په ټینګه خبره یا غوښتنه | Konjunktiv II<br>له احترام نه ډکه خبره او غوښتنه |
|---|---|
| Ich will eine Tasse Tee.<br>زه یوه پیاله چای غواړم | Ich hätte gerne eine Tasse Tee. زه له تاسو نه هیله کوم چې ما ته یوه پیاله چای راکړئ |
| Wir wollen eine größere Wohnung.<br>مونږ له دې نه یو لاپسې لوی استوګنځی غواړو | Wir hätten gerne eine größere Wohnung. زمونږ له دې نه یو لاپسې لوی استوګنځي ته زړه کیږي |
| Ich will Auskunft darüber, wie die Nationalmannschaft gespielt hat.<br>زه په دې برخه کې معلومات غواړم چې ملي لوبډلې څنګه لوبه وکړه | Ich hätte gern Auskunft darüber, wie die Nationalmannschaft gespielt hat.<br>ما په دې برخه کې معلومات غوښتلو چې ملي لوبډلې څنګه لوبه کړېده |
| Du willst sicher wissen, ob er hierzu etwas Näheres zu sagen hat. | Du hättest sicher gern gewusst, ob er hierzu etwas Näheres zu sagen hat. |

| | |
|---|---|
| ته به حتمآ د دې لپوال یې چې پوه شې چې هغه په دې برخه کې څه نور هم د ویلو لري او که نه | ته حتمآ غواړې په دې پوه شې چې هغه په دې برخه کې څه نور هم د ویلو لري او که نه |
| Hätten Sie gern zu diesem Punkt eine Antwort? ستاسو په دې برخه کې د ځواب لاس ته راوړلو ته لېوال یاست؟ | Wollen Sie zu diesem Punkt eine Antwort? تاسو په دې ټکي کې ځواب غواړئ؟ |

## Höfliche Inkenntnissetzung    په احترامانه ډول د یوې خبرتیا وړاندې کوونه

| Konjunktiv II<br>höfliche Inkenntnissetzung | Indikativ |
|---|---|
| Wir möchten Sie darauf hinweisen, dass wir in einer Stunde den Laden schließen. مونږ غواړو ستاسو پاملرنه دې ته راواړو چې مونږ یو ساعت وروسته هټۍ ترو | Wir weisen Sie darauf hin, dass wir in einer Stunde den Laden schließen. مونږ ستاسو پاملرنه دې ته راړاوو چې مونږ یو ساعت وروسته هټۍ ترو |

## په سختۍ لاس ته راوړني په برخه معلومات
## Feststellung eines mühsam erreichten Resultates

د (Konjunktiv II) دغه برخه له نورو برخو سره یو څه توپیر لري او توپیر یې دا دی چې په دې (Konjunktiv II) باندې خوبونه او خیالونه نه بلکې واقعیت ویل کیږي. دلته دا پوښتنه په ځای ده چې د واقعیت خبرې خو په (Indikativ) کیږي، نو (Konjunktiv II) ته څه اړتیا ده؟ ځواب به دا وي :
① په دې کې د جرمني ژبې باریکي لیدل کیږي. هغه لاس ته راونه چې په ډېره اسانه شوېده، هغه په (Indikativ) بیانیږي. هغه لاس ته راوړنه چې په ډېرې سختۍ شوېده، هغه په (Konjunktiv II) بیانیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Indikativ | Das haben wir geschafft. مونږ په دې بانـدې (په اسانۍ) بریالی شـولـو (او ټول کار سل په سلو ترسره شو) |
| Konjunktiv II | Das hätten wir geschafft. مونږ په دې باندې (په سختۍ) بریالی شولو (خو کېدی شي چې د کار کومه برخه لا پاتې وي چې زمونږ پام ورته نه وي شوی) |

② په دې جملو کې دا څرګندیږي چې په یو شي کې د یو څه ورزیاتولو او یا د کمولو لپاره هم څه ګنجایش شته، مثال:

| | |
|---|---|
| Indikativ | Das war alles, was ich sagen wollte. څه چې ما د ویلو درلودل، هغه ټول همدا وو (او بل څه یکې نه زیاتیږي) |
| Konjunktiv II | Das wäre alles, was ich sagen wollte. څه چې ما د ویلو درلودل، هغه (څه ناڅه) ټول همدا وو (پکې یو څه نور هم ورزیاتیدی شي، خو فعلآ همدومره بس دي) |

## Zweifel an einer Aussage    په یو څه کې د یو شك ښودنه

کله چې سړي په یوه خبره شك ولري، نو سړی کوی شي چې خپل شك په ډاګه په (Indikativ) څرګند کړي، خو شرط دا دی چې سړي ووایي چې زه په دې باندې شك لرم. که د شك جمله ونه ویل شي، نو په هغه خبره کې بیا شك نشته او هغه سل په سلو کې واقعیت لري. که چېرته دا جمله په (Konjunktiv II) وویل شي، نو بیا لږ او ډېر شك پکې حتمي شته چې هغه په کنایه ډول ښکاره کیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Indikativ | Das ist möglich. | دا امکان لري (په امکاناتو کې يې څه شك نشته) |
| Konjunktiv II | Das wäre möglich. | دا به امکان ولري (په امکاناتو کې يې شك شته) |

د شك ښودلو جملې زياتره وخت په (sein) او په (können, sollen, müssen und dürfen) جوړيږي چې (Modalverben) دي. نور مثالونه:

| |
|---|
| Wäre so etwas denkbar? داسي يو څه تصور کېدی شي؟ (او که پکې څه شك دی؟) |
| Sie könnte schon nach Amerika geflogen sein. هغه کېدی شي چې امريکې ته تللې وي |
| Er sagt, er hätte fleißig gelernt. هغه وايي چې هغه ډېر سبق لوستلی دی (چې پرې شك دی) |
| Sie meinte, das ließe sich nicht ändern. هغې داسي فکر وکړو چې په دې کې څه بدلون نه راځي (چې پرې شك دی) |

## Irreale Wunschsätze د هيلو نه ډکې جملې

په دې برخه کې په پورتنيو پانو کې ډېرڅه ليکل شويدي، ستاسو به په ياد وي، اوس دوه مثالونه:

| |
|---|
| Kämen sie doch heute noch! کاشکې چې هغوی همدا نن راشي |
| Gäbe es doch mehr Menschen wie Sie! کاشکې چې له تاسو غوندې ډېر انسانان موجود وای |

## Irreale Modalverbkonstruktion

کله چې (Modalverben) په غېرواقعي جملو کې وکارول شي، نو دا بيا د غېرواقعي هيلو او ارمانونو جملو سره ورته والی لري. په دغه جملو کې هغه څه يادېږي چې پخوا پيښ شوي وي، چې اصلاً بايد نه وای پيښ شوي. برعکس امکان يې هم شته چې يو څه په پخواني وخت کې پيښ نه شول چې اصلاً بايد پيښ شوي وای. مثالونه به په دې لاندې جدول کې وګورو:

| |
|---|
| Sie hatten den Schuft eingeladen. Sie hätten den Schuft nicht einladen sollen. هغوی دا رذيل سړی ميلمه کړي و. هغوی بايد دا رذيل سړی ميلمه کړی نه وای |
| Er hat schon nicht gut aufgepasst. Er hätte besser aufpassen müssen. هغه يو ځل بيا پام ونه نيوو.. هغه بايد ښه پام نيولی وای |
| Du hast es mir nicht gesagt. Du hättest es mir ruhig sagen können. تا خو کوی شو چې په دې برخه کې دې راته څه ويلي وای |
| Ihr habt den armen Mann geschlagen. Ihr hättet ihn nicht schlagen dürfen. تاسو دا بې وزلی سړی ووهو. تاسو بايد هغه نه وای وهلی |

په پورتنيو جملو کې د (können) لغت په يوې پورتنۍ جملې کې د *(müssen)* او *(sollen)* په مانا استعمال شويدی. په لاندې برخه کې يوه بله جمله په همدې مانا:

| |
|---|
| Du hättest mir das früher sagen können = sagen sollen oder sagen müssen. دا خبره تا راته مخکې هم کوی شوه، دا خبره به دې مخکې راته کړې وای |

د منفي پوښتنې په توګه هم کېدی شي چې (Modalverben) استعمال شي، خو که (können) استعمال شي، نو د دې نه مطلب زياتره وخت د يوې نيوکې يا د ګيلې او يا انتقاد مانا لري. مثال:

| |
|---|
| Hättest du mir das nicht früher sagen können? تا نشول کولی چې دا دې راته پخوا ويلي وای؟ (له تا نه دا ګيله ده) |

| | |
|---|---|
| Hätte er nicht besser aufpassen können? | هغه نشو کولی چې ښه پام ونيسي؟ (دا نيوکه ده) |

## د نيوکي يا د انتقاد لپاره

| Indikativ | Konjunktiv II (Vorwurf, Kritik) |
|---|---|
| Warum hast du das nicht gewusst?<br>ته ولي په دې پوه نه وې؟<br>Oder<br>Das musst du eigentlich wissen.<br>اصلاً ته بايد په دې پوه شي<br>Das hast du wissen müssen.<br>ته بايد په دې پوه وای | Du hättest es besser wissen müssen.<br>(پــه تـا باندې دا نيـوکـه کيـږي چې) ته بايد پــه دې باندې ښه پوه وای |
| Das konntest du dir eigentlich sparen!<br>دې ته ستا اصلاً هيڅ ضرورت نه و | Das hättest du dir sparen können! (پـه تـا دا نيوکه کيږي چې) دې ته ستا هيڅ اړتيا نه وه |
| Warum hast du das gesagt? Da bist du voll ins Fettnäpfchen getreten.<br>دا خبره تا ولې وکړه؟ په دې باندې تا بالکل بې نزاکتي وکړه<br>Oder<br>So etwas hast du nicht sagen sollen! Da bist du voll ins Fettnäpfchen getreten. داسې خبره تا بايد نه وای کړې. په دې باندې تا ډېره بې نزاکتي وکړله | Das hättest du nicht sagen sollen; da bist du voll ins Fettnäpfchen getreten.<br>(په تا باندې دا نيوکه کيږي چې) تا بايد دا خبره نه وای کړې. په دې باندې تا ډېره بې نزاکتي وکړله |
| Warum hast du das getan?<br>تا ولې دا کار وکړو؟<br>Oder<br>So etwas sollst du nicht tun.<br>داسې کار ته بايد ونکړې | Das hättest du nicht tun sollen.<br>(په تا باندې دا نيوکه کيږي چې) تا بايد دا کار نه وای کړی |
| Warum hast du mir das nicht früher gesagt? تا ولې مخکې راته دا خبره ونکړه؟ | Hättest du mir das nicht früher sagen können? (په تـا باندې دا نيـوکه کيږي چـې) تـا راته مخکې دا خبره نشوه کولی؟ |

## له (Konjunktiv II) نه د کار اخيستنې نورې برخې

په لاندينې جدول کې مختلفې جملې ليدل کيږي چې په هره جمله کې (Konjunktiv II) په بله موخه يا په هدف کارول شوی دی.

| | نږدې و چې ... |
|---|---|
| 1. | *Beinahe wäre* ich dabei *gestorben*. نږدې و چې زه په دې کې مړ شوی وای<br>*Fast hätte* ich den Bus nicht mehr *erreicht*.<br>نږدې و چې زه سروبس ته نه وای رسيدلی |
| | **ما به دا کړي وای، خو ...** |
| | Ich *hätte* dich *besucht*, *aber* ich hatte leider eine Verabredung.<br>زه به ستا ليدو ته درغلی وای خو له بده مرغه ما يوه وعده درلودله |

| | |
|---|---|
| 2. | Ich *wäre gerne gekommen*, *aber* ich hatte keine Zeit.<br>زه به په مینه راغلی وای، خو ما وخت نه درلود |
| | وبه کړی شي، توان به ولري      وبه نکړی شي، توان به ونلري |
| 3. | *Nur er könnte* uns in dieser Situation *helfen*.<br>تش هغه به په دې حالت کې له مونږ سره مرسته وکولای شي<br>Ich glaube, er *könnte* uns in dieser Lage auch *nicht helfen*.<br>زه فکر کوم چې په دې حالت کې به هغه هم له مونږ سره مرسته کولی ونشي |
| | باید شوی وای،      شوی نه وای |
| 4. | Das Taxi ist noch nicht da; dabei *hätte* es schon vor zehn Minuten *kommen müssen*. ټکسي لا تر اوسه پورې ندی راغلی، اصلاً باید لس دقیقې مخکې راغلی وای |
| | په رېښتیا دا کېدی شي چې ...؟      دا به رېښتیا وي چې ... ؟ |
| 5. | *Könnte* er tatsächlich schon die Prüfung *bestanden haben*?<br>کېدی شي چې په ازموینه کې هغه په رېښتیا بریالی شوی وي؟ |
| | دا مهرباني به وکړئ چې ... |
| 6. | *Wären Sie so freundlich*, mir zu helfen?<br>تاسو به دا مهرباني وکړئ او له ما سره به مرسته وکړئ؟<br>*Würden* Sie vielleicht auf mein Gepäck *aufpassen*?<br>کېدی شي تاسو زما بکس ته پام ونیسئ؟<br>*Würden* Sie mir bitte einen Gefallen *tun*?<br>تاسو به زما په طبع یو کار وکړې؟ تاسو به ما خوشحاله کړې؟<br>*Könnten* Sie mir vielleicht *sagen*, wie ich zum Bahnhof komme?<br>تاسو ماته ویلی شئ چې د اورګاډي سټېشن ته زه په کومه لار تللی شم؟ |
| | د یو شي په برخه کې پته شته،      پته نشته |
| 7. | Ich *wüsste* kein Material, das härter *wäre* als ein Diamant.<br>زه خو داسې کوم توکی نه پېژنم چې له الماسو به هم کلك وي<br>Ich *wüsste* nicht, wer das besser machen könnte.<br>ما ته پته نشته چې څوك به دا کار له دې نه لاپسې ښه وکړی شي<br>Nicht, dass ich *wüsste*. داسې څه نشته چې ما ته به پته یې وي (ماته څه پته نشته)<br>Ich *wüsste* da so einiges, was auf dich zukommen *könnte*.<br>ما ته د ډېرڅه پته شته چې په تا راتلی شي (یعنې په تا ډېرې سختې راتلی شي) |
| | کاشکې چې ... |
| 8. | *Wenn* ich *nur wüsste*, *ob* er kommt. کاشکې چې زه پوه وای چې هغه راځي او که نه |
| | دا خو وشو،      همدومره بس دي |
| 9. | Das *hätten* wir geschafft! دا خو په خېر خلاص شو ، له دې نه خو په خېر بې غمه شولو<br>So, das *wär´s* für heute! Morgen geht´s weiter.<br>ښه نو، د نن لپاره همدومره بس دي. پاتې برخه یې سبا |

| | |
|---|---|
| | څه نا څه ،          د دومره په شاوخوا کې کېدی شي |
| 10. | Wie alt ist denn deine Großmutter? Sie *dürfte* etwa achtzig *sein*.<br>ستا نیا څو کلنه ده؟ هغه به د اتیاو کلو په شاوخوا کې وي |
| | دا به وي،          دا به نه وي |
| 11. | Für meine Verabredung *dürfte* es jetzt zu spät *sein*.<br>زما د وعدې لپاره به اوس ناوخته شوې وي |

# Funktionsverbgefüge = Verben in festen Verbindungen

له دې نه مطلب هغه فعلونه دي چې اصلاً یوه مانا لري، خو دا فعلونه کله کله له یو اسم سره یو ځای کیږي چې بیا د فعل مانا بالکل بدلیږي او بیا له اصلي مانا سره هېڅ اړه نلري. په پښتو کې هم داسې مثالونه شته. د بېلګې په توګه په پښتو کې (ختل) لوړېدلو ، پورته کېدلو یا جګېدلو ته وايي. خو کله چې (ختل) د یو (هډوکي) سره یوځای شي او وویل شي چې :

| |
|---|
| د هغه د پښې هډوکی ختلی دی |

دلته (ختل) د (پورته کېدل) سره څه اړه نلري او (له جوړ یا له بنده بې ځایه کېدلو) ته وايي. بل مثال:

| |
|---|
| هغه ته انګلیسي نه ورځي |

(ورتلل) خو په پښتو کې دې ته وايي چې یو څوك یو چا ته ورشي. خو د انګلیسي (ورتلل) د یو چا کور ته د تګ سره څه اړه نلري، بلکې مطب دا دی چې د هغه انګلیسي زده نده

همدا شان په جرمني ژبه کې ګڼ شمېر فعلونه شته چې کله چې له یو اسم سره یوځای شي، مانا یې بالکل بدله شي او له اصلي فعل سره بیا هېڅ شان اړه نلري. د بېلګې په توګه :
د (setzen) مانا ده : (یو څوك یو چېرته کېښول). خو کله چې (setzen) له یو بل لغت سره یوځای شي، نو بیا لغوی مانا یې له (کېښول) سره څه اړه نلري. مثال:

| | |
|---|---|
| Er setzte die Maschine in Gang. | هغه ماشین چالان کړو |

په پورتنۍ جمله کې (in Gang setzen) د ماشین (چالانولو یا په حرکت راوستلو) ته وايي.

دا چې کوم فعل له کوم اسم سره په کومه مانا یو واحد جوړوي، دې ته کومه قاعده نشته. یوازینۍ د زده کړې چاره یې دا ده چې سړی یې له یاده زده کړي. اوس به یو څو مثالونه په لاندې جدول کې وګورو:

| Verb فعل<br>(په اصلي مانا کې) | ursprüngliche Bedeutung<br>په اصلي لغوي مانا | in fester Verbindung<br>بدله شوې مانا، اصطلاح |
|---|---|---|
| begehen<br>تلل، ګرځېدل | eine Brücke begehen<br>په یوه پله ګرځېدل | eine Dummheit begehen<br>حماقت کول، بې عقله کار کول<br>einen Fehler begehen<br>یوه غلطي کول، غلط کار کول<br>eine Sünde begehen ګناه کول |
| fällen غورځول،<br>چپه کول | einen Baum fällen<br>یوه ونه وهل، ونه غورځول | eine Entscheidung fällen<br>یوه پرېکړه یا فیصله کول<br>ein Urteil fällen قضاوت کول |

| | | |
|---|---|---|
| finden<br>موندل، میندل | eine Sache finden<br>یو شی موندل | ein Ende finden تمامېدل<br>Beifall finden چکچکي کېدل<br>Ruhe finden ارامی ته رسېدل، ارامېدل |
| führen<br>چلول، گرځول،<br>له ځانه سره بیول | einen Blinden führen<br>یو ړوند له ځانه سره گرځول | ein Gespräch führen<br>له یو چا سره خبري اتري کول<br>einen Krieg führen<br>له یو چا سره جگړه کول<br>den Beweis führen ثبوت راوستل |
| geben ورکول | jmdm. Geld geben<br>یو چا ته پیسي ورکول | jmdm. die Schuld geben<br>په یو چا گناه اړول، گناه اچول<br>jmdm. einen Tritt geben<br>یو څوك په لغتي وهل<br>jmdm. einen Wink geben<br>یو چا ته یوه نښه یا اشاره کول |
| gewinnen گټل | ein Spiel gewinnen<br>یوه لوبه گټل | den Eindruck gewinnen<br>یو فکر یا نظر ته رسېدل<br>die Überzeugung gewinnen<br>یقین لاس ته راوړل<br>Vertrauen gewinnen<br>اعتماد لاس ته راوړل |
| halten<br>ساتل، نیول | etwas in der Hand halten<br>یو شی په لاس کي نیول | eine Rede halten یوه وینا کول<br>ein Versprechen halten<br>په یوه وعده وفا کول<br>einen Vortrag halten<br>یو کنفرانس ورکول |
| holen راوړل | Hol bitte den Ball!<br>ته مهرباني وکړه او توب راوړه | Atem holen ساه راښکل<br>sich eine Krankheit holen<br>په یوي ناروغی اخته کېدل<br>sich den Tod holen مړ کېدل، مرل |
| leisten<br>خدمت کول | Er hat viel geleistet.<br>هغه ډېر خدمت کړی دی | eine Hilfe leisten مرسته کول<br>Widerstand leisten مقاومت کول<br>jmdm. Gesellschaft leisten<br>د یو چا سره گپ شپ لگول |
| machen کول | einen Fehler machen<br>یوه غلطي کول | jmdm. Angst machen یو څوك<br>ډارول<br>jmdm. eine Freude machen<br>یو څوك خوشحالول<br>sich die Mühe machen<br>ځان په زحمتول، زحمت وېستل |
| nehmen اخیستل | Er nahm seine Jacke und ging.<br>هغه خپله کرتی واخیستله او ولاړ | Abschied nehmen<br>په مخه ښه کول، خدای پامانی اخیستل<br>ein Ende nehmen پای ته رسېدل<br>Platz nehmen کېناستل |

| | | |
|---|---|---|
| schaffen<br>۱- توان رسېدل<br>۲- یو کار کول | Das schaffe ich nicht.<br>دي ته مي توان نه رسيږي<br>von morgens bis abends schaffen له سهار نه تر ماښامه پورې کار کول | Klarheit schaffen<br>وضاحت راوستل، څرګندول<br>Abhilfe schaffen<br>سمون راوستل، اصلاحات راوستل<br>Arbeitsplätze schaffen<br>خلکو ته کار پیدا کول |
| stellen<br>ودرول، ایښودل | eine Flasche auf den Tisch stellen<br>یو بوتل په مېز ایښودل | einen Antrag stellen<br>عریضه کول، غوښتنلیك وړاندي کول<br>eine Diagnose stellen تشخیص کول<br>eine Frage stellen پوښتنه کول |
| stiften<br>د یو خیریه کار لپاره پیسي ورکول | Geld stiften<br>یو چا ته د یو خیریه هدف لپاره ورکول پیسي | Frieden stiften سوله مینځ ته راوړل<br>Unruhe stiften ناارامي مینځ ته راوړل<br>Unheil stiften بدبختي مینځ ته راوړل |
| treffen<br>یو څوك لیدل، له یو چا سره مخامخېدل | einen Freund unterwegs treffen له یو ملګري سره په لار کي مخامخېدل | Ihn trifft keine Schuld.<br>هغه ملامت ندي، د هغه ګناه نده<br>eine Entscheidung treffen<br>یوه پرېکړه کول، یوه فیصله کول<br>ins Schwarze treffen<br>ډېر ښه کار کول، د نښي مینځ ویشتل |
| treiben<br>مخکي بیول، وړل | Kühe auf die Weide treiben غوا ګاني څر ته وړل | Handel treiben تجارت کول<br>Sport treiben سپورټ کول<br>etwas zu weit treiben<br>په یو شي کي زیاتی کول، افراط کول |
| ziehen<br>یو څه راښکل | Er zog mich an den Haaren. هغه زما ویښته راښکل | jemandes Zorn auf sich ziehen<br>یو څوك د ځان پسي په قهرول<br>etwas in Betracht ziehen<br>یو څه په نظر کي نیول |

## Feste Akkusativobjekt-Verb-Verbindungen mit präpositionalem Objekt کوم اسم له کوم فعل او له کوم نومځري سره په کوم حالت کي راځي

په پورتنی برخه کي مو زده کړل چي ځیني اسمونه چي له ځینو فعلونو سره یو ځای شي، یوه خاصه مانا تري اخیستل کیږي. په پښتو کي هم ځیني اسمونه له ځینو فعلونو سره په همغه ډول استعمالیږي لکه چي په جرمني ژبه کي استعمالیږي، مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| zum Weinen | bringen | راوستل | په ژړا |

په پورتنی جمله کي په پښتو او په جرمني ژبه کي عین اسم له عین فعل سره یو ځای شوی، یعني (ژړا = Weinen) له (راوستل = bringen) سره په دواړو ژبو کي یوځای شوی او عین مانا ورځیني اخیستل کیږي. کاشکي چي د پښتو او جرمني ژبي ټول اسمونه او فعلونه له یو بل سره په عین ډول یوځای کېدلای او په عین مانا استعمالېدلای شوای، خو له بده مرغه چي ډېر لږ اسمونه دي چي له همغه فعل سره یوځای کیږي چي په جرمني ژبه کي هم ورسره یوځای کیږي. نو په دې ډول زښت ډېر نور اسمونه شته چي د پښتو په پرتله بالکل له یو بل فعل سره یوځای کیږي.

اوس به په لاندي جدول کي هغه اسمونه او فعلونه وګورو چي په پښتو او جرمني ژبه کي په همغه یو شان کارول کیږي.

| Deutsch | | Paschto | |
|---|---|---|---|
| Akkusativobjekt | Verb | Akkusativobjekt | Verb |
| Abschied | nehmen | خدای پاماني | اخیستل |
| zum Abschluss | bringen | پای ته | رسول |
| Absicht | haben | قصد، نیت | درلودل |
| sich in Acht | nehmen | پام، فکر | نیول، کول |
| Angst | haben | ډار | درلودل |
| Antwort | geben | ځواب | ورکول |
| Auskunft | erteilen/geben | معلومات | ورکول |
| Auswirkungen | haben | په یو شي اغیز | درلودل |
| an Bedeutung | gewinnen | اهمیت | زیاتیدل، ګټل |
| an Bedeutung | verlieren | اهمیت | له لاسه ورکول |
| Bedingung | stellen | شرط | ایښودل |
| Befehl | geben | امر | ورکول |
| in Bewegung | bringen | په حرکت | راوستل |
| zu Ende | bringen | پای ته | رسول |
| Erlaubnis | geben | اجازه | ورکول |
| eine Falle | stellen | یو چاته دام، تلکه | ایښودل |
| Fußtritt | geben | لغته | ورکول |
| Garantie | geben | ګرنټي | کول، ورکول |
| Gebrauch | machen | استفاده | کول، کار اخیستل |
| in Gefahr | sein | په خطر کي | اوسیدل |
| Gelegenheit | geben | موقع | ورکول |
| zu Hilfe | kommen | د یو چا مرستي ته | ورتلل |
| Interesse | zeigen/haben | علاقه | ښودل، درلودل |
| unter Kontrolle | bringen | د کنټرول لاندي | راوستل |
| zum Lachen | bringen | په خندا | راوستل |
| zu Ohren | kommen | غوږ ته | راتلل |
| Pause | machen/einlegen | دمه | کول |
| Rache | nehmen | غچ یا انتقام | اخیستل |
| Rat | geben | مشوره، سلا | ورکول |
| ein Recht | haben auf | د یو شي حق | درلودل |
| Reise | machen | سفر | کول |
| Rolle | spielen | رول | لوبول |
| Schmerzen | haben | درد | درلودل |
| im Sterben | liegen | د مرګ په حالت کي | پروت اوسیدل |
| im Stich | lassen | په سخته کي یوازي | پرېښودل |
| Ultimatum | stellen | ضرب الاجل | ایښودل |
| Unterschied | machen | فرق ، توپیر | کول |
| zur Verantwortung | ziehen | مسؤلیت ته | رابښکل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Vertrag | abschließen | قرارداد | تړل |
| Vorschlag | machen | وړاندیز، پیشنهاد | کول |
| zum Weinen | bringen | په ژړا | راوستل |

پاتي ګڼ شمېر نور اسمونه په جرمني ژبه کې د پښتو په پرتله له داسي فعلونو سره استعماليږي چې سړی په پښتو کې تصور نشي کولی. مثال:

| | | | |
|---|---|---|---|
| eine Maßnahme | treffen | کول | یو اقدام |

د (treffen) لغت په پښتو کې (کول) ته نه وايي، بلکې (له یو چا سره لیدل، په یوه نښه شوي شي لګېدل) ته وايي.

اوس به یو څو اسمونه وګورو چې د پښتو په پرتله له بالکل بل شان فعلونو سره کارول کیږي.

| Deutsch | | Paschto | |
|---|---|---|---|
| Akkusativobjekt | Verb | Akkusativobjekt | Verb<br>د اصطلاح مفهوم |
| auf Ablehnung | stoßen | له ردیدلو سره | مخامخېدل |
| vor dem Abschluss | stehen | پای ته رسېدو ته نږدې | اوسېدل |
| in Angriff | nehmen | د کار پیل، عمل | کول |
| Angst | machen | ډار، وېره | په زړه کې اچول |
| Anklage gegen | erheben | په یو چا رسمي دعوه | کول |
| in Anspruch | nehmen | له یو شي نه استفاده | کول |
| Ansprüche | stellen | غوښتني، تقاضا | درلودل |
| Antrag | stellen | عریضه، غوښتنلیك | کول، وړاندې کول |
| Anzeige | aufgeben | په اخبار کې اعلان | ورکول |
| Anzeige gegen jmdn | erstatten | په یو چا عریضه | کول |
| Appetit | machen | اشتها | راپارول، پیدا کول |
| Arbeit | leisten | کار | تر سره کول |
| Arbeit jmdm | machen | کار | یوچاته ورپېښول |
| Ärger | machen | غصه، عصبانیت | راپېښول |
| zum Ausdruck | bringen | بیان | ورکول، بیانول |
| in Aussicht | stellen | د یو شي ژمنه، وعده | کول |
| Beachtung | finden | پاملرنه، توجه | راګرځېدل |
| von Bedeutung | sein | ارزښت، اهمیت | درلودل |
| ein Beispiel | nehmen | خپل سرمشق | ګرځول |
| Beitrag | leisten | ونډه | اخیستل |
| Bekanntschaft | machen | پېژندګلوي | کېدل |
| einen Beruf | ausüben | په یو مسلك کې | کار کول |
| Berufung | einlegen | مرافعه | غوښتل |
| Bescheid | wissen | خبر | اوسېدل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Beschluss | fassen | رسمي پرېکړه | کول |
| Beschwerde | einlegen | رسمي شکايت | وړاندې کول |
| in Besitz | nehmen | د تصرف لاندې | راوستل |
| Besuch | abstatten | رسمي ليدنه | کول |
| in Betrieb | nehmen | په فعاليت | راوستل |
| unter Beweis | stellen | ثبوت ته | رسول |
| Blutbad | anrichten | د وينو سېلاب | بهول، راوستل |
| in Brand | geraten | اور | اخيستل، لګېدل |
| Dienst | antreten | وظيفې ته، دندې ته | حاضرېدل |
| zur Diskussion | stehen | مطرح | اوسېدل |
| zur Diskussion | stellen | مطرح | کول |
| unter Druck | setzen | له فشار لاندې | راوستل |
| unter Druck | stehen | له فشار لاندې | اوسېدل |
| Dummheit | begehen | حماقت | کول |
| eine Ehe | führen | نکاح يا د واده | درلودل |
| Eid | leisten, ablegen | قسم، سوګند، لوړه | کول |
| den Eindruck | gewinnen | په نظر کې ښکاره | کېدل |
| Einfluss | nehmen | له اغيزې لاندې | راوستل |
| Einspruch | erheben | اعتراض | کول |
| in Empfang | nehmen | په لاس، په تسليمی | اخيستل |
| ein Ende | finden | پای ته | رسېدل |
| zu Ende | gehen | پای ته | رسېدل |
| Entscheidung | treffen | پرېکړه، فيصله | کول |
| in Erfüllung | gehen | تر سره | کېدل |
| Erinnerungen | wecken | خاطرات | راپه يادول |
| eine Erkältung | sich zuziehen | ريزش، زکام، والګی | نيول، و هل |
| Erklärung | abgeben | اطلاعيه، اعلاميه | ورکول |
| Ersatz | leisten | بدل، بديل، جبران | ورکول |
| in Erscheinung | treten | ښکاره، رابرسېره | کېدل |
| in Erstaunen | setzen | حيران | کول، هك حيرانول |
| in Erwägung | ziehen | د يو شي په فکر کې | کېدل |
| Erwartungen | wecken | توقع، تقاضا | راپيدا کول |
| Flucht | ergreifen | تېښته، فرار | کول |
| Frage | stellen | پوښتنه | کول |
| in Frage | kommen | مطرح | کېدل |
| in Frage | stellen | تر پوښتنې لاندې | راوستل، راتلل |
| Freude | machen | خوشحالي | راپيښول |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Freundschaft | schließen | ملگری، ملګرتوب | کېدل، کول |
| Frieden | schließen | سوله، صلح | کول |
| Frieden | stiften | سوله، صلح | مینځ ته راوړل |
| Gedanken | machen | په فکر کې | کېدل |
| in Gefahr | geraten | په خطر کې | ولېدل |
| Gefallen | finden | یو شی خوښ | راتلل |
| Gelegenheit | sich bieten | موقع | په لاس راتلل |
| Gelegenheit | ergreifen | له موقع نه | کار اخیستل |
| Gespräch | führen | رسمي خبرې اترې | کول |
| auf der Hand | liegen | څرګند، روښان | اوسېدل |
| Handel | treiben | تجارت، سوداګري | کول |
| Hilfe | leisten | مرسته | کول |
| Hoffnung | machen | امېد، هیله | راپیدا کول |
| im Interesse | liegen | د یو چا په ګټه | اوسېدل |
| Interesse | wecken | علاقه، دلچسپي | راپیدا کول |
| in Kauf | nehmen | په ځان | منل |
| Kompromiss | schließen | روغې جوړې ته | رسېدل |
| Konsequenzen | ziehen | د نتیجې په اساس عمل | کول |
| in Kraft | setzen | نافذ، قانوني | کول |
| Krieg | führen | جګړه، جنګ | کول |
| auf Kritik | stoßen | له نیوکې، انتقاد سره | مخامخېدل |
| Kritik | üben | نیوکه، انتقاد | کول |
| jmdm Kummer | zufügen | یو چا ته غم | ورپه مخه کول |
| zur Last | fallen | په یو چا بار، بوج | راتلل، کېدل |
| Maßnahme | ergreifen | اقدام | کول |
| Meinung | vertreten | په یوه مفکوره | اوسېدل |
| Missbrauch | treiben | سؤ استفاده، بده استفاده | کول |
| in Mode | kommen | موډ | کېدل |
| Mord | begehen/verüben | قتل، وژنه، مرګ | کول |
| Mut | machen | زړه، زړورتیا | ورکول |
| auf die Nerven | gehen/fallen | د یو چا اعصاب | خرابول |
| Niederlage | erleiden | ناکامي، ماتې راتلنه | په برخه کېدل |
| jmdm Niederlage | zufügen | یو څوک له ناکامی سره | مخامخول |
| zum Opfer | fallen | د یو شي قرباني یا ښکار | کېدل |
| in Ordnung | bringen | سم، تیك، ښه | کول |
| Pflicht | erfüllen | وظیفه | تر سره کول |
| Protokoll | führen | پروتوکول | لیکل |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Rede | halten | وينا | كول |
| Reparatur | ausführen | ترميمات | كول |
| Referat | halten | كنفرانس | وركول |
| zur Ruhe | kommen | ارام | کېدل، ارامېدل |
| Rücksicht | nehmen | لحاظ، مراعات | كول |
| jmdm Schaden | zufügen | یو چا ته تاوان | رسول |
| die Schuld an etwas | tragen | په یو شي کي ګناهګار | اوسېدل |
| in Schwierigkeiten | bringen | په مشکلاتو | اخته کول |
| in Schwierigkeit | geraten | له ستونځو سره | مخامخېدل |
| Selbstmord | begehen | ځان وژنه، انتحار | كول |
| sich Sorgen | machen | غم، اندېښنه | كول |
| Sport | treiben | سپورت | كول |
| zur Sprache | bringen | بیان، یوه خبره مطرح | كول |
| Stellung | nehmen/beziehen | دریځ، نظر | ښکاره کول |
| ein Thema | anschneiden | یوه موضوع | مطرح کول |
| Unfall | bauen | ټکر | كول |
| Unfrieden | stiften | ناارامي | مینځ ته راوړل |
| Unfug | anstellen/treiben | ورانی، خوشي کارونه | كول |
| Unheil | anrichten | مصیبت | راوستل |
| Urteil | fällen | فیصله (د قاضي) | كول |
| Verantwortung | tragen | مسؤلیت | په غاړه درلودل |
| Verantwortung | übernehmen | مسؤلیت | په غاړه اخیستل |
| in Verbindung | setzen | اړیکي، مناسبات | نیول |
| Verbrechen | begehen/verüben | جنایت | كول |
| in Verdacht | geraten | په یو چا شك | راتلل |
| Vereinbarung | treffen | رسمي موافقه | كول |
| zur Verfügung | stehen | په اختیار کي | اوسېدل |
| zur Verfügung | stellen | په اختیار کي | ایښودل |
| in Vergessenheit | geraten | هېر (فراموش) | کېدل، هېرېدل |
| eine Verletzung | sich zuziehen | زخمي، ټپي | کېدل |
| Vermutung | haben | ګمان | كول |
| zur Vernunft | gelangen | تعقل ته | راتلل |
| Verrat | begehen | خیانت | كول |
| sein Versprechen | halten | په وعده | وفا کول |
| Verwendung | finden | له یو شي نه استفاده | کېدل |
| zur Verzweiflung | bringen | نهیلي، نامېده | كول |
| Vorbereitungen | treffen | ترتیبات، چمتووالی | نیول |

| | | | |
|---|---|---|---|
| zum Wahnsinn | treiben | يو څوك لېونتوب ته | راوستل |
| sich zur Wehr | setzen | دفاع | كول |
| Wert | legen | يو شي ته اهميت | وركول |
| Wert | sein | يو شي ارزښت | درلودل |
| in Widerspruch | stehen zu | ضد او نقيض | اوسېدل |
| Widerstand | leisten | مقاومت | كول |
| ein gutes Wort | einlegen | توصيه، ستاينه | كول |
| das Wort | ergreifen | رسمي خبره | كول |
| zu Wort | kommen | يو چا ته د خبرو وار | وررسېدل |
| in Wut | geraten | په قهر، په غصه | كېدل |
| in Zusammenhang | stehen | د يو شي سره اړيكي | درلودل |
| Zustimmung | geben | منظوري، موافقه | كول |
| außer Zweifel | stehen | په يو څه كي هيڅ شك نه | اوسېدل |

**Übungen:**

1. Wer ………….. heute Protokoll? پروتوكول نن څوك ليكي؟
2. Der Minister muss aus den Ereignissen der letzten Zeit die Konsequenzen ……… وزير بايد د تېر وخت د پېښو په نتيجه كي عمل يا اقدام وكړي
3. In vier Wochen wird das Gericht das Urteil ………….. په څلورو اونيو كي به محكمه فيصله وكړي
4. Wir werden auf jeden Fall gegen die Entscheidung der Behörde Einspruch ………….. مونږ به د مقاماتو د دې فيصلې په وړاندې هرومرو اعتراض وكړو
5. Deine Unordnung ………….. mich zur Verzweiflung! ستا ګډوډي ما نهيلي كوي
6. Und mich ………….. deine Ordnung zum Wahnsinn! او ستا نظم ما لېونتوب ته راولي
7. Dem gestürzten Fahrradfahrer sind sofort Fußgänger zu Hilfe ………….. لارويان د هغه بايسكل والا مرستې ته ورغلل چې ولېدلی و
8. In diesem Punkt ………….. ich eine ganz andere Meinung. په دې ټكي كې زه په بله مفكوره يم
9. Hast du schon mal vor so vielen Leuten ein Referat ………….. تا په كوم وخت كې د دومره خلكو په مخكې كوم كنفرانس وركړی دی؟
10. Wir ……….. Ihnen das Material zur Verfügung. مونږ مواد ستاسو په اختيار كې ږدو
11. Dieser Sommer ………….. so schnell zu Ende. دا اوړی دومره ژر تېر شو
12. Die Minister konnten bei ihren Gesprächen eine Vereinbarung ………….. وزيرانو پخپلو خبرو اترو كې وكړی شول چې يوې موافقې ته ورسيږي
13. Gegen dieses Vorgehen müssen wir uns zur Wehr ………….. د دې چلند په وړاندې بايد مونږ خپله دفاع وكړو
14. Die Verhandlungen ………….. kurz vor dem Abschluss. خبرې اترې پای ته رسېدو ته نږدې شوې دي
15. Sie haben einen Kompromiss ………….. هغوی روغې جوړې ته ورسېدل (څه د يو او څه د بل غوښتنې ومنل شوې)

**Lösungen**:
1. führt 2. ziehen 3. fällen 4. erheben 5. bringen 6. treibt 7. gekommen
8. vertrete 9. gehalten 10. stellen 11. Ging 12. treffen 13. setzen 14. stehen
15. geschlossen

**Übungen:**

1. Nachdem seine Frau zu reden begann, kam er nicht mehr zu …………..
کله چې د هغه ښځې په خبرو پیل وکړو، نو هغه ته د خبرو وار ونه رسېدو
2. Das Problem solltest du unbedingt auf der nächsten Sitzung zur ………….. bringen.
دا ستونزه باید په راتلونکې غونډه کې ته هرومرو م طرح کړې
3. Das Arbeitsklima spielt für die Verbesserung der Produktion eine große …………..
د کار د فضا ښه کېدل د تولیداتو د ښه کېدو لپاره یو لوی رول لوبوي
4. Nein, dieser Vorschlagt kommt für uns überhaupt nicht in …………..
نه دا وړاندیز مونږ ته هېڅ مطرح کېدی نشي
5. Wir könnten eine Veränderung in ………….. ziehen.
مونږ کوی شو چې یو بدلون په نظر کې ونیسو
6. Der Direktor hat seiner Sekretärin eine Beförderung in ………….. gestellt.
مدیر خپلې سکرتړې ته د ترفیع کولو ژمنه کړېده
7. Wir tun alles, um die Untersuchungen bald zum ………….. zu bringen.
مونږ هر څه کوو چې دا پلټنې پای ته ورسیږي
8. Eine Verbesserung deiner Noten muss doch in deinem eigenen ………….. liegen.
ستا د نمرو ښه کېدل خو ستا په ګټه دي (ته په دې نپوهېږې؟)
9. Die Vorschläge der Kommission stießen bei einigen Politikern auf …………..
د کمیسیون وړاندیزونه د ځینو سیاستوالو په وړاندې د نیوکې سره مخامخ شول
10. Der Betrieb stellt jedem Mitarbeiter ein Auto zur …………stellen.
دا کمپنی هر همکار ته یو موټر په اختیار کې ږدي
11. Du solltest die Hilfe in ………….. nehmen. ته باید له دې مرستې نه استفاده وکړې

12. Der Präsident wurde für seine Fehlentscheidungen zur ………….. gezogen.
رئیس د غلطې فیصلې په وجه مسؤلیت ته راښکل شو

**Lösungen:**
1. Wort 2. Sprache 3. Rolle 4. Frage 5. Erwägung 6 Aussicht 7. Abschluss
8. Interesse 9. Kritik 10. Verfügung 11. Anspruch 12. Verantwortung

**Übungen:**

1. Sie können uns jetzt per E-Mail ihre Fragen …………..
تاسو کولی شئ چې اوس له مونږ نه خپلې پوښتنې د بریښنالیك له لارې وکړئ
2. Unsere Mannschaft ………….. eine schwere Niederlage.
زمونږ لوبډله له سختې ماتې سره مخامخ شوه
3. Er sollte sich an unserem Lehrer ein Beispiel …………..
هغه باید زمونږ ښوونکی خپل سرمشق وګرځوي

4. Die alten Uhren …………. immer mehr an Bedeutung.
د پخوانو ساعتونو اهمیت ورځ په ورځ ورکیږي
5. Die Eltern …………. für Ihre Kinder die Verantwortung.
د ماشومانو مسؤلیت د مور او پلار په غاړه دی
6. Du solltest jetzt eine Ausbildung in Angriff ………….
ته باید اوس یوه زده کړه پیل کړې
7. Ein Versprechen, das man gegeben hat, muss man ………….
یوه وعده چې چا کړې وي، باید سړی پرې ودریږي
8. Wer gesund bleiben will, sollte regelmäßig Sport ………….
څوك چې روغ پاتې کېدل غواړي، باید په منظم ډول سپورټ وکړي
9. Die Demonstration verlief sehr friedlich, die Polizei musste nicht in Erscheinung ………….
دا مظاهره ډېره سوله ایزه وه، پولیسو ته څه ضرورت نه و چې ځان ښکاره کړي
10. Wer betrunken Auto fährt, …………. einen Unfall in Kauf.
څوك چې په نشه حالت کې موټر چلوي، د موټر ټکر په ځان مني
11. Wir wollen ein Haus kaufen, wenn sich eine günstige Gelegenheit ………….
کله چې یوه مناسبه موقع مو په لاس راغله، مونږ غواړو چې یو کور په بیه واخلو
12. Sein Sohn …………. an einem Studium kein Interesse.
د هغه زوی د تحصیل لپاره څه علاقه نه ښایي

**Lösungen:**
1. stellen 2. erlitt 3. nehmen 4. verlieren 5. tragen 6. nehmen 7. halten 8. treiben 9. treten 10. nimmt 11. bietet 12. zeigt

**Übungen:** Bitte wandeln Sie die Paschtosätze ins Deutsche um!
تاسو دا پښتنتو جملې په جرمني ژبه واړوئ

۱ـ دې دواړو هېوادونو د تل لپاره تجارت کړی دی
……………………………………………………………………………………
۲ـ له دې قانون نه ډېره سؤ استفاده شوېده
……………………………………………………………………………………
۳ـ هغه تل لپاره ډېر سپورټ کړی دی
……………………………………………………………………………………
۴ـ جنایتکار یو قتل وکړو
……………………………………………………………………………………
۵ـ دې سفر ډېر خاطرات راپه یاد کړل
……………………………………………………………………………………
۶ـ ته خبر یې چې سروېس کله راځي
……………………………………………………………………………………
۷ـ هغه ته پخپل سفر کې والګی (زکام، رېزش) ورپیدا شو
……………………………………………………………………………………
۸ـ په ټکر کې هغه سخت ټپي شو
……………………………………………………………………………………
۹ـ ته ما له فشار لاندې مه راوله

..........................................................................................................................

۱۰-تا له هغه سره اړیکي نیولي دي؟

..........................................................................................................................

۱۱- هغه د یو بورس لپاره عریضه وکړه

..........................................................................................................................

۱۲-تا خپله توانایي ثابته کړه

..........................................................................................................................

۱۳- هغه له خپلو دښمنانو نه غچ (انتقام) واخیست

..........................................................................................................................

۱۴- هغه له سختو مشکلاتو سره اخته شوی دی

..........................................................................................................................

۱۵- خبرې اترې نن پای ته ورسېدلې

..........................................................................................................................

۱۶-ته پخپلې وعدې ټینګ ونه دریدلې (تا پخپلې وعدې وفا ونکړه)

..........................................................................................................................

۱۷- هغه یوه په زړه پورې وینا وکړه

..........................................................................................................................

۱۸-دا شخړه هېڅکله پای ته نه رسیږي؟

..........................................................................................................................

۱۹-زه هیله کوم چې ستا ټولې هیلې او غوښتنې تر سره شي

..........................................................................................................................

۲۰-دا موزيك زما اعصاب خرابوي

**Lösungen**:

1. Die beiden Staaten haben schon immer Handel getrieben.
2. Mit diesem Gesetz ist viel Missbrauch getrieben worden.
3. Er hat schon immer viel Sport getrieben.
4. Der Verbrecher hat einen Mord verübt.
5. Diese Reise hat viele Erinnerungen geweckt.
6. Weißt du Bescheid, wann der Bus kommt?
7. Er hat sich bei seiner Reise eine Erkältung zugezogen.
8. Bei dem Unfall hat er sich schwere Verletzungen zugezogen.
9. Setz mich nicht unter Druck!
10. Hast du dich schon mit ihm in Verbindung gesetzt?
11. Er hat einen Antrag auf ein Stipendium gestellt.
12. Du hast deine Fähigkeiten unter Beweis gestellt.
13. Er hat Rache an seinen Feinden genommen.
14. Er ist in große Schwierigkeiten geraten.
15. Die Verhandlungen sind heute zum Abschluss gekommen.
16. Du hast dein Versprechen nicht gehalten.
17. Er hat eine interessante Rede gehalten.
18. Findet dieser Streit niemals ein Ende?
19. Ich hoffe, alle deine Wünsche gehen in Erfüllung.
20. Diese Musik geht mir auf die Nerven.

## Verb-Nomen-Verbindungen in alphabetischer Reihenfolge

| Verb | Nomen mit Beispielsätzen |
|---|---|
| abgeben | eine Erklärung د يو شي په برخه کي توضيحات ورکول<br>Die Polizei will eine Erklärung zu den Vorfällen abgegeben.<br>پولیس غواړي چي د دي پیښو په اړه لږ څه وروسته توضیحات ورکړي |
| ablegen | einen Eid قسم کول، لوړه کول، سوګند کول<br>Er hat vor Gericht einen Eid abgelegt. هغه د محکمي په مخکي قسم وکړو<br>ein Geständnis اقرار کول<br>Der Verbrecher hat ein umfassendes Geständnis abgelegt.<br>جبایتکار په جامع ډول اقرار وکړو |
| abschließen | einen Vertrag قرارداد تړل<br>Sie haben miteinander einen Vertrag abgeschlossen.<br>هغوی له یو بل سره یو قرارداد تړلی دی<br>die Arbeit کار پای ته رسول<br>Sie hat endlich die Arbeit an dem Buch abgeschlossen.<br>هغي د کتاب کار آخر پای ته ورسو<br>eine Wette شرط تړل<br>Ich habe mit ihr eine Wette mit einem Einsatz von 1.000 Euro abgeschlossen. ما له هغي سره د زر یورو شرط تړلی دی |
| abstatten | einen Besuch د یو چا لیدو ته ورتلل<br>Ich werde dir morgen einen Besuch abstatten.<br>زه به سبا ستا لیدو ته درشم |
| anrichten | ein Blutbad د وینو سیلاب بهول<br>Die Armee hat ein Blutbad angerichtet. پوځ د وینو سیلاب وبهو<br>ein Unheil یو مصیبت راپیښول<br>Diese Äußerungen haben viel Unheil angerichtet.<br>دي خبرو ډیر مصیبت راپیښ کړو<br>das Essen ډوډی په قابونو کي اچول، په دسترخوان ایښودل<br>Das Essen ist angerichtet. ډوډی په دسترخوان ایښودل شوی ده |
| anstellen | Unfug ورانکاري کول، ورانی کول، بد کار کول<br>Die Kinder haben viel Unfug angestellt. ماشومانو ډیره ورانکاري کړیده<br>Überlegungen د يوي موضوع په برخه کي فکرونه کول<br>Man hat Überlegungen angestellt, den Laden zu schließen.<br>داسي فکرونه وهل شویدي چي دا دکان وتړل شي<br>Vermutungen د یو شي په برخه شك یا ګمان یا اټکل کول<br>Wissenschaftler haben Vermutungen über diese Erkrankung angestellt. عالمانو د دي ناروغی په برخه کي اټکلونه کړي دي |

| | |
|---|---|
| antreten | den Dienst — په دندې يا په وظيفې پيل کول<br>Der General hat letzten Freitag den Dienst angetreten.<br>جنرال د تېرې جمعې په ورځ په خپلې دندې پيل وکړو |
| aufgeben | die Hoffnung — هيله، امېد له لاسه ورکول<br>Du darfst die Hoffnung nie aufgeben. ته بايد هېڅکله هيله له لاسه ورنکړې<br>eine Anzeige — په يوې رسنۍ کې اعلان ورکول<br>Ich werde zur Zeitung gehen und eine Anzeige aufgeben.<br>زه به اخبار ته ولاړ شم او يو اعلان به ورکړم<br>Widerstand — مقاومت پرېښودل، له مقاومت نه تېرېدل<br>Die Demonstranten haben ihren Widerstand aufgegeben.<br>لاريون کوونکو خپل مقاومت پرېښود |
| ausführen | Arbeit/Befehl — يو کار يا يو امر اجرا کول، تر سره کول<br>Der Soldat hat den Befehl ausgeführt. عسکر امر اجرا کړو<br>د ترميماتو چارې ترسره کول<br>Reparaturen<br>Die Reparaturen wurden von der Werkstatt ausgeführt.<br>د ترمېمولو چارې د ورکشاب له خوا تر سره شوې |
| begehen | Fehler/Dummheit — غلطي کول ـ حماقت کول<br>Mit dieser Aktion hast du eine große Dummheit begangen.<br>په دې چلند باندې تا يو ستر حماقت وکړو<br>Mord/Selbstmord — قتل کول ـ ځان وژل کول<br>Der Verbrecher hat einen Mord begangen. جنايتکار يو قتل وکړو<br>ein Fest — يو جشن لمانځل<br>Er hat seinen 80. Geburtstag begangen. هغه خپله اتياومه کليزه ولمانځله<br>Verrat — خيانت کول<br>Er hat an seinen Freunden Verrat begangen.<br>هغه د خپلو ملګرو سره خيانت کړی دی |
| bringen | zum Abschluss — پای ته رسول<br>Die Verhandlungen wurden endlich zum Abschluss gebracht.<br>خبرې اترې آخر پای ته ورسول شوې<br>zum Ausdruck — بيانول<br>Sie hat ihre Zweifel zum Ausdruck gebracht. هغې خپل شکونه بيان کړل<br>unter Kontrolle — د کنټرول لاندې راوستل<br>Die Armee hat die Stadt unter ihre Kontrolle gebracht.<br>پوځ دا ښار د خپل کنټرول لاندې راوست<br>zum Lachen — په خندا راوستل<br>Sie hat mich mit ihren Geschichten zum Lachen gebracht.<br>په خپلو کيسو باندې هغې زه په خندا راوستم<br>aus der Ruhe — ناآرامول، ناکرارول<br>Mich kann nichts aus der Ruhe bringen. هېڅ شی ما نشي ناکرارولی |

| | |
|---|---|
| | in Gefahr — په خطر کې اچول<br>Damit bringst du dich in Gefahr. — په دې باندې ته ځان په خطر کې اچوې<br><br>vor Gericht — محکمې ته وړاندې کول، محکمې ته راښکل<br>Ich bringe die Sache vor Gericht. — زه دا خبره محکمې ته وړاندې کوم |
| einlegen | Berufung — مرافعه غوښتل، د فیصلې په ضد عریضه کول<br>Der Anwalt hat Berufung gegen das Urteil eingelegt.<br>وکیل د فیصلې په ضد مرافعه وغوښتله (د پرېکړې په ضد عریضه وکړله)<br>Beschwerde — په رسمي ډول شکایت وړاندې کول<br>Sie hat Beschwerde gegen die Pläne der Regierung eingelegt.<br>هغې د حکومت د پلانونو په ضد رسمي شکایت وړاندې کړو<br><br>ein gutes Wort — د یو چا لپاره د هغه په ستاینې کولو واسطه کېدل<br>Ich habe ein gutes Wort für dich eingelegt.<br>ما ستا ستاینه وکړه او ستا لپاره واسطه شوم |
| einreichen | einen Antrag — یو غوښتنلیك (عریضه) وړاندې کول<br>Er hat einen Antrag bei der Behörde eingereicht.<br>هغه دولتي مقاماتو ته یو غوښتنلیك وړاندې کړو<br>Beschwerde — په رسمي ډول شکایت وړاندې کول<br>Er hat Beschwerde gegen diese Behandlung eingereicht.<br>هغه د دې چلند په وړاندې په رسمي ډول شکایت وړاندې کړو<br>Unterlagen — اسناد په رسمي ډول وړاندې کول<br>Ich habe alle Unterlagen zur Prüfung eingereicht.<br>د ازموینې لپاره ټول اسناد ما په رسمي ډول وړاندې کړل<br>die Scheidung — رسمي مقاماتو ته د طلاق عریضه وړاندې کول<br>Sie hat vor einem Monat die Scheidung eingereicht.<br>هغې یوه میاشت مخکې مقاماتو ته د طلاق غوښتلو عریضه وړاندې کړه |
| einstellen | den Betrieb — کار، فعالیت پرېښودل<br>Die Fabrik hat schon lange den Betrieb eingestellt.<br>فابریکې له ډېر وخت راهیسې کار پرې ایښی دی (فابریکه په ټپه ولاړه ده)<br>das Rauchen — سګرټه څکول پرېښودل<br>Er hat seit einem Monat das Rauchen eingestellt.<br>هغه د یوې میاشتې راهیسې سګرټ څکول پرې ایښي دي<br>das Feuer — ډزبندي کول، اوربند کول<br>Der Feind stellte das Feuer ein. — دښمن ډزبندي وکړه، اوربند وکړو<br><br>die Produktion — تولیدات پرېښودل، تولیدات بندول<br>Die Produktion ist seit einem Jahr eingestellt worden.<br>تولیدات د یو کال راهیسې بند شوي دي |
| | Besitz — د یو چا مال او دارایي نیول، غصبول<br>Der Staat hat unrechtmäßig Besitz von seinem Land ergriffen.<br>دولت په ناحقه د هغه مځکه نیولې ده |

| | |
|---|---|
| ergreifen | die Flucht تېښته کول، تښتېدل، مخ په تېښته کېدل<br>Vor dem Hund ergriff der Dieb die Flucht. غل له سپي نه وتښتېدو<br><br>die Gelegenheit موقع په لاس اخيستل، له موقع نه کار اخيستل<br>Ich habe die Gelegenheit ergriffen, ihm für seine Hilfe zu danken.<br>ما له موقع نه کار واخيست چي له هغه نه د هغه د مرستي په وجه مننه وکړم<br><br>Maßnahmen اقدامات کول<br>Welche Maßnahmen hast du bei dieser Kälte ergriffen?<br>په داسي سړو (يخ) کي تا څه اقدامات نيولي دي؟<br>das Wort په خبرو پيل کول، په خبرو لاس پوري کول<br>Er hat erst am Ende der Diskussion das Wort ergriffen.<br>د خبرو اترو په پای کي بيا هغه په خبرو پيل وکړو<br>Initiative ابتکار په لاس کي اخيستل، ابتکار کول<br>Er ergriff die Initiative und zündete die Kerze an.<br>هغه ابتکار په لاس کي واخيست او شمع يي بله کړه<br>Partei د يو چا پلوي کول، طرفداري کول<br>Er hat für dich Partei ergriffen. هغه ستا پلوي وکړه<br><br>die Macht قدرت په لاس کي اخيستل<br>Wir werden bald die Macht ergreifen.<br>مونږ به په دي لنډو کي قدرت په لاس کي ونيسو |
| erheben | Anklage په يو چا د رسمي مقاماتو له خوا دعوه کول<br>Das Gericht hat gegen ihn Anklage erhoben.<br>د هغه په ضد باندي محکمي دعوه وکړه<br>Steuern ماليات وضع کول، ماليه مقررول<br>Der Staat muss Steuern erheben. دولت بايد ماليات وضع کړي |
| erleiden | Niederlage ماتي خوړل، ناکامېدل، مغلوبېدل<br>Unsere Mannschaft hat eine heftige Niederlage erlitten.<br>زمونږ لوبډلي سخته ماتي وخوړله<br>Schmerzen په درد اخته کېدل، په يو چا باندي درد تېرېدل<br>Aufgrund des Todes ihrer Mutter hat sie große psychische Schmerzen erlitten.<br>د هغي د مور د مړيني په وجه هغه په يو سخت روحي درد اخته شوه<br>Verluste تاوان کول، يو چا ته تاوان ورپېښېدل<br>Die Fabrik hat große finanzielle Verluste erlitten.<br>دي فابريکي ته ستر مالي تاوان ورپېښ شو |
| erregen | Aufsehen د خلکو پام يو شي ته راګرځېدل<br>Dieses Verbrechen hat viel Aufsehen erregt.<br>دي جنايت ته د ډېرو خلکو پام وروګرځېدو<br>Staunen هك اريانېدل، هك پك کېدل، تعجب کول<br>Diese Leistung erregt Staunen. دا لاس ته راوړنه سړی هك اريانوي |

| | |
|---|---|
| | Heiterkeit د خندا او ساعت تېرى فضا مينځ ته راوړل<br>Sein Betragen erregte allgemeine Heiterkeit.<br>د هغه په ناستي ولاړي باندې د خندا او ساعت تېرى فضا جوړه شوه<br>Verdacht په يو چا يا په يو شي باندې شك كېدل<br>Ich wollte keinen Verdacht erregen. ما نه غوښتل چې د چا شك وشي |
| erstatten | Anzeige په يو چا باندې عريضه كول<br>Sie erstattete bei der Polizei Anzeige gegen die Nachbarn.<br>هغه پوليسو ته پخپلو ګاونډيانو عريضه وکړه<br>Bericht د يو شي په برخه كې رپوټ وركول<br>Er muss seinem Chef täglich Bericht erstatten.<br>هغه بايد خپل آمر ته هره ورځ رپوټ ورکړي |
| fällen | eine Entscheidung يوه پرېكړه كول، فيصله كول<br>Er hatte eine wichtige Entscheidung zu fällen.<br>د هغه په مخكې يوه مهمه فيصله پرته وه<br>das Urteil د محكمې پرېكړه كېدل، پرېكړه كول<br>Das Gericht fällte das Todesurteil über den Angeklagten.<br>د تورن (متهم) په اړه محكمې د اعدام فېصله وکړه |
| fassen | einen Beschluss يوه رسمي فيصله كول<br>Die Regierung hat in dieser Frage einen Beschluss gefasst.<br>په دې موضوع كې حكومت يوه فېصله وکړه<br>in Worte په الفاظو كې بيانول<br>Ich kann meine Gedanken nicht in Worte fassen.<br>زه خپل افكار په الفاظو نشم بيانولی<br>Mut د زړورتيا نه كار اخيستل ، زړورتيا كول<br>Er konnte dazu keinen Mut fassen. هغه دې ته زړه نشو كولی<br>Gedanken د يو شي په برخه كې سوچ (فكر) كول<br>Er konnte keinen klaren Gedanken fassen. هغه سم فكر نشو كولی |
| finden | Beachtung يو شي ته ارزښت وركول<br>Das Konzert fand wenig Beachtung. كنسرت ته لږ ارزښت وركړل شو<br>ein Ende پای ته رسېدل، تمامېدل<br>Findet dieser Streit niemals ein Ende? دا شخړه هېڅكله پای ته نه رسيږي؟<br>Gefallen يو شي د يو چا خوښېدل<br>Sie hat Gefallen an ihrer neuen Arbeit gefunden.<br>د هغې نوى كار د هغې خوښ شو<br>Verwendung له يو شي نه كار اخيستل كېدل، استعمالېدل<br>Dieser Stoff findet bei der Produktion von Plastik Verwendung.<br>د پلاستيك په جوړونه كې له دې توكي نه كار اخيستل كيږي |
| | Krieg جګړه كول، جنګ كول، په جګړه بوخت اوسېدل<br>Die Feinde führen Krieg gegen unser Land.<br>دښمنان زمونږ د هېواد په وړاندې په جګړه بوخت دي |

**führen**

eine glückliche Ehe — د ښځي او مېړه په توګه بختور ژوند کول
Die beiden führen eine glückliche Ehe.
هغوی د ښځي او مېړه په توګه په بختورتيا ژوند کوي

einen Decknamen — ځان په يو مستعار نوم يادول
Der Spion führte den Decknamen „David“.
جاسوس د (داود) په مستعار نوم ځان يادوه

zu keinem Ergebnis — هېڅ ګټه نکول، هېڅ نتيجي ته نه رسېدل
Deine Bemühungen führen zu keinem Ergebnis.
ستا زحمتونه کومي نتيجي ته نه رسيږي

ein Restaurant — يو رستوران چلول
Er führte das Restaurant 10 Jahre lang. هغه لس کاله دا رستوران وچلوه

ein Gespräch — له يو بل سره خبري کول
Sie führten miteinander ein langes Gespräch.
هغوی له يو بل سره اوږدي خبري وکړي

zum guten Ende — يوې ښې پايلي ته بيول، ښې نتيجي ته رسول
Maßloser Stolz führt zu keinem guten Ende.
له حده ډېر غرور کومي ښې پايلي ته نه رسيږي

einen Zug — اورګاډی چلول
Er führt den Zug seit heute. هغه له نن راهيسي اورګاډی چلوي

den Beweis — ثبوت وړاندې کول
Die Polizei führte den Beweis. پوليس ثبوت وړاندې کړو

über etwas Buch — يادداښتونه ليکل، هرڅه تکي په تکي ليکل
Er führte Buch über seine Reisen.
هغه د خپلو سفرونو په برخه کي يادداښتونه ليکلي دي

**geben**

in Obhut — د ساتني لپاره د يو چا په اختيار کي پرېښودل
Er gab seine Kinder in die Obhut seines Vaters.
هغه خپل ماشومان د خپل پلار په اختيار کي پرېښودل

zur Reparatur — د ترميمولو لپاره ورکول
Er hat das Auto zur Reparatur gegeben.
هغه موټر د ترميمولو لپاره ورکړی دی

in die Lehre — د يو کسب د زده کړي لپاره په يو چا تعليم کول
Er hat seinen Sohn in die Lehre gegeben.
هغه د يو کسب د زده کړي لپاره پخپل زوی باندې تعليم کوي

in oder zum Druck — چاپخاني ته د چاپولو لپاره ورکول
Ich habe das Buch in Druck gegeben. ما دا کتاب د چاپ لپاره ورکړېدی

sein Wort — ژبه کول، ژمنه کول، د يو شي لپاره قسم کول
Dafür gebe ich Ihnen mein Wort. په دې برخه کي له تاسو سره زما ژبه ده

einen Auftrag — يو چا ته يوه دنده ورسپارل، مؤظفول

| | |
|---|---|
| | Er gab mir den Auftrag, das Auto zu reparieren.<br>هغه ما ته دا دنده راوسپارله چې دا موټر جوړ کړم<br><br>einen Kuss له یو چا نه مچه اخیستل ، یو ښوك ښکلول<br>Die Mutter gab ihrem Kind einen Kuss. مور خپل ماشوم ښکل کړو<br><br>ein Fest یو محفل جوړول، محفل ترتیبول<br>Sportsfreunde geben morgen ein großes Fest.<br>د سپورټ مینه وال سبا یو لوی محفل جوړوي |
| gehen | ins Bett ویده کېدل<br>Wann gehen deine Kinder ins Bett? ستا ماشومان کله ویده کیږي؟<br><br>auf den Grund د یو شي اصلي علت راپیداکول<br>Wir müssen der Sache auf den Grund gehen.<br>مونږ باید د دې خبرې اصلي علت راپیدا کړو<br>in Erfüllung ترسره کېدل، پوره کېدل<br>Ich hoffe, alle deine Wünsche gehen in Erfüllung.<br>زما هیله ده چې ستا ټولې هیلې ترسره شي<br>auf die Nerven د یو چا اعصاب خرابول<br>Diese Musik geht mir auf die Nerven. دا موسیقي زما اعصاب خرابوي<br><br>auf die Suche د یو چا یا د یو شي لټون کول، لټه کول، لټول<br>Wir machen uns auf die Suche nach dem Kind.<br>مونږ باید د ماشوم لټون وکړو<br>سم اوسېدل، ټیك اوسېدل،<br>in Ordnung<br>Das geht in Ordnung. دا سم دی، دا ټیك دی، په دې کې څه غلطي نشته |
| gelangen | zur Vernunft تعقل ته رسېدل، له تعقل نه کار اخیستل<br>Er ist endlich zur Vernunft gelangt. هغه آخر تعقل ته راغی<br><br>zu der Überzeugung په یو شي باندې باور راتلل، قناعت ته رسېدل<br>Wir sind zu der Überzeugung gelangt, dass sich etwas ändern muss. مونږ دې قناعت ته رسیدلي یو چې یو څه بدلون اړین دی<br><br>zu Reichtum شتمنۍ ته رسېدل، شتمن کېدل<br>Es gibt ungezählte Möglichkeiten, um zu Reichtum zu gelangen.<br>بې شماره امکانات شته چې سړی شتمنۍ ته ورسیږي<br><br>zu der Erkenntnis معلومات لاس ته راتلل، یوې نتیجې ته رسېدل<br>Ich bin zu der Erkenntnis gelangt, dass du damals Recht hattest.<br>زه دې نتیجې ته ورسېدم چې هغه وخت ستا خبره ریښتیا وه<br><br>zu Ruhe ارامېدل، ارامۍ ته رسېدل<br>Zu innerer Ruhe gelangt er dadurch nicht.<br>په دې باندې د زړه ارامي د هغه په برخه نکیږي |

| | |
|---|---|
| | ans Ziel هدف ته رسېدل، خپلي موخي ته رسېدل<br>Nach langer Fahrt gelangten wir endlich ans Ziel.<br>له اوږد مزل نه وروسته آخر مونږ هدف ته ورسېدلو |
| geraten | in Brand اور اخيستل، په اور اخته کېدل<br>Bei dem Feuer ist auch die Schule in Brand geraten.<br>په دې اور کې ښوونځي هم اور واخيست<br><br>in Gefahr په خطر کې ولېدل، د خطر سره مخامخېدل<br>Bei seiner Reise ist er in große Gefahr geraten.<br>پخپل سفر کې هغه د سخت خطر سره مخامخ شو<br>außer Kontrolle له کنټرول نه ولېدل، له کنټروله وتل<br>Der Brand ist außer Kontrolle geraten.<br>اور له کنټروله ولېدلی دی، اور نور نشي کنټرولېدلی<br>in Schwierigkeiten په مشکلاتو اخته کېدل<br>Er ist in große Schwierigkeiten geraten.<br>هغه په سختو مشکلاتو اخته شوی دی<br>in Vegessenheit هېرېدل، هېر کېدل، له یاده وتل<br>Diese Tradition ist heute leider in Vergessenheit geraten.<br>دا دود له بده مرغه نن هېر شوی دی<br>in Gefangenschaft په بند کې ولېدل، بندي کېدل<br>Die Soldaten sind in Gefangenschaft geraten. عسکر په بند کې ولوېدل<br><br>in Wut په قهرېدل، یو چا ته قهر ورتلل<br>Er gerät sehr schnell in Wut. هغه ته ډېر ژر قهر ورځي<br><br>ins Stocken په یو ځای کې بند پاتې کېدل، وړاندې نشول تللی<br>Beim Aufsagen eines Gedichts geriet sie ins Stocken.<br>د یو شعر په لوستلو کې هغه بنده شوه<br>in Streit د یو بل سره په جګړه اخته کېدل<br>In dieser Frage sind sie in Streit geraten. |

په دي خبره کي هغوی له یوبل سره په جګړه اخته شول

in Verlegenheit — خجالتېدل، له خجالتی سره مخامخېدل

Sie geriet sehr schnell in Verlegenheit.

هغه ډېر ژر د خجالتی سره مخامخه شوه

in Verdacht — په یو چا باندي شك راتلل

Er ist in Verdacht geraten, der Verräter zu sein.

په هغه باندي شك راغلی چي هغه به خاین واوسي

**gewinnen**

den Eindruck — د یو شي په برخه کي یوچاته یو نظر ورپیداکېدل

Er hat den Eindruck gewonnen, dass Sie der richtige Mann für diese Aufgabe sind.

هغه ته دا نظر ورپیدا شو چي د دي دندي لپاره تاسو یو صحیح کس یاست

eine Bedeutung — اهمیت لاس ته راوړل، ارزښت لاس ته راوړل

Die Sache gewinnt dadurch eine besondere Bedeutung.

په دي باندي دا خبره یو خاص اهمیت ترلاسه کوي

an Bedeutung — د یو شي ارزښت ډېرېدل، اهمیت ډېرېدل

Die Sonnenenergie gewinnt immer mehr an Bedeutung.

د لمریزي انرژی اهمیت مخ په ډېرېدو دی

an Fahrt — سرعت زیاتېدل، ګړندیتوب ډېرېدل، تېزېدل

Der Zug gewinnt an Fahrt. — د اورګاډي سرعت مخ په ډېرېدو دی

als Kunden — یو څوك د خپل مشتري په توګه لاس ته راوړل، مشتري کېدل

Ich möchte Sie als Kunden gewinnen. — زه غواړم چي تاسو زما مشتریان شئ

an Sicherheit — ډاډمن کېدل، ډاډ لاس ته راوړل

Die Jugend gewinnt an Sicherheit. — ځوان نسل مخ په ډاډمن کېدو دی

**haben**

Schuld — ګناهګار اوسېدل، په یو چا ګناه راتلل

Er hat Schuld an dem Unfall. — په دي ټکر کي ګناه د هغه ده

Gedanken — افکار درلودل، په فکر کي یو څه ګرځېدل

Was hast du für komische Gedanken? — ته څه عجیب و غریب افکار لري؟

schönes Wetter — په یو ځای کي ښه هوا اوسېدل

Wir haben hier ein wunderschönes Wetter. — دلته هوا ډېره ښه ده

Sommer — په یو ځای کي اوړی اوسېدل

Habt ihr jetzt Sommer? — ستاسو په ځای کي اوس اوړی دی؟

gegen jmdn etwas — د یو چا په ضد اوسېدل، مخالفت درلودل

Was hast du eigentlich gegen mich? — ته له ما سره څه مخالفت لري؟

alle gegen sich — ټول د یو چا په ضد اوسېدل، په خلاف اوسېدل

Er hatte alle gegen sich. — ټول د هغه په ضد وو، ټول له هغه سره مخالف وو

د یو چا یا د یو شي سره مخالفت نه درلودل

**halten**

nichts dagegen
Ich habe nichts dagegen, wenn du deinen Bruder mitbringst.
زه له دي سره مخالفت نلرم چي ته خپل ورور له ځانه سره راولي

hinter sich — يو شي تېرول، له يو شي نه تېرېدل
Er hat die Prüfung hinter sich. — د هغه ازموينه تېره شوه

hinter sich — د يو چا په پلوی ولاړ اوسېدل
In dieser Sache hat sie die ganze Partei hinter sich.
ټول ګوند د هغه په پلوی ولاړ دی

vor sich *(+ Dativ)* — يو څه د يو چا په مخکې اوسېدل
Er hat eine wichtige Aufgabe vor sich. — يوه مهمه دنده د هغه په مخکې ده

vor sich *(+ Dativ)* — د يو چا په خلاف ولاړ اوسېدل
Weißt du wohl nicht, wen du vor dir hast?
ته په دي نپوهېږي چي څوك ستا په مخکي ولاړ دی؟

eine Rede — وينا كول
Du hast eine gute  Rede gehalten. — تا يوه ښه وينا وکړه

sein Versprechen — په خپله ژمنه ودرېدل، په خپله وعده وفا كول
Er hat sein Versprechen nicht gehalten. — هغه په خپله ژمنه ونه درېدو

das Wasser — تشي متيازي ټينګي ساتل، بولي ټينګي ساتل
Der Patient kann das Wasser nicht mehr halten.
رنځور تشي متيازي ټينګي ساتلی نشي

Diät — پرهيز كول
Ich habe zwei Monate eine sehr strenge Diät gehalten.
ما دوه مياشتي ډېر سخت پرهيز وکړو

sein Wort — په خپله ژبه ټينګ ولاړ اوسېدل
Ich hielt mein Wort und zog mich daher zurück.
زه په خپله ژبه ټينګ ودرېدم، نو ځکه په شا شوم

sich an die Gesetze — د قانون مراعات كول، قانوني چلند كول
Die Regierung hält sich nicht an die Gesetze.
حکومت د قانون مراعات نکوي

zu jemandem — د يو چا پلوي كول، يو چا ته وفادار اوسېدل
Ich halte immer zu dir. — زه تل ستا پلوي كوم، تا ته وفادار يم

einen Hund — يو سپی ساتل
Sie halten zwei Hunde. — هغوی دوه سپي ساتلي دي

jmdn für dumm — يو څوك يو چا ته احمق ښكارېدل
Hältst du mich für dumm? — زه تا ته احمق ښكارم؟

nicht viel von jemandem — د يو چا په برخه کي ښه نظر نه درلودل
Ich halte nicht viel von ihm. — د هغه په برخه کي زه ښه نظر نلرم

Vorlesung لکچر ورکول
Der Professor hat eine sehr gute Vorlesung gehalten.
پروفیسر یو ډېر ښه لکچر ورکړو
Wache پېره کول
Der Soldat muss heute Wache halten. عسکر باید نن پېره وکړي

zum Abschluss پای ته رسېدل
Die Verhandlungen sind nun zum Abschluss gekommen.
خبرې اترې اوس پای ته رسېدلي دي
zum Ausdruck بیانېدل، ویل کېدل
Bei den Gesprächen ist zum Ausdruck gekommen, dass noch vieles zu verbessern ist.په خبرواترو کې دا بیان شول چې ډېر څه لا د اصلاح کولو دي

zur Einsicht یوې نتیجې ته رسېدل
Ich bin zu der Einsicht kommen, dass du recht hast.
زه دې نتیجې ته ورسېدم چې ستا خبره صحیح ده
zu keinem Ergebnis هېڅ نتیجې ته نه رسېدل
Der Ausschuss ist zu keinem Ergebnis gekommen.
کمیسیون هېڅ نتیجې ته ونه رسېدو
in Frage د منلو وړ اوسېدل، کېدی شول
So ein Vorgehen kommt gar nicht in Frage.
دا شان چلند هېڅ د منلو وړ ندی
in Gang جاري کېدل، پیل کېدل، پرمخ روانېدل
Endlich sind die Verhandlungen in Gang gekommen.
خبرې اترې آخر جاري شوې
in Mode موډ کېدل
Deine alten Jeans sind wieder in Mode gekommen.
ستا زاړه جینز پطلونونه اوس بیا موډ شوي دي
zur Sprache مطرح کېدل، په خبرو کې يادېدل
Dieses Thema kam bei dem Gespräch leider nicht zur Sprache.
دا موضوع په خبرو اترو کې له بده مرغه یاده نشوه
zu Wort یو چا ته د خبرو وار رسېدل
Er ließ mich gar nicht zu Wort kommen. هغه ما ته د خبرو هېڅ وار رانکړو

kommen

in die Hölle په دوزخ کې ولېدل
Wer nicht betet, kommt in die Hölle.
څوک چې لمونځ نکوي، په دوزخ کې ولیږي
in Verdacht په یو چا شك راتلل
Er kam in den Verdacht, das Geld gestohlen zu haben.
په هغه شك راغلی دی چې غلا به يې کړې وي
zum Schlafen ویده کېدو ته موقع په لاس ورتلل
Sie ist die ganze Nacht nicht zum Schlafen gekommen.
هغې ته ټوله شپه د خوب موقع په لاس ورنغله

| | |
|---|---|
| | ins Stocken — بند پاتي کېدل، بنديځ راتلل<br>Der Verkehr kam ins Stocken. — ترافيك بند پاتې شو |
| | ins Rutschen — ښوييدل، په ښوييدو کېدل<br>Plötzlich kam ich ins Rutschen. — زه يوناڅاپه په ښوييدو شوم |
| | unters Auto — د موټر لاندي کېدل<br>Das Kind kam unters Auto. — ماشوم د موټر لاندي شو |
| | es zum Krieg — جګړه کېدل<br>Es kam zum Krieg. — جګړه وشوه، جګړه راغله |
| | zu Kräften — په قوت راتلل، قوي کېدل<br>Nach der langen Krankheit kam er schnell wieder zu Kräften.<br>د اوږدې ناروغی نه وروسته هغه ژر بېرته په قوت راغی |
| | zur Ruhe — ارامېدل، ارامي  د يو ځا په برخه کېدل<br>Ich komme nicht zur Ruhe. — ما ته ارامي نه په برخه کيږي |
| | ums Leben — مړ کېدل، ژوند له لاسه ورکول<br>Er ist bei einem Unfall ums Leben gekommen.<br>هغه په يو ټکر کې خپل ژوند له لاسه ورکړو |
| legen | Wert auf etwas — يو شي ته ارزښت ورکول<br>Er legt großen Wert auf Sauberkeit. — هغه پاکوالي ته ډېر ارزښت ورکوي |
| | Hund an die Kette — سپي ته ځنځير ورپه غاړه اچول<br>Leg den Hund an die Kette. — ته سپي ته ځنځير ورپه غاړه واچوه |
| | Ei — هګی اچول<br>Die Henne hat gerade ein Ei gelegt. — چرګې همدا اوس يوه هګی واچوله |
| leisten | Arbeit — کار کول<br>Du hast gute politische Arbeit geleistet. — تا ښه سياسي کار وکړو |
| | Beitrag zu etwas — په مرسته کې برخه اخيستل<br>Er hat einen wichtigen Beitrag zur Entwicklung seines Landes geleistet. — د خپل هېواد د پرمختګ لپاره هغه يوه مهمه برخه اخيستې ده |
| | Ersatz — د يو شي بديل ورکول، تاوان ورکول<br>Für die Schäden muss er Ersatz leisten. — هغه بايد د تاوانونو بديل ورکړي |
| | Widerstand — مقاومت کول<br>Die feindlichen Truppen leisteten keinen Widerstand.<br>د دښمن لښکرو هيڅ مقاومت ونکړو |
| | مرسته کول |

machen

Hilfe
Sie hat bei dem schweren Unfall Erste Hilfe geleistet.
په دې سخت ټکر کې هغې لومړنۍ مرسته وکړه

jemandem Arbeit — یو چا ته کار زیاتول، د یو چا کار زیاتول
Du machst mir nur Arbeit! — ته ما ته تش کار زیاتوې او بس

einen Eindruck — د یو چا په طبع ښه لګېدل، د یو چا په نظر ښکاره کېدل
Seine Ansprache hat großen Eindruck auf mich gemacht.
د هغه وینا زما په طبع ډېره ښه ولګېدله

jemandem Sorgen — یو څوك په اندېښنه کې اچول، غم ورپیداکول
Du brauchst dir keine Sorgen zu machen. — ته غم مکوه

nichts daraus — د یو شي پروا نکول
Mach dir nichts daraus. — ته د دې پروا مکوه

Bekanntschaft — له یو چا سره د یو چا پېژندګلوي کېدل
Auf der Reise habe ich die Bekanntschaft eines Filmschauspielers gemacht. — په سفر کې د فلم له یو لوبغاړي سره زما پېژندګلوي وشوه

einen Besuch — د یو چا لیدو ته ورتلل
Ich mache am Nachmittag einen Besuch bei Freunden.
زه ماسپښین د ملګرو لیدو ته ورځم

Feierabend — له کار نه وروسته خپل د رخصتۍ وخت پیلول
Es ist schon spät. Wir machen jetzt Feierabend.
اوس ناوخته ده. کار به بس کړو او خپل د رخصتۍ وخت به پیل کړو

Gedanken über — د یو شي په برخه کې فکرونه کول
Sie hat sich Gedanken über die Zukunft gemacht.
هغې د راتلونکي وخت په برخه کې فکرونه وکړل

sich Mühe — ډېر زیار وېستل، ډېره خواري کول
Er hat sich bei dieser Arbeit viel Mühe gemacht.
هغه په دې کار کې ډېر زیار وېستلی دی

Angst — په یو چا کې ډار ورپیداکول، یو څوك ډارول
Diese Stille macht mir Angst. — دا ارامي په ما کې ډار راپیداکوي

Mut — یو چا ته جرآت ورکول، زړه ورکول
Dein Rat hat mir viel Mut gemacht. — ستا سلا ما ته ډېر زړه راکړو

Freude — په یو چا کې خوشحالي ورپیدا کول، خوشحالول
Seine Fortschritte machen mir große Freude.
د هغه پرمختګ په ما کې ډېره خوشحالي راپیداکوي

Hoffnung — په یو چا کې هیله یا امید ورپیداکول
Der Arzt hat mir Hoffnung gemacht, dass mein Vater wieder gesund wird. — ډاکټر ما ته دا هیله راپیدا کړه چې زما پلار به بېرته ښه شي

| | |
|---|---|
| | Ärger شخړه پیداکول، خپګان راپیدا کول<br>So eine Entscheidung macht nur Ärger.<br>دا شان پرېکړه تش خپګان راپیدا کوي او بس |
| nehmen | Abschied von له یو چا نه خدای پاماني اخیستل<br>Er hat von allen seinen Freunden Abschied genommen.<br>هغه له خپلو ټولو ملګرو نه خدای پاماني واخیست<br>in Angriff په یو کار پیل کول، شروع کول<br>Wir müssen dieses Projekt in Angriff nehmen.<br>مونږ باید دا پروژه پیل کړو<br>in Anspruch له یو شي نه کار اخیستل، استفاده کول<br>Sie haben noch keine staatliche Hilfe in Anspruch genommen.<br>هغوی لا تر اوسه له دولتي مرستي نه کار ندی اخیستی<br>ein Beispiel an یو څوك خپل سرمشق ګرځول<br>Dein Bruder schreibt nur gute Noten. Nimm dir ein Beispiel an ihm. ستا ورور تل ښې نمري اخلي. ته هغه خپل سرمشق وګرځوه<br>in Besitz د بل چا مال نیول، د چا مال خپل کول، غصبول<br>Sie haben das Land unrechtmäßig in Besitz genommen.<br>هغوی په غیر قانوني توګه دا مځکه نیولې ده<br>in Betrieb فعالول، چالانول، په کار اچول<br>Endlich wurde die Maschine in Betrieb genommen<br>ایله ایله چي له دې ماشین نه کار واخیستل شو<br>Bezug auf etwas راجع کول، اړیکي نیول، یو څه یادول<br>Er nimmt Bezug auf Bestimmungen des Ministeriums.<br>هغه د وزارت اصول یادوي، د وزارت اصول راجع کوي<br>in Empfang یو لیږدول شوی شي اخیستل، په لاس کي اخیستل<br>Der Nachbar hat das Paket in Empfang genommen.<br>ګاونډي لیږدول شوی پارسل د ساتلو لپاره واخیست<br>Einfluss auf اغېز کول، د اغېز لاندې راوستل<br>Sie hat keinen Einfluss auf die Entscheidung genommen.<br>هغې په دې پرېکړې باندې هېڅ اغېزه نده کړې<br>in Kauf په ځان منل، ګالل<br>Er hat für diese Wohnung viel Mühe in Kauf genommen.<br>د دې استوګنځي لپاره هغه ډېر زحمتونه په ځان ومنل<br>Rücksicht auf د یو چا مراعات کول، لحاظ کول<br>Er nimmt viel Rücksicht auf seine Nachbarn.<br>هغه د خپلو ګاونډیانو ډېر مراعات کوي<br>Rache an له یو چا نه غچ اخیستل، انتقام اخیستل<br>Er hat Rache an seinen Feinden genommen.<br>هغه له خپلو دښمنانو نه غچ واخیستو<br>Stellung د یوې موضوع په برخه کې دریځ نیول، موقف ښکاره کول<br>Er hat keine Stellung zu den Vorwürfen genommen.<br>دې تورونو ته هغه خپل دریځ ندی ښکاره کړی<br>د نظارت لاندې نیول |

| | |
|---|---|
| schließen | in Augenschein<br>Er hat das Grundstück in Augenschein genommen.<br>هغه دا مځکه د نظارت لاندې نیولې ده |
| | Freundschaft ملګرتوب کول<br>Er hat mit dem neuen Kollegen Freundschaft geschlossen.<br>هغه د نوو همکارانو سره ملګرتوب وکړو |
| setzen | unter Druck د فشار لاندې راوستل<br>Die Proteste setzten die Firma unter Druck.<br>دې اعتصابوبو دا کمپنی د فشار لاندې راوستله |
| | in Kenntnis یو څوك له یوې موضوع نه خبرول<br>Ich wollte Sie davon in Kenntnis setzen, dass ...,<br>ماغوښتل چې تاسو له دې نه خبر کړم چې ... |
| | in Kraft رسمي کول، قانوني اعتبار ورکول<br>Die Gesetze wurden in Kraft gesetzt. قوانین رسمي شول |
| | in Verbindung له یو چا سره اړیکي نیول<br>Hast du dich schon mit ihm in Verbindung gesetzt?<br>تا له هغه سره اړیکي ونیولې؟ |
| | in Erstaunen هك اریانول، هك پك پاتي کول<br>Das hat mich doch sehr in Erstaunen versetzt. دې زه هك اریان کړم |
| stehen | unter Druck د فشار لاندې اوسېدل<br>Vor der Prüfung stehen viele Schüler unter Druck.<br>له ازموینې نه دمخه ډېر زده کوونکي د فشار لاندې وي |
| | zur Diskussion چې پرې خبرې اترې وشي<br>Diese Frage steht hier nicht zur Diskussion.<br>د دې پوښتنې په برخه کې دلته خبرې اترې نه کیږي |
| | zur Verfügung د یو چا په اختیار کې اوسېدل<br>Für Fragen stehe ich Ihnen zur Verfügung.<br>د پوښتنو لپاره زه ستاسو په اختیار کې یم |
| | vor Entscheidung یوه فیصله د یو چا په مخکې اوسېدل<br>Sie steht vor einer wichtigen Entscheidung.<br>د هغې په مخکې یوه مهمه فیصله پرته ده |
| | zu seinem Wort پخپله ژبه ټینګ ولاړ اوسېدل<br>Ich stehe zu meinem Wort. زه پخپله ژبه ټینګ ولاړ یم |
| | hinter jemandem د یو چا پلوي کول، په یو چا ټینګ ولاړ اوسېدل<br>Wer steht hinter ihm? څوك د هغه پلوي کوي، څوك شاته یې ولاړ دی؟ |
| stellen | Ansprüche an له یو چا نه یوه توقع کول<br>Er stellt große Ansprüche an das Leben. هغه له ژوند نه ډېره توقع لري |
| | jemandem eine Aufgabe یو چا ته یوه وظیفه ورکول<br>Der Spielleiter hat den Teams verschiedene Aufgaben gestellt.<br>د لوبې مشر لوبډلو ته مختلفي وظیفي ورکړلي |

einen Antrag عریضه کول، غوښتنلیك وړاندې کول
Er hat einen Antrag auf ein Stipendium gestellt.
هغه د یو بورس لپاره عریضه وکړه
in Aussicht له یو چا سره د یو شي ژمنه کول
Er hat mir eine Gehaltserhöhung in Aussicht gestellt.
هغه له ما سره د معاش د جګولو ژمنه کړې ده
jemandem Bedingung په یو چا یو شرط اېښودل
Du hast mir solche Bedingungen gestellt, die ich nicht erfüllen kann. تا په ما داسې شرطونه اېښي دي، چې زه یې نشم ترسره کولی

unter Beweis ثبوتول، ثبوت ته رسول
Sie hat ihre Fähigkeiten noch nicht unter Beweis gestellt.
هغې خپله توانايي لا نده ثابته کړې
zur Diskussion د خبرو اترو لپاره وړاندې کول
Er hat diese Fragen zur Diskussion gestellt.
هغه دا پوښتنې د بحث لپاره وړاندې کړې
eine Falle یو چا ته یوه تلکه اېښودل، دام اېښودل
Die Polizei hat dem Verbrecher eine Falle gestellt.
پولیس جنایتکار ته یو تلکه کېښوده
eine Frage (an jemanden) یوه پوښتنه کول
Nach dem Vortrag stellten die Zuhörer viele Fragen.
له کنفرانس نه وروسته اورېدونکو ډېرې پوښتنې وکړې
etwas in Frage یو څه تر پوښتنې لاندې راوستل
Mit seiner Aktion hat er den ganzen Plan in Frage gestellt.
پخپل چلند باندې هغه دا ټول پلان تر پوښتنې لاندې راوست
ein Ultimatum یو چا ته ضرب الاجل اېښودل
Die Terroristen haben der Polizei ein Ultimatum gestellt.
تروریستانو پولیسو ته یو ضرب الاجل ایښی دی
zur Verfügung د یو چا په اختیار کې اېښودل
Für den Vortrag hat die Universität einen Raum zur Verfügung gestellt. د دې کنفرانس لپاره پوهنتون یوه خونه په اختیار کې ایښې ده

den Wecker ساعت کوك کول
Wenn du den Wecker nicht stellst, klingelt er auch nicht.
که ته ساعت کوك نکړې، نو ساعت بیا زنګ هم نه وهي

etwas in Rechnung له یو چا نه د یو شي په بدل کې پیسې غوښتل
Diese Ware hat man mir gestern in Rechnung gestellt.
د دې مال په بدل کې له ما نه پرون پیسې وغوښتل شوې
zur Wahl د ټاکنې لپاره ځان نوماندول، کاندیدول
Er hat sich als Parteivorsitzender zur Wahl gestellt.
هغه د ګوند د مشرۍ لپاره ځان کاندید کړو
vor die Wahl یوه فیصله د یو چا په مخ کې اېښودل
Du stellst mich vor die Wahl, entweder alles oder gar nichts.
ته دا فیصله زما په مخکې ږدې چې یا به هرڅه وي او یا به هېڅ نه وي

| | |
|---|---|
| stiften | Frieden سوله مينځ ته راوړل<br>Er versuchte, Frieden zu stiften. هغه کوښښ وکړو چې سوله مينځ ته راوړي<br>Unruhe ناارامي ممينځ ته راوړل<br>Lass das doch, das stiftet nur Streit und Unruhe!<br>ته دا پرېږده، دا تش شخړه او ناارامي مينځ ته راوړي |
| stoßen | ١<br>auf Ablehnung له ردېدو سره مخامخېدل، ردېدل<br>Mit seinem Vorschlag stieß er auf Ablehnung.<br>د هغه وړانديز له ردېدو سره مخامخ شو<br>auf Kritik له نيوکې سره مخامخېدل، په يو چا انتقاد کېدل<br>Diese Vorgehensweise ist auf starke Kritik gestoßen.<br>دا چلند له ډېرو سختو نيوکو سره مخامخ شو<br>auf Widerstand له مقاومت سره مخامخېدل<br>Die Vorschläge sind auf Widerstand gestoßen.<br>دا وړانديزونه له مقاومت سره مخامخ شول<br>auf Schwierigkeiten له مشکلاتو سره مخامخېدل<br>In einem fremden Land stößt man immer auf Schwierigkeiten.<br>په يو پردي هېواد کې سړی تل له مشکلاتو سره مخامخ کيږي |
| treffen | eine Entscheidung يوه پرېکړه کول، فيصله کول<br>Damit hast du eine gute Entscheidung getroffen.<br>په دې باندې تا يوه ښه پرېکړه وکړه<br>eine Maßnahme اقدام کول، اقدامات نيول<br>Welche Maßnahmen hat man gegen das Hochwasser getroffen?<br>د سيلاب په وړاندې څه اقدامات نيول شويدي؟<br>eine Vereinbarung موافقه کول<br>Beide Parteien haben eine Vereinbarung getroffen.<br>دواړو ډلو يوه موافقه وکړه<br>Vorbereitung چمتووالی نيول، تياری نيول<br>Hast du die notwendigen Vorbereitungen getroffen?<br>لازمه چمتووالی تا نيولی دی؟<br>jemands Geschmack د يو چا په ذوق يو کار کول<br>Mit diesem Geschenk hast du genau meinen Geschmack getroffen. په دې ډالۍ باندې تا بالکل زما په ذوق کار وکړو<br>keine Schuld پړه په يو چا نه راتلل، د يو چا ګناه نه اوسېدل<br>Ihn trifft keine Schuld. په دې کې ګناه د هغه نده، پړه په هغه نه راځي |
| treiben | Sport سپورټ کول<br>Treibst du Sport? ته سپورټ کوې؟<br>Unfug ورانکاري، ناوړه کار، چټيات<br>Er hat als Kind viel Unfug getrieben.<br>په ماشوملۍ کې هغه ډېره ورانکاري کړېده<br>يو څوک لېونی کول |

| | |
|---|---|
| | in den Wahnsinn<br>Du treibst mich noch in den Wahnsinn. ته خو ما به لېونی کړې<br><br>Handel راکړه درکړه کول، سوداګري کول، تجارت کول<br>Der Handel mit Waffen muss verboten werden.<br>د وسلو تجارت باید منع شي<br>Viehzucht ځاروي ساتل، مال ساتل<br>Diese Bauern treiben auch Viehzucht. بزګران ځاروي هم ساتي |
| üben | sich in Geduld له حوصلې نه کار اخیستل<br>Bei so einer schweren Arbeit muss man sich in Geduld üben.<br>په دومره یو سخت کار کې سړی باید له حوصلې نه کار واخلي<br>Gerechtigkeit له عدالت نه کار اخیستل<br>Ich werde Gerechtigkeit gegen jedermann üben.<br>زه به د هر چا په وړاندې له عدالت نه کار واخلم<br>Kritik په یو چا نیوکه کول، انتقاد کول<br>Auch an dir wurde viel Kritik geübt. په تا باندې هم ډېرې نیوکې وشوې<br><br>Gnade له رحم نه کار اخیستل، په یو چا رحم کول<br>In diesem Fall hat der Richter viel Gnade geübt.<br>په دې حالت کې قاضي له ډېر رحم نه کار واخیست<br>Rache غچ اخیستل، انتقام اخیستل، بدل اخیستل<br>Er hat an seinem Feind Rache geübt. هغه له خپل دښمن نه غچ واخیست |
| verüben | einen Mord وژنه کول، قتل کول<br>Es ist bis heute unbekannt, wer den Mord verübte.<br>دا تر ننه پورې څرګنده نده چې دا وژنه چا کړېده<br>ein Verbrechen جنایت کول<br>Diese Männer haben ein schweres Verbrechen verübt.<br>دې سړو یو ستر جنایت کړی دی<br>einen Anschlag یو ګوزار کول، توطئه کول<br>Unbekannte Täter verübten einen Anschlag auf den Politiker.<br>ناڅرګندو کسانو په سیاستوال باندې یو ګوزار وکړو<br><br>Selbstmord ځان وژنه کول<br>Nach dem Mord verübte der Mörder Selbstmord.<br>له وژنې نه وروسته قاتل ځان پخپله ووژو<br>Einbruch یو ځای ته ورننوتل او هلته غلا کول<br>Gestern wurde ein Einbruch in ein Juweliergeschäft verübt.<br>پرون د غمو په دکان کې غلا وشوه<br>Attentat د وژنې ګوزار کول، د وژنې قصد عملي کول<br>Vor 20 Jahren wurde das Attentat auf den Minister verübt.<br>شل کاله مخکې په وزیر باندې وژونکی برید وشو |

| | |
|---|---|
| versetzen | in Erstaunen هك اريانول، هك پك كول، تعجب كول<br>Seine Frage hat mich sehr in Erstaunen versetzt.<br>د هغه پوښتنې زه هك اريان كړم<br><br>in Angst und Schrecken په ډېرې وېرې او ډار كې اچول<br>Das Unwetter versetzte uns in Angst und Schrecken.<br>تالندي او برېښنا په مونږ كې ډېره وېره او ډار راپيدا كړو<br>einen Tritt يو څوك په لغته وهل، په لغتي ګوزار كول<br>Er versetzte mir einen Tritt in den Bauch.<br>هغه ماته په خېټه كې يوه لغته راكړله<br>einen Schock په يو چا كې يو شاك (بې هوښي) وړپيداكول<br>Diese Tat versetzte der ganzen Stadt einen Schock.<br>دې عمل ټول ښار ته يو شاك وړپيداكړو |
| wecken | Erinnerungen د يو چا خاطرات راويښول<br>Diese Reise hat viele Erinnerungen geweckt.<br>دې سفر ډېرې خاطرې راويښې كړې<br>Erwartungen توقعات راويښول<br>Wecken Sie in Ihrem Kind keine falschen Erwartungen.<br>تاسو پخپل ماشوم كې غلط توقعات مه راويښوئ<br>Interesse علاقه راويښول<br>Dein Vorschlag hat  mein besonderes Interesse geweckt.<br>ستا وړانديز زما خاصه علاقه راويښه كړه<br>Gefühle په يو چا كې يو احساس راويښول<br>Du hast in mir Gefühle geweckt, die ich nicht vergessen kann.<br>تا په ما كې داسې يو احساس راويښ كړو چې زه يې هېرولی نشم |
| wissen | Bescheid له يو شي نه خبر اوسېدل، پوهېدل<br>Weiß irgendjemand Bescheid, wann der Zug kommt?<br>كوم څوك خبر دی چې اورګاډی كله راځي؟<br>sich in Sicherheit ځان په امن كې ليدل<br>Wer Geld hat, der weiß sich in Sicherheit.<br>څوك چې پيسې لري، هغه ځان په امن كې ګوري |
| ziehen | in Betracht يو شی په نظر كې نيول<br>Das können wir später in Betracht ziehen.<br>دا وروسته په نظر كې نيولی شو<br>in Erwägung په فكر كې نيول<br>Diesen Plan können wir auf keinen Fall in Erwägung ziehen.<br>دا پلان په هېڅ وجه په فكر كې نشو نيولی<br>die Konsequenz د يو شي نه د نتيجې اخيستلو سره سم عمل كول<br>Der Minister zog die Konsequenzen aus dieser Affäre und trat zurück. وزير د دې پېښې نه نتيجه واخيستله او استعفا يې وكړه |

| | |
|---|---|
| zufügen | viel Böses يو چا ته ډېر بد رسول<br>Er hat seiner Familie viel Böses zugefügt.<br>هغه خپلې کورنۍ ته ډېر بد رسولي دي<br>viel Kummer په اندېښنه کې اچول<br>Mit ihren Worten hat sie ihrer Mutter viel Kummer zugefügt.<br>پخپلو الفاظو باندې هغې خپله مور ډېره په اندېښنه کې واچوله<br>eine Niederlage يو چا ته ماتې ورکول، يو خوک مغلوبول<br>Dem Angreifer wurde eine schwere Niederlage zugefügt.<br>يرغل کوونکي ته سخته ماتې ورکړل شوه<br>einen Schaden يو چا ته تاوان رسول<br>Der Hagel hat der Ernte großen Schaden zugefügt.<br>ږلۍ حاصل ته ډېر تاوان ورساوه<br>jemandem Leid يو چا ته عذاب رسول<br>Füge niemandem unnötig Leid zu. ته هيڅ چا ته بې وجهې عذاب مه رسوه<br>Schmerzen درد رسول، په دردول<br>Sie wollte dem Tier nicht unnötig Schmerzen zufügen.<br>هغې نه غوښتل چې دې حيوان ته بې ځايه درد ورسوي |
| zuziehen | eine Erkältung ريزش کول، واالګي نيول<br>Er hat sich bei seiner Reise eine Erkältung zugezogen.<br>پخپل سفر کې هغه ريزش وکړو<br>jemands Zorn د يو چا قهر راپارول<br>Er zog sich den Zorn des Lehrers zu.<br>هغه د ښوونکي قهر د ځان پسې راوپارو<br>Verletzungen ټپي کېدل، زخمي کېدل<br>Bei dem Unfall hat er sich schwere Verletzungen zugezogen.<br>په ټکر کې هغه ډېر سخت ټپي شو |

يوه بله ځانګړتيا دا ده چې په (Präposition) هم په پښتو او په جرمني ژبه کې له يو بل نه ډېر توپير لري
چې په لاندېني جدول کې د بېلګې په توګه يو څو لغتونه ليکل کيږي:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Abschied خداى پاماني | nehmen اخيستل | von د، له | Dativ | Objekt |
| Er nimmt Abschied von seinen Eltern. هغه له خپلو مور او پلار نه خداى پاماني اخلي | | | | |
| Abkommen تړون | treffen يو څوک ليدل | mit/zwischen | Dativ | Objekt |
| Zwischen den beiden Staaten wurde ein Abkommen getroffen.<br>د دې دواړو هېوادو تر مينځ يو تړون وشو | | | | |
| Anteil خواخوږى | nehmen اخيستل | an په | Dativ | Objekt |
| an einem Todesfall Anteil nehmen د يو چا د مړيني په وجه خپل خواخوږى ښودل | | | | |
| Antrag غوښتنليك | stellen اېښودل | auf دپاسه | Akkusativ | Objekt |
| Er stellte einen Antrag auf einen Pass. هغه د پاسپورټ لپاره يو غوښتنليك وړاندې کړو | | | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Aufmerksamkeit پاملرنه، توجه | lenken راګرځول | auf دپاسه | Akkusativ | Objekt |
| jemands Aufmerksamkeit auf einen Fehler lenken د یو چا پاملرنه یوې غلطۍ ته راګرځول | | | | |
| Ansprüche غوښتنې | stellen ایښودل | an په | Akkusativ | Objekt |
| Er stellt hohe Ansprüche an seine Mitarbeiter.<br>هغه له خپلو همکارانو نه سترې غوښتنې کوي | | | | |
| Bescheid احوال، خبر | wissen پوهېدل | über دپاسه | Akkusativ | Objekt |
| Er weiß über alles Bescheid. هغه له هر څهٔ نه خبر دی | | | | |
| Besitz نیونه، تصرف کونه | ergreifen نیول | von د، له | Dativ | Objekt |
| Der Feind ergriff Besitz von dieser Stadt. دښمنانو دا ښار ونیو | | | | |
| Bezug اړیکې، رجعت | nehmen اخیستل | auf باندې | Akkusativ | Objekt |
| Er nahm in seiner Rede Bezug auf unsere Vorschläge.<br>پخپلو خبرو کې هغه زمونږ وړاندیزونو ته بېرته راغی | | | | |
| Druck فشار | ausüben اجرا کول | auf باندې | Akkusativ | Objekt |
| auf jemanden Druck ausüben په یو چا باندې فشار راوړل | | | | |
| Einfluss اغېز | nehmen نیول | auf باندې | Dativ | Objekt |
| Er wollte auf die Entscheidung Einfluss nehmen.<br>هغه غوښتل چې پرېکړه د خپل اغېز لاندې راولي | | | | |
| Einverständnis موافقه | erklären تشریح کول | mit سره | Dativ | Objekt |
| Er erklärte sein Einverständnis mit dem Plan. هغه له پلان سره خپله موافقه وښودله | | | | |
| Frage پوښتنه | stellen کول | nach په برخه | Dativ | Objekt |
| die Frage nach der Existenz von Leben auf anderen Himmelskörpern stellen<br>په نورو ستورو کې د ژوند د موجودیت پوښتنه کول | | | | |
| Gefallen خوښه، مینه | finden پیدا کول | an په | Dativ | Objekt |
| Sie hat an ihm Gefallen gefunden. هغه د هغې خوښ شو | | | | |
| Gespräch خبرې<br>Gespräche خبرې اترې | führen چلول | mit سره<br>über دپاسه | Dativ<br>Akkusativ | Objekt<br>Objekt |
| ein Gespräch mit jemandem führen له یو چا سره خبرې اترې کول<br>Das war ein Gespräch über die Zukunft der Stadt.<br>دا د ښار د راتلونکي په برخه کې خبرې اترې وې | | | | |
| Hoffnungen هیلې، امیدونه | machen (sich) کول | auf دپاسه | Akkusativ | Objekt |
| Ich will dir keine Hoffnungen machen. زه نه غواړم چې په تا کې څه هیلې راژوندی کړم | | | | |
| Konsequenz د یو شيِ له نتیجې سره سم عمل | ziehen ویستل | aus له یو شي نه | Dativ | Objekt |
| Du musst aus dieser Tatsache Konsequenzen ziehen.<br>ته باید له دې واقعیت نه نتیجه واخلې او د نتیجې سره سم چلند وکړې | | | | |
| Kritik نیوکه، انتقاد | üben تمرین کول | an په | Dativ | Objekt |
| Er übte Kritik an dieser Maßnahme. پهٔ دې اقدام باندې هغه نیوکه وکړه | | | | |
| Notiz د اهمیت په نظر کتنه | nehmen نیول | von له، د | Dativ | Objekt |
| Er nahm davon keine Notiz. هغه دې ته هېڅ اهمیت ورنکړو | | | | |
| Protest اعتصاب، هرتال | einlegen په یو شي کې اچول | gegen په خلاف | Akkusativ | Objekt |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| Der Staatsanwalt hat gegen das Urteil des Gerichts Protest eingelegt.<br>څارنوال د محکمې د فیصلې په خلاف اعتراض وړاندې کړو | | | | |
| Quittung ۱ـ بل، رسید<br>۲ـ سزا، جزا | bekommen<br>لاس ته راوړل | für لپاره | Akkusativ | Objekt |
| Er hat seine Quittung bekommen. هغه خپله سزا ولیدله | | | | |
| Rücksicht لحاظ، مراعات | nehmen اخیستل | auf دپاسه | Akkusativ | Objekt |
| Nimm doch Rücksicht auf deine Gesundheit. ته خو د خپل صحت مراعات وکړه | | | | |
| Schritt قدم | halten نیول | mit سره | Dativ | Objekt |
| Ich konnte mit ihm nicht Schritt halten.<br>څومره چټک چې هغه روان و، دومره چټک زه نشوم تللی | | | | |
| Schuld گناه | tragen وړل، چلول | an په | Dativ | Objekt |
| Er trägt die Schuld an dem Unfall. د ټکر گناه د هغه په غاړه ده | | | | |
| Stellung دریځ | beziehen اخیستل | zu ته | Dativ | Objekt |
| Dazu müssen wir Stellung beziehen. په دې برخه کې مونږ باید خپل دریځ څرگند کړو | | | | |
| Verabredung وعده | treffen لیدل | mit سره | Dativ | Objekt |
| Wollen wir nicht eine Verabredung treffen? څنګه، له یو بل سره د لیدو وعده ونکړو؟ | | | | |
| Vorbereitungen<br>چمتووالی، تیاری | treffen لیدل | für لپاره | Akkusativ | Objekt |
| Vorbereitungen für eine Expedition treffen د یو تحقیقاتي سفر لپاره چمتووالی نیول | | | | |
| Wert ارزښت | legen اینبودل | auf دپاسه | Akkusativ | Objekt |
| Sie legt ganz besonderen Wert auf ihre Kleidung.<br>هغه خپلو جامو ته خاص اهمیت ورکوي | | | | |
| Widerspruch اعتراض | einlegen<br>په یو شي کې اچول | gegen<br>په خلاف | Akkusativ | Objekt |
| Gegen diesen Bescheid kannst du Widerspruch einlegen.<br>د دې فیصلې په خلاف ته اعتراض کوی شې | | | | |
| Widerstand مقاومت | leisten خدمت کول | gegen په خلاف | Akkusativ | Objekt |
| jemandem heldenhaft Widerstand leisten د یوچا په مقابل کې قهرمانانه مقاومت کول | | | | |
| ein gutes Wort<br>یوه ښه خبره | einlegen<br>په یو شي کې اچول | für لپاره | Akkusativ | Objekt |
| ein gutes Wort für jmdn einlegen د یوچا لپاره واسطه کېدل، صفت یې کول چې کار یې وشي | | | | |

# Die wichtigsten Kommaregeln د کامې د ایښودلو مهمې قاعدې

## zwischen Hauptsätzen und Nebensätzen د اصلي او فرعي جملو تر مینځ

کله چې یوه اصلي جمله او یوه فرعي جمله له یو بل سره یو ځای شي، نو د یوې کامې (,) په مرسته له یو بل نه بېلیږي. مثال:

| | |
|---|---|
| Hauptsatz اصلي جمله | Ich freue mich. زه خوښیږم |
| Nebensatz فرعي جمله | wenn du kommst چې ته راشي |
| Haupt- und Nebensatz اصلي او فرعي جمله | Ich freue mich, wenn du kommst. زه خوښیږم، چې ته راشي (دلته د اصلي او فرعي جملې تر مینځ یو کامه (,) راغلې ده) |

## zwischen verschiedenen Nebensätzen د مختلفو فرعي جملو تر مینځ

| | |
|---|---|
| Hauptsatz اصلي جمله | Ich weiß زه پوهیږم |
| erster Nebensatz لومړی فرعي جمله | dass ich ihm das Geld bringen muss چې زه ورته باید پیسې یوسم |
| zweiter Nebensatz دوهمه فرعي جمله | weil er darauf wartet ځکه چې هغه ورته په تمه دی |
| Haupt- und Nebensatz اصلي او فرعي جملې | Ich weiß, dass ich ihm das Geld bringen muss, weil er darauf wartet. زه پوهیږم، چې هغه ته باید پیسې یوسم، ځکه چې هغه ورته په تمه دی |

## zwischen gleichrangigen Satzgliedern und Satzaussagen (Aufzählungen) د جملې د عین درجې د غړو تر مینځ، کله چې هر غړی بیل بیل یادیږي

| |
|---|
| Er kann Englisch, Italienisch, Französisch und Spanisch. هغه په انګلیسي، ایټالوي، فرانسوي او هسپانوي ژبه پوهیږي |

## vor oder nach Infinitivkonstruktionen mit *um … zu, ohne zu …, außer… zu* په هغو جملو کې چې له (*um zu…*) یا له (*ohne zu …*) یا له (*außer … zu*) سره راځي

| |
|---|
| Um mich hereinzulassen, öffnete er die Tür. د دې لپاره چې ما رادننه پریږدي، هغه دروازه پرانیستله |
| Er kommt, um uns zu helfen. هغه د دې لپاره راځي، چې له مونږ سره مرسته وکړي |
| Er konnte nichts anderes tun, als wegzulaufen. هغه ته بله لاره پاتې نشوه، پرته له دې چې وتښتي |

## nach Partizipialsätzen

| |
|---|
| Im Flughafen-Terminal sitzend, warteten die Passagiere auf die nächste Ansage. د هوايي ډګر په ترمینل کې ناست، مسافرین د لوډسپیکر اعلان ته په تمه وو |

## das Komma trennt Teilsätze

| |
|---|
| Deine Freunde, die bei dir vorbeikommen, weil sie wissen, dass du ihre Probleme, die psychischer Natur sind, löst, sind dir dankbar. |

| |
|---|
| ستا ملګري، چي تاته درځي، څکه چي هغوی پوهيږي، چي ته د هغوی ستونځې، چي له روحي اړخه دي، حلوې، له تا نه منندوی دي. |

**bei Gegenüberstellungen und Gegensätzen**
**کله چي يو بل سره پرتله وشي او توپير وښودل شي**

| |
|---|
| Die Ernte ist heuer gering, aber von sehr guter Qualität.<br>ښکالک حاصل ډير لږ و، خو جنسيت يې ډير ښه و |
| Die Arbeit ist viel schwieriger, als du glaubst.<br>هسي چې ته فکر کوې، دا کار د هغې نه ډير ګران دی |

**bei Anreden und Ausrufen د خطاب او د ندا په وخت کي**

| | |
|---|---|
| Josef, was hältst du von meinem Vorschlag? | يوسفه، تا ته زما وړانديز ښنګه ښکاري؟ |
| Ja, da haben wir die Lösung! | هو، حل مو پيدا کړو (دا ندائيه جمله ده) |

کله چي دوه بشپيړې اصلي جملې له يو بل سره يوځای شي او يوځای کېدل يې په (او) او يا په (يا) وشي.
کله چي په دوه اصلي جملو کې فاعل بدل شي، نو د دواړو جملو تر مينځ بايد هرومرو يوه کامه (,) راشي.
مثال:

| | |
|---|---|
| Hauptsatz اصلي جمله | Er erhob sein Glas. هغه خپل ګيلاس راپورته کړو |
| Hauptsatz اصلي جمله | Alle tranken ihm zu.<br>ټولو د هغه په وياړ خپل ګيلاسونه د هغه په سلامتی پورته کړل |
| Hauptsatz دوه اصلي<br>+<br>Hauptsatz جملې په ګډه | Er erhob sein Glas, und alle tranken ihm zu.<br>هغه خپل ګيلاس راپورته کړو، او ټولو د هغه په وياړ خپل ګيلاسونه د هغه په سلامتی پورته کړل |

په پورتنی جمله کې دوه اصلي جملې په يوې کامې (,) باندې له يو بل نه بېلې شوې دي.

کله چي د يو مفهوم د تشريح کولو لپاره مثالونه راوستل شي او يا دا مفهوم لاپسې ښه بيان شي

| |
|---|
| Darf ich dich mit Jakob, meinem Bruder, bekannt machen?<br>اجازه ده چي تا له يعقوب سره بلد کړم، چي هغه زما ورور دی؟ |
| Heute Nachmittag hat ein Vortrag stattgefunden, der letzte des Jahres.<br>نن ماسپښين يو کنفرانس وشو، چي دا د کال وروستی کنفرانس و |
| In dieser Sache müssen wir handeln, und zwar sofort.<br>په دې کار کې مونږ بايد اقدام وکړو، او دا بايد سمدلاسه وي |

**Relativsätze نسبتي جملې**

| |
|---|
| Das Auto, das ich gestern kaufte, ist heute schon kaputt.<br>هغه موټر، چي پرون ما په بيه واخيست، نن بيا خراب دی |
| Ich finde den Witz, über den ihr lacht, gar nicht lustig.<br>هغه ټوکه، چي تاسو پرې خاندئ، ما ته د خندا وړ نه ښکاريږي |
| Das ist alles, worum ich euch bitte. هغه ټولې هيلې چي زه يې له تاسو نه کوم، همدا دي |

**Appositionen** د اسمونو لاپسي ښه تشریح کوونه

| |
|---|
| Josef, der Bruder von Jakob, war immer sehr stolz auf sein Auto.<br>یوسف، چي د یعقوب وورور دی، پخپل موټر باندې تل غره و |
| Ich, die Schwester der beiden, fand das immer doof.<br>زه، چي د دې دواړو خور یم، له دې حالت نه مې بد راته |
| Einer der beiden Brüder, der mit der schiefen Nase, fährt lieber Motorrad.<br>د دې دواړو ورونو نه یو تن، هغه یو چي پوزه یې کږه ده، موټرسیکل چلول یې خوښیږي |

**Partizipialsätze** د یو حالت بیانولو جملې

| |
|---|
| Er schlief, von der anstrengenden Reise erschöpft, zwölf Stunden lang.<br>له ستړي کوونکي سفر نه ستړی ستومانه، هغه دولس ساعته خوب وکړو |
| Den Spiegel in der linken Hand haltend, schnitt Meriam sich rechts die Haare ab.<br>هنداره په کیڼ لاس نیولې، مریم په ښي لاس خپل ویښته بیاتي کړل |

# Der Apostroph

له دې نه مطلب د کامې (,) په شکل له یوې بلې نښې نه دی چي په دې ډول (’) ښکاري. څنګه لیدل کیږي، دا خو عیناً لکه د کامې په شکل یوه نښه ده، خو توپیر یې دا دی چي دا نښه (’) د کرښې دپاسه لیکل کیږي او کامه (,) د کرښې لاندې لیکل کیږي. نو په دې وجه ورته پورتنۍ کامه یا پورتنۍ نښه هم ویل کیږي. په داسې حال کې چي کامه (,) دوه جملې له یو بل نه بېلوي، یو(’) = (Apostroph) دا ښايي چي یو لغت په بشپړ ډول ندی لیکل شوی او یوه برخه یې غوځه شوېده. مثال: (D'dorf). دلته د (D´) دپاسه دا (’) نښه دا ښايي چي له (D) نه وروسته یو بل څه د لیکلو و، خو هغه غوځ شوېدی. دا چي ولې یو لغت په بشپړ ډول نه لیکل کیږي او یوه برخه یې غوځیږي، دې ته څو علتونه موجود دي:

① دا د دې لپاره کیږي چي یو لغت چي هر څوك یې پېژني، د دې لپاره چي په ډېر اوږد ډول ونه لیکل نشي، نو یوه برخه یې غوځول کیږي. د مثال په توګه د جرمني د دريو ځایونو نومونه:

| | | |
|---|---|---|
| D'dorf<br>= Düsseldorf | Ku'damm<br>= Kurfürstendamm | M'gladbach<br>= Mönchengladbach |

② کله چي د یو چا خپل نوم د (Genitiv) په حالت کې د هغه د یوې لوحې په سر ولیکل شي. که چېرته دا (Apostroph) ونه لیکل شي، نو سړی نشي پوهېدی چي دا نوم د یو سړي نوم دی او که د یوې ښځې نوم. مثال:

| | |
|---|---|
| Andrea's Blumenladen<br>د Andrea د ګلانو هټۍ | Willi’s Lebensmittelgeschäft<br>د Willi د خوراکي موادو مغازه |

په پورتني کیڼ اړخ مثال کې (Andrea) یو ښځینه نوم دی. که چېرته د (Andrea) دپاسه (’) یا (Apostroph) نه وای او هغه په دې ډول لیکل شوي وای (Andreas)، نو په دې چي د (Andreas) د یو نارینه نوم دی، نو سړی نشو پوهېدی چي دا هټۍ د یوې ښځې هټۍ ده او که د یو نارینه.

③ کله چي د یو چا خپل نوم د صفت په توګه وکارول شي او په پای کې یې (-sch) راشي، مثال:

| | |
|---|---|
| die Grimm'schen Märchen" statt „die grimmschen Märchen | der Ohm'sche Widerstand" statt „der ohmsche Widerstand", |

④ د (Genitiv) په حالت کې د هغو شخصي نومونو شاته د (-s) په ځای لیکل کیږي چې د نومونو وروستي توري دا وي:

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| s | ss | ß | tz | z | x | ce |

مثال:

| | | |
|---|---|---|
| Hans Sachs' Gedichte | Grass' Blechtrommel | Karl Marx' Philosophie |

(Hans Sachs) یو جرمنی شاعر دی، یعني د هغه شعرونه، (Günther Grass) یو بل جرمنی شاعر دی، په پورتني مثال کې د هغه د یو اثر نوم اخیستل کیږي چې هغه (Blechtrommel) دی. په وروستي مثال کې د (Karl Marx) د فلسفې نوم یادیږي.

⑤ کله چې یوه اصطلاحي ژبه په لیکني ډول ولیکل شي. هغه څه غوځ شوي وي، له هغې نه مخکې یو (Apostroph) راځي، مثال:

| | | |
|---|---|---|
| so 'n Blödsinn!<br>= so ein Blödsinn<br>داسې چټیات | nimm 'ne andere Farbe<br>= nimm eine andere Farbe<br>ته یو بل رنګ واخله | gehen S' 'nauf!<br>= gehen Sie hinauf<br>تاسو پورته ولاړ شئ |

# Verben mit verschiedenen Vorsilben
# د مختلفو مختاړو سره فعلونه

په جرمني ژبه کې ګڼ شمېر فعلونه شته چې په مختلفو بڼو او په مختلفو ماناګانو استعمالیږي. له دې فعلونو سره مختلف (Vorsilbe) یا مختاړي یوځای کیږي او بیا په مختلفو ماناګانو استعمالیږي. مثال:

| Verb | + | Vorsilbe | = | Verb mit einer veränderten Bedeutung |
|---|---|---|---|---|
| kommen راتلل | + | be | = | bekommen یو شی لاس ته راوړل |
| gehen تلل | + | ver | = | vergehen وخت تېرېدل |
| achten پام نیول | + | miss | = | missachten یو چا ته په ټیټه سترګه کتل |
| bringen راوړل | + | bei | = | beibringen یو چاته یو څه ورښودل، ورزده کول |

څنګه چې په پورتني جدول کې لیدل کیږي، کله چې له یو فعل سره یو (مختاړی = Vorsilbe) یوځای شي، لکه (be-, ver, -miss) نو د دې فعلونو مانا بالکل بدله شي. داسې هم کېدی شي چې، کله چې یو (مختاړی = Vorsilbe) له یو فعل سره یو ځای شي، نو مانا یې پخپل حال پاتې کیږي، خو ګرامري حالت ورسره بدلیږي. دا په دې مانا چې که پخوا دا فعل له (Nominativ) سره استعمالېدو، نو د مختاړي له یوځای کولو نه وروسته له (Akkusativ) سره استعمالیږي. مثال:

| | | |
|---|---|---|
| lügen دروغ ویل | Er lügt immer. | هغه تل دروغ وایي |
| belügen دروغ ویل | Er hat mich (= *Akkusativ*) belogen. | هغه ما ته دروغ وویل |
| treten ننوتل | Er trat in das Haus. | هغه کور ته ننوتو |
| betreten ننوتل | Er betrat das (= *Akkusativ*) Haus. | هغه کور ته ننوتو |

داسي فعلونه چي د مختلفو مختاړاو سره مختلفي ماناګاني لري، زښت ډېر دي. له بلې خوا مختاړي هم ډېر دي. په لاندې برخه کې به د ځينو مختاړو ځانګړتياوې په لنډ ډول زده کړو.

| untrennbare Vorsilben |
|---|
| be-, emp-, ent-, er-, ge-, miss-, ver-, zer- |

| trennbare Vorsilben |
|---|
| ab-, an-, auf-, aus-, bei-, ein-, los-, mit-, nach-, her-, hin-, vor-, weg-, zu-, zurück- |

يادونه: هغه لغات چي لاتيني دي، نو هغه بيا (untrennbar) يا نه بېلېدونکي دي. مثال:

absorbieren جذبول absolvieren فارغ التحصيل کېدل abszedieren زوه کول

| sowohl trennbare als auch untrennbare Vorsilben |
|---|
| durch-, hinter-, über-, um-, unter- |

اوس به د ځينو (مختاړو = Vorsilben) هغه ځانګړتيا وګورو چي يو لغت ته يې ورکوي:

| | |
|---|---|
| دا مختاړی کله کله د يو کار د يوې برخې يا د مؤقتي وخت په مانا کارول کيږي. مثال:<br>ankaufen د يو شي د يوې برخې په بيه اخيستل يا د يو مؤقتي وخت لپاره په بيه اخيستل<br>anzahlen د يو شي د يوې برخې پيسې ورکول، بيانه ورکول | an- |
| دا مختاړی زياتره وخت د (مخ په پورته) او کله کله د (بشپړ) په مانا کارول کيږي. مثال:<br>aufsteigen يو ځای ته مخ په پورته ختل<br>aufessen يو شی تر پايه پورې خوړل، يو څه په خوړلو خلاصول<br>aufkaufen يو شی په ټوليز ډول په بيه اخيستل، په بشپړ ډول په بيه اخيستل | auf- |
| دا مختاړی کله کله د يو کار د بشپړتيا په مانا کارول کيږي. مثال:<br>ausbrennen يو شی تر پايه پورې سوځېدل، بالکل سوځېدل<br>austrinken يو شی تر پايه پورې څښل، يو شی دومره ډېر څښل چي هيڅ شی پاتې نشي | aus- |
| دا مختاړی کله کله د يو شي د ډکولو، زياتولو، بشپړولو په مانا کارول کيږي. مثال:<br>bewaffnen په وسلو سمبالول، په وسلو مجهزول، مسلح کول<br>beladen بارول، يو شی ډکول | be- |
| دا مختاړی د يو کار تر پايه پورې کولو يا د يو شي د مينځ بيانولو په مانا کارول کيږي.<br>durchtanzen تر پايه پورې ګډېدل (د يو محفل يا پروګرام تر پايه پورې ګډېدل)<br>durcharbeiten بې له کومې دمې د يو پروګرام تر پايه پورې کار کول<br>durchgehen د يو شي په مينځ کې ګرځېدل، د يو شي له مينځ نه تېرېدل<br>durchfließen د يو شي له مينځه بهېدل | durch- |
| دا مختاړی کله کله د يو شي د کمولو يا لرېولو، کمزوری کولو په مانا کارول کيږي. مثال:<br>entwaffnen بې وسلې کول، له يو چا نه وسله اخيستل<br>entladen له يو شي نه بار هيسته کول، يو شی تشول<br>entgiften يو شی بې زهره کول، د يو شي زهر له مينځه وړل | ent- |
| دا مختاړی کله کله د يو کار د پيل يا د يو کار د يوځل کېدلو په مانا کارول کيږي. مثال: | er- |

| | | |
|---|---|---|
| erhitzen | یو شی تودول | |
| erheben | یو شی راپورته کول | |
| | دا مختاړی تل لپاره د یو کار د غلطی یا د ناسم یا د ناکامی په مانا کارول کیږي. مثال: | fehl- |
| fehlgehen | په غلطه لاره تلل، غلط فکر یا غلطه ادعا کول | |
| fehlschlagen | له ناکامی سره مخامخېدل، په غلط او ناکام ډول سرته رسېدل | |
| | دا مختاړی د یو کار د پیل یا د یو شي د ازادېدلو یا خوشې کېدو په مانا کارول کیږي. مثال: | los- |
| losbrechen | یوناڅاپه پیلېدل، یوناڅاپه شروع کېدل | |
| losbinden | یو تړل شوی شی خوشې کول | |
| | دا مختاړی تل د یو فعل پاتې راتلل یا ناکامېدل یا منفي اړخ ښکاره کوي. مثال: | miss- |
| misslingen | یو کار نه بریالی کېدل او له ناکامی سره مخامخېدل | |
| missbrauchen | له یو شي نه ناوړه کار اخیستل، بده استفاده کول | |
| | دا مختاړی د یو کار په شا راګرځېدو یا د یو شي د شاوخوا ګرځېدلو په مانا کارول کیږي. | um- |
| umdrehen | یو شی په شا ګرځول، په شا تاوول | |
| umbiegen | یو شی په شا کتول، په شا قاتول | |
| sich umschauen | ځان راتاوول او خپله شاوخوا کتل | |
| umwickeln | یو شی د بل شي له شاوخوا نه راچاپېرول | |
| | دا مختاړی د یو فعل د مختلفو هدفونو لپاره کارول کیږي چې لاندې ذکر کیږي: | ver- |
| | ① د یو بې ګټې او بې ځایه کار مانا. مثال: | |
| vertelefonieren | بې ګټې ټېلفون کول، بې ځایه په ټېلفون پیسې لګول | |
| verschlucken | په ښنلو یا خوړلو کې اوبه یا ډوډۍ وچې مرۍ یا سږي ته ورتلل | |
| | ② تل لپاره سهوآ یا په کوم بل علت یو څه غلطول. مثال: | |
| sich verschreiben | په لیکلو کې سهوآ یو شی غلط لیکل | |
| sich verlaufen | له یو چا نه په تګ کې لار غلطېدل، په غلطه لار تلل | |
| sich verwählen | د یو چا د ټېلفون شمېرې په ډایلولو کې سهوآ یوه غلطه نمره ډایلول | |
| sich versprechen | په خبرو کې خوله غلطېدل، سهوآ یو غلط لغت په خوله راتلل | |
| | ③ د یو کار د بشپړتیا په مانا. مثال: | |
| verblühen | بالکل مړاوې کېدل، تر وروستۍ برخې پورې مړاوې کېدل | |
| versinken | بالکل ډوبېدل (لکه یوه بېړۍ چې په بحر کې بالکل ډوبه شي) | |
| | دا مختاړی تل د یو شي د خلاف کار د ښودلو په مانا کارول کیږي. مثال: | wider- |
| widersprechen | د یو چا د خبرو په خلاف خبرې کول، د یو چا خبرې ردول | |
| widerstehen | د یو شي په وړاندې مقاومت کول | |
| | دا مختاړی زیاتره وخت د یو شي د درې وړې کولو په مانا کارول کیږي. مثال: | zer- |
| zertrümmern | درې وړې کول، ماتول او جغدې جغدې کول | |
| zerreißen | شکول، څیرې څیرې کول، شکېدل، څیرې څیرې کېدل | |
| zerstückeln | دانه دانه کول، ټوټه ټوټه کول | |

اوس به هر یو فعل په مختلفو ماناګانو وګورو:

## ۱- ورکول کېدل ۲- لاس ته راتلل ۳- په يو چا يو څه ښه لګېدل bekommen

د (bekommen) مانا ګاني هغه دي چې پورته ليکل شوېدي. اوس به مثالونه وګورو:

| | |
|---|---|
| 1. Du bekommst keine Erlaubnis. | تا ته اجازه نه درکول کيږي |
| 2. Na, den bekommen wir schon! | دی به مو لاس ته راشي |
| 3. Das ist mir nicht bekommen. | دا په ما ښه ونه لګېدو |

خو که چېرته له (bekommen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, zu) يوځای شي، نو بيا له دې لغت نه بالکل نوی لغت جوړيږي چې مانا يې هم بالکل بل شان وي چې په لاندې برخه کې به يې ووينو.

## ab + bekommen = abbekommen

د (abbekommen) مانا ګاني دا دي: ۱- د يو لوی شي نه يوه برخه لاس ته راوړل ۲- يو چا ته يو څه رسېدل، په برخه کېدل ۳- تاواني کېدل، ژوبلېدل ۴- له يو شي نه يوڅه ليرې کوی شول، هيسته کوی شول

| | |
|---|---|
| 1. Das Kind hat vom Kuchen kein Stück abbekommen.<br>ماشوم ته يوه ټوټه کېك هم ونه رسېدو | |
| 2. Bei diesem Wetter werden wir wohl etwas Regen abbekommen.<br>په داسي هوا کې به په مونږ هم يو څه باران وشي | |
| 3. Der Wagen hat nichts abbekommen. | دا موټر هيڅ تاواني شوی ندی |
| 4. Ich bekomme das Papier nicht ab, es klebt so fest an der Tür.<br>زه دا کاغذ له دروازې نه نشم هيسته کولی، هغه پرې ډېر کلك نښتی دی | |

## an + bekommen = anbekommen

د (anbekommen) مانا ګاني دا دي: ۱- اغوستلی شول ۲- چالانولی شول، لګولی شول

| | |
|---|---|
| 1. Ich habe die Schuhe nicht anbekommen. | ما دا بوټان په پښو نکړی شول |
| 2. Er bekommt das Auto nicht an. | هغه دا موټر نشي چالانولی |

## auf + bekommen = aufbekommen

د (aufbekommen) مانا ګاني دا دي: ۱- يو شی په سختی پرانيستی شول ۲- په سختی په سر ايښودلی شول ۳- يو چا ته يوه وظيفه ورسپارل

| | |
|---|---|
| 1. Schließlich bekam er die Tür doch auf. | هغه دراوزه آخر په سختی پرانيستلی شوه |
| 2. Er hat die Mütze nur mit Mühe aufbekommen. | هغه په سختی خولی په سر کړی شوه |
| 3. Wir haben für morgen 10 Rechenaufgaben aufbekommen.<br>مونږ ته د سبا لپاره د حساب لس سواله راکړل شول | |

## aus + bekommen = ausbekommen

د (ausbekommen) مانا ګاني دا دي: ۱- يو شی په سختی له ځانه وېستلی شول ۲- تر پايه پوري خوړلی يا ښبنلی شول، په خوړلو يا ښبنلو يو ګيلاس يا يو قاب يا بل لوښی تشولی شول

| | |
|---|---|
| 1. Das Kind hat seine Schuhe nicht ausbekommen. | ماشوم خپل بوټان ونه وېستل شول |
| 2. Er hat sein Glas nicht ausbekommen. | هغه خپل ګیلاس تش نکړی شو |

**zu + bekommen = zubekommen**

د (zubekommen) مانا ګانې دا دي: ۱ـ یو شی تړلی شول ۲ـ یو بل شی په اضافه ډول لاس ته راوړل

| | |
|---|---|
| 1. Er bekam die Tür nicht zu. | هغه دروازه نشوه پورې کولی |
| 2. Ich habe noch ein paar Kleinigkeiten zubekommen. | ما ته یو څو واړه شیان اضافه راکړل شول |

**Übungen:**

1. Das Fahrrad hat bei dem Sturz nicht viel …. bekommen.
دا بایسکل په ټکر کې ډېر تاواني شوی ندی
2. Er ………. die Tür nicht zu. هغه دروازه نشوه پورې کولی
3. Ich habe noch ein paar Kleinigkeiten …..
ما ته یو څو نور واړه شیان اضافه راکړل شول
4. Das schwere Essen ist mir nicht ………. دا ثقیله ډوډی په ما ښه ونه لګېدله
5. Er hat dieses Buch versehentlich in die Hände ………. .
دا کتاب سهواً د هغه لاس ته ورغی
6. Ich ………. den Kaugummi nicht von den Schuhen …...
زه دا ژاوله له بوټانو نه نشم هیسته کولی
7. Das Kind hat zum Geburtstag ein Fahrrad ………. .
دې ماشوم ته د کلیزې لپاره یو بایسکل ورکړل شو
8. Der Reis ist mir nicht gut ………. . دا وریجې په ما ښې ونه لګېدې
9. Ich habe gar kein Stück vom Kuchen ….
ماته د کېك یوه برخه هم رانکړی شوه
10. Das Buch ist nicht mehr zu ………. . دا کتاب نور لاس ته نه راوړل کیږي

**Lösungen:**
1. abbekommen 2. bekam 3. zubekommen 4. bekommen 5. bekommen
6. bekomme …. ab 7. bekommen 8. bekommen 9. abbekommen 10. bekommen

**brechen ماتېدل ، ماتول**

په لغوي مانا (brechen) ته په پښتو کې (ماتول، ماتېدل) وايي. مثال:

| | |
|---|---|
| Er hat einen Zweig vom Baum gebrochen. | هغه د ونې یوه څانګه ماته کړه |

خو کله چې له (brechen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, aus, auf, ein, zer) یوځای شي، نو بیا له دې لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چې مانا یې هم بالکل بل شان وي چې په لاندې برخه کې به یې ووینو.

| ab + brechen = abbrechen |
|---|

د (abbrechen) مانا ګاني دا دي: ١ ـ غوڅول، قطع کول، ماتول، دوه ټوټې کېدل ٢ ـ نړول

| | |
|---|---|
| 1. Die Musik brach plötzlich ab. | موسيقي يوناڅاپه قطع شوه |
| 2. Das alte Haus wurde abgebrochen. | دا زوړ کور ونړول شو |

| an + brechen = anbrechen |
|---|

د (anbrechen) ماناګاني دا دي: ١ـ پيل کېدل، شروع کېدل ٢ـ د يو شي يوه برخه ماتېدل.

| | |
|---|---|
| 1. Der Tag brach an. | ورځ پيل شوه |
| 2. Ich habe mir einen Wirbel angebrochen. | زما د شمزۍ (د ملا تير) يو هډوکی مات شويدی |

| auf + brechen = aufbrechen |
|---|

د (aufbrechen) ماناګاني دي: ١ـ يو شی په ماتولو پرانيستل ٢ـ په حرکت کولو پيل کول، حرکت کول

| | |
|---|---|
| 1. Brich doch das Schloss auf! | ته دا کلپ په ماتلو راخلاص کړه |
| 2. Morgen früh brechen wir auf. | سبا سهار وختي مونږ حرکت کوو |

| aus + brechen = ausbrechen |
|---|

د (ausbrechen) ماناګاني دا دي: ١ـ له يوه ځايه تښتېدل ٢ـ له يوه ځايه په ماتېدو راوتل ٣ـ مينځ ته راتلل، خپرېدل، منتشرېدل، زياتېدل ۴ـ په يو احساساتي حالت راتلل

| | |
|---|---|
| 1. Drei Gefangene sind aus dem Gefängnis ausgebrochen. درې تنه بنديان له زندانه وتښتېدل | |
| 2. Dem Kamm sind einige Zähne ausgebrochen. | د ږمنځ يو څوغاښونه مات شوي دي |
| 3. In der Stadt ist eine ansteckende Krankheit ausgebrochen. په دې ښار کې يوه تېرېدونکي ناروغي خپره شوې ده | |
| 4. Das Kind brach in ein heftiges Weinen aus. | ماشوم ډېر په ژړا شو |

| ein + brechen = einbrechen |
|---|

د (einbrechen) ماناګاني دا دي: ١ـ د غلا لپاره په پټه يو ځای ته ورننوتل، غلا کول، داړه کول ٢ـ غورځېدل، ولېدل ٣ـ په يو ځای کې يو خاص وخت رارسېدل

| | |
|---|---|
| 1. In unser Haus wurde letzte Nacht eingebrochen. تېره شپه زمونږ کور ته غله راننوتي وو | |
| 2. Die Decke ist eingebrochen. | بام وغورځېد |
| 3. Wenn die Dunkelheit einbricht, bist du aber zuhause. کله چې تياره شي، نو ته به په کور کې يې | |

## ver + brechen = verbrechen

د (verbrechen) ماناګاني دا دي: ۱- ورانکاري کول، ورانول ۲- بې خونده او بې ګټې کار کول

| | |
|---|---|
| 1. Was hat der Junge denn nun schon wieder verbrochen? | دې هلك بيا څه ورانکاري کړېده؟ |
| 2. Wer hat denn dieses Gedicht verbrochen? | دا خراب شعر چا ليکلی دی؟ |

## zer + brechen = zerbrechen

د (zerbrechen) ماناګاني دا دي: ۱- ټوټه ټوټه کول، ماتول ۲- ماتېدل ۳- روحاً ډېر ځوروېدل، کړېدل

| | |
|---|---|
| 1. Voller Wut zerbrach er den Stock. | د ډېر قهر له لاسه هغه لرګی مات کړو |
| 2. Die Tasse fiel auf die Erde und zerbrach. | پياله په ځمکه ولوېدله او ماته شوه |
| 3. Er ist an dem Tod seines Kindes zerbrochen. | د خپل ماشوم په مړيني هغه ډېر وکړېدو |

## drücken پـه يو شي فشار راوړل ځبېښل،

په لغوي مانا (drücken) (د يو شي ځبېښل، په يو شي فشار راوړل) ته وايي. مثال:

| | |
|---|---|
| Du darfst nicht auf die Wunde drücken. | ته بايد زخم و نه ځبېښې |

خو کله چې له (drücken) سره مختلف مختاړي، لکه (ab,an, aus, be, ein, hin, los, unter,zer) يوځای شي، نو بيا له دي لغت نه بالکل يو نوی لغت جوړ شي چا مانا يې هم بالکل بل شان وي چې په لاندې برخه کې به يې ووينو.

## ab + drücken = abdrücken

د (abdrücken) ماناګاني دا دي: ۱- د يوې وسلې ماشه راښکل ۲- يـو شی دومره ډېر ځبېښل چې جريان يې قطع شي ۳- يو چا ته پيسې ورکول

| | |
|---|---|
| 1. Er drückte das Gewehr ab. | هغه د ټوپك ماشه راښكله |
| 2. Ich habe mir die Ader abgedrückt. | ما خپل رګ ټينګ وځبېښو چې د وينې جريان قطع شو |
| 3. Er hat noch mal 100 Mäuse abgedrückt. | هغه يـو ځـل بيا سل روپۍ ورکړې |

## an + drücken = andrücken

د (andrücken) ماناګاني دا دي: ۱- يو شی په يو بل شي ځبېښل او ورسره يې ټينګول ۲- د يو شي په لړ څه ځبېښلو يو شی چالانول ۳- په مينه ځان د يو بل چا ځان ته ډېر نږدې کول او ځبېښل يې

| | |
|---|---|
| 1. Der Arzt drückte den Verbandstoff an die Wunde an. | ډاکټر پانسمان په زخم باندې ټينګ وځبېښو |
| 2. Kannst du bitte die Lampe andrücken? | ته کوی شي چې څراغ وځبېښې چې چالان شي؟ |
| 3. Das Kind drückte sich im Dunkeln fest an seine Mutter an. | ماشوم په تياره کې ځان د مور په ځان ټينګ وځبېښو |

## auf + drücken = aufdrücken

د (aufdrücken) ماناګاني دا دي:۱- یو شی ځبېښل او په ځبېښلو يې پرانیستل ۲- یو شی په ځبېښلو د یو چا په سر کول ۳- په یو شي باندې یو بل شی ځبېښل چې رنګ واخلي (لکه د یوې ټاپې ځبېښل) ۴- په یو چا یو څه تحمیلول، په مجبوریت ورسپارل

| | |
|---|---|
| 1. Er hat die Tür aufgedrückt. | هغه دروازه وځبېښله او په ځبېښلو يې پرانیستله |
| 2. Ich habe ihm den Hut aufgedrückt. | ما د هغه په سر خولۍ وځبېښله او په ځبېښلو مې ورته په سر کړله |
| 3. Der Beamte hat den Stempel auf den Brief aufgedrückt. | مأمور په لیك باندې ټاپه ولګوله |
| 4. Der Direktor drückt uns täglich immer mehr Arbeit auf. | مدیر هره ورځ په مونږ باندې اضافه کار تحمیلوي |

## aus + drücken = ausdrücken

د (ausdrücken) ماناګاني دا دي:۱- بیانول، ویل ۲- یو شی ځبېښل او په ځبېښلو یو څه ورنه راوېستل ۳- په ځبېښلو مړ کول

| | |
|---|---|
| 1. Kannst du den Satz klar ausdrücken? | ته دا جمله په څرګند ډول بیانولی شې؟ |
| 2. Er hat den Saft aus der Orange ausgedrückt. | هغه له مالټې نه شربت په ځبېښلو ووېستو |
| 3. Er drückte die Zigarette auf seinem Teller aus. | هغه پخپل قاب باندې سګرټ په ځبېښلو مړ کړو |

## be + drücken = bedrücken

د (bedrücken) مانا دا ده: کړول، ځورول، روحاً د فشار لاندې راوستل

| |
|---|
| Die Sorgen und die Angst um die Zukunft bedrücken ihn sehr. |
| د راتلونکي په برخه کې ډار او ندېښنه هغه ډېر کړوي |

## ein + drücken = eindrücken

د (eindrücken) ماناګاني دا دي:۱- یو شی دننه خوا ته ځبېښل او ماتول يې ۲- یو شی په ځبېښلو کندوکپر کول ۳- په ځبېښلو په یو شي کې یو چاپ پرېښودل

| | |
|---|---|
| 1. Die Einbrecher haben das Fenster eingedrückt. | داړه مارانو کړکۍ دننه خواته ټېله کړه او په دې ډول يې ماته کړه |
| 2. Die Autotür war eingedrückt. | د موټر دروازه چیت او ځچپته شوې وه |
| 3. Die Autoreifen hatten eine Spur in den Boden eingedrückt. | د موټرونو ټېرونو په ځمکه کې چاپونه پرې ایښي وو |

## hin + drücken = hindrücken

د (hindrücken) مانا دا ده: په یو خاص ځای کې یو شی ځبېښل

| |
|---|
| Die Stelle ist angekreuzt, Sie brauchen nur Ihren Stempel hinzudrücken. |
| هغه ځای نښه شویدی، تاسو کوی شئ چې خپله ټاپه پرې وځبېښئ |

## los + drücken = losdrücken

د (losdrücken) مانا دا ده: د يوې وسلې ماشه راښکل او ډز کول

| |
|---|
| Wenn er mich bedroht, dann drücke ich los.<br>که چېرته هغه ما ته ګواښ وکړي، نو زه ماشه راکاږم |

## unter + drücken = unterdrücken

د (unterdrücken) مانا ګانې دا دي: ۱- په يو چا ظلم کول ۲- ځان کنټرولول او د يو بې اختياره شي مخه نيول ۳- په زور د يو شي مخه نيول، د پښو لاندې کول

| | |
|---|---|
| 1. Der König unterdrückt sein Volk. | باچاه پخپل ولس ظلم کوي |
| 2. Mein Vater konnte seinen Zorn nur mit Mühe unterdrücken.<br>زما پلار په سختی د خپل قهر مخه ونيولی شوه | |
| 3. Der Aufstand wurde gewaltsam von der Polizei unterdrückt.<br>پاڅون په زورزياتي د پوليسو له خوا تر پښو لاندې کړی شو | |

## ver + drücken = verdrücken

د (verdrücken) مانا ګانې دا دي: ۱- ځان له يو شي نه تېرول، ځان په پټه له يوه ځايه وېستل ۲- خوړل (اصطلاحي ژبه)

| |
|---|
| 1. Er verdrückte sich aus dem Haus, als die Gäste ankamen.<br>کله چې مېلمانه راغلل، هغه ځان په پټه له کوره ووېست |
| 2. In kurzer Zeit hatte er drei Scheiben Brot verdrückt.<br>په لنډ وخت کې هغه څلور مړی ډوډی وخوړلې |

## zer + drücken = zerdrücken

د (zerdrücken) مانا ګانې دا دي: ۱- يو شی ځبېښل او په ځبېښلو يې چخپېټول، چيتول ۲- غونجول، غونج غونج کول

| | |
|---|---|
| 1. Er zerdrückte die Mücke, als sie ihn nicht mehr in Ruhe ließ.<br>کله چې غوماشي هغه په ارامه پرې نښود، هغه ماشي په ځبېښلو مړ کړو | |
| 2. Das Kind hat die Hose zerdrückt. | ماشوم پطلون غونج غونج کړو |

## zu + drücken = zudrücken

د (zudrücken) مانا ګانې دا دي: ۱ - يو شی ځبېښل او په ځبېښلو يې تړل، بندول ۲- يو څه داسې ځبېښل چې له فعاليت نه ولوېږي ۳- ډېر کلک ځبېښل ۴- له يو شي نه سترګې پټول

| | |
|---|---|
| 1. Er drückte die Tür leise zu. | هغه دروازه په کراره وځبېښله او په ځبېښلو يې پورې کړه |
| 2. Er drückte dem wehrlosen Menschen die Kehle zu.<br>هغه د بې دفاع انسان غاړه وځبېښله (هغه يې زندی کړو) | |

| |
|---|
| 3. Er drückt ganz schön fest zu, wenn er jemandem die Hand gibt.<br>کله چې هغه یو چا ته لاس ورکوي، نو د سړي لاس ډېر کلك ځبېښي |
| 4. In diesem Fall muss ich meine beiden Augen zudrücken.<br>په دې حالت کې زه باید خپلې دواړه سترګې پټې کړم (یعني له غلطۍ نه تېر شم او مراعات وکړم) |

**Übungen:**

1. Die Reifen hatten eine Spur in den Boden …. Gedrückt.
ټېرونو په مځکه کې چاپ پرې ایښی و
2. Der König …. drückt sein Volk. باچاه په خپل ولس ظلم کوي
3. Die vielen Sorgen …. drücken mich. دا ډېر غمونه ما له فشار لاندې راولي
4. Wenn du auf den Knopf ………. , geht die Tür auf.
کله چې ته تنۍ وځبېښې، نو دروازه پرانیستل کیږي
5. Er drückte die Tür…. . هغه دروازه په ځبېښلو پورې کړه
6. Für deine drei Kinder musst du ganz schön was …. drücken, oder?
ته باید خپلو دري ماشومانو لپاره ډېره پیسې ولګوې او که څنګه؟
7. Der Verbrecher drückte sofort …. . جنایتکار سمدلاسه ماشه راښکله او ډز یې وکړو
8. Er drückte mir die Luft…. . هغه زما ساه بنده کړه
9. Du siehst so traurig aus, was ………. dich denn?
ته ډېر غمجن ښکارې، تا څه شی ځوروي؟
10. Für die Konzertkarten müssen wir 100 Euro …. drücken.
د کنسرټ د ټکسونو لپاره مونږ باید سل یورو ورکړو
11. Er hat sich feige …. drückt. هغه په ډارن ډول ځان راووېست
12. eine Briefmarke …. drücken د پوستي یو ټکس په یو شي لګول
13. Er drückte den Saft aus der Apfelsine …. . هغه د سنترې نه شربت په ځبېښلو وویست
14. Das Licht …. drücken برق مړکول، برېښنا مړه کول
15. Die Stelle ist angekreuzt, Sie brauchen nur Ihren Stempel …. zudrücken
هغه ځای نښه شوی دی، تاسو تش خپله ټاپه هلته ولګوئ
16. Wenn er mich angreift, dann drücke ich …. .
که چېرته هغه په ما یرغل وکړي، نو زه سمدلاسه ماشه راکاږم او ډز کوم
17. Sie hat eine Banane mit einer Gabel …. drückt.
هغه یوه کېله په یوې پنجې چیته او چخپیته کړه

**Lösungen:**
1. eingedrückt 2. unterdrückt 3. bedrücken 4. drückst 5. zu 6. ab 7. ab 8. ab
9. bedrückt 10. ab 11. ver 12. an 13. aus 14. aus 15. an 16. los 17. zer

## enden                    پای ته رسېدل ، تمامېدل

په لغوي مانا (enden) (پای ته رسېدل، تمامېدل) ته وايي. مثال:

Das Konzert endete um 21 Uhr.                    کنسرت د ماښام په ۹ بجو پای ته ورسېد

خو کله چې له (enden) سره مختلف مختاړي، لکه (be, ver, voll) يوځای شي، نو بيا له دې لغت نه بالکل يو نوی لغت جوړ شي چې مانا يې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووينو.

### be + enden = beenden

د (beenden) مانا دا ده: يو شی پای ته رسول، تماول

Die Polizei beendete die Demonstration mit Gewalt.
پولیسو مظاهره په زورزياتي پای ته ورسوله

### ver + enden = verenden

د (verenden) مانا دا ده: د حيواناتو مړ کېدل، مردارېدل

Viele Schafe, Kühe und Pferde verendeten durch die Seuche.
ډېر پسونه، غواګاني او آسونه د مرګو (وبا) په وجه مردارشول

### voll + enden = vollenden

د (vollenden) مانا دا ده: بشپړول، تکميلول

Der Buchautor benötigte zwanzig Jahre, um sein Werk zu vollenden.
د کتاب ليکوال شل کاله په کار وو چې خپل اثر بشپړ کړي

**Übungen**:

1. Rund 100 Kühe sind bei einem Stallbrand .......... .
څه نا څه سل غواګاني د غوجل په اور اخيستلو باندې مرداري شوېدي
2. Der Autor hat seinen Roman erst zwei Jahre später .......... .
ليکوال دوه کاله وروسته خپل ناول بشپړ کړو
3. Nach einer Stunde .......... ich das Gespräch.
يو ساعت وروسته ما خبرې اترې پای ته ورسولې
4. Der Weg .......... vor einer riesigen Grube. لار د يوې لويې کندې تر مخه پای ته رسيږي
5. An der Seuche .......... damals viele Tiere.
په مرګو (طاعون) باندې په هغه وخت کې ډېر څاروي مردار شول
6. Der Vortrag .......... um 10 Uhr.                    کنفرانس په لس بجو پای ته رسيږي
7. Er schlug vor, die Versammlung zu .......... .
هغه وړانديز وکړو چې غونډه دې پای ته ورسول شي
8. Der Maler benötigte zwanzig Jahre um sein Werk zu .......... .
د دې لپاره چې خپل اثر پای ته ورسوي، د رسام شل کاله پرې تېر شول

**Lösungen:**
1. verendet 2. vollendet 3. beendete 4. endet 5. verendeten 6. endet 7. beenden 8. vollenden

## essen خوړل

په لغوي مانا (essen) (خوړل) ته وايي. مثال:

| Er isst gar kein Fleisch. | هغه هېڅ غوښه نه خوري |
|---|---|

خو کله چې له (essen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, aus) یوځای شي، نو بیا له دې لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چې مانا یې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووینو.

### ab + essen = abessen

د (abessen) ماناګانې دا دي: ۱ـ د یو شي له سر نه د خوړلو شیان یې خوړل ۲ـ د خوراك لپاره ټولې ټاکل شوې پیسې لګول، مصرفول

| | |
|---|---|
| 1. Das Kind hat die Rosinen vom Kuchen abgegessen. ماشوم د کېك له سر نه ټول مميز وخوړل | |
| 2. Hier ist alles so billig. Die hundert Euro kann man hier gar nicht abessen. دلته هرڅه ډېر ارزانه دي. سل یورو دلته سړي په خوړلو نشي خلاصولی | |

### an + essen = anessen

د (anessen) مانا دا ده: په خوړلو غټېدل، په خوړلو راپړسېدل

| Ich habe mir einen Bauch angegessen. | په ډېر خوړلو باندې زما ګېډه غټه شوه |
|---|---|

### auf + essen = aufessen

د (aufessen) مانا دا ده: یو شی تر پایه پورې خوړل او په خوړلو خلاصول یې

| Er hat das ganze Brot aufgegessen. | هغه ټوله ډوډۍ وخوړله |
|---|---|

### aus + essen = ausessen

د (ausessen) مانا دا ده: یو لوښی (لکه یو قاب) په خوړلو تشول

| Du sollst den Teller ausessen. | څه چې په قاب کې دي، هغه ټول ته وخوره، قاب تش کړه |
|---|---|

**Übungen:**
1. Das Kind isst nie sein Brot…. . ماشوم خپله ډوډۍ هېڅکله نه خلاصوي
2. Du sollst den Teller …. essen. ته دې خپل قاب تش کړه

3. Du hast dir einen Bauch …. gegessen. په ډېر خوراك باندي ستا ګېډه غټه شوه
4. Wer hat die Streusel vom Kuchen …. gegessen?
د كېك له سره خواږه غونډاري چا وخوړل؟
5. Ich habe eine Banane ……….. . ما يوه كېله وخوړله
6. Die hundert Euro kann man hier gar nicht …. essen.
هرڅومره خواږه چي سړی وخوري نـو دا سل يورو نه خلاصيږي

**Lösungen:**
1. auf 2. aus 3. an 4. ab 5. gegessen 6. ab

| finden موندل، ميندل |
|---|

په لغوي مانا (finden) (موندل، ميندل) ته وايي. مثال:

Die Polizei hat den Verbrecher noch nicht gefunden.
پوليسو لا تر اوسه جنايتكار ندی موندلی

خو كله چي له (finden) سره مختلف مختاړي، لكه (ab, auf, be, ein) يوځای شي، نو بيا له دې لغت نه بالكل يو نوی لغت جوړ شي چي مانا يې هم بالكل بل شان وي. دا به په لاندي برخه كې ووينو.

| ab + finden = abfinden |
|---|

د (abfinden) ماناګاني دا دي : ۱ـ د يو تاوان پهٔ مقابل كې د جبران پهٔ حيث پيسي وركول، بديل وركول ۲ـ يو تېر شوی سخت حالت په ځان منل، ځان ورسره عادي كول

Für diese Verluste muss sie noch abgefunden werden.
د دې تاوانونو د جبران لپاره هغوی ته بايد بديل وركړل شي

Er hat sich nie mit dem Tod seiner Tochter abgefunden.
هغه د خپلي لور د مړيني سره هيڅ نشي عادي كېدلی

| auf + finden = auffinden |
|---|

د (auffinden) مانا دا ده: له لټولو نه وروسته يو شی تصادفاً پيدا كول، ميندل

Die Toten wurden erst nach Jahren aufgefunden.
مړي له څو كلونو نه وروستـه تصادفاً وميندل شول

| be + finden = befinden |
|---|

د (befinden) ماناګاني دا دي:۱ـ پـو چېرته اوسېدل، په يو حالت كي اوسېدل ۲ـ اټكل كول، قضاوت كول

1. Er befindet sich in seinem Büro. هغه پخپل دفتر كي دی
2. Über das Strafmaß befinden die Richter.
د سزا د اندازې په برخه كې قاضيان قضاوت كوي

ein + finden = einfinden

د (einfinden) مانا دا ده: پهٔ یو معین وخت کې په یـو خاص ځای کې اوسېدل، هلته په یو ټاکل شوي وخت کې حاضر اوسېدل

Bitte finden Sie sich 15 Minuten vor Veranstaltungsbeginn hier wieder ein.
تاسو مهرباني وکړئ او له پروګرام نه پنځلس دقیقې مخکې دلته حاضر واوسئ

er + finden = erfinden

د (erfinden) مانا دا ده: اختراع کول

Wer hat eigentlich das Telefon erfunden? ټېلفون اصلاً چا اختراع کړیدی؟

**Übungen:**

1. Das Auto ………. sich in einem schlechten Zustand. دا موټر په یو خراب حالت کې دی
2. Bitte finden Sie sich 15 Minuten vor Spielbeginn hier wieder …. .
تاسو مهرباني وکړئ او د لوبې د پیل نه ۱۵ د قیقې دمخه دلته حاضر واوسئ
3. Die verlorene Geldbörse war nirgends …. zufinden
د پیسو ورکه شوې بټوه هیڅ چېرته پیدا کېدی نشوله
4. Wer hat eigentlich das Telefon …………? ټېلفون اصلاً چا اختراع کړی دی؟
5. Ich habe mich mit meinem Schicksal ………. . ما خپل تقدیر په ځان منلی دی
6. Ich habe den Schlüssel ………. ! کیلي ما پیدا کړه
7. Der Manager wurde mit einem Millionenbetrag ………. .
د منجر لپاره ملیونونه د جبران په توګه ورکړل شول

**Lösungen**:
1. befindet 2. ein 3. auf 4. erfunden 5. abgefunden 6. gefunden 7. abgefunden

geben ورکول

په لغوي مانا (geben) (ورکول) ته وایي. مثال:

Der Vater gibt dem Kind Geld für ein Buch. پلار ماشوم ته د کتاب لپاره پیسې ورکوي

خو کله چې له (geben) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, be, er, über, unter, ver) یوځای شي، نو بیا له دې لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چې مانا یې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووینو.

ab + geben = abgeben

د (abgeben) مانا دا ده: یو چا ته یو شي ورسپارل، تسلیمول

Der Vater gibt dem Kind Geld für ein Buch. پلار ماشوم ته د کتاب دپاره پیسې ورکوي

## an + geben = angeben

د (angeben) مانا ګاني دا دي: ۱ـ لاپې وهل، باتې وهل ۲ـ ذکر کول، ويل، يادول

| | |
|---|---|
| 1. Er gibt ganz schön an. | هغه ډېرې لاپې وهي |
| 2. War in dem Brief auch eine Telefonnummer angegeben? | په دې ليك كې يوه ټيلفون شمېره هم ذكره شوې وه؟ |

## auf + geben = aufgeben

د (aufgeben) مانا ګاني دا دي: ۱ـ د نااميدۍ له لاسه يو شي ته ادامه نه وركول، پرېښودل يې، تابع كېدل
۲ـ يو شی يوځای ته ورسپارل

| | |
|---|---|
| 1. Wegen ihrer Krankheit musste sie ihren Beruf aufgeben. | د خپلې ناروغۍ په وجه هغې خپل مسلك پرېښود |
| 2. Bitte geben Sie diesen Brief noch bei der Post auf. | تاسو مهرباني وكړئ او دا ليك په پوسته خونه كې واچوئ |

## be + geben = begeben

د (begeben) مانا ګاني دا دي: ۱ـ يو چېرته تلل ۲ـ يو څه پېښېدل

| | |
|---|---|
| 1. Er begab sich zu Bett. | هـغـه كټ ته ولاړ (ويده شو) |
| 2. Etwas besonderes hat sich dort nicht begeben. | هلته كوم خاص څه پېښ شوي ندي |

## er + geben = ergeben

د (ergeben) مانا ګاني دا دي:
۱ـ يو شی له بل شي نه لاس ته راوړل، له يو شي نه مينځ ته راتلل ۲ـ تسليمېدل، طابع كېدل

| | |
|---|---|
| 1. Die Untersuchung ergab keinen Beweis seiner Schuld. | د پلټنې په نتيجه كې د هغه د ګناه ثبوت تر لاسه نه شو |
| 2. Der Verbrecher ergab sich erst nach heftigem Widerstand. | جنايتكار له سخت مقاومت نه وروسته تسليم شو |

## über + geben = übergeben

د (übergeben) مانا ګاني دا دي: ۱ـ كانګه كول، خواګرځول ، ولتی كول ۲ـ يو چا ته ورسپارل، تسليمول

| | |
|---|---|
| 1. Die Passagiere übergaben sich im Flugzeug. | مسافرينو په الوتكه كې كانګه وكړه |
| 2. Er übergab den Schlüssel seinem Nachbarn. | هغه كيلي خپل ګاونډي ته وسپارله |

## unter + geben = untergeben *(Adjektiv)*

د (untergeben) لغت چې يو صفت دی، مانا دا ده: مطيع، فرمانبردار

| | |
|---|---|
| Sklaven sind ihren Herren untergeben. | غلامان خپلو بادارانو ته مطيع وي |

| ver + geben = vergeben |
|---|

د (vergeben) مانا ګانې دا دي: ١ـ یو شی له لاسه ورکول ٢ـ ببنل، عفوه کول ٣ـ یو چا ته یو څه ورکول، اهدا کول ۴ ـ تقدیمول، ورکول، سپارل، تقدیمول

| | |
|---|---|
| 1. Der Spieler vergab die Chance zum Sieg. | لوبغاړي د بري چانس له لاسه ورکړ |
| 2. Sie hat ihm die Schuld vergeben. | هغې ورته ګناه یې ببنلې ده |
| 3. Der Friedensnobelpreis wurde an Malala Yosofzai vergeben. | د نوبل د سولې جایزه ملالې یوسفزۍ ته ورکړل شوه |
| 4. Die Universität hat drei Stipendien zu vergeben. | په پوهنتون کې درې بورسونه ورکول کیږي |

**Übungen:**

1.Wer sich in Gefahr .......... , kommt darin um.
څوک چې ځان په خطر کې اچوي، پکې مړ کیږي

2. Er gab als Grund für seine Verspätung ...., dass er den Bus verpasst habe.
د خپلې ناوخته رسېدنې لپاره هغه دا دلیل وړاندې کړو چې له هغه نه سروېس تللی و

3. Sie gibt gern ein bisschen .... لاپې وهل د هغې لږ څه خوښیږي

4.Trotz vieler Niederlagen .......... er sich nicht. له ډېرو ناکامیو سره سره هغه تسلیم نشو

5. Er hat mir den Fehler .......... . هغه دا غلطي ما ته وبښله

6. Er gab das Spiel .... . هغه لوبه پرېښودله

7. Die Bücher müssen binnen acht Tagen .......... werden.
کتابونه باید په اتو ورځو کې تسلیم شي

8. Er .......... sich an die Arbeit. هغه کار ته ولاړ

9. Du hast die letzte Chance.......... . تا وروستی چانس له لاسه ورکړو

10. Wer hat dir das .......... ? دا چا تا ته درکړو؟

11. Ich .......... dir das Auto für zwei Tage. زه درته موټر د دوه ورځو لپاره درکوم

12. Ich als .......... Offizier habe Ihrem Befehl nachzukommen.
زه د یو مطیع افسر په توګه ستاسو امر اجرا کوونکی یم

13. Eins und eins ........... zwei. یو او یو دوه کیږي، د یو او یو نه دوه جوړیږي

14. Der Einbrecher wurde der Polizei.......... . غل پولیسو ته وسپارل شو

15. Er hat sich im Bus mehrmals .......... . هغه په سروېس کې څو واره کانګه وکړه

**Lösungen:**
1. begibt 2. an 3. an 4. ergab 5. vergeben 6. auf 7. abgegeben 8. begab
9. vergeben 10. gegeben 11. Gebe 12. untergebener 13. ergibt 14. übergeben
15. übergeben

## gehen تلل

په لغوي مانا (gehen (تلل) ته وايي. مثال:

| | |
|---|---|
| Zur Universität geht er immer zu Fuß. | پوهنتون ته هغه تل په پښو ځي |

خو کله چې له (gehen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, aus, be, er, über, unter, ver) يوځای شي، نو بيا له دي لغت نه بالکل يو نوی لغت جوړ شي چې مانا يې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووينو.

### ab + gehen = abgehen

د (abgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ له يوه ځايه ځان ليرې کول، له يوه ځايه تلل ۲ـ ليږدول کېدل، استول کېدل ۳ـ له يوه ځايه هيسته کېدل، له يوشي نه له مينځه تلل

| | |
|---|---|
| 1. Der Zug geht gleich ab. | اورګاډی ډېر ژر له دې ځايه ځي |
| 2. Das Schreiben ist gestern abgegangen. | ليك پرون استول شوېدی |
| 3. Hier ist die Farbe abgegangen. | له دې ځای نه رنګ هيسته شوېدی |

### an + gehen = angehen

د (angehen) ماناګانې دا دي:۱ـ چالانېدل، لګېدل، بلېدل ۲ـ له يو چا پورې اړه درلودل، ارتباط درلودل ۳ـ پيل کېدل، شروع کېدل ۴ـ د يوې موضوع د حل لپاره هڅه کول ۵ ـ د يو څه په وړاندې اقدام کول ۶ـ په يو چا بريد کول

| | |
|---|---|
| 1. Seit heute geht der Fernseher nicht mehr an. | له نن راهيسې تلويزيون نه لګيږي |
| 2. Das geht Sie ja wohl überhaupt nichts an. | دا تاسو پورې هېڅ اړه نرلي |
| 3. Die Schule geht morgen wieder los. | سبا ښوونځي بېرته پيل کيږي |
| 4. Lass uns das Problem gemeinsam angehen. | راځه چې دا ستونزه په ګډه حله کړو |
| 5. Willst du nicht gegen das Urteil angehen? ته نه غواړې چې د دې فيصلې په برخه کې اقدامات وکړې؟ | |
| 6. Er hat seinen Gegner von hinten angegangen. | هغه پخپل سيال باندې له شا نه بريد وکړو |

### auf + gehen = aufgehen

د (aufgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ راختل، پورته کېدل ۲ـ پرانيستل کېدل ۳ـ چاودل ۴ـ راشين کېدل

| | |
|---|---|
| 1. Die Sonne geht auf! | لمر راخيژي |
| 2. Das Fenster hat sich verklemmt und geht nicht auf. کړکۍ نښتې ده او نه پرانيستل کيږي | |
| 3. Ihre Lippen waren aufgegangen. | د هغې شونډې چاودلې وې |
| 4. Der Samen ging nicht auf. | تخم شين نه شو |

| aus + gehen = ausgehen |
|---|

د (ausgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ د یو ماشین مړکېدل، هیسته کېدل ۲ـ بهر وتل، ولېدل، هیسته کېدل ۳ـ د یو څه نتیجه اوسېدل

| | |
|---|---|
| 1. Der Motor geht nach zwei Stunden von selbst aus. | ماشین دوه ساعته وروسته پخپل سر مړ کیږي |
| 2. Dem jungen Mann gehen die Haare aus. | د ځوان سړي وېښته توییږي |
| 3. Wie ist das Spiel ausgegangen? | لوبه په کومه نتیجه پای ته ورسېدله؟ |

| be + gehen = begehen |
|---|

د (begehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ یو ناوړه کار کول، مرتکب کېدل ۲ـ لمانځل ۳ـ په یو ځای باندي ګرځېدل، تلل

| | |
|---|---|
| 1. Ich habe eine Dummheit begangen. | ما یو حماقت کړی دی |
| 2. Wie soll dein Geburtstag begangen werden? | ستا کلیزه څنګه ولمانځل شي؟ |
| 3. Im Winter ist der Weg oft nicht zu begehen. | په ژمي کې په دې لاره باندي تېرېدل ډېر وخت نشي کېدلی |

| dazwischen + gehen = dazwischengehen |
|---|

د (dazwischengehen) مانا دا ده: په یوې موضوع کې مداخله کول

| | |
|---|---|
| Wäre die Polizei nicht dazwischengegangen, hätte es bei der Schlägerei Tote gegeben. | که چېرته پولیسو مداخله نه وای کړې، نو په دې اخ و ډب کې به مړي شوي وای |

| durch + gehen = durchgehen |
|---|

د (durchgehen) مانا دا ده: ۱ـ د یو شي له مینځ نه تېرېدل ۲ـ بریالی کېدل، له یوې ستونځې نه تېرېدل، منل کېدل

| | |
|---|---|
| 1. Glaubst du, das Fahrrad geht durch die Tür durch? | ته فکر کوې چې بایسکل به د دروازې له مینځ نه تېر شي؟ |
| 2. Der Antrag wird nicht durchgehen. | دا غوښتنلیك به ونه منل شي، تېر به نشي |

| ein + gehen = eingehen |
|---|

د (eingehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ د بوټو وچېدل، د ځاروېو مردارېدل ۲ـ په معتبرو اسنادو کې یادېدل او پاتې کېدل ۳ـ د یو ټوکر یا کوم بل شي لنډېدل، وړوکی کېدل

| | |
|---|---|
| 1. Die Pflanze ist eingegangen. | دا بوټی وچ شوی دی |
| 2. Dieser Fall wird in die Geschichte eingehen. | دا خبره به په تاریخ کې درجه شي |
| 3. Das Hemd ist beim Waschen eingegangen. | دا کمیس په مینځلو کې وړوکی شویدی |

## empor + gehen = emporgehen

د (emporgehen) مانا دا ده: پورته تلل، پورته ختل

Das kleine Kind war ganz allein die Treppe emporgegangen.
دا وړوکی ماشوم په یوازې ځان په زینو پورته ختلی و

## ent + gehen = entgehen

د (entgehen) مانا دا ده: ۱ـ له یو حالت نه بچېدل ۲ـ له لاسه تلل ۳ـ یو شي ته پام نه کېدل

1. Wir konnten dieser Gefahr gerade noch einmal entgehen.
له دې خطره مونږ په وروستی شېبه کې بچ شولو
2. Diese einmalige Gelegenheit wird mir nicht entgehen.
دا بې سارې موقع به زما له لاسه ونه وځي
3. Die Bedeutung dieser Worte ist mir ganz entgangen.
د دې الفاظو اهمیت ته زما هېڅ پام نه و

## flöten + gehen = flötengehen

د (flötengehen) مانا دا ده: یو څه له لاسه تلل، بربادېدل، ورانېدل ، بې ځایه تلل، ناکامېدل

Das ganze gesparte Geld geht flöten. دا ټولې سپمول شوې پیسې له لاسه ځي

## fort + gehen = fortgehen

د (fortgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ له یو ځایه تلل، له یوه ځایه وتل او بل چېرته تلل ۲ـ همداسې نور ادامه کول، همداسې نور هم پرمختلل

1. Sie ist ohne Abschied einfach fortgegangen. هغه بې له خدای پامانیه هسې ولاړه
2. Der Urlaub könnte noch ein paar Wochen so fortgehen. رخصتې یو څو نورې اونۍ هم ادامه درلودلی شي

## heim + gehen = heimgehen

د (heimgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ کور ته تلل ۲ـ له دې دنیا نه هغې بلې دنیا ته تلل، مړ کېدل، له دې نړۍ نه سترګې پټول (ادبي ژبه)

1. Er geht um 8 Uhr heim. هغه په اته بجو کور ته ځي
2. Er ist gestern in Frieden heimgegangen.
هغه پرون په ارامه له دې نړۍ نه سترګې پټې کړې

## her + gehen = hergehen

د (hergehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ له یو چا سره نږدې ګرځېدل، د یو چا په څنګ کې تلل، د یو چا په بدرګه ګرځېدل ۲ـ یو خاص شان پروګرام اوسېدل ۳ـ ابتکار په لاس کې اخیستل او یو خاص شان اقدام کول

1. Sie gingen nebeneinander her und unterhielten sich.
هغوي د يوبل په څنګ کي روان وو او له يو بل سره يې خبرې کولې

2. Bei der Feier ging es richtig lustig her. دا محفل ښه مست و

3. Du kannst nicht einfach hergehen und den Vertrag selbst unterschreiben.
ته دا نشي کولی چي ته به ځې او قرارداد به په خپل سر لاسليکوې

## heran + gehen = herangehen

د (herangehen) ماناګاني دا دي: ۱- يو شي ته نږدې ورتلل، يو شي ته نږدې کېدل ۲- يو څه ته اقدام کول، له يو شي سره مقابله کول، يو شي پېلول

1. Wenn du dicht an das Bild herangehst, kannst du alles gut erkennen.
که ته دې عکس ته نږدې شې، نو هر څه ښه پېژندلی شې

2. Sie ging mutig an ihre schwere Aufgabe heran.
هغې په زړورتيا په دې سختې وظيفې اقدام وکړ

## heraus + gehen = herausgehen

د (herausgehen) ماناګاني دا دي: ۱- له يو شي نه راوتل ۲- له يو دننه ځای نه بهر ته راوتل

1. Der Fleck geht nicht mehr aus dem Hemd heraus. له کميس نه دا داغ نور نه وځي

2. Ich sah sie aus dem Haus herausgehen. ما هغه وليدله چي له کوره راووتله

## herum + gehen = herumgehen

د (herumgehen) ماناګاني دا دي: ۱- بې هدفه او بې مقصده دېخوا هغه خوا ګرځېدل ۲- د يو ځای يا د يو شي له شاوخوا نه تاوراتاوېدل ۳- د يو ځای له مينځه نه بلکي له شاوخوا نه يې تېرېدل ۴- هره خوا خپرېدل، منتشرېدل ۵- (وخت) تېرېدل ۶- په فکر کي ګرځېدل، فکر ورسره بوخت اوسېدل ۷- له يو نه بل او له بل نه بل ته تلل

1. Ich will ein bisschen im Garten herumgehen.
زه غواړم چي په حوېلۍ کي دېخوا هغه خوا وګرځم

2. Wir gingen um den Turm herum, um ihn von allen Seiten zu fotografieren.
مونږ د منار له شاوخوا نه تاوراتاو شولو چي له هرې خوا نه د هغه عکاسي وکړو

3. Die Wiese ist nass, gehen wir lieber außen herum.
دا چمن لوند دی، ښه به دا وي چي مونږ له شاوخوا نه يې تېر شو

4. Das Gerücht ging in der ganzen Stadt herum. دا ګنګوسه په ټول ښار کي خپره شوه

5. Die schöne Zeit ist viel zu schnell herumgegangen. دا ښه وخت ډېر ژر تېر شو

6. Was du gesagt hast, ist mir noch lange im Kopf herumgegangen.
څه چي تا وويل، تر ډېر وخته پورې هغه زما په مغزو کي ګرځېدل راګرځېدل

7. Nach dem Essen ging der Gastgeber herum und bot jedem Tee an.
له ډوډۍ نه وروسته کوربه له يو نه بل تلو او هر يو ته يې چای وړاندې کوو

## hervor + gehen = hervorgehen

د (hervorgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ د یو شي په نتیجه کې مینځ ته راتلل ۲ـ له یو شي نه یو مطلب اخیستل کېدل، یوه نتیجه لاس ته راوړل ۳ـ له یوه ځایه په یو مقام یا په یوه درجه کې راوتل

| | |
|---|---|
| 1. Aus dieser Ehe sind zwei Kinder hervorgegangen. | له دې واده نه دوه ماشومان راپیدا شول |
| 2. Aus seinem Brief geht klar hervor, dass er morgen kommt. | د هغه له لیك نه په څرګند ډول دا مطلب اخیستل کیږي چې هغه سبا راځي |
| 3. Er ging aus dem Kampf als Sieger hervor. | له دې مقابلې نه هغه د ګټونکي په حیث راووت، هغه د دې مقابلې ګټونکی شو |

## hin + gehen = hingehen

د (hingehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ یو چېرته ورتلل، یو ځای ته ورتلل ۲ـ په یو شي باندې (وخت) تیرېدل، (وخت) لګېدل

| | |
|---|---|
| 1. Ich möchte nicht mehr dort hingehen! | زه نه غواړم چې نور هلته ولاړ شم |
| 2. So gingen die Jahre hin. | په دې ډول کلونه تېر شول |

## hinaus + gehen = hinausgehen

د (hinausgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ له یو دننه ځای نه بهر راوتل ۲ـ بهر خواته لار تللې اوسېدل ۳ـ له یوه حده زیاتېدل، له یوه حده اوښتل

| | |
|---|---|
| 1. Als er uns sah, ging er sofort wieder hinaus . | کله چې هغه مونږ ولیدلو، نو هغه سمدلاسه بیرته بهر ووت |
| 2. Hier, durch diese Tür geht es hinaus. | دلته، د دې دروازې له مینځ نه لار بهر ته تللې ده |
| 3. Dies geht über meine Befugnisse hinaus. | دا زما له صلاحیت نه لوړ کار دی |

## hinein + gehen = hineingehen

د (hineingehen) ماناګاني دا دي: له یو بهر ځای نه دننه ځای ته ورتلل، وردننه کېدل ۲ـ په یو شي کې ځایېدل

| | |
|---|---|
| 1. Es ist sehr kalt, lasst uns wieder hineingehen! | ډېر ساړه دي، راځئ چې بیرته دننه شو |
| 2. In den Koffer geht nichts mehr hinein. | په دې بکس کې نور هیڅ شی نه ځاییږي |
| 3. Er ist zu dick, er geht nicht hinein. | هغه ډېر پیړ دی، هغه پکې نه ځاییږي |

## hoch + gehen = hochgehen

د (hochgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ پورته کېدل، پورته تلل ۲ـ پورته ختل ۳ـ یوناڅاپه ډېر سخت په قهرېدل ۴ـ چاودل، انفجار کول

| | |
|---|---|
| 1. Der Ballon ging ganz langsam hoch. | بالون ډېر په کراره پورته شو |

| | |
|---|---|
| 2. Wollt ihr mit mir auf den Turm hochgehen? | تاسو غواړئ چې له ما سره د برج سر ته وخېژئ؟ |
| 3. Sie geht bei jeder Kleinigkeit gleich hoch. | هغه په يوه وړه خبره ډېر ژر په قهريږي |
| 4. Die Bombe ging hoch. | بم وچاودو، بم راخوشي شو |

| irre + gehen = irregehen |
|---|

د (irregehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ اشتباه کول ۲ـ له يو چا نه يوه لار غلطېدل

| | |
|---|---|
| 1. Ich gebe zu, dass ich in diesem Punkt irregegangen bin. | زه اعتراف کوم چې په دې ټکي کې مې اشتباه کړېده |
| 2 .Wir waren in den winkligen Gassen irregegangen. | له مونږ نه په دې کږووږو کوڅو کې لار غلطه شوه |

| krumm + gehen = krummgehen |
|---|

د (krummgehen) مانا دا ده: پاتي راتلل، له ناکامۍ سره مخامخېدل، نه بريالی کېدل

| | |
|---|---|
| Die ganze Sache ging leider krumm. | له بده مرغه دا ټول کار له ناکامۍ سره مخامخ شو |

| los + gehen = losgehen |
|---|

د (losgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ پيلېدل، شروع کېدل ۲ـ په يو چا باندې وردانګل ۳ـ حرکت کول ۴ـ رسوا کېدل، له پوليس له خوا راپيداکېدل

| | |
|---|---|
| 1. Das Fest geht um 3 Uhr los. | محفل په درې بجو پيل کيږي |
| 2. Sie gingen wie zwei Kampfhähne aufeinander los. | هغوی لکه د دوه کلنګي چرګانو په شان په يو بل ودانګل |
| 3. Wann müssen wir losgehen, um den Zug zu erreichen? | مونږ کله حرکت وکړو چې اورګاډي ته ورسېدلی شو |
| 4. Die Verbrecherbande ist hochgegangen. | د جنايتکارانو ډله راپيداکړی شوه |

| nach + gehen = nachgehen |
|---|

د (nachgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ وروسته پاتي کېدل ۲ـ د يو چا پسې تلل ۳ـ له مغزو نه نه وتل، په فکر کې تاوراتاوېدل ۴ـ تعقيبول، د يو شي پسې ګرځېدل

| | |
|---|---|
| 1. Die Uhr geht zehn Minuten nach. | دا ساعت لس دقيقې وروسته ځي |
| 2. Er ging ihr auf Schritt und Tritt nach | هغه قدم په قدم د هغې پسې روان و. |
| 3. Das Bild von dem kranken Kind geht mir immer noch nach. | د دې ناروغ ماشوم عکس زما له مغزو نه نه وځي |
| 4. Ich ging dem Rauschen nach und kam zu einen Wasserfall. | ما د اوبو د شرارې غږ تعقيبو چې څروبې (آبشار) ته ورسېدم |

## quer + gehen = quergehen

د (quergehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ په يو چا بد لګېدل، د يو چا اعصاب خرابول ۲ـ ګډوډول، خرابېدل، ورانېدل

| | |
|---|---|
| 1. Es geht ihm alles quer. | هر څه په هغه بد لګيږي |
| 2. Mir ist heute alles quergegangen. | له ما نه نن هر څه وران شول |

## ran + gehen = rangehen

د (rangehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ په يو شي پيل کول ۲ـ يو ځای ته ځان ورنږدې کول، نږدې ورتلل

| | |
|---|---|
| 1. Nun wollen wir endlich an die Arbeit rangehen. | اوس نو زمونږ د کار وخت رارسېدلی چې بايد پيل يې کړو |
| 2. Geht nicht zu nah an den Abgrund ran. | تاسو ګړنګ ته ډېر نږدې مه ورځئ |

## raus+ gehen = rausgehen

د (rausgehen) مانا دا ده: له يو شي نه وتل، هيسته کېدل، بهر وتل

| | |
|---|---|
| 1. Der Nagel geht nicht raus. | دا مېخ نه راوځي |
| 2. Der Fleck ist rausgegangen. | دا داغ هيسته شو |

## rein+ gehen = reingehen

د (reingehen) مانا دا ده: يو چېرته دننه ورتلل، وردننه کېدل

| | |
|---|---|
| Er ist nicht reingegangen. | هغه دننه ولاړ نشو، هغه هلته وردننه نشو |

## rückwärts + gehen = rückwärtsgehen

د (rückwärtsgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ پخپلو پښوباندې د شا په لورې تلل، په شا تلل ۲ـ مخ په خرابېدو تلل، لږېدل، کمېدل، د پرمختګ په ځای په شا تلل

| | |
|---|---|
| 1. Manche Kinder können heute nicht einmal mehr rückwärtsgehen. | نن ورځ ځيني ماشومان حتی پخپلو پښو د شا په لورې تک نشي کولی |
| 2. Mit der Wirtschaft ist es in diesem Land immer weiter rückwärtsgegangen. | په دې هېواد کې اقتصاد ورځ په ورځ مخ په خرابېدو تللی دی |

## schief + gehen = schiefgehen

د (schiefgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ له ناکامی سره مخامخېدل ۲ـ په ښه شان سرته رسېدل، بريالی کېدل (اصطلاح)

| | |
|---|---|
| 1. Die Prüfung ist total schiefgegangen. | ازموينه مطلق له ناکامی سره مخامخه شوه |
| 2. Keine Angst, es wird schon schiefgehen! | مه ډارېږه، دا به په بريالي توګه سرته ورسيږي |

| schlafen + gehen = schlafengehen |
|---|

د (schlafengehen) مانا دا ده: ویده کېدل، کټ ته ورتلل، څملاستل

| | |
|---|---|
| Er geht mit den Hühnern schlafen. | هغه ډېر د وخته ویده کيږي (اصطلاح) |

| stiften + gehen = stiftengehen |
|---|

د (stiftengehen) مانا دا ده: ځان په پټه له یوه ځایه راوېستل، ځان له یو مسؤلیته تېرول

| | |
|---|---|
| Er wollte stiften gehen. | هغه غوښتل چي ځان وباسي، ځان له دي نه تېر کړي |

| über + gehen = übergehen |
|---|

د (übergehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ له یو شي نه تېرېدل، یو شی نه مراعاتول، ځان یو څه ته کوڼ نیول ۲ـ د یو چا له واکي نه د بل چا واکي ته ورتلل ۳ـ له یو څه نه بل څه ته ورتلل، له یو ټکي نه بل ټکي ته ورتلل، بدلون راوستل ۴ـ له یوې ډلې یا له یو اړخ نه بلې ډلې یا بل اړخ ته ورتلل

| |
|---|
| 1. Ich werde diesen Punkt zunächst übergehen und später darauf zurück-kommen. زه به لومړی له دي ټکي نه تېر شم او وروسته به بیا ورته ورشم |
| 2. Als der Vater starb, ging das Haus in den Besitz seines Sohnes über. کله چي پلار مړ شو، نو کور یې د هغه د زوی واکي ته ورسېد |
| 3. Das Thema ist abgeschlossen, wir können zum nächsten Punkt übergehen. دا موضوع تمامه شوېده، مونږ کوی شو چي بل ټکی ته ولاړ شو |
| 4. Er ist ins feindliche Lager übergegangen. هغه خپل اړخ بدل کړی او د دښمن اړخ ته اوړېدلی دی |

| um + gehen = umgehen |
|---|

د (umgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ له یو شي سره چلند کول ۲ـ په یو ځای کي دېخوا هغه خوا ګرځېدل ۳ـ له یو چا سره ناسته پاسته کول، له یو چا سره چلند کول ۴ـ خپور اوسېدل، خپرېدل ۵ـ د یو شي له مینځ نه نه بلکي د هغه له شاوخوا نه تېرېدل ۶ـ په شعوري ډول یو څه نه یادول او په ځای یې بل څه یادول، ځان له یوې خبرې نه تېرول ۷ـ یو څه په نظر کي نه نیول، یو څه نه مراعاتول، له یو څه نه تېرېدل

| |
|---|
| 1. Sie kann mit Geld nicht umgehen. هغه د پیسو په لګولو نپوهیږي |
| 2. In dem alten Schloss gehen Gespenster um. په دې زړې ماڼی کي پېران ګرځي |
| 3. So gehen zivilisierte Menschen doch nicht miteinander um! متمدن انسانان خو له یو بل سره داسي چلند نکوي |
| 4. Ein Gerücht geht um. یوه ګنګوسه (اوازه) خپره ده |
| 5. Wir mussten auf unserem Weg mehrere Teiche umgehen. مونږ مجبور شولو چي پخپله لار کي د یو څو ډنډونو له شاوخوا نه تېر شو |
| 6. Er umging das Thema und sprach statt dessen über das Wetter. هغه له دي موضوع نه ځان تېر کړو او په ځای یې د هوا په برخه کي خبرې وکړې |
| 7. Damit hast du die Vorschriften umgangen. په دې باندي تا اصول په نظر کي ونه نیول |

## unter + gehen = untergehen

د (untergehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ بښکته کېدل، ولېدل ۲ـ ډوبېدل ۳ـ یو لړ شي په یو ډېر شي کې ورکېدل، غیبېدل، په نظر نه راتلل ۴ـ بربادېدل، له مینځه تلل

| | |
|---|---|
| 1. Nachdem die Sonne untergegangen war, wurde es sehr schnell kühl. | کله چې لمر ولوېدو، نو هوا ډېر ژر سړه شوه |
| 2. Das Schiff kippte um und ging unter. | بېړی واوښتله او ډوبه شوه |
| 3. Ihre leise Stimme ging in dem Lärm völlig unter. | د هغې ټیټ غږ په دې شروشور کې بالکل غیب شو |
| 4. Wenn wir so weitermachen, gehen wir alle unter. | که چېرته مونږ په دا شان پرمخ ولاړ شو، نو مونږ ټول بربادیږو |

## ver + gehen = vergehen

د (vergehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ وخت تېرېدل ۲ـ ورکېدل، له مینځه تلل ۳ـ ناوړه کار کول، سپکاوی کول ۴ـ سرغړونه کول، د یو شي په خلاف چلند کول

| | |
|---|---|
| 1. Es vergeht kein Tag, an dem er nicht anruft. | داسې کومه ورځ نه تېریږي چې هغه ټیلفون ونکړي |
| 2. Als sie den Teller sah, verging ihr der Appetit | کله چې هغې قاب ته وکتل، نو اشتها یې ورکه شوه |
| 3. Der Verbrecher verging sich an dem Kind. | دې جنایتکار له وړوکي ماشوم سره سپکاوی وکړ |
| 4. Er hatte sich gegen die Gesetze des Landes vergangen. | هغه د هېواد له قانونونو نه سرغړونه کړېده |

## vonstatten + gehen = vonstattengehen

د (vonstattengehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ صورت موندل، کېدل ۲ـ پرمخ تلل، وړاندې تلل، بهیر کول

| | |
|---|---|
| 1. Wann soll das Fest vonstattengehen? | دا محفل دې کله وشي؟ |
| 2. Ihre Genesung ging nur langsam vonstatten. | د هغې رغېدنه ډېره په کراره کېدله |

## vor + gehen = vorgehen

د (vorgehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ له یو چا نه دمخه تلل، مخکې تلل ۲ـ له یو چا په وړاندې چلند کول ۳ـ لومړیتوب درلودل

| | |
|---|---|
| 1. Ich gehe vor, du kommst dann nach. | زه مخکې ځم، ته بیا وروسته راشه |
| 2. Die Polizei ging gegen die Demonstranten brutal vor. | پولیس د لاریون کوونکو په وړاندې ظالمانه چلند وکړو |
| 3. Die Gesundheit geht allem anderen vor. | له هرڅه نه روغتیا لومړیتوب لري |

## voraus + gehen = vorausgehen

د (vorausgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ له یو چا نه مخکې تلل، دمخه تلل ۲ـ له یو شي نه دمخه یو څه کېدل

| |
|---|
| 1. Ihr könnt ja nachkommen, ich gehe schon voraus.<br>زه مخکې ځم، تاسو کوی شئ چې وروسته راشئ |
| 2. Dem Vertrag sind lange Verhandlungen vorausgegangen.<br>له قرارداد نه مخکې اوږدې خبرې اترې شوېدي |

## vorbei + gehen = vorbeigehen

د (vorbeigehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ د یو چا له څنګ نه تېرېدل ۲ـ یو ځای ته د یو هدف لپاره ورتلل ۳ـ تېرېدل، ورکېدل، هیسته کېدل، له مینځه تلل ۴ـ د یو ځای له څنګ نه تېرېدلی اوسېدل ۵ـ په یو شي نه لګېدل او خطا کېدل او له څنګ نه یې تېرېدل

| |
|---|
| 1. Sie ging ohne zu grüßen an mir vorbei.<br>هغه زما له څنګ نه تېره شوه، بې له دې چې سترې مشی راسره وکړي |
| 2. Ich muss noch beim Bäcker vorbeigehen und ein Brot kaufen.<br>زه لا باید نانبایي ته ولاړ شم او یوه ډوډی واخلم |
| 3. Sorgen sind schlimm, aber zum Glück gehen auch sie wieder vorbei.<br>غمونه بد شی دی، خو له نیکه مرغه هغه هم بېرته له مینځه ځي |
| 4. Die Straße geht an der Schule vorbei. سړک د ښوونځي له څنګ نه تېر شویدی |
| 5. Der Schuss ist am Ziel vorbeigegangen.<br>دا ډز پخپل هدف ونه لګېدو او له څنګ نه یې تېر شو |

## vorher + gehen = vorhergehen

د (vorhergehen) مانا دا ده: مخکې له مخکې یو کار کېدل

| |
|---|
| Langwierige Verhandlungen sind dem Vertragsabschluss vorhergegangen.<br>د قرارداد د تړلو لپاره اوږدې خبرې اترې مخکې له مخکې شوې وې |

## vorüber + gehen = vorübergehen

د (vorübergehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ د یو چا له څنګ نه تېرېدل ۲ـ ورکېدل، هیسته کېدل، له مینځه تلل ۳ـ تېرېدل، تلل ۴ـ له لاسه ورکول

| | |
|---|---|
| 1. Er ging ohne Gruß an uns vorüber. | هغه بې له سلامه زمونږ له څنګ نه تېر شو |
| 2. Die Schmerzen werden bald vorübergehen. | دا دردونه به ژر ورك شي |
| 3. Die Ferien sind schnell vorübergegangen. | رخصتی ژر تېرې شوې |
| 4. Ich möchte die Gelegenheit nicht vorübergehen lassen.<br>زه نه غواړم چې موقع له لاسه ورکړم | |

## vorwärts + gehen = vorwärtsgehen

د (vorwärtsgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ پرمختګ کول، ترقي کول، پرمخ تلل ۲ـ وړاندې تلل، وړاندې تګ کول

| | |
|---|---|
| 1. Mit dem Projekt geht es vorwärts. | پروژه پرمخ ځي، پروژه پرمختګ کوي |
| 2. Man konnte nur langsam vorwärtsgehen. | وړاندې تګ ډېر په سختۍ کېدو |

| weg + gehen = weggehen |
|---|

د (weggehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ له يوه ځايه تلل، له يوه ځايه وتل ۲ـ يو تفريحي ځای ته تلل ۳ـ ورکېدل، له مينځه تلل، هيسته کېدل ۴ـ له يو شي نه پاکېدل، يو شی له يو بل شي نه هيسته کېدل، ورکېدل ۵ـ خرڅول کېدل، اخيستل کېدل

| |
|---|
| 1. Er ging aus England weg und ließ sich in Irland nieder.<br>هغه له انګلستان نه ولاړ او په آيرلنډ کې ميشت شو |
| 2. Ich gehe heute Abend mit meinen Freunden weg.<br>زه نن ماښام د خپلو ملګرو سره کوم تفريحي ځای ته ځم |
| 3. Von den Tabletten gehen die Kopfschmerzen schnell weg.<br>په دې ګولېو باندې سرخوږی ډېر ژر ورکيږي |
| 4. Der Fleck ist beim Waschen nicht weggegangen. دا داغ په مينځلو باندې ورک نشو |
| 5. Für den Preis geht der Wagen sofort weg. په دې نرخ دا موټر سمدلاسه خرڅول کيږي |
| 6. Ein Drittel des Gehalts geht für die Miete weg. د معاش دريمه برخه په کرايې لګيږي |

| zer + gehen = zergehen |
|---|

د (zergehen) مانا دا ده: ويلې کېدل

| | |
|---|---|
| Der Schnee zergeht in der Sonne. | واوره په لمر کې ويلې کيږي |

| zu + gehen = zugehen |
|---|

د (zugehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ بندېدل، تړل کېدل ۲ـ د يو چا په لوري تلل ۳ـ په پای کې يو خاص شکل غوره کول ۴ـ يو خاص شان چلند کېدل، يو څه په يو خاص شان تېرېدل ۵ـ تېرېدل، پای ته رسېدل ۶ـ يو چا ته لېږل کېدل، لېږدول کېدل

| |
|---|
| 1. Der Koffer war so voll, dass der Deckel nicht zuging.<br>بکس دومره ډک و چې سر يې نه بندېدو |
| 2. Das Kind ging direkt auf seine Mutter zu. ماشوم نيغ په نيغه د خپلې مور په لوري ولاړ |
| 3. Der Turm geht oben in eine Spitze zu. دا منار د څوکې په برخه کې نری شکل نيسي |
| 4. Geht es hier immer so hektisch zu? دلته تل داسې په وارختايي چلند کيږي؟ |
| 5. Die Ferien gehen ihrem Ende zu. رخصتۍ مخ په تېرېدو دي |
| 6. Die Bescheinigung geht Ihnen in Kürze zu. تصديق تاسو ته په دې لنډو کې استول کيږي |

| zurück + gehen = zurückgehen |
|---|

د (zurückgehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ په شا تلل، په شا کېدل، د شا په لوري تلل ۲ـ کمېدل، هيسته کېدل ۳ـ يوځای ته بېرته تلل ۴ـ پخواني وخت ته نظر کول ۵ـ د يو شي په بنسټ ولاړ اوسېدل ۶ـ راټيټېدل، کمېدل، ښکته کېدل

1. Sie ging zwei Schritte zurück. هغه دوه قدمه په شا ولاړه
2. Die Schwellung ist endlich zurückgegangen. ایله په ایله پړسوب ښکته شو
3. Ich muss noch einmal nach Hause zurückgehen. زه باید یوځل بیا کور ته ولاړ شم
4. Man muss weit in die Geschichte zurückgehen, um etwas Ähnliches zu finden. سړی باید ژور تاریخ ته نظر وکړي تر څو چې دې ته ورته یو څه راپیدا کړي
5. Dieses Fest geht auf eine alte Tradition zurück. دا جشن د یو زوړ دود پر بنسټ ولاړ دی
6. Die Temperatur wird in der Nacht auf 2 Grad zurückgehen. د تودوخۍ درجه به په شپه کې دوه درجو ته راټیټه شي

**Übungen:**

1. Der Fleck ist beim Waschen nicht …………… . په مینځلو باندې دا داغ ورك نشو
2. Die Türen ………. den ganzen Tag ….. und …. . ټوله ورځ دروازې خلاصېدلې او بندېدلې
3. Meine Uhr …………… 5 Minuten ….. زما ساعت پنځه دقیقې وروسته ځي
4. Ihr könnt ja noch hier bleiben. Ich …………… schon mal ….. . تاسو کولای شئ چې دلته پاتې شئ. زه مخکې له مخکې ورځم
5. Mit der Wirtschaft ist es in diesem Land von Tag zu Tag …………… . په دې هېواد کې اقتصاد ورځ په ورځ په شا تللی دی
6. Die Schmerzen werden bald …………… . دا دردونه به ژر ورك شي
7. Der Schnee …………… in der Sonne. واوره په لمر کې ویلې کیږي
8. Er ………. auf das Haus …. . هغه د کور په لوري ولاړ
9. Es ist schon spät: Es wird Zeit, dass wir ………. . اوس ناوخته ده، دا وخت رارسېدلی دی چې مونږ بېرته ولاړ شو
10. Sie ………. ein paar Schritte …. . هغه څو قدمه وړاندې ولاړه
11. Die Krankheit ist endlich …………… . ایله په ایله چې ناروغي ورکه شوه
12. Das Fieber …………… bald wieder …. . تبه ژر بېرته ورکه شوه
13. Draußen ist es kalt, lasst uns …………… ! بهر ساړه دي، راځئ چې دننه ولاړ شو
14. Er …………… ihr auf Schritt und Tritt …. . هغه قدم په قدم د هغې پسې روان وو
15. Zehn Jahre …………… …. . لس کاله تېر شول
16. Wenn das ……………, haben wir keine Aussichten mehr. که دا کار له ناکامۍ سره مخامخ شو، نو مونږ ته بله هیله نده پاتې
17. Er …………… mit den Fäusten auf seinen Feind …. . هغه په سوکانو پخپل دښمن وروداننګل
18. Wo …………… du …. ? ته چېرته ځې؟ کومه خوا ځې؟
19. Dort sind schon zahlreiche Schiffe …………… . هلته ګڼ شمېر بېړۍ ډوبې شوېدي
20. Mein Opa …………… immer früh .... . زما نیکه تل وخته ویده کیږي
21. Die Zeit …………… so schnell. وخت دومره ژر تېریږي
22. Die Uhr ………. ein paar Minuten …. . دا ساعت یو څو دقیقې مخکې ځي
23. Er …………… aus England …. und ließ sich in Irland nieder. هغه له انګلستان نه ولاړ او په آیرلېنډ کې مېشته شو
24. Willst du mit mir auf den Turm …………… ? ته له ما سره د برج سر ته خېژې؟
25. Wir sind dieser Gefahr mit Mühe ………… . مونږ له دې خطر نه په سختۍ بچ شول

26. Die Tür ist so schmal, dass der Tisch nicht ............... kann.
دا دروازه دومره تنګه ده چې دا مېز ورنه نشي تېرېدلی
27. Der Schmerz …………… wieder. دا درد بېرته ورکيږي
28. Er …………… an mir …., ohne mich zu erkennen.
هغه زما له څنګ نه تېر شو، بې له دې چې زه يې وپېژندلی واوسم
29. Wie wollen wir …………… ? مونږ څه شان چلند وکړو؟
30. Bleib nicht stehen, …………… …. ! ته مه ودرېږه، وړاندې ولاړ شه!
31. So ein Regenschauer ……………. schnell …. .
داسي تېز باران ژر ودرېږي، ژر پای ته رسيږي
32. Es war spät, als er …………… . ناوخته وه چې هغه کور ته ولاړ
33. Wer von euch ……………. zu dem Konzert …. ?
ستاسو د ډلې نه څوك کنسرت ته ورځي؟
34. Kannst du nicht bei deinem Nachbarn ………… und das Buch zurückgeben?
ته نشي کولی چې د خپل ګاونډي کور ته يو نظر وکړې او دا کتاب ورته بېرته ورکړې؟
35. Die Bombe ist um 8 Uhr …………… . بم په اته بجو وچاودو
36. Er ……………. die Treppe …. . هغه په زينو پورته ولاړ
37. Diese Gelegenheit werde ich mir nicht …………… lassen.
دا موقع به زه له لاسه ورنکړم
38. Morgen ……………. die Sonne in Berlin um 6 Uhr …. .
سبا په برلين کې لمر په شپږو بجو راخيژي
39. Die ganze Sache ………….. leider …. . دا ټول کار د ناکامی سره مخامخ شو
40. Der Koffer …………… nicht …., er ist zu voll. دا بکس نه بنديږي، هغه ډېر ډك دی
41. Mir ……………. die Haare …. . زما وېښته تويېږي
42. Sie hat ihren 80. Geburtstag …………… . هغې خپله اتياومه کليزه ولمانځله
43. Wäre die Polizei nicht ………………, hätte es bei der Schlägerei Tote gegeben. که چېرته پوليسو پکې مداخله نه وای کړې، نو په دې اخ و ډب کې به مړي شوي وای
44. Die vier Monate werden schnell …………… . دا څلور مياشتې به ژر تېرې شي
45. Das Lachen wird ihm noch ……………. . د هغه خندا به ورکه شي
46. Warte nicht auf mich, …………… schon mal …. . ته ما ته صبر مکوه، ته مخکې ځه
47. Du musst unbedingt …………… . ته بايد هرو مرو پورته ولاړ شي
48. Sie ist ohne Abschied einfach …………… . هغه بې له خدای پامانی هسې ولاړه
49. Sie sind aufeinander …………… . هغوی په يو بل باندې ورودانګل
50. Warum …………… die Tür nicht …. ? دروازه ولې نه بنديږي؟
51. Du ………….. nicht …. mit dieser Vermutung. په دې اټکل کې تا څه اشتباه نده کړې
52. Zurzeit …………… in unserer Schule die Grippe …. .
زمونږ په ښوونځي کې والګی (زکام) خپور دی
53. Die Sonne wird in zwei Stunden …………… . لمر به په دوه ساعتو کې ولويږي
54. ……………. nicht zu nah an den Abgrund …. . کندې ته ډېر مه نږدې کېږه
55. Die Hose ist beim Waschen …………… . دا پطلون په مينځلو تنګ شوی دی
56. Es ………….. dich gar nichts …., was ich mit meinem Geld mache!
دا تا پورې هېڅ اړه نه لري چې زه د خپلو پيسو سره څه کوم
57. Der Tintenfleck ……………. nur sehr schwer aus dem Hemd …. .
د رنګ داغ له کميس نه ډېر په سختۍ هيسته کيږي
58. Als das Licht wieder ……… , war alles hell. کله چې برق ولګېدو، نو هر څه رڼا شول

59. Die Nachricht ist mir ……………, obwohl ich die Zeitung schon gelesen habe. دې خبر ته زما پام ونشو، سره له دې چې ما اخبار لوستی دی
60. Er wollte …………… …. . هغه غوښتل چې ځان په پټه راوباسي
61. Er weiß mit Kindern richtig …………… . هغه د ماشومانو سره ښه چلند نشي کولی
62. Das Konzert …………… um 20 Uhr …. . کنسرت په اته بجو پیل کیږي
63. Wir …………… zum nächsten Thema …. . مونږ بلې موضوع ته ولاړو
64. Er drehte sich um und …………… schimpfend …. . هغه شا واړوله او په بدوردو ویلو ولاړ
65. Die Waren werden morgen mit dem Schiff …………….. . مالونه سبا په بېړۍ کې استول کیږي
66. Die Würmer ……………. mit dem Stuhlgang ….. د ډکو متیازو سره چینجي راوځي
67. Plötzlich ……………. die Tür …. und der Einbrecher kam herein. یوناڅاپه دروازه خلاصه شوه او داړه مار راننوت
68. Die Rose ist …………… . ګلاب وچ شو
69. Sie …………… neben ihrem Mann …. und hielt ihn bei der Hand. هغه د خپل مېړه په څنګ کې روانه وه او هغه یې له لاس نه نیولی و
70. Das Wasser ………….. durch meine Schuhe …. . اوبه زما له بوټانو نه تېرېږي
71. Ein Gerücht ……………. …. . یوه اوازه خپره ده
72. Seine Erfindungen werden in die Geschichte der Medizin …………….. . د هغه اختراع ګانې به د طب په تاریخ کې درجې شي
73. Das Gesetz ist ohne Schwierigkeiten im Parlament …………… . دا قانون بې له مشکلاتو په پارلمان کې پاس شو
74. Er hat kein Verbrechen …………….. . هغه څه جنایت ندی کړی
75. Man sah sie aus dem Haus ……………. . هغه له کوره په وتلو کې ولیدل شوه
76. Der Fleck …………… vom Hemd nicht …. . دا داغ له پطلون نه نه ورکیږي
77. Zwei Jahren waren …………….. , ehe er dieses Ergebnis vorweisen konnte. مخکې له دې چې هغه دا نتیجه وښودلی شي، دوه کاله تېر شوي وو
78. Nachdem die Sonne …………… war, wurde es sehr schnell kühl. کله چې لمر ښکته شو، نو هوا ډېر ژر سړه شوه
79. Wann soll das Fest …………… ? محفل کله صورت مومي؟
80. …………… doch schon mal …., ich komme gleich nach. ته مخکې له مخکې ځه، زه له تاپسې درځم
81. Das ist an den ……………. Tagen besprochen worden. په دې برخه کې په تېرو ورځو کې خبرې شوې دي
82. Es …………… zwanzig Minuten, bis sie endlich kam. شل دقیقې تېرې شوې چې هغه ایله په ایله راغله
83. Wer langsam …………… , kommt auch zum Ziel. څوك چې په کراره ځي، نو هغه هم هدف ته رسیږي
84. Ereignisse, die dem Unfall …………….. . هغه پېښې چې له دې ټکر نه مخکې شوې دي
85. Von dem Tag an …………… alles …. . له دې ورځ نه وروسته هر څه وران شول
86. Das Fenster …………… nicht mehr …. . دا کړکۍ نوره نه بندیږي
87. Plötzlich ……………. das Licht …. . یوناڅاپه برق ولاړ
88. Wenn du dicht an das Bild ……………, kannst du Einzelheiten erkennen. که چېرته ته دې عکس ته ښه ورنږدې شې، نو جزئیات یې پېژندلی شې

## nach + sagen = nachsagen

د (nachsagen) ماناګاني دا دي: ١ـ د يو چا پسي خبرې کول، د يو چا پسي بدې يا ښې خبرې کول ٢ـ يوه خبره اورېدل او بيا همغه خبره پخپله کول

1. Man sagt ihm nach, er habe vor Jahren einmal im Gefängnis gesessen.
هغه پسي خلك خبرې کوي چې هغه څو کاله مخکې په زندان کې پروت و

2. Er spricht es vor und du sagst es dann langsam nach.
هغه لومړی يو څه وايي او ته همغه څه په کراره بيا ووايه

## tot + sagen = totsagen

د (totsagen) مانا دا ده: يو څوك چې ژوندی وي، د هغه په برخه کې ويل چې هغه مړ دی

Er wurde schon einmal totgesagt.
د هغه په برخه کې پخوا هم يو ځل ويل شوي وو چې هغه به مړ وي

## unter + sagen = untersagen

د (untersagen) مانا دا ده: په يو چا يو شی منع کول، ورته ويل چې يو کار ونکړي

Der Arzt hat ihm das Rauchen untersagt. ډاکټر په هغه سګرټ څکول منع کړيدي

## ver + sagen = versagen

د (versagen) مانا دا ده: پاتې راتلل، ناکامېدل، خرابېدل

Die Regierung hat versagt. حکومت (پخپلو چارو کې) پاتې راغی

## vor + sagen = vorsagen

د (vorsagen) ماناګاني دا دي: ١ـ يو څوك چې په يو څه نپوهيږي، هغه ته نقل ورکول، له هغه نه مخکې يو څه ويل ٢ـ له يو چا نه مخکې يو څه ويل چې بل څوك يې له ده نه وروسته بياځلي ووايي

1. Wer in der Schule vorsagt, wird bestraft.
څوك چې په ښوونځي کې چا ته نقل ورکوي، ورته جزا ورکول کيږي

2. Der Lehrer sagte den Satz vor, die Schüler sprachen ihn nach.
ښوونکی جمله له نورو نه مخکې وويله، زده کوونکو له هغه نه وروسته بياځلي وويله

## voraus + sagen = voraussagen

د (voraussagen) مانا دا ده: د يو شي په برخه کې مخکې له مخکې نظر ورکول، وړاندوينه کول، پېشبيني کول

Was er vorausgesagt hatte, war eingetroffen.
څه چې هغه مخکې له مخکې ويلي وو، همغه راپېښ شول

wahr + sagen = wahrsagen

د (wahrsagen) مانا دا ده: فال كتل، راتلونکی ویل، ښاګوم کتل

Eine Zigeunerin hat mir wahrgesagt, dass ich einen reichen Mann heiraten werde. يوې جتې زما فال وليدو او راته يې وويل چې زه به له يو شتمن سړي سره واده وکړم

weis + sagen = weissagen

د (weissagen) مانا دا ده: مخکې له مخکې د يو چا په برخه کې يو څه ويل، د يو چا فال ليدل

Es ist ihr geweissagt worden, dass sie einmal sehr berühmt wird.
د هغې په برخه کې مخکې له مخکې داسې ويل شويدي چې هغه به يوه ورځ ډېره مشهوره شي

wieder + sagen = wiedersagen

د (wiedersagen) مانا دا ده: يو چا ته بېرته يوه خبره کول، يو څوك له يو شي نه خبرول

Das darfst du ihm aber auf keinen Fall wiedersagen.
دا خبره به ته په هېڅ وجه هغه ته بېرته نه رسوې

zu + sagen = zusagen

د (zusagen) مانا دا ده: هوکړه کول، يو چا ته د يو شي ژمنه کول، موافقه ورسره ښودل

Er hat mir seine Teilnahme fest zugesagt. هغه ما ته د خپل د راتګ ټينګه هوکړه کړېده

**Übungen:**

1. Es ist ihr ………. worden, dass sie einmal sehr berühmt wird.
د هغې فال ليدل شوی او ورته ويل شويدي، چې هغه به يو وخت ډېره مشهوره شي
2. Sag ihm, er soll es seinem Vater nicht ………. .
هغه ته ووايه، چې هغه دې دا خبره خپل پلار ته ونه رسوي
3. Rauchen ist hier strengstens ………. . دلته سګرټ څکول په ټينګه منع دي
4. Seine Ankunft konnte man uns nicht ………. .
د هغه د راتګ وخت مونږ ته کوم چا مخکې له مخکې ونشو ويلی
5. Er war von allen ………. worden, erfreute sich aber bester Gesundheit.
ټولو ويلي وو چې هغه به مړ وي، خو هغه ښه روغ او جوړ و
6. Ihm wird ………., dass er unpünktlich sei.
د هغه په برخه کې داسې ويل کېږي چې هغه تل ناوخته راځي
7. Dieses Ergebnis ………. nicht viel. دا نتيجه کومه مانا او اهميت نلري
8. Ein Zeuge ………. …., dass er den Angeklagten im Hotel gesehen habe.
يو شاهد وويل ، چې دا تورن يې په يو هوټل کې ليدلی و
9. Sie hatten sich zum Mittagessen ……. . هغوي د غرمې ډوډۍ لپاره د راتګ غږ کړی و
10. Er hat seinem Mitschüler die Lösung ………. .
هغه خپل ټولګيوال ته د سوال حل په لوړ غږ ووايو

11. Er hat in der Schule .......... . هغه په ښوونځي کې پاتې راغی

12. Das Konzert wurde wegen Krankheit .......... .

د ناروغۍ په وجه د کنسرت پروګرام هیسته کړی شو

13. Sie kann aus den Karten .......... . هغه په کیتو باندې فال کتلی شي

14. Die Zugverspätung ist ......... worden. د اورګاډي ځنډېدنه په لوسپیکر باندې اعلان شوېده

15. Er .......... mir, dass er die Arbeit beendet habe.

هغه ما ته وویل چې هغه دا کار پای ته رسولی دی

16. Der König hat dem Thron .......... . باچاه له تخت نه تېر شو، پاچاهي یې پرېښودله

17. Du hast dich von ihm .......... . تا له هغه نه ځان لیرې کړو

18. Das Kind ........... alles ...., was es hört. څه چې ماشوم اوري ، هغه بیا تکراروي

19. Er wird sicher kommen, er hat es uns fest .......... .

هغه به هرومرو راشي، هغه له مونږ سره ټینګه ژمنه کړې وه

**Lösungen:**

1. geweissagt 2. wiedersagen 3. untersagt 4. voraussagen 5. totgesagt 6. nachgesagt 7. besagt 8. sagte … aus 9. angesagt 10. vorgesagt 11. versagt 12. abgesagt 13. wahrsagen 14. durchgesagt 15. sagte 16. entsagt 17. losgesagt 18. sagt … nach 19. zugesagt

## sehen کتل ، لیدل

په لغوي مانا (sehen) (لیدل) ته وایي. مثال:

| | |
|---|---|
| Das habe ich mit eigenen Augen gesehen. | دا ما پخپلو سترګو ولید |

خو کله چې له (sehen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, aus, be, durchein, nach) یوځای شي، نو بیا له دې لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چې مانا یې هم بالکل بل شان وي چې په لاندې برخه کې به یې ووینو.

### ab + sehen = absehen

د (absehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ له یو شي نه تېرېدل، صرف نظر کول، یو شي ته نه کتل، په نظر کې نه نیول ۲ـ یو څه په نظر راتلل، ښکاره کېدل، یو څه لیدل کېدل ۳ـ یو شي ته سترګې سرې کول، یو شي په نظر کې نیول، د یو څه لپاره قصد درلودل ۴ـ له یو چا یا یو شي نه نقل کول، د یو شي له مخې یو څه زده کول یا نقلول

| | |
|---|---|
| 1. Er hat von dem Kauf des Autos abgesehen. | هغه د موټر د په بیه اخیستلو نه تېر شو |
| 2. Es ist kein Ende abzusehen. | د دې پای ته رسېدنه لا په نظر نه راځي |
| 3. Er hat es auf seine hübsche Nachbarin abgesehen. | هغه خپلې ښایسته ګاونډۍ ته سترګې نیولې دي |
| 4. Er hat die Lösung der Aufgabe bei mir abgesehen. | هغه د سوال حل له ما نه نقل کړېدی |

### an + sehen = ansehen

د (ansehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ یو چا ته کتل ۲ـ ښکاره کېدل

| | |
|---|---|
| 1. Sie sah mich an und lächelte. | هغې ما ته وکتل او مسکی شوه |
| 2. Er sieht den Fall ganz anders an als du. | دې خبرې ته هغه په بل نظر ګوري |

## auf + sehen = aufsehen

د (aufsehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ پورته کتل، پورته نظر کول، نظر پورته کول ۲ـ یو چا ته په لوړ نظر کتل

1. Sie sah von ihrem Buch auf, als ich vorüberging.
کله چې زه د هغې له څنګ نه تېر شوم، هغې خپل نظر له کتاب نه پورته کړو

2. Wir sahen bewundernd zu ihm auf. مونږ په حېرانتیا هغه ته په لوړ نظر کتل

## aus + sehen = aussehen

د (aussehen) مانا دا ده: ښکارېدل، ځرګندېدل، په نظر راتلل

| | |
|---|---|
| Sie sieht traurig aus. | هغه غمجنه ښکاري |

## durch + sehen = durchsehen

د (durchsehen) ماناګاني دا دي: ۱ـ یو شی د کنټرول او یا د فکر کولو په غرض لوستل ۲ـ د یو شي له مینځ نه کتل ۳ـ یو شی د بل شي په مینځ کې لټول

1. Der Lehrer hat die Hefte noch nicht durchgesehen.
ښوونکي لا تراوسه پورې کتابچې ندي کتلې

2. Lass mich einmal durch das Fernrohr durchsehen.
ما پرېږده چې د لرکسي (دوربین) له مینځ نه نظر وکړم

3. Sieh mal deine Sachen durch, ob du den Schlüssel findest.
ته دې خپل شیان ولټوه چې خپله کیلي پیدا کوی شي او که نه

## ein + sehen = einsehen

د (einsehen) مانا دا ده: ۱ـ د یو ځای یا یو شي دننه برخي ته نظر کول ۲ـ خپله او یا د بل چا غلطي منل، خپله سهوه یا اشتباه لیدل او منل یې

1. Der Garten kann von keiner Seite eingesehen werden.
حوېلی له هېڅ اړخ نه لیدل کېدی نشي

2. Endlich hat er eingesehen, dass er so nicht weiterkommt.
په دې باندې هغه اخر پوه شو چې په دې ډول وړاندې تلی نشي

## fern + sehen = fernsehen

د (fernsehen) مانا دا ده: تلویزیون کتل

Kinder sollten nicht stundenlang fernsehen.
ماشومان باید په ساعتوساعتو تلویزیون ونه ګوري

## hell + sehen = hellsehen

د (hellsehen) مانا دا ده: راتلونکی لیدل، بزرګي درلودل، لکه د فالبین په شان راتلونکی لیدی شول

Wie soll ich das wissen, ich kann doch nicht hellsehen!
زه په دې باندې په څه پوه شم، زه خو بزرګ نه یم

## her + sehen = hersehen

د (hersehen) مانا دا ده: دېخوا ته کتل، دېخوا راکتل

Kannst du mal hersehen? ته یو ځل دېخوا ته راکتلی شې؟

## hin + sehen = hinsehen

د (hinsehen) مانا دا ده: یو شي ته کتل، یو شي ته ورکتل

Er kann nicht hinsehen, wenn jemand blutet.
د کوم چا ځان چې وینې شوی وي، هغه ورته نشي کتلی

## nach + sehen = nachsehen

د (nachsehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ بښل، بخښل، عفوه کول ۲ـ د کنټرول لپاره نظر کول، کتل

1. Der Vater sah seinem Sohn vieles nach. پلار د خپل زوی ډېرې چارې ورو‌بښلې
2. Sieh bitte nach, ob alle Fenster geschlossen sind.
ته وګوره چې ټولې کړکۍ تړل شوې دي او که نه

## schwarz + sehen = schwarzsehen

د (schwarzsehen) مانا دا ده: د یو کار د بریالیتوب لپاره نا امېده اوسېدل، نهیلي اوسېدل

Für den Kandidaten sehe ich schwarz. (چې انتخابات به وګټي) د کاندید لپاره زه څه هیله نلرم

## über + sehen = übersehen

د (übersehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ یو شی سهواً نه لیدل، یو شي ته پام نه کېدل ۲ـ یو څه له پاسه لیدل
۳ ـ په بشپړ ډول لیدل

1. Der Lehrer hat den Fehler übersehen. غلطۍ ته د ښوونکي پام ونشو
2. Von dieser Stelle kann man das ganze Tal übersehen.
له دې ځای نه سړی ټوله دره له پاسه لیدلی شي
3. Die Folgen lassen sich noch nicht übersehen.
د دې پایلې لا تر اوسه پورې په بشپړ ډول نشي لیدل کېدلی

## um + sehen = umsehen

د (umsehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ خپله شاوخوا کتل، خپل شاوخوا ته نظر کول، د یو ځای شاوخوا ته کتل
۲ـ یو ځای ته مزل کول، یو ځای په سفر کولو لیدل ۳ـ یو څه لټول، یو څه پسې نظر کول

1. Sie sah sich um, weil sie wissen wollte, wer hinter ihr ging.
هغې خپلې شاوخواته وکتل، ځکه هغې غوښتل چې پوه شي چې څوك د هغې شاته روان و

2. Er hat sich in der Welt umgesehen. هغه په نړۍ کې مزل کړی دی، نړۍ یې لیدلې ده

3. Sieh dich mal nach einem neuen Computer um. ته یوځل یو نوی کمپیوټر ولټوه

## ver + sehen = versehen

د (versehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ یو شی په یو شي سمبالول، د یو ضرورت لپاره له ځانه سره یو څه اخیستل ۲ـ د یو شي په لوستلو کې یو شی غلط په نظر راتلل او غلطېدل

1. Wir hatten uns ausgiebig mit Geld und Proviant versehen.
مونږ له ځانه سره کافي اندازه پیسې او خوراکي توکي اخیستي وو

2. Ich muss mich beim Lesen der Hausnummer versehen haben.
له ما نه به د کور د شمېرې په لوستلو کې غلطي شوې وه

## voraus + sehen = voraussehen

د (voraussehen) مانا دا ده: مخکې له مخکې یو څه لیدل

Niemand konnte voraussehen, dass das geschehen würde.
هېڅ چا مخکې له مخکې لیدی نشول چې دا پېښه به وشي

## vorher + sehen = vorhersehen

د (vorhersehen) مانا دا ده: مخکې له مخکې لیدل چې د یو شي عاقبت به څنګه وي

Diesen tragischen Unfall konnte niemand vorhersehen.
هېڅ چا مخکې له مخکې نشو لیدلی چې داسې یوه غمجن ټکر به وشي

## vor + sehen = vorsehen

د (vorsehen) ماناګانې دا دي: ۱ـ په نظر کې نیول، په پلان کې درلودل ۲ـ پام کول، احتیاط کول

1. Er ist als Nachfolger des Staatspräsidenten vorgesehen.
هغه له اوسني جمهوررئیس نه وروسته راتلونکي جمهوررئیس په توګه په نظر کې نیول شوی دی

2. Sieh dich vor, wenn du über die Straße gehst!
کله چې ته له سړك نه تېرېږې، نو ته پام کوه

## weg + sehen = wegsehen

د (wegsehen) مانا دا ده: د یو شي د نه لیدو لپاره خپل نظر قصداً بلې خوا ته اړول

So schrecklich der Anblick war, ich konnte einfach nicht wegsehen.
هر څومره چې نظر پرې بد لګېدو، خو دې سره سره ما سترګې بلې خوا ته نشوې اړولی

wieder + sehen = wiedersehen

د (wiedersehen) مانا دا ده: بېرته لیدل، بیا لیدل

Das Geld, das du ihm geliehen hast, siehst du nie wieder.
هغه پیسي چي تا هغه ته امانت ورکړي دي، بیا به یې هېڅکله په سترګو ونه ویني

zu + sehen = zusehen

د (zusehen) مانا دا ده: یو شي ته ډېر په ځیر کتل، یو شي ته ډېر ژور کتل

Ich will zusehen, wie du das machst. زۀ غواړم په ځیر وګورم چې ته دا څنګه کوې

**Übungen:**

1. Ich hoffe, dass wir uns bald .......... . زه هیله کوم چي مونږ د یو بل سره بیا وګورو
2. den Brief mit Adresse und Datum .......... په لیک باندې پته او نېټه لیکل (سمبالول)
3. Er hat seinen Fehler .......... . هغه خپله غلطي ومنله
4. Es ist .........., dass das passieren wird.
دا مخکي له مخکي لیدل کېدی شي چي دا به پېښ شي
5. Du .......... viel zu viel ...., geh doch lieber mal aus.
ته له حده ډېر ټلویزیون ګورې، ښه به دا وي چي ته کوم تفریحي ځای ته ولاړ شي
6. Ich kann nicht .........., wenn du Grimassen schneidest.
زه نشم درکتلی چي ته دي مخ او خوله چینګوې
7. Ich habe meine Sachen .......... und deine Schlüssel nicht gefunden.
ما خپل شیان ولټول خو ستا کیلي مې پیدا نکړه
8. Kannst du .......... ? Woher hast du gewusst, dass ich kommen würde?
ته راتلونکی لیدی شې؟ ته له کومه پوه شوې چي زه به راشم؟
9. Für diesen Fall haben wir die folgende Maßnahme .......... .
د دې حالت لپاره مونږ دا اقدام په نظر کي نیولی دی
10. Als er von seiner Arbeit .........., bemerkte er, dass der Lehrer vor ihm stand. کله چي هغه له کاره سترګي پورته کړې، ویې لیدل، چي ښوونکی د هغه په مخکي ولاړ و
11. Für unseren Ausflug .......... ich .......... . Ich glaube, es gibt Regen.
زمونږ د مېلې په هکله زه نهیلی یم. زه فکر کوم چي باران به وشي
12. Ich .......... ihr bei der Arbeit .... . ما د هغې د کارکولو ننداره وکړه
13. Wenn niemand .........., laufen wir schnell weg.
کله چي د هېڅ چا نظر مونږ ته نه وي، مونږ ژر تښتو
14. Was .......... du mich so .... ? Habe ich etwas Falsches gesagt?
ته ما ته څه ګورې؟ ما کومه غلطه خبره کړېده؟
15. Ich .......... ihn als meinen Freund .... . زه هغه ته د خپل ملګري په سترګو ګورم
16. Man kann nicht einfach .........., wenn Unrecht geschieht.
کله چي یو ناحقه کار وشي، نو سړی سترګي بلې خوا ته نشي اړولی
17. Du .......... heute wieder gut .... . ته نن بیا ښه ښکارې
18. ein Buch auf Druckfehler .......... په یو کتاب کي چاپي غلطي لټول
19. Lass mich einmal durch das Fernrohr .......... .
ته ما پرېږده چي زه په لرکسي (دوربین) کي کتل وکړم

20. Wann ………. wir uns …. ?                    مونږ د یو بل سره بیا کله ګورو؟
21. Für deine Zukunft ……….. ich ………. .                    زه ستا د راتلونکي لپاره نهیلی یم
22. Ich weiß auch nicht, wie das passieren konnte, aber ich habe die Verkehrsampel einfach ………. .    زه هم په دې نشم پوهېدی چې څنګه دا پېښه وشوه، خو څه وکړم چې ترافیکي اشارې ته زما پام ونشو
23. Sie ……. sich …. , weil sie wissen wollte, wer hinter ihr ging.    هغې خپل شاوخوا ته نظر وکړو، ځکه چې هغې غوښتل چې پوهه شي چې څوك د هغې شاته روان دی
24. Ein solches Problem konnte niemand ………. .
داسې یوه ستونځه هېڅ چا مخکې له مخکي نه نشوه لیدلی
25. Das Fenster ist so schmutzig, dass man kaum noch ………. kann.
دا کړکۍ دومره چټله ده چې هېڅ څوك له مینځ نه یې کوم څه لیدلی نشي
26. Er ………. einfach nicht …., dass er sich geirrt hat.
هغه دا نشي منلی، چې هغه اشتباه کړېده
27. Wir haben den ganzen Abend ………. .                    مونږ ټول ماښام ټلویزیون وکتو
28. Er kann nicht ………., wenn jemand blutet.
هغه دې ته نشي کتلی چې د یو له ځانه وینه وبهیږي
29. ………. mal …., ob die Kinder schlafen.    ته وګوره چې ماشومان ویده دي او که نه
30. Er ………. den Kindern alle Unarten …. .    هغه د ماشومانو ټوله بې ادبي بښي
31. Für morgen ist eine Busreise ………. .
د سبا لپاره د سروېس یو سفر په نظر کې نیول شوی دی
32. Da hast du noch ein paar Fehler ………. .    تا یو څو غلطۍ ونه لیدلي
33. Wir hatten uns ausgiebig mit Geld und Proviant ………. .
مونږ ځانونه په پرېمانه پیسو او خوړو سمبال کړل
34. Er konnte nicht ………., welche Folgen die Erfindung haben würde.
هغه مخکې له مخکې نشو لیدی چې د دې اختراع پایله به څه وي

**Lösungen:**
1. wiedersehen 2. versehen 3. eingesehen 4. vorauszusehen 5. siehst … fern 6. hinsehen 7. durchgesehen 8. hellsehen 9. vorgesehen 10. aufsah 11. sehe … schwarz 12. sah … zu 13. hersieht 14. siehst … an 15. sehe … an 16. wegsehen 17. siehst … aus 18. durchsehen 19. durchsehen 20. sehen … wieder 21. sehe … schwarz 22. übersehen 23. sah … um 24. voraussehen 25. durchsehen 26. sieht … ein 27. ferngesehen 28. hinsehen 29. sieh … nach 30. sieht … nach 31. vorgesehen 32. übersehen 33. versehen 34. vorhersehen

## suchen لټول

په لغوي مانا (suchen) (لټول) ته وايي. مثال:

| Ich habe dich überall gesucht. | ته ما هره خوا ولټولې |
|---|---|

خو کله چې له (suchen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, aus, be, er, heim, nach) یوځای شي، نو بیا له دې لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چې مانا یې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووینو.

## ab + suchen = absuchen

د (absuchen) مانا دا ده: د یو چا یا د یو شي د راپیداکولو لپاره ډېره لټه کول

Die Polizei suchte den Wald nach dem Vermissten ab.
د ترې تم شوي کس د پیدا کولو لپاره پولیسو ځنګل ډېر ولټو

## an + suchen = ansuchen

د (ansuchen) مانا دا ده: په رسمي ډول د یو شي هیله کول، غوښتنه کول (دفتري لغت)

Er hat in diesem Land um politisches Asyl angesucht.
هغه په دې هېواد کې د سیاسي پناه غوښتنه وکړه

## auf + suchen = aufsuchen

د (aufsuchen) مانا دا ده: ۱ـ د یو چا لیدو ته ورتلل ۲ـ یو چا ته د مرستې لپاره ورتلل

1. Ich suche Sie nur auf, um mich zu verabschieden.
زه خاص د دې لپاره ستاسو لیدو ته درغلی یم چې له تاسو نه خدای پاماني واخلم
2. Sie ist krank und muss einen Arzt aufsuchen.
هغه ناروغه ده او باید یو ډاکټر ته ولاړه شي

## aus + suchen = aussuchen

د (aussuchen) مانا دا ده: د ډېرو شیانو د کتلو نه وروسته د ځان لپاره یو څه خوښول، لټول

Du hast dir diesen Beruf ausgesucht, jetzt jammere nicht.
دا مسلك تا پخپله خوښ کړیدی، اوس پریادونه مکوه

## be + suchen = besuchen

د (besuchen) ماناګاني دا دي: ۱ـ د یو چا لیدو ته ورتلل ۲ـ د زده کړې یا د ساعت تېرې یو ځای ته ورتلل

1. Gestern haben wir unseren Großvater besucht. پرون مونږ د خپل نیکه لیدو ته ورغلو
2. Ich besuche noch die Schule. زه لا ښوونځي ته ځم (لا زده کوونکی یم)

## er + suchen = ersuchen

د (ersuchen) مانا دا ده: له یو چا نه رسمي هیله کول

Ich ersuche Sie, sofort das Zimmer zu verlassen.
زه له تاسو نه هیله کوم چې سمدلاسه له کوټې نه ووځئ

heim + suchen = heimsuchen

د (heimsuchen) ماناګاني دا دي: ۱ـ وررپېښېدل، د يوې پېښې سره مخامخېدل ۲ـ د تاوان رسولو لپاره يو چېرته ورتلل

| | |
|---|---|
| 1. Eine Seuche sucht ein Land heim. | يو هېواد ته يو مرګو (وباء) وررپېښ شو |
| 2. Einbrecher suchten das Hotel heim. | هوټل ته غله ورغلل |

herum + suchen = herumsuchen

د (herumsuchen) مانا دا ده: دېخوا هغه خوا لټول، کله دلته او کله هلته لټول

Damit ich später nicht lange herumsuchen muss, lege ich mir gleich alles parat.
د دې لپاره چې زه وروسته دېخوا او هغه خوا لټول ونکړم، نو هرڅه سمدلاسه تيار ږدم

unter + suchen = untersuchen

د (untersuchen) ماناګاني دا دي: ۱ـ د يو رنځور معاينه کول ۲ـ د يو شي په برخه کې پلټنه يا تحقيقات کول

| | |
|---|---|
| 1. Der Arzt untersuchte den Kranken. | ډاکټر رنځور معاينه کړو |
| 2. Die Polizei untersucht den Mordfall. | پوليس د قتل په موضوع کې پلټنه کوي |

ver + suchen = versuchen

د (versuchen) مانا دا ده: د يو کار د کېدو لپاره کوښښ کول، خپله وسه کول، هڅه کول

Er versuchte, mich bei den Händen zu fassen.
هغه کوښښ وکړو چې ما له لاسونو نه ټينګ ونيسي

**Übungen:**

1. Das Land wurde von einer Dürre ………. . دې هېواد ته وچکالي وررپېښه شوه
2. Der Arzt hat den Patienten gründlich ………. ډاکټر د رنځور ژوره معاينه وکړه
3. Sie hat ………., über den Kanal zu schwimmen.
هغې هڅه وکړه چې له کانال نه په لامبو تېره شي
4. Damit ich später nicht lange ………. muss, lege ich mir gleich alles parat.
د دې لپاره زه وروسته دېخوا هغه خوا لټول ونکړم، زه خپل شيان سمدلاسه تيار ږدم
5. Wir ………. Sie, unser Haus zu verlassen.
مونږ له تاسو نه دا هيله کوو چې زمونږ له کوره ووځئ
6. Ich habe ihn gestern im Krankenhaus ………. . زه د هغه ليدو ته روغتون ته ورغلم
7. In der Nacht wird sie von Geistern und Dämonen ………. .
د شپې له مخې هغې ته پيران ورځي
8. Bettlägerige Patienten ………. der Arzt auch zu Hause …. .
هغه رنځوران چې په کټ کې پراته دي، ډاکټر د هغوی کور ته هم ورځي
9. Er hat um Einreiseerlaubnis in Frankreich ………. .
په فرانسه کې د ويزې اخيستلو لپاره هغه رسمي غوښتنه وکړه

10. Eine schwere Krankheit hat ihn .......... . هغه ته یوه سخته ناروغي ورپیښه شوه
11. Er .......... jeden Stein genau. هغه د هري تیږي په برخه کي پلټنه وکړه
12. Wir haben alles .......... . مونږ ډیري هڅي وکړي، مونږ هرڅه ته هڅه وکړه
13. Er .......... die zehnte Klasse des Gymnasiums. هغه د عالي لیسي لسم ټولګي کي دی
14. Ich will morgen einen Freund .......... . زه سبا د یو ملګري لیدو ته ورځم
15. Ich .......... Sie nur ...., um mich zu verabschieden.
زه تش د دي لپاره تاسو ته درځم چي له تاسو نه خدای پاماني واخلم
16. Ich hatte sie höflich .........., mir zu helfen.
ما په احترام له هغي نه رسمي هیله وکړه چي له ما سره مرسته وکړي

**Lösungen:**
1. heimgesucht 2. untersucht 3. versucht 4. herumsuchen 5. ersuchen 6. besucht 7. heimgesucht 8. sucht ... auf 9. angesucht 10. heimgesucht 11. untersuchte 12. versucht 13. besucht 14. aufsuchen 15. suche ... auf 16. ersucht

## wählen انتخابول ، ټاکل

په لغوي مانا (wählen) (ټاکل، انتخابول، خوښول، رآی ورکول) ته وایي. مثال:

| | |
|---|---|
| 1. Welchen Beruf hat er gewählt? | هغه کوم مسلك انتخاب کړی دی؟ |
| 2. Diesen Kandidaten will ich nicht wählen. | دې کاندید ته زه رآی نه ورکوم |

خو کله چي له (wählen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, aus, durch, ein, ver) یوځای شي، نو بیا له دي لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چي مانا یي هم بالکل بل شان وي. دا به لاندي برخه کي ووینو.

### ab + wählen = abwählen

د (abwählen) مانا دا ده: یو څوك د رآی اخیستني له لاري له خپل مقام نه هیسته کول، برطرفول

Die Bürger haben den Bürgermeister abgewählt.
ولس د ښاروال نه د اعتماد رآی بیرته واخیستله

### an + wählen = anwählen

د (anwählen) مانا دا ده: د ټیلفون په یوه شمیره زنګ وهل، یوه نمره ډایلول

Seine Telefonnummer wurde mehrmals angewählt, aber es kam keine Verbindung zustande. د هغه د ټیلفون شمیره څوځلي ډایل شوه، خو هیڅ اړیکه جوړه نشوه

### aus + wählen = auswählen

د (auswählen) ماناګاني دا دي: ۱ـ د ډېرو شیانو له ډلي نه یو شی غوره کول ۲ـ د ډېرو کسانو له ډلي نه یو کس انتخابول، خوښول، یو څوك غوره کول

| | |
|---|---|
| 1. Ich habe für mich das Beste ausgewählt. | ما د ځان لپاره له ټولو نه ښه شی غوره کړېدی |
| 2. Er wurde für den Wettbewerb ausgewählt. | د سیالۍ لپاره هغه وټاکل شو |

**durch + wählen = durchwählen**

د (durchwählen) مانا دا ده: یو چا ته مستقیماً ټیلفون کول، بې له دې چې لومړی د مرکز یا د دفتر سره رخ شي

Von vielen Hotels kann man durchwählen. له ډېرو هوټلونو نه سړی مستقیماً ټیلفون کوی شي (بې له دې چې لومړی له مرکز نه د رخولو هیله وشي)

**ein + wählen = einwählen**

د (einwählen) مانا دا ده: د یو ټیلفون له لارې اینټرنیټ ته ورتلل

Mein Handy wählt sich automatisch ins Internet ein.
زما موبایل ټیلفون په اتومات ډول اینټرنیټ ته ورځي

**ver + wählen = verwählen**

د (verwählen) مانا دا ده: په ټیلفون کې سهواً غلطه شمېره لګول، د ټیلفون شمېره غلط ډایلول

Oh, entschuldigen Sie bitte, ich habe mich verwählt, auf Wiederhören.
اخ، ډېره بښنه غواړم ، له ما نه شمېره غلطه شوه، د خدای په امان

**Übungen:**

1. Ich brauche das Gespräch nach London nicht bei der Zentrale anzumelden, ich kann ........ . لندن ته د ټیلفون لپاره زه دې ته اړتیا نلرم چې لومړی مرکز ته اطلاع ورکړم، زه کوی شم چې مستقیماً ټیلفون وکړم
2. Der Präsident wurde von den Mitgliedern .......... .
د رئیس نه د غړو له خوا د اعتماد رآی واخیستل شوه
3. Sie zahlen keine Gebühr, wenn Sie diese Nummer .......... .
که تاسو دا شمېره ولګوئ، نو په تاسو ټکس نه درځي
4. Verzeihung, ich habe mich .......... . بښنه غواړم، له مانه د ټیلفون شمېره غلطه شوه
5. Welchen Kandidaten haben Sie .......... ? تاسو کوم نوماند یا کاندید ته رآی ورکړه؟
6. Sie können .........., ob sie heute oder erst morgen fahren wollen.
دا ستاسو خوښه ده چې نن ځئ او که سبا

**Lösungen:**
1. durchwählen 2. abgewählt 3. anwählen 4. verwählt 5. gewählt 6. wählen

**weisen یوه لار ښودل ، ګوته نیول ، له یوه ځایه شړل**

په لغوي مانا (weisen) (یوه لار ښودل، یو چاته ګوته نیول، یو څوک له یوه ځایه شړل) ته وایي. مثال:

| | |
|---|---|
| 1. Er wies dem Fremden den Weg. | هغه پردي ته لار وښودله |
| 2. Er wies mit dem Finger zur Tür. | هغه دروازې ته ګوته ونیوله |
| 3. Sie wies mich aus dem Haus. | هغې زه له کوره وشړلم |

خو کله چې له (weisen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, aus, be, ein, er, hin, über, ver) يوځای شي، نو بيا له دې لغت نه بالکل يو نوی لغت جوړ شي چې مانا يې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووينو.

## ab + weisen = abweisen

د (abweisen) ماناګانې دا دي: ۱ـ يو څه ردول، نه منل ۲ـ يو څوك له يوه ځايه شړل

| | |
|---|---|
| 1. Der Antrag wurde vom Gericht abgewiesen. | غوښتنليك د محكمې له خوا رد شو |
| 2. Der Bettler wurde an der Haustür abgewiesen. | سوالګر د كور په دروازه كې وشړل شو |

## an + weisen = anweisen

د (anweisen) ماناګانې دا دي: ۱ـ فرمان وركول، هدايت وركول ۲ـ يو چا ته يو څه ورښودل، يو څوك د يو كار سره بلدول ۳ـ (معاش) حواله كول، يو چا ته په رسمي ډول پيسې ورلېږل

| |
|---|
| 1. Ich habe ihn angewiesen, die Sache sofort zu erledigen.<br>ما هغه ته فرمان وركړو چې دا كار سمدلاسه اجرا كړي |
| 2. Der neue Mitarbeiter wurde bei der Arbeit angewiesen.<br>نوي همكار ته كار وروښودل شو (له كار سره اشنا كړی شو) |
| 3. Können Sie mir mein Gehalt bis Ende des Monats anweisen?<br>تاسو كوی شئ چې زما معاش د مياشتې تر پايه پورې حواله كړئ؟ |

## auf + weisen = aufweisen

د (aufweisen) مانا دا ده: شتون درلودل، په يو شي كې اوسېدل، موجود اوسېدل

| | |
|---|---|
| Dieser Apparat weist einige Mängel auf. | په دې ماشين كې ځينې نيمګرتياوې دي |

## aus + weisen = ausweisen

د (ausweisen) ماناګانې دا دي: ۱ يو څوك له يو هېواده شړل ۲ـ خپله پېژندپانه ښودل

| | |
|---|---|
| 1. Der ausländische Straftäter wurde ausgewiesen. | بهرنی مجرم وشړل شو |
| 2. Können Sie sich ausweisen? | تاسو خپله پېژندپانه ښودلی شئ؟ |

## be + weisen = beweisen

د (beweisen) مانا دا ده: يو شی ثبوتول، يو چا ته يو څه ثابتول

| |
|---|
| Er konnte seine Unschuld vor Gericht eindeutig beweisen.<br>هغه خپل بې ګناه توب د محكمې په مخكې په څرګند ډول ثابت كړو |

## ein + weisen = einweisen

د (einweisen) ماناګاني دا دي:۱ـ يو څوك بسترول ۲ـ يو څوك له يو كار سره بلدول، كار ورته ښودل

| |
|---|
| 1. Der Arzt hat meinen Vater ins Krankenhaus eingewiesen.<br>ډاکټر زما پلار په روغتون کې بستر کړو |
| 2. Der Direktor wies den neuen Mitarbeiter in seine Tätigkeit ein.<br>مدير دا نوی همکار د خپلې دندې سره بلد كړو |

## er + weisen = erweisen

د (erweisen) ماناګاني دا دي: ۱ـ يو څه ثابتول، ثبوت ته رسول ۲ـ يو څه ثابتېدل، ثبوت ته رسېدل

| | |
|---|---|
| 1. Das Gericht hat seine Unschuld erwiesen. | محکمې د هغه بې ګناه توب ثابت کړو |
| 2. Du hast dich als wahrer Freund erwiesen. | ته د يو ريښتيني ملګري په حيث ثابت شوی |

## hin + weisen = hinweisen

د (hinweisen) مانا دا ده: يو شي ته ګوته نيول، يو شي ته اشاره كول، يو شی ښودل

| | |
|---|---|
| Sie wies auf eine Gruppe von Menschen hin. | هغې د انسانانو يوې ډلې ته ګوته ونيوله |

## nach + weisen = nachweisen

د (nachweisen) مانا دا ده: ۱ـ يو څه ثابتېدل، يو څه ثبوت ته رسېدل ۲ـ يو شی ثبوتول، ثابتول، ثبوت ته رسول

| |
|---|
| 1. Die Existenz dieses Tieres ist bis heute nicht nachgewiesen.<br>د دې حيوان موجوديت لا تر نن پورې ندی ثابت شوی |
| 2. Die Polizei konnte ihm den Mord nicht nachweisen.<br>پوليسو په هغه باندې قتل ثابت نکړی شو |

## über + weisen = überweisen

د (überweisen) ماناګاني دا دي: ۱ـ له خپل بانكي حساب نه د بل چا بانكي حساب ته پيسي لېږل
۲ـ يو رنځور د يو ډاکټر له خوا بل ډاكټر ته د معاينې او يا علاج لپاره لېږدول كېدل

| |
|---|
| 1. Mein Gehalt wird immer erst am Monatsende überwiesen.<br>زما معاش تل د مياشتې په پای کې رالېږل كيږي |
| 2. Mein Hausarzt hat mich zum Kardiologen überwiesen.<br>زما کورني ډاکټر زه د زړه د ناروغيو متخصص ته ورولېږلم |

## unter + weisen = unterweisen

د (unterweisen) مانا دا ده: یو چا ته یو شی ورښودل، یو ځوك د یو شي سره بلدول

| |
|---|
| Der Chef unterweist den neuen Mitarbeiter in seinen Aufgaben.<br>آمر دې نوي همکار ته د هغه وظیفې ورښایي |

## ver + weisen = verweisen

د (verweisen) ماناګانې دا دي: ۱ـ یو ځوك له یو ځای نه شړل ۲ـ یو شي ته ګوته نیول، یو شي ته متوجه کول

| |
|---|
| 1. Der Fußballspieler wurde nach dem Foul des Spielfeldes verwiesen.<br>د فوټبال لوبغاړی د فول کولو نه وروسته د لوبې له میدانه وښکل شو |
| 2. Der Beamte verwies mich auf die gesetzlichen Bestimmungen.<br>ماموړ ماته قانوني مقرراتو ته ګوته ونیوله |

## vor + weisen = vorweisen

د (vorweisen) ماناګانې دا دي: ۱ـ یو چاته یو شی ورښکاره کول، یو چا ته یو شي ورښودل ۲ـ درلودل، د یو شي خاوند اوسېدل

| | |
|---|---|
| 1. Können Sie Ihren Pass vorweisen? | تاسو کوی شئ چې خپل پاسپورټ راوښایئ؟ |
| 2. Der Student konnte gute Kenntnisse in Englisch vorweisen.<br>محصل په انګلیسي کې ښه پوهه درلودله | |

## zu + weisen = zuweisen

د (zuweisen) مانا دا ده: یو څه د یو چا په برخه کول، وېشل، تقسیمات کول

| | |
|---|---|
| Uns wurde vom Staat ein Haus zugewiesen. | مونږ ته د دولت له خوا یو کور راکړل شو |

## zurecht + weisen = zurechtweisen

د (zurechtweisen) مانا دا ده: یو ځوك دکل، یو شی غندل، ردول، رټل

| |
|---|
| Er wies seine Kinder zurecht, da sie zu laut waren.<br>هغه خپل ماشومان ودکل، ځکه چې غږ یې ډېر په زوره و |

## zurück + weisen = zurückweisen

د (zurückweisen) ماناګانې دا دي: ۱ـ نه پرېښودل، په شا لیږل، شړل ۲ـ ردول، نه منل

| | |
|---|---|
| 1. Da sein Pass nicht gültig war, wurde er an der Grenze zurückgewiesen.<br>په دې چې د هغه پاسپورټ اعتبار نه درلود، نو هغه په پوله کې وشړل شو | |
| 2. Die Klage wurde zurückgewiesen. | شکایت یا غوښتنلیك رد شو |

**Übungen:**

1. Sie ………. uns höflich auf die Schwierigkeiten …. .
هغې مونږ په احترامانه ډول مشکلاتو ته متوجه کړو
2. Ich ………. . Ihnen das Geld morgen.
زه ستاسو پیسې سبا ستاسو په بانکي حساب تاسو ته درلیږم
3. Der Student konnte gute Kenntnisse in Englisch ………. .
د محصل ښه انګلیسي ژبه زده وه
4. Er wurde von der Schule ……….. هغه له ښوونځي نه وشړل شو
5. Der Direktor ………. den neuen Mitarbeiter in seine Tätigkeit …. .
مدیر دا نوی همکار د خپل کار سره اشنا کړو
6. In dieser Diskussion hat er Klugheit ……. . په دې خبرو اترو کې هغه هوښیارتیا وښودله
7. Die Polizei konnte ihm den Diebstahl nicht ……….. .
پولیس ونکړی شو چې په هغه غلا ثابته کړي
8. Der Meister ………. den Lehrling bei der Arbeit …. . خلیفه شاګرد ته کار ورښایي
9. Sie ………. mich aus dem Haus. هغې زه له کوره وشړلم
10. Er wurde aus Amerika ………. . هغه له امریکې نه وشړل شو
11. Die Klage wurde ………. . . (محکمې ته) شکایت رد شو
12. Er ………. nach links. هغه کیڼ لاس ته ګوته ونیوله
13. einen Bettler ………. یو سوالګر شړل
14. Der Fahrer konnte keine gültige Fahrerlaubnis ………. .
ډرېور کوم د اعتبار وړ لیسنس ونشو ښودلی
15. Er wurde von seinem Vater scharf ………. . هغه د خپل پلار له خوا په ټینګه وغندل شو
16. Da sein Pass nicht gültig war, wurde er an der Grenze ………. .
په دې چې د هغه پاسپورټ اعتبار نه درلودو، نو هغه په سرحد کې بېرته وشړل شو
17. Der Lehrer ………. die Schüler in Französisch.
ښوونکی زده کوونکي ته په فرانسوي کې ښودل کوي
18. Welchen Platz hat man dir ………. ? تا ته کوم ځای درکړل شو؟
19. Er hat mich auf ein Fachbuch zu dem Thema ………. .
په دې موضوع کې هغه ما لپاره یو مسلکي کتاب ته ګوته ونیوله
20. Die Ware ………. zahlreiche Mängel …. . په دې جنس کې ګڼ شمېرې نیمګړتیاوې دي
21. Können Sie sich ………. ? تاسو کوی شئ چې خپله پېژندپانه راوښایئ؟
22. Mängel am Motor konnten nicht ………. werden.
په ماشین کې نیمګړتیاوې نشوې ثابتېدلې
23. Der Arzt hat den Patienten zum Kardiologen ………. .
ډاکټر رنځور د زړه یو متخصص ته ورولیږو
24. Gestern hat der Arzt einen Patienten ins Krankenhaus ………. .
پرون ډاکټر یو رنځور په روغتون کې بستر کړو
25. Es ist nicht …….. , dass ... دا ثابته نده چې ...
26. Die Anzeichen ………. darauf …. , dass der Winter hart wird.
دا نښې دا ښایي چې ژمی به ډېر سخت وي
27. Er ………. mir den Weg. هغه ما ته لار ښایي
28. Die Klage wurde vom Gericht ………. . دعوه په محکمه کې رده شوه

29. Der Spieler wurde des Platzes ………. . لوبغاړی له میدانه وویستل شو
30. auf eine Gefahr ………. یو خطر ته گوته نیول

**Lösungen:**
1. wies … hin 2. überweise 3. vorweisen 4. verwiesen 5. wies … ein 6. bewiesen 7. nachweisen 8. weist … an 9. wies 10. ausgewiesen 11. zurückgewiesen 12. wies 13. abweisen 14. vorweisen 15. zurechtgewiesen 16. zurückgewiesen 17. unterweist 18. zugewiesen 19. verwiesen 20. weist … auf 21. ausweisen 22. nachgewiesen 23. überwiesen 24. eingewiesen 25. erwiesen 26. weisen …. hin 27. weist 28. abgewiesen 29. verwiesen 30. hinweisen

## wiegen وزنول ، یو شی تلل

په لغوي مانا (wiegen) (یو شی تلل، وزنول) ته وايي. مثال:

| Sie wog die Äpfel. | هغې مڼې وتللې |
|---|---|

خو کله چې له (wiegen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, auf, ein, über, ver) یوځای شي، نو بیا له دې لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چې مانا یې هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندې برخه کې ووینو.

### ab + wiegen = abwiegen

د (abwiegen) مانا دا ده: له ډېرې اندازې شیانو نه د ځان د اړتیا په اندازه یو څه تلل

Der Bäcker wog zwei Kilo Mehl für den Kuchen ab.
نانبای د کېك پخولو لپاره دوه کیلو اوړه وتلل (ځکه چې د هغه تیك دوه کیلو اوړه پکار وو)

### auf + wiegen = aufwiegen

د (aufwiegen) مانا دا ده: یو شی جبرانېدی شول، د یو شي بدل اوسېدی شول، جبرانېدل

Der winzige Erfolg wiegt die Strapazen nicht auf.
دا یو بڅرکی بری د دومره سختو زحمتونو جبران نشي کولی

### aus + wiegen = auswiegen

د (auswiegen) مانا دا ده: څومره شی چې د یو چا پکار دی، په دقیق ډول هومره تلل

Können Sie mir drei Kilo Äpfel auswiegen?
تاسو کوی شئ چې زما لپاره تیك درې کیلو مڼې وتلئ؟ (زما تیك درې کیلو مڼې پکارې دي)

### ein + wiegen = einwiegen

د (einwiegen) مانا دا ده: یو څوك په کراره او په زنگولو او یا په ټالی ورکولو ویده کول

Die Mutter wiegte ihr Kind leise singend ein.
مور خپل ماشوم په کراره کراره په زنگولو او په سندرو ویده کړو

## über + wiegen = überwiegen

د (überwiegen) مانا دا ده: له یو شي نه د بل شي پله درنه اوسېدل، ډېر اوسېدل

In dieser Gesellschaft überwiegt die Korruption.
په دې ټولنه کې له هرڅه نه بډې اخیستل ډېر دی

## ver + wiegen = verwiegen

د (verwiegen) مانا دا ده: په وزنولو یا په تللو کې غلطېدل، یو شی غلط تلل، غلط وزنول

Hier hast du dich verwogen, das Paket ist schwerer.
دلته په تللو کې له تا نه غلطي وشوه، دا پارسل نور هم دروند دی

**Übungen:**

1. Die Zutaten für einen Kuchen ……….
څه چې په کېك کې اچول کیږي، هغه په دقیق ډول تلل
2. Du hast dich ………., der Stein ist schwerer. ته په تللو کې غلط شوې، دا تیږه درنه ده
3. Anfangs ist es sonnig, später ………. die Wolken.
په لومړی برخه کې لمر دی، خو وروسته ورېځې زیاتیږي
4. Das Rauschen der Bäume hatte ihn ….. . د ونو شنهار هغه ویده کړو
5. Die Vorteile ……….. die Nachteile …. . د تاوانونو نه یې ګټې ډېرې دي
6. Ich ………. mich täglich. زه هره ورځ ځان تلم
7. Die positiven Aspekte ………. die Nachteile voll …. .
له تاوانونو نه مثبت اړخونه یې ډېر دي
8. Das Interesse ………. den Abscheu. له کرکې نه علاقه زیاته وه
9. Dieser große Gewinn ………. die Anstrengung wieder …. .
دا ډېره ګټه د دومره زحمت جبران کوي
10. Im Süden des Landes ………. Tannenwälder.
د هیواد په جنوب کې زیاتره د نښترو ځنګلونه دي
11. Der Kürbis ………. zwei Kilogramm. د کدو وزن دوه کیلو و
12. In diesem Fall muss man die Vor- und Nachteile ………. .
په دې حالت کې باید سړی ګټه او تاوان یې پرتله کړي

**Lösungen:**
1. abwiegen 2. verwogen 3. überwiegen 4. eingewiegt 5. wiegen … auf 6. wiege 7. wiegen … auf 8. überwog 9. wiegt … auf 10. überwiegen 11. wog 12. abwiegen

## zählen حسابول ، شمېرل

په لغوي مانا (zählen) (یو شی تلل، وزنول) ته وایي. مثال:

| | |
|---|---|
| Bei ihm kann man die Rippen zählen. | سړی د هغهٔ پښتی شمارلی شي (څکه ډنگر دی) |

خو کله چي له (zählen) سره مختلف مختاړي، لکه (ab, an, auf, dazu, er, hin, über, ver) یوځای شي، نو بیا له دي لغت نه بالکل یو نوی لغت جوړ شي چي مانا یي هم بالکل بل شان وي. دا به په لاندی برخه کي ووینو.

### ab + zählen = abzählen

د (abzählen) مانا دا ده: یو شی یا د یوې ډلي کسان بېل بېل شمېرل

| | |
|---|---|
| Er zählte ab, wie viel Personen gekommen waren. | هغه وشمېرل چي څو کسه راغلي وو |

### an + zählen = anzählen

د (anzählen) مانا دا ده: په مسابقه کي شمېرل چي یو څوك په یو څو ثانیو کي بېرته له مځکي نه راجگېدی شي او که نه

| | |
|---|---|
| Der Boxer wurde bis acht angezählt. | په مځکه ولېدلي سوك وهونکي لپاره شمېرې تر اتو پورې حسابي شوې |

### auf + zählen = aufzählen

د (aufzählen) مانا دا ده: یو شی شمېرل او بیا بېل بېل یادول یي

| | |
|---|---|
| Sie zählte auf, was sie auf die Reise mitnehmen musste. | هغې بېل بېل وشمېرل چي په سفر کي کوم کوم شیان یي له ځانه سره واخیستل |

### dazu + zählen = dazuzählen

د (dazuzählen) مانا دا ده: په یو شي کي شمېرل کېدل، حسابېدل، په ډله کي راتلل

| | |
|---|---|
| Die Versandkosten zählen nicht dazu. | د لېږلو پیسي په دې کي نه حسابیږي |

### er + zählen = erzählen

د (erzählen) مانا دا ده: کیسه کول، قصه کول، ویل

| | |
|---|---|
| Er hat viel über dich erzählt. | هغه ستا پهٔ برخه کي ډېري خبري وکړي |

### hin + zählen = hinzählen

د (hinzählen) مانا دا ده: یو شی د یو چا په مخکي دانه په دانه شمېرل

| | |
|---|---|
| Er zählte ihm ein paar Geldscheine hin. | هغه ورته د پیسو یو څو لوټونه دانه په دانه وشمارل |

## über + zählen = überzählen

د (überzählen) مانا دا ده: یو پخوا شمېرل شوی شی بیا له سره شمېرل، یوځل بیا شمېرل

| | |
|---|---|
| Sie überzählte ihr Geld. | هغې خپلې پیسې یو ځل بیا وشمېرلې |

## ver + zählen = verzählen

د (verzählen) مانا دا ده: په حساب کې غلطېدل، د یو چا نه حساب غلطېدل

Du musst dich verzählt haben, es waren nicht zwölf, sondern nur zehn Personen.
له تا نه به حتماً حساب غلط شوی وي، هغوی دولس کسه نه بلکې تش لس کسه وو

**Übungen:**

1. Ich habe mich schon wieder .......... . — له ما نه حساب یوځل بیا غلط شو
2. Er .......... sein Geld. — هغه خپلې پیسې له سره وشمېرلې
3. nach der Wahl die Stimmen .......... — د انتخاباتو نه وروسته ټولې رآی شمېرل
4. sich mehrmals .......... — څو ځلي په شمېرلو کې غلطېدل
5. .......... mir doch mal, was heute alles geschehen ist.
ته خو ما ته کیسه وکړه، چې نن څه څه پېښې شوې دي؟
6. Kannst du die Anwesenden .......... ? — ته دا حاضرین شمېرلی شې؟
7. Beim Herausgeben des Wechselgeldes hat sie sich .......... .
د ماتو پیسو په ورکولو کې له هغې نه حساب غلط شو
8. jemandem seine Geldstrafen .......... — د یو چا نغدي جریمې شمېرل
9. Der Lehrer .......... nach der Pause die Schüler .... .
له تفریح نه وروسته ښوونکي زده کوونکي وشمارل
10. Der Boxer wurde bis acht .......... .
د بوکسر (مځکې ته ولېدلو نه وروسته) تر اتو پورې شمېره وشمېرل شوه
11. Er .......... mir ein paar Geldscheine .... .
هغه ما ته د پیسو یو څو لوټونه دانه په دانه وشمارل
12. Das Kind kann schon bis hundert .......... . — ماشوم تر سلو پورې شمېرل کوی شي
13. Du darfst es niemandem .......... ! — پام کوه چې هېڅ چا ته دا خبره ونکړې
14. Sie .......... zehn nagelneue Hunderter .... und gab sie mir.
هغه لس نوي سوچه لوټونه دانه په دانه وشمارل او ما ته یې راکړل
15. Hast du die Ausgaben von gestern .......... ? — تا پرونی لګښت له دې سره وشمارو؟
16. die Spielkarten .......... — د لوبو کیتې دانه په دانه شمارل

**Lösungen**:
1. verzählt 2. überzählte 3. auszählen 4. verzählen 5. erzähl 6. zählen 7. verzählt 8. aufzählen 9. zählte … ab 10. angezählt 11. zählte … hin 12. zählen 13. erzählen 14. zählte … ab 15. dazugezählt 16. hinzählen

## Ausdrücke mit „Anfang, anfangs, Mitte, mitten, inmitten, Ende“

**هغه اصطلاحات چې پکې پیل (شروع) ، (مینځ) او (پای) کارول کیږي**

| | |
|---|---|
| Anfang | Der Anfang des Films war etwas langweilig.<br>د فلم پیل لږ څه زړه تنګوونکی و |
| | Ich war von Anfang an dagegen. زه له اوله په ضد یې وم |
| | Am Anfang schien alles in bester Ordnung.<br>په لومړي سر کې هرڅه ټیک ښکارېدل |
| | Aller Anfang ist schwer. د هرڅه پیل ګران وي |
| | Zu Anfang der 80er Jahre war alles anders.<br>د اتیاومو کلونو په پیل کې هرڅه بل شان وو |
| | Seit Anfang Januar hat es nicht wieder geschneit.<br>د جنوري میاشتې له پیل راهیسې بیا واوره نده شوې |
| | Am Anfang dieses Jahrhunderts gab es so etwas nicht.<br>د دې پېړۍ په پیل کې داسې څه نه وو |
| anfangs | Anfangs ging alles gut. په پیل کې هرڅه ښه تېر شول |
| | Anfangs fiel mir die Arbeit sehr schwer. په اول کې کار ما ته ډېر ګران و |
| Mitte | Ich treffe ihn Mitte dieser Woche. زه هغه د دې اونۍ په مینځ کې وینم |
| | Er hat immer zur Mitte tendiert. هغه تل منځنۍ لارې ته تمایل درلود |
| | Ich denke, sie ist Mitte Dreißig.<br>زه فکر کوم چې د هغې عمر به د دېرشو په مینځ کې وي |
| | Gegen Mitte des Monats wurde das Wetter besser.<br>د میاشتې په مینځو کې هوا ښه شوه |
| | Der Vertrag gilt bis Mitte April.<br>دا قرارداد د اپریل تر نیمایي پورې اعتبار لري |
| mitten | Er stand mitten auf der Straße. هغه د سړك په مینځ کې ولاړ و |
| | Sie ist mitten in der Nacht aufgewacht. هغه په نیمه شپه کې راویښه شوه |
| | Er hat mich mitten im Satz unterbrochen.<br>هغه د خبرو په مینځ کې زما خبرې غوڅې کړې |
| inmitten | Das Schloss liegt inmitten eines Waldes. مانۍ د ځنګله په مینځ کې پرته ده |
| | Er schlief inmitten lustiger Musiker.<br>هغه د مستو موسیقي غږوونکو په مینځ کې ویده وو |
| Ende | Das ist der Anfang vom Ende. دا د ختمېدلو پیل دی |
| | am Ende des Lebens د ژوند په پای کې |
| | Ende der Woche wollen wir nach London fahren.<br>د اونۍ په پای کې مونږ غواړو چې لندن ته ولاړ شو |

# Jahreszahlen د کال د بیانولو شمېرې

Jahreszahlen werden ohne Präposition angegeben.
د کال د شمېرې ښودنه بې له (Präposition) کیږي

| | |
|---|---|
| 1988 hat mein Sohn geheiratet. | په ۱۹۸۸ کال کې زما زوی واده وکړو |
| Er ist 1980 geboren. | هغه په ۱۹۸۰ کال کې زیږیدلی دی |
| Ich war 2005 in Deutschland. | زه په ۲۰۰۵ کال کې په جرمني کې وم |
| Die Olympischen Spiele fanden 2008 in China statt. | د اولمپیك لوبې په ۲۰۰۸ کال کې په چین کې وشوې |

## Tautologie, Hendiadyoin, Pleonasmus, Oxymoron, Ellipse

د گرامر دا برخه د هغه چا لپاره ده چې ادبي او په لوړه سویه جرمني ژبه زده کوي.

### 1. Tautologie

په لغوي مانا (Tautologie) یوې بیاځلي یا تکراري خبرې ته وایي چې په عربي کې ورته (حشو قبیح) وایي. له دې نه مطلب دا دی چې کله کله د یو مفهوم د ښه څرګندولو لپاره له دوه لغاتو نه کار اخیستل کیږي چې دا دواړه لغات اصلاً همغه یوه مانا لري. دا چې ولې یو مفهوم په دوه لغاتو بیانیږي چې اصلاً یو لغت ورته هم بس وی، علت دا دی چې دا دوهم لغت دغه مطلب لاپسې ښه څرګندوي او په ډېر ټینګار او تآکید یې بیانوي. څنګه چه پښتو کې ویل کیږي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| روغ جوړ | روغ رمټ | تازه تکره | سترې ستومان |

په جرمني ژبه کې (Tautologie) دوه شان ده.
① دوه مختلف لغات چې یوه مانا لري، په ګډه کارول کیږي، مثال:

| | | |
|---|---|---|
| voll und ganz<br>بالکل، په بشپړ ډول | Angst und Bange<br>ډېر ډار، ډېره وېره | nie und nimmer<br>هېڅکله نه |

مثالونه په جملو کې:

| | |
|---|---|
| Ich werde dich nie und nimmer heiraten. | زه به هېڅکله له تا سره واده ونکړم |
| Du machst mir Angst und Bange. | ته ماته ډېر ډار راپیښنوې |
| Ich bin voll und ganz zufrieden! | زه بالکل راضي یم |

② همغه یو لغت دوه ځلې پرله پسې کارول کیږي، مثال:

Geschäft ist Geschäft. د سوداګرۍ په نړۍ کې له هیڅ چا سره هیڅ شان لحاظ او مراعات نشته
Dienst ist Dienst und Schnaps ist Schnaps. د رسمي کار او د رخصتۍ تر مینځ باید توپیر وشي، په رسمي کار کې اصول او قانون او د رخصتۍ په وخت کې ساعت تیري او نور ازاد کارونه
Krieg ist Krieg. په جګړه کې څوك له خطر نه بچ ندي، جګړه جګړه ده

داسي مثالونه په پښتو کې هم شته، لکه:

| |
|---|
| هغه ډېرې ښې سندرې وايي، تاسو ورته غوړغوړ شئ |

## 6. Hendiadyoin

د (Hendiadyoin) تلفظ په دې ډول دی: (هېن ديا دي اوين) . او لغوي مانا يې ده: (په دوه شيانو باندې يو شی). له دې نه مطلب دا دی چې دوه لغتونه چې ماناګانې يې يوبل ته ډېر ورته دي، له يوبل سره يوځای کيږي، خو بيا په يوې بالکل بلې مانا کارول کيږي چې دا مانا يې د اصلي لغاتو سره هېڅ اړه نلري. مثال:

| | |
|---|---|
| Feuer und Flamme | يو شي پسې لېونی، له يو شي سره لېونی مينه |
| Kind und Kegel | بالبچ، واړه زيږه، واړه او زاړه، ټوله کورنی |
| Tür und Tor | ټولې لارې، ټول امکانات، ټولې دروازې |

مثالونه په جملو کې:

| |
|---|
| Als ich ihm von meiner Idee erzählte, war er sofort Feuer und Flamme.<br>کله چې هغه ته ما خپله مفکوره ووېله، نو دا يې په لېونی مينه خوښه شوه |
| Sie sind mit Kind und Kegel gekommen. هغوی د وړو او زړو سره راغلي دي |
| Dem Missbrauch ist jetzt wieder Tür und Tor geöffnet.<br>د بدې استفادې لپاره اوس ټولې لارې پرانيستې دي |

نور مثالونه:

| | | |
|---|---|---|
| unter Dach und Fach<br>حل و فصل | gesund und munter<br>روغ رمټ | geschniegelt und gestriegelt<br>د جل او بل سره، په ځلېدو |
| Hab und Gut<br>هستي او دارايي | Haus und Hof<br>هستي او دارايي | Hinz und Kunz<br>هرهر څوك، هر څوك چې وي |
| klipp und klar<br>په څرګند ډول، واضح | Mord und Totschlag<br>مړ کول او وژل | mit Schimpf und Schande<br>په بې غېرتی |

په پښتو کې هم داسي اصطلاحات شته چې له دوه ورته لغاتو نه جوړ شوي دي، خو بالکل په بله مانا استعماليږي، مثال:

| |
|---|
| هغه وړه نجلی د اور بڅرکي ده |

مطب دا چې هغه نجلی ډېره چسته، چالاکه او شيطانه ده.

## 3. Pleonasmus

په لغوي مانا (Pleonasmus) يو اضافي شي ته وايي. په ادب کې مطلب ورنه دا دی چې يو لغت يا يو مفهوم چې پخپله ډېر واضح دی، د هغه د څرګندتيا لپاره يو بل لغت ورسره زياتول چې اصلآ اړتيا ورته نشته. د بېلګې په توګه کله چې يو ځناور مړ شي، نو د هغه لاش هم مړدی. که يو څوك داسي ووايي چې د ځناور(مړ لاش)، نو دلته به د مړ کلمه اضافي او بې ضرورته وي، ځکه چې (لاش) پخپله مړ جسد ته وايي او ژوندی لاش چېرته نشته. اوس به جرمني مثالونه وګورو:

| | | | |
|---|---|---|---|
| süßer Honig | خواږه شات، خوږ ګبين | runde Kugel | ګرد غونډاری، ګرده ګلوله |

| | | | |
|---|---|---|---|
| gefährliches Risiko | خطرناکه خطر | kaltes Eis | سوړ کنګل، سوړ ایسکریم |
| schwarzer Rabe | تور کارغه | weißer Schimmel | سپین نیلی (سپین سپین آس) |
| alter Greis | زوړ بوډا | tote Leiche | مړ لاش |

دا چي ولي له داسي اضافي الفاظو نه کار اخیستل کیږي، علت دا دی یو ځوك په یو مطلب ډېر تینګار یا تآکید کوي. د بېلګي په توګه کله یو ځوك یو چاته وowایي چي ستا مخ له یو تور کارغه نه هم تور دی. د ادب په اساس دا یو ناسم کار دی چي په جرمني ژبه کي هم ورته (doppelt gemoppelt) یا بیاځلي یا اضافي لفظ وایي.

## 4. Oxymoron

دا حالت د (Pleonasmus) برعکس ته وایي، یعني یو لغت یا یو مفهوم له دوه مختلفو لغاتو نه جوړ شوی وي چي دا دواړه لغاته د یوبل برعکس یا ضد او نقیض دي. د بېلګي په توګه که له یو چا سره یو ځوك له حده ډېره مینه ولري، نو دلته اصلي لغت (مینه = Liebe) دی. که د یو چا له یو چا نه کرکه یا نفرت راځي، نو دلته اصلي لغت (کرکه = Hass) دی. خو په جرمني ژبه کي مینه او کرکه له یوبل سره د یو واحد په توګه کارول کېدی شي ، په دې ډول: (Hass + Liebe = Hassliebe)، یعني (د کرکي مینه). له دی نه مطلب څه دی؟ د کرکي مینه څه ته وایي؟ له دی نه مطلب دا چي له یوي خوا له یو چا سره ډېره مینه پرته ده، له بلي خوا د هغه د یو منفي اړخ په وجه ورنه کرکه راځي. نور مثالونه:

| | |
|---|---|
| Weniger ist  mehr. | هرڅومره چي یوڅه لږ وي، نو ګټه یې ډېره وي |
| Diese Fülle hat mich arm gemacht. | دې پریمانی زه نېستمن کړم |
| Eile mit Weile | د یو څه  ښې نتیجې لپاره نو حوصله ښه ده |
| Das ist ein offenes Geheimnis. | دا یو ښکاره پټ راز دی |

دا چي ولي له (Oxymoron) نه کار اخیستل کیږي، علت دا دی چي په لنډ عبارت د یو شي دوه متضاد اړخونه څرګندیږي.

## 5. Ellipse

له (Ellipse) نه مطلب دا دی چي په یوي جملي کي یوه برخه قصداً نه راوستل کیږي، سره له دې چي د ګرامر له نظره دا جمله بشپړه جمله نده او له دې کبله ناسمه ده. مثالونه په لاندیني جدول کي ګورو.

| vollständiger Satz | Ellipse |
|---|---|
| Je früher der Abschied ist, desto kürzer ist die Qual. هرڅومره ژر چي خدای پاماني وشي، کړاو یې هومره لږ وي | Je früher der Abschied, desto kürzer die Qual. ژرخدای پاماني، لنډ کړاو |
| Erst kommt die Arbeit, dann kommt das Vergnügen. لومړی د کار وخت دی او بیا وروسته د تفریح او ساعت تېری وخت | Erst die Arbeit, dann das Vergnügen. لومړی کار او وروسته بیا ساعت تېري |
| Was machen wir nun? اوس مونږ څه وکړو؟ | Was nun? او اوس څه؟ |
| Das Ende ist gut, alles ist gut! د یو شي پای چي ښه وي، نو هر څه ښه وي | Ende gut, alles gut! پای ښه، هر څه ښه |

| | |
|---|---|
| تشريحات | د پورتني جدول په ګين اړخ کي جملي د ګرامر په اساس صحيح او په بشپړ ډول دي، خو غيرمعمولي دي. په ښي اړخ (Ellipse) کي فعلونه پکي نشته، د ګرامر په اساس ادا جملي ناسمي دي، خو معمولي دي. |

# Vokativ (Anredefall, Anredenominativ)

په لغوي مانا (Vokativ) د (خطاب حالت) ته وايي. له دي نه مطلب په يو چا باندي غږ يا يوه ناره ده چي په جرمني ژبه کي ورته هم په همدې مانا (Anredefall) وايي. په يو چا باندي غږ، ناره يا خطاب په دې ډول کيږي چي د بېلګي په توګه يو پلار خپل زوی او ښځلي لور ته خطاب وکړي چي:

| | |
|---|---|
| زما زويه، ته تن څه کوې | زما لورې، ته ماته نن ناروغه ښکارې |

څنګه چي په پورتنو جملو کي ښکاري، په پښتو کي د نارينه لپاره د خطاب په وخت د هغه له نوم سره (ه) او ښځينه لپاره (ې) يوځای کيږي چي له (زوی) نه (زويه) او له (لور) نه (لورې) جوړيږي. دا شان غږ يا خطاب په شعرونو کي هم کيږي. د بېلګي په توګه به مونږ د رحمان بابا او د خوشحال خان يويو شعر وګورو. خوشحال خان وايي:

| | |
|---|---|
| په نادان باندې هم رحم شته خوشحاله! | معذرت د نادانانو، ناداني ده |

رحمان بابا ويي:

| | |
|---|---|
| ای رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه | پس له هغې په صفت د ګل اندام شه |

په جرمني ژبه کي د خطاب لپاره له بده مرغه د پښتو په شان کومه خاصه نښه نشته. کله چي يو چاته غږ يا خطاب کيږي، نو د هغه نوم اخيستل کيږي او له نامه يي وروسته يوه کامه (,) ليکل کيږي، په دې ډول:

| | |
|---|---|
| Schatz, hast du Hunger? | زړګيه، ته وږی يې؟ |
| Mein Sohn, was ist mit dir los? | زما زويه، په تا څه شويدي؟ |
| Liebe Gäste, Sie sind willkommen. | درنو ميلمنو، تاسو هرکله راشئ |
| Josef, was machst du jetzt? | يوسفه، ته اوس څه کوې؟ |

کله کله له يو نوم نه دمخه يو (O) راوستل کيږي، مثال:

| | |
|---|---|
| O, Gott!<br>O, Tannenbaum, O, Tannenbaum,<br>Wie grün sind deine Blätter! | ای خدايه!<br>ای د غرڅي (صنوبر) وني، ای د غرڅي وني<br>ښومره ښني دي ستا پاڼي پاڼي (د کرسمس يوه سندره) |

# Besonderheiten für die gehobene Sprache
## د ادبي ژبې لپاره ځینې مشخصات

Zweiteilige restriktive Konnektoren/Varianten

په جرمني ژبه کې هم لکه د پښتو په شان ځینې ځانګړتیاوې شته چې هغه په خاصو الفاظو بیانېدلی شي، د بېلګې په توګه که چېرته سرې د پښتو دا شعر په جرمني ژبې وژباړي، نو ژباړه به یې څنګه وي؟

| د منت دارو که مړ شم نه یې غواړم | که علاج لره مي راشي مسیحا هم |
|---|---|

څنګه چې د پورتني شعر په دوهمه برخه کې لیدل کیږي (که) او (هم) په سور رنګ لیکل شویدي. دا په دې مانا چې هغه الفاظ چې مونږ یې لټوو، هغه (که ... هم) دي. (که ... هم) ته په عربي ژبه کې (ولو) وایي. په دې شعر کې ویل کیږي چې (ولو که مسیحا یا عیسی (ع) هم زما علاج ته راشي، نو زه د منت درمل نه منم. نو پوښتنه دا ده چې (که ... هم) او یا (ولو) ته به په جرمني ژبه کې څه وایي؟
ځواب: په جرمني ژبه کې ورته (selbst wenn) وایي. نو دا شعر په دې ډول ژباړل کیږي:

| |
|---|
| Eine unehrenhafte Therapie will ich selbst vom Messias nicht haben, selbst wenn ich sterbe. |

نو په دې ډول داسې ادبي الفاظ ډېر دي چې له هغې ډلې نه به یو څو په لاندې برخه کې زده کړو.

| nicht einmal … geschweige denn … | دا خو څه کوې چې ... دا خو لا پرېږده چې ... |
|---|---|
| Er kann nicht einmal laufen, geschweige denn Fußball spielen. | فوټبال خو څه کوې، هغه هسې منډې هم نشي وهلی |
| Sie haben nicht einmal Geld zum Leben, geschweige denn für ein Auto. | موټر خو څه کوې، هغوی د ژوندانه لپاره هم پیسې نلري |
| Sie will dir nicht einmal zuhören, geschweige denn, dich zum Essen einladen. | هغه حتی ستا خبرو ته غوږ نږدي، تا ډوډۍ ته مېلمه کول خو لا څه کوې |

**Übungen:** Bitte wandeln Sie die Paschtosätze ins Deutsche um!

تاسو دا پښتو جملې په جرمني ژبه واړوئ

۱ـ هغوی حتی په کراره کراره تلی نشي، منډې وهل خو لا پرېږده

..........................................................................................................

۲ـ زه حتی په فکر کې یې کېدی نشم، منل خو یې لا پرېږده

..........................................................................................................

۳ـ په دې باندې یو انسان حتی ژوند نشي کولی، شتمن کېدل خو لا پرېږده

..........................................................................................................

۴ـ هغه حتی یو بادي توپك هم نلري، یوه ماشینداره خو لا پرېږده

..........................................................................................................

۵ـ دا مرداری زه حتی بویولی نشم، لاس پرې لګول خو لا پرېږده

..........................................................................................................

**Lösungen:**

1. Sie können nicht einmal langsam gehen, geschweige denn, laufen.

finster تیاره، تورتم + Stock = stockfinster تپه تیاره، ډېره تیاره
In der stockfinsteren Nacht fand er den Weg nicht.
په تپه تیاره شپه کې هغه لار ونه موندلی شوه

fleißig خواري کښ + Biene = bienenfleißig ډېر خواري وېستونکی
Darauf bereitet er sich bienenfleißig vor. د دې لپاره هغه ځان په ډېرې خوارۍ چمتو کوي

flink چست او چالاك + Wiesel نولی = wieselflink د نولي په شان چست و چالاك
Er ist ein wieselflinker Fußballspieler. هغه یو ډېر چست او چالاك فوټبالر دی

frech بي ډبه،بی پروا + Rotz = rotzfrech له حده ډېر بي ډبه او بي پروا
Das kleine Kind hat mir eine rotzfreche Antwort gegeben.
دي وړوکي ماشوم ماته یو ډېر بي ډبه او بي پروا ځواب راکړو

fremd پردی، بېگانه + Wild = wildfremd بالکل پردی
Warum erzählst du diesem wildfremden Menschen deine Geheimnisse?
ته ولي دي بالكل پردي سړي ته خپل پټ راز وايې؟

frisch تازه، تاند + Ofen داش = ofenfrisch له داش نه تازه راوېستل شوی
Das Brot ist ofenfrisch und schmeckt hervorragend.
دا ډوډی تازه له داش نه راوېستل شوېده او ډېر بنه خوند كوي

froh خوښ، خوشحال + heil = heilfroh د روغ رمټ پاتې کېدو په وجه خوښ
Ich war heilfroh, als das Erdbeben endlich vorbei war.
زه ډېر خوښ شوم چې زلزله آخر پا ته ورسېدله

fromm دیندار + Lamm = lammfromm ډېر دیندار او ایماندار
Er gibt sich lammfromm und gottesfürchtig. Dabei hält er sich kein bisschen an religiöse Vorgaben.هغه ځان ډېر ایماندار ښايې، خو په مذهبي اصولو هېڅ ولاړ ندی

## G

gelb ژېړ + knall = Knallgelb تك ژېړ
Mit dieser knallgelben Hose fällst du überall auf.
په دې تك ژېړ پطلون کې هره خوا د خلکو سترګې په تا لګیږي

gescheit ځیرك + Blitz = blitzgescheit ډېر ځیرك، هوښیار او چالاك
Ihn kannst du nicht reinlegen. Er ist blitzgescheit.
ته هغه نشې غولولی. هغه ډېر ځیرك، هوښیار او چالاك دی

gefährlich خطرناك + Brand اور = brandgefährlich له حده ډېر خطرناك
Dieser Pass ist brandgefährlich. Hier kommt es oft zu Verkehrsunfällen.
دا كندو (كوتل) له حده ډېر خطرناكه دی. دلته ډېر وخت ترافیكي ټكرونه راپېښیږي

gemein ټیټ، پست + Hund سپی = hundsgemein ډېر ټیټ، پست او رذیل
Er ist ein hundsgemeiner Lügner. هغه یو ډېر ټیټ او پست دروغجن انسان دی

genau ټیك، دقیق + Haar وېښته = haargenau ټیك په ټیك، ډېر دقیق
Du musst mir haargenau erzählen, was passiert ist.
ته ماته ټیك په ټیك ووایه چې څه پېښ شویدي

gerade مستقیم، نېغ + Kerze شمع = kerzengerade نېغ په نېغه، بالكل مستقیم
Dieser Baum ist wie eine Pappel kerzengerade in die Höhe gewachsen.
دا ونه لکه د چنار په شان نېغ په نېغه پورته ختلې ده

gesund روغ، جوړ + Kern = kerngesund روغ جوړ
Mein Großvater ist mit seinen 95 Jahren noch kerngesund.
زما نیکه په ۹۵ کلن عمر کې لا روغ جوړ دی

glatt ښوی + Spiegel هنداره = spiegelglatt دومره ډېر ښوی لکه یوه هنداره
Die Straßen sind heute spiegelglatt gefroren.
سړکونه نن کنګل وهلي او داسې ښوی دي لکه یوه هنداره

groß غټ، ستر + Riese دېو + riesengroß ډېر غټ، ډېر ستر
Es gab dort eine riesengroße Explosion. هلته یوه ډېره ستره چاودنه وشوه

grün شین، زرغون + Gras = grasgrün تك شین، لکه د وښو په شان زرغون
Sie trägt einen grasgrünen Pullover. د هغې یو تك شین بنڼېن په تن دی

gut ښه + Sau سرکوزی = saugut ډېر ښه، له حده ډېر ښه
Mir geht es heute saugut. زما طبیعت نن له حده ډېر ښه دی

gut ښه + Herz زړه = herzensgut د زړه له اخلاص نه ډك
Er ist ein herzensguter Mensch. هغه د زړه د اخلاص نه ډك انسان دی

## H

hart کلك + Bein هډوکی = beinhart ډېر کلك، لکه د هډوکي په شان کلك
Jeder hat hier beinhart gearbeitet. دلته هر یو ډېر سخت کار کړی دی

hart کلك + Knall = knallhart زښت ډېر کلك ، په ټینګه
Ich habe ihm knallhart die Wahrheit gesagt. ما ورته په ټینګه دا واقعیت ووایو

hart کلك + Stein تیږه = steinhart لکه د تیږې په شان کلك
Der Sportler hat steinharte Muskeln. دا سپورتمېن لکه د تیږې په شان کلك عضلات لري

hart + hammer سټك = hammerhart لکه د سټك په شان کلك
Das war ein hammerhartes Spiel. دا یوه ډېره سخته لوبه وه

heimlich پټ + klamm = klammheimlich ډېر په پټه
Der Dieb kletterte klammheimlich aus dem Fenster. غل په پټه له کړکۍ نه ښکته شو

hell روښان، رڼا + Tag ورځ taghell ډېر روښان، د ورځې په شان روښان
Das Museum ist nachts taghell erleuchtet.
موزیم د شپې له مخې د ورځې په شان روښانه ښکاري

hoch لوړ، پورته + Haus کور = haushoch ډېر لوړ، لکه تر بامه پورې اوچت
Das Spiel endete mit einem haushohen Sieg der gegnerischen Mannschaft.
لوبه د مقابلې لوبډلې په ډېرې سترې بریا پای ته ورسېدله

hoch لوړ، پورته + Himmel اسمان = himmelhoch تر اسمانه پورې لوړ
Uns ist die gegnerische Mannschaft himmelhoch überlegen.
مقابل ټیم په مونږ. باندې دومره برلاسی دی لکه مځکه او اسمان

## J

jährlich کلنی + all هر = alljährlich کال په کال، هر کال، په هر کال کې
Wir fahren alljährlich in den Ferien nach Frankreich.
مونږ. کال په کال په رخصتیو کې فرانسې ته ځو

jung ځوان + blut وینه = blutjung تنکی ځوان، ځلموټی، پېغلوټې
Früher wurden Mädchen schon blutjung verheiratet. پخوا به پېغلوټې ودول کېدلې

## K

kalt سوړ، يخ + Eis کنګل = eiskalt د کنګل په شان سوړ

In den Wüsten können die Nächte eiskalt werden.

په دښتو کې شپې د کنګل په شان سړې کېدلی شي

kalt سوړ، يخ + bitter تريخ = bitterkalt له حده ډېر سوړ

Draußen ist es seit gestern bitterkalt. د پرون راهيسې هوا بهر ډېره سړه ده

kalt سوړ، يخ Arsch کوناټي = arschkalt ډېر سوړ (غېر ادبي عاميانه لغت)

Hier ist es im Winter arschkalt. په ژمي کې دلته هوا ډېره سړه ده

klar روښان، رڼا + Sonne لمر = sonnenklar لکه د لمر غوندې روښانه

Es ist doch sonnenklar, dass du es gestohlen hast.

دا خو لکه د لمر غوندې روښانه خبره ده چې تا دا شی غلا کړېدی

klar روښان + Stern ستورى = sternenklar د اسمان ستورو په وجه روښان

Es war eine sternenklare Nacht. دا يوه روښانه شپه وه چې ستوري ليدل کېدل

klar روښان، روڼ + Glas ښيښته = glasklar لکه د ښيښې په شان روڼ يا روښانه

Das Wasser des Gebirgsbaches ist glasklar.

د غرونو د ولې اوبه لکه د ښيښې په شان رڼې دي

klein وړوکی + klitze = klitzeklein ډېر وړوکی

Der Unterschied zwischen den beiden ist klitzeklein. د دې دواړو توپير يې ډېر لږ دی

komisch عجيبه + ur = urkomisch ډېر عجيب و غريب

Er ist ein urkomischer Mensch. هغه يو ډېر عجيب و غريب انسان دی

krank ناروغ + schwer سخت = schwerkrank ډېر سخت ناروغ

In diesem Zimmer liegen schwerkranke Patienten.

په دې کوټه کې ډېر سخت رنځوران پراته دي

krank ناروغ + todsterben = todsterbenskrank په مرګوني ډول ناروغ

Bei den geringsten Bauchschmerzen glaubt er, dass er todsterbenskrank ist.

د هغه خېټه چې ډېره لږه په درد شي، نو هغه فکر کوي چې په مرګوني ډول ناروغ دی

kriminell جنايتکار + schwer = schwerkriminell ډېر سخت جنايتکار

Schwerkriminelle Menschen sollen hart bestraft werden.

ډېرسختو جنايتکارانو ته دې سخته سزا ورکړل شي

kühn زړور + toll = tollkühn له خپل سر نه تېر زړور

Das war eine tollkühne Rettungsaktion.

دا د ژغورنې عمل د خپل سر په خطر کې اچولو په بيه وشو

## L

lang اوږد + Baum ونه = baumlang ډېر اوږد لکه يوه ونه، چناري

Er hat drei baumlange Söhne. هغه درې ډېر اوږده زامن لري

langweilig زړه تنګوونکی + Tod مرګ = todlangweilig له حده ډېر زړه تنګوونکی

Sein Vortrag war todlangweilig. د هغه کنفرانس زښت ډېر زړه تنګوونکی و

langweilig زړه تنګوونکی + stink = stinklangweilig له حده ډېر زړه تنګوونکی

In Deutschland finden die Schüler den Religionsunterricht stinklangweilig.

په جرمني کې زده کوونکو ته د مذهب مضمون ډېر زړه تنګوونکی دی

lebendig ژوندی + quick = quicklebendig ډېر تازه او تکړه
Es ist schon weit nach Mitternacht, aber die Kinder sind noch quicklebendig.
اوس وخت له نیمې شپې نه ډېر تېر دی، خو ماشومان لا ډېر تازه او تکړه دي

leicht په وزن سپك + Feder بڼکه = federleicht دومره ډېر سپك لکه يوه بڼکه
Dieses seidene Tuch ist federleicht. دا د ورېښمو دسمال د يوې بڼکې په شان سپك دی

leicht اسان + Kind = kinderleicht وړو ماشومانو ته هم ډېر اسان
Diese Mathematikaufgabe ist kinderleicht.
دا د رياضي سوال دومره ډېر اسان دی چې واړه ماشومان يې هم حلولی شي

loh دا لغت مانا نلري + Licht رڼا = lichterloh چې لمبې يې اسمان ته وخيژي
Als die Feuerwehr eintraf, brannte das Haus schon lichterloh.
کله چې اطفائيه ورسېدله، نو د کور د سوځېدلو لمبې اسمان ته ختلې

## M

mächtig مقتدر، قوي + über = übermächtig له حده ډېر مقتدر، ډېر قوي
Er kämpft gegen einen übermächtigen Feind.
هغه له يو له حده ډېر مقتدر دښمن سره جګړه کوي

müde ستړی، ستومان + Hund سپی = hundemüde له حده ډېر ستړی او ستومان
Jetzt bin ich hundemüde und freue mich auf den Schlaf.
زه اوس له حده ډېر ستړی يم او ويده کېدو ته خوشحال يم

## N

nass لوند + pitsch = pitschnass لوند خيشت
Es hat so stark geregnet, dass wir in kurzer Zeit pitschnass waren.
دومره سخت باران ورېدو چې مونږ په لنډ وخت کې لامده خيشته شولو

nass لوند + Tropf څاڅکی = tropfnass لوند خيشت چې څاڅکي ترې بهېدل
Es regnete in Strömen. Seine Kleider waren schon tropfnass.
په کاسو کاسو باران ورېدو. د هغه جامې داسې لمدې خيشتې شوې چې څاڅکي ترې بهېدل

neu نوی + Brand اور = brandneu نوی سوچه، بالکل نوی
Hast du schon das brandneue Automodell gesehen?
تا د موټرونو بالکل نوي ماډل ليدلی دی؟

neu نوی + Nagel مېخ = nagelneu نوی سوچه
Ich habe mir einen nagelneuen Sportwagen gekauft.
ما ځان ته يو نوی سوچه سپورتي موټر په بيه واخيست

neu نوی + nigelnagel = nigelnagelneu ځلېدونکی نوی سوچه
Sein nigelnagelneues Auto glänzt. د هغه نوی سوچه موټر ځليږي

normal عادي، نورمال + stink = stinknormal بالکل عادي، بالکل نورمال
Das ist ein stinknormales Hotel und kein Luxushotel.
دا کوم لوکس هوټل نه بلکې يو بالکل عادي هوټل دی

## P

persönlich شخصآ + höchst = höchstpersönlich شخصآ، پخپله
Der Minister ist höchstpersönlich gekommen. وزير شخصآ راغلی دی

reich شتمن، موړ + schwer = schwerreich ډېر شتمن، ډېر موړ
Die Erbschaft machte ihn schwerreich. په ميراث باندې هغه ډېر شتمن شو

## R

reich شتمن، موړ + Stein تيږه = steinreich ډېر شتمن، ډېر موړ

Früher war er ein steinreicher Mann, aber heute ist er bettelarm.

پخوا هغه ډېر شتمن سړی و، نن هغه د يو سوالګر په شان بې وزلی دی

rein سوچه، خالص + Lupe ذره بين = lupenrein ډېر سوچه، بالکل خالص

Sie spricht ein lupenreines Hochdeutsch. هغه بالکل سوچه ادبي جرمني ژبه غږيږي

richtig صحيح، سم + Gold سره زر = goldrichtig بالکل سم، ډېر صحيح

Deine Entscheidung war goldrichtig. ستا پرېکړه بالکل سمه وه

rot سور، سور رنګی + Feuer اور = feuerrot د اور په شان سور رنګی

Seine Wangen wurden feuerrot. د هغه اننګي لکه د اور په شان سره شول

rund ګرد + Kugel غونډاری = kugelrund لکه د غونډاري په شان ګرد

Dein Bauch ist mittlerweile kugelrund geworden.

ستا خېټه په دې وختو لکه د يو غونډاري په شان ګرده شوېده

## S

sauber پاك + blitzen ځلېدل = blitzsauber دومره پاك چې وځليږي

Jedesmal wenn er geputzt hat, ist alles blitzsauber.

هر ځل چې هغه پاکول کوي، هرڅه دومره پاك وي چې ځليږي

sauer په غصه + stinken = stinksauer زښت ډېر په قهر او په غصه

Als ich erstmals davon hörte, war ich stinksauer.

کله چې زه د لومړي ځل لپاره له دې نه خبر شوم نو ډېر په قهر او په غصه شوم

sauer په غصه + Stock لرګی = stocksauer زښت ډېر په قهر او په غصه

Ich war stocksauer auf meinen Bruder, weil er mich um 6 Uhr geweckt hat.

زه پخپل ورو پسې ډېر په قهر شوم، ځکه چې زه يې د سهار په ۶ بجو له خوبه راويښ کړم

schade د افسوس ځای + jammer = jammerschade ډېر د افسوس ځای

Es ist jammerschade, dass das Spiel nicht mehr stattfindet.

دا ډېر د افسوس ځای دی چې لوبه بيا نکيږي

scharf نږدې + Haar وېښته = haarscharf دومره ډېر نږدې چې يو وېښته پکې نه ځايږي

Der Stein flog haarscharf an mir vorbei. تيږه زما د څنګ نه ډېره نږدې تېره شوه

schick په موډ، شيك + Tod مړينه = todschick ډېر په موډ برابر، ډېر شيك

Sie kleidet sich immer todschick. هغه تل ډېر په موډ برابرې جامې اغوندي

schlecht بد، خراب + Grotte = grottenschlecht له حده ډېر بد، خراب

Das Essen in der Gaststätte war grottenschlecht. په رستوران کې ډوډۍ ډېره خرابه وه

schlecht بد، خراب + Sau سرکوزی = sauschlecht له حده ډېر بد، ډېر خراب

Unsere Mannschaft hat sauschlecht gespielt. زمونږ لوبډلې ډېره خرابه لوبه وکړه

schnell چټك، تېز + Blitz برېښنا = blitzschnell دومره ډېر چټك له برېښنا

Der Angriff kam blitzschnell. يريد دومره په چټکۍ وشو لکه برېښنا

schnell چټك، تېز + Sekunde ثانيه = sekundenschnell دومره ډېرچټك لکه په يوې ثانيې کې چې وشي

Sekundenschnell verbreitete sich eine Menge giftigen Gases.

په يو څو ثانيو کې زهرجن غاز خپور شو

schön ښايسته + Bild عکس = bildschön دومره ډېر ښايسته لکه يو عکس

Sie hat eine bildschöne Tochter. هغه يوه ډېره ښايسته لور لري

schön ښايسته + Wunder معجزه = wunderschön د عجايبو په شان ښايسته
Die Blume ist wunderschön. دا ګل زښت ډېر ښايسته دی، په معجزه ډول ښايسته دی

schwanger امېدواره + hoch لوړ = hochschwanger زيږون ته ډېره نږدې شوې امېدواري
Sie ist hochschwanger und freut sich auf die Geburt ihres Kindes.
د هغې امېدواري زيږون ته نږدې شوې او د خپل ماشوم زيږېدنې ته خوشحاله ده

schwarz تور + Pech قير = pechschwarz تك تور، د قير په شان تور
Früher hatte she pechschwarze Haare.
پخوا د هغې وېښته تك تور وو

schwarz تور + Rabe كارغه = rabenschwarz د كارغه په شان تك تور
Das war ein rabenschwarzer Tag in der Geschichte des Landes.
د هېواد په تاريخ كې دا يوه تكه توره ورځ وه

schwer درونډ + Tonne ټن = tonnenschwer په ټنوټنو درونډ
Seine Last ist tonnenschwer.
د هغه بار په ټنوټنو درونډ دی

sicher په يقيني ډول + Bombe بم = bombensicher بالكل په يقيني ډول
Ich weiß es bombensicher.
زه ترينه بالكل په يقيني ډول خبر يم
Er hat sich in einem bombensicheren Keller versteckt.
هغه ځان په يو داسي تاكاو كې پټ كړی دی چې بم يې نشي ويجاړولی

sicher په يقيني ډول + Tod مړينه = todsicher په يقيني ډول، سل په سلو كې
Er hat sich todsicher verspätet.
په هغه باندې سل په سلو كې ناوخته شوېده

stark قوي + Bär يږه = bärenstark لكه د يږې په شان ډېر قوي
Der Mann ist bärenstark. Er kann die schwere Last mühelos hochheben.
دا سړی ډېر قوي دی. هغه كوی شي چې دا درونډ بار بې له سختۍ راپورته كړي

steif شخ + Stock لرګی = stocksteif شخ پخ، لكه د لرګي په شان شخ
Er sitzt stocksteif auf seinem Stuhl und redet mit niemandem.
هغه پخپلې چوكۍ شخ پخ ناست دی او له هېڅ چا سره خبرې نكوي

still غلی، چوپ + mucksmäuschen mucksmäuschenstill په چوپه چوپيا
Im Saal ist es mucksmäuschenstill. Man kann eine Stecknadel fallen hören.
په سالون كې داسې چوپه چوپيا ده چې كه چېرته يوه ستن په مځكه ولوېږي، نو غږ يې اورېدل كېدی شي

still غلی، چوپ + Tote مړی = totenstill لكه د مړي په شان چوپه چوپيا
In der Halle wurde es totenstill, als der Zauberer sein Kunststück vorführte.
كله چې مداري خپله هنري ننداره وړاندې كړه، نو په تالار كې چوپه چوپيا شوه

süß خوږ + Zucker بوره = zuckersüß د ګوړې په شان خوږ
Der Pudding im Restaurant war dunkelgrün und zuckersüß.
په رستوران كې پودين تك شين او د ګوړې په شان خوږ و

süß خوږ + Honig ګبين = honigsüß د شاتو په شان خوږ
Diese Weintrauben sind honigsüß.
دا انګور د ګبين په شان خواږه دي

## T

Tausend (هزار) زر + aber = abertausend په زرګونو زرګونو
Abertausende Menschen nahmen an der Demonstration teil.
په لاريون كې په زرګونو زرګونو كسانو برخه اخيستې وه

teuer ګران، قيمت + Sau سركوزی = sauteuer له حده ډېر ګران، د اور په بيه
Das Hotel ist echt spitze, aber sauteuer.
دا هوټل ډېر ښه هوټل دی، خو د اور په بيه دی

teuer ګران، قيمتي + Schwein خوګ = schweineteuer له حده ډېر ګران، ډېر قيمته

Die Wohnungsmiete in Berlin ist schweineteuer.
په برلین کې د استوګنځي کرایه ډېره ګرانه ده

tot مړ + Maus مږك = mausetot سل په سلو کې مړ، بالکل مړ
Der Hund lag mausetot am Straßenrand. سپی د سړك په غاړه مړ پروت و

traurig غمجن، خپه + Tod مړینه = todtraurig له حده ډېر غمجن، ډېر خپه
Er war todtraurig, als er von ihrer Hochzeit erfuhr.
کله چې هغه د هغې له واده نه خبر شو، نو له حده ډېر غمجن شو

trocken وچ + Knochen = knochentrocken لکه د هډوکي په شان وچ
Die Blume ist ja knochentrocken. Du hättest sie regelmäßig gießen müssen.
دا ګل بالکل وچ دی. تا باید په منظم ډول ورته اوبه اچولې وای

trocken وچ + Staub خاوره = staubtrocken ډېر وچ، خاورې په شان وچ
Ich habe Durst und mein Hals ist staubtrocken.
زه تږی یم او ستونی مې لکه د خاورې په شان وچ دی

## U

übel (کانګه) زړه بد + speien = speiübel چې زړه دومره ډېر بد شي چې سړي ته کانګه ورشي
Während der Autofahrt wurde den Kindern speiübel.
د موټر د تلو په وخت ماشومانو ته دومره د زړه بدی ورپېښ شو چې هغوي کانګې ته نږدې شوي وو

unglücklich ناخوښی + Tod مرګ = todunglücklich له حده ډېر ناخوښی
Du siehst heute todunglücklich aus und lächelst überhaupt nicht.
ته نن له حده ډېر ناخوښی ښکارې او هېڅ مسکا دې په خوله نشته

## V

verdient په حقه + hoch لوړ = hochverdient په خپلې پیاوړتیا او په حقه
Der Sieg unserer Mannschaft war hochverdient. زموږ د لوبډلې بریا په حقه وه

verehrt محترم + hoch لوړ = hochverehrt ډېر محترم، عالیقدر
Hochverehrtes Publikum, meine Damen und Herren! عالیقدرو حاضرینو، آغلو او ښاغلو

vergnügt خوشحاله + quietsch = quietschvergnügt ډېر خوشحاله
Sie sang quietschvergnügt im Schlafzimmer.
هغې د خوب په کوټه کې په ډېرې خوشحالۍ سندرې ویلې

verkehrt ناسم، غلط + Grund = grundverkehrt بالکل ناسم، ډېر غلط
Es ist grundverkehrt, so zu reagieren. د داسې غبرګون ښکاره کول یو بالکل ناسم کار دی

voll ډك + Knüppel لرګی = knüppelvoll تر خولې پورې ډك
Der Zug ist knüppelvoll. اورګاډی تر خولې پورې ډك دی

voll ډك + Proppen = proppenvoll تر خولې پورې ډك
Der Saal ist proppenvoll. دا تالار تر خولې پورې ډك دی

voll ډك + Rappel = rappelvoll تر سپېږمو پورې ډك
Es blieb mir nichts anderes übrig als in den rappelvollen Bus einzusteigen.
پرته له دې چې دې تر سپېږمو پورې ډك سروېس ته وخېژم، ماته بله چاره پاتې نشوه

## W

wach ويښ + hell روښان = hellwach بالکل ويښ، ډېر ويښ

Er hatte bis zum Mittag geschlafen. Die ganze Nacht war er hellwach.

هغه تر غرمې پورې خوب کړی و. ټوله شپه هغه ويښ و

warm تود + brühen = brühwarm ډېر تاند، د همدا اوس خبر

Hast du von der brühwarmen Nachricht etwas gehört?

تا له دې بالکل تاند خبر نه څه اورېدلي دي؟

warm تود + Hand لاس = handwarm تړم، چې لاس پرې ونه سوځي

Zum Füßewaschen nehme ich immer handwarmes Wasser.

د پښو د پرېمينځلو لپاره زه له تړمو اوبو څخه کار اخلم

weich پوست، نرم + Butter کوچ = butterweich پوست موست، ډېر پوست

Der alte Mann isst die Kartoffeln ohne Gebiss, da sie butterweich sind.

دا زوړ سړی کچالان بې له مصنوعي غاښونو خوري، ځکه چې د کوچو په شان پاسته شويدي

weich پوست، نرم + kuscheln = kuschelweich پوست موست، ډېر پوست

Dein neuer Pullover ist kuschelweich. ستا نوی بنېن پوست موست دی

weich پوست، نرم + Samt بخمل = samtweich د بخملو په شان پوست

Ich schlafe sehr gerne in diesem Bett, weil die Decke samtweich ist.

زه په ډېره مينه په دې کټ کې ويده کېږم، ځکه چې برستن يې د بخمل په شان پسته ده

weich پوست، نرم + Watte مالوچ = watteweich د مالوچو په شان پوست

Die neuen Handtücher sind watteweich. دا نوي دسمالونه د مالوچو په شان پاسته دي

weiß سپين + Blüte غوټۍ = blütenweiß تك سپين، ډېر سپين

Er trocknete sich mit einem blütenweißen Taschentuch die Stirn.

هغه په يو تك سپين دسمال باندې خپل تندی وچ کړو

weiß سپين + Schnee واوره = schneeweiß د واورې په شان تك سپين

Er trägt einen schneeweißen Anzug. هغه يوه تکه سپينه درېشي اغوستې ده

weit پراخ + Sperrangel = sperrangelweit ډېر پراخ

Die Türen standen sperrangelweit offen. دروازې بالکل په پراخ ډول خلاصې وې

weit ليرې + Meile ميل = meilenweit څوڅو ميله ليرې، ډېر ليرې

Meilenweit sah man das lodernde Feuer.

اسمان ته ختونکی اور له ډېر ليرې څخه ليدل کېدی شو

wild وحشي + Fuchsteufel = fuchsteufelswild لکه وحشي په شان په قهر

Der General wird fuchsteufelswild, wenn die Soldaten ihm nicht gehorchen.

کله چې عسکران ورته اطاعت ونکړي، نو جنرال له حده ډېر په قهرېږي

wohl ښه، هوسا + Pudel = pudelwohl ډېره ښه او هوسا

Ich treibe viel Sport und fühle mich pudelwohl, wie ein Fisch im Wasser.

زه ډېر سپورټ کوم، ځان ډېر ښه احساسوم، فقط لکه چې يو کب په اوبو کې ځان احساسوي

## Z

zahm اهلي، رام + Hand لاس = handzahm ډېر ارام چې لاس پرې رابنکل شي

Am besten lassen sich junge Löwen handzahm machen.

له ټولو نه واړه زمريان ډېر ښه رامېږي، چې سړی پرې لاس رابنکلی شي

zart تنکی + Hauch = hauchzart ډېر تنکی

Der Schal ist aus hauchzarter Seide.د غاړې دسمال له ډېرو تنکيو وربښمنو نه جوړ شوېدی

zufrieden راضي + hoch لوړ = hochzufrieden ډېر راضي، ډېر خوښ

Der Minister ist mit dem Ergebnis seiner Verhandlungen hochzufrieden.
وزیر د خپلو خبرو اترو له نتیجې نه ډېر خوښ دی

**Übungen:** Ergänzen Sie die Sätze mit zusammengesetzten Adjektiven.

1. Der Zug war ……… voll und wir mussten die ganze Zeit stehen.
اورګاډی ترخولې پورې ډك و او مونږ مجبور وو چې په دې ټول وخت کې ولاړ پاتې شو
2. An dieser Stelle hast du nur einen ………kleinen Fehler gemacht.
په دغه ځای کې تا یوه ډېره وړه غلطي کړېده
3. Diese Nachricht ist ……… aktuell, sie wurde vor einer Stunde veröffentlicht.
دا خبر ډېر تاند دی چې یو ساعت دمخه خپور شو
4. Ich bin ……… sauer auf dich, denn du hat mich schon wieder betrogen.
زه تاته ډېر په غصه یم، ځکه چې زه تا یوځل بیا وغولولم
5. Wir wurden ……… nass, da wir keine Regenschirme mitgenommen hatten.
په دې چې مونږ چترۍ له ځانه نه وې اخیستې، نو لامده خیشته شولو
6. Immer wenn er putzt, ist alles ………sauber.
هر وخت چې هغه پاکول کوي، هرڅه دومره پاك وي چې ځلیږي
7. Hör auf zu singen. Du singst ………schlecht.
ته سندرې ویل بس کړه، ستا سندرې ویل له حده ډېر خراب دي
8. Er grinst, im nächsten Moment ist er wieder ………ernst.
هغه په مسکا شي، خو په بله شیبه کې بیا بېرته له حده ډېر جدي شي
9. Du sollst nicht ………fremde Menschen auf der Straße ansprechen.
ته د سړك په سر بالکل پردو خلکو سره خبرې مکوه
10. Die Nacht war ………finster und man konnte nichts erkennen.
شپه تپه تیاره وه او سړي هیڅ شی نشو پیژندلی
11. Das Seminar war ………langweilig. په سیمینار کې د سړی ډېر زړه تنګېدو
12. Alles, was du machts, ist ………verkehrt. هرڅه چې ته کوې، هغه بالکل غلط دي
13. Er hat einen ………festen Glauben. هغه ډېر ټینګ ایمان لري
14. Ich drücke mich immer ………klar aus. زه تل ډېرې رڼې خبرې کوم
15. Auch damals war er ………reich. هغه پخوا هم له حده ډېر شتمن و

**Lösungen**:
1. Der Zug war rappelvoll und wir mussten die ganze Zeit stehen.
2. An dieser Stelle hast du nur einen klitzekleinen Fehler gemacht.
3. Diese Nachricht ist hochaktuell, sie wurde vor einer Stunde veröffentlicht.
4. Ich bin stocksauer auf dich, denn du hat mich schon wieder betrogen.
5. Wir wurden pitschnass, da wir keine Regenschirme mitgenommen hatten.
6. Immer wenn er putzt, ist alles blitzsauber.
7. Hör auf zu singen. Du singst sauschlecht.
8. Er grinst, im nächsten Moment ist er wieder todernst.
9. Du sollst nicht wildfremde Menschen auf der Straße ansprechen.
10. Die Nacht war stockfinster und man konnte nichts erkennen.
11. Das Seminar war todlangweilig.
12. Alles, was du machts, ist grundverkehrt.

13. Er hat einen felsenfesten Glauben.
14. Ich drücke mich immer glasklar aus.
15. Auch damals war er steinreich.

## Bedeutungsänderung durch Suffixe په شاتړو د لغاتو د مانا بدلېدنه

د جرمني ژبې ډېرى لغتونه داسې لغتونه دي چې هغه څه منفي مانا نلري. د بېلګې په توګه (schreiben) (ليکل) ته وايي چې (ليکل) خو څه منفي مانا نلري. خو که چېرته د داسې لغاتو سره يو (Suffix) يا (شاتاړى) لکه (-erei) يوځاى شو، نو د داسې لغاتو په مانا کې لږڅه بدلون راځي او ورنه يوڅه منفي مانا اخيستل کيږي. په لاندې ډول:

schreiben ليکل + -erei = Schreiberei (ليکل ميکل) بې ځايه او په مزاحم ډول ليکل
Ich wäre so froh, wenn die Schreiberei zu Ende wäre.
که دا مزاحم ليکل ميکل پاى ته ورسيږي، نو زه به ډېر خوښ شم

همدا شان له ځينو لغاتو سره د (-ling) يوځاى کېدل لغتونو ته يوه منفي مانا ورکوي، لکه:

schön ښايسته + -ling = Schönling
يو ښايسته سړى چې د ځان ښايست او فېشن پسې ډېر ګرځي
Dieser Schönling ist in der Prüfung durchgefallen.
دا د ښايست او فېشن پسې ګرځېدونکى په ازموينه کې پاتې راغلى دى

اوس به نو يو څو نور مثالونه وګورو:

rasen ډېر چټک تلل + erei = Raserei
دومره ډېر ګړندى موټر چلوونه چې ترافيك ته خطر پېښ شي
Durch die Raserei hat er Fußgänger gefährdet.
په ډېرې ګړندى موټر چلووني باندې هغه پښوتلونکو ته خطر پېښ کړو

fahren موټر چلول + -erei = Fahrerei بې ځايه، بې ضرورته او په مزاحمت موټر چلوونه
Mit der Fahrerei haben ich genug am Hals. په دې موټروانى سره زما ډېر کار دى

telefonieren ټيلفون کول + -erei = Telefoniererei بې ځايه او له مزاحمت نه ډکه ټيلفون کوونه
Die Telefoniererei ist sehr zeitaufwendig. په دې بې ځايه ټيلفون کولو باندې ډېر وخت ضايع کيږي

schießen ډز کول + -erei = Schießerei ډزوډوز، له څو اړخو نه ډزې
Gestern gab es vor der Schule mal wieder eine Schießerei.
پرون يوځل بيا د ښوونځي په مخکې ډزوډوز وشو

schlagen وهل + -erei = Schlägerei اخ و ډب
Es hätte beinahe eine Schlägerei gegeben. نږدې و چې اخ و ډب شوى واى

warten انتظار ويستل + -erei = Warterei خوشې، بې ځايه او له مزاحمت نه ډکه انتظار ويستنه
Ich hab die Warterei satt. زه د دې خوشې انتظار ويستنې نه پوزې ته رسېدلى يم

spielen لوبېدل + -erei = Spielerei خوشې او بې ځايه لوبېدنه چې د وخت ضايعه وي
Deine Arbeit ist in seinen Augen nichts als eine Spielerei.
د هغه په نظر ستا کار پرته له خوشې لوبې او د وخت ضايع کولو نه بل شى ندى

putzen پاکول + -erei = Putzerei خوشې، بې ځايه او له مزاحمت نه ډکه پاکوونه
Um die leidige Putzerei brauchst du dich nicht zu kümmern.
د دې له مزاحمت نه ډکې پاکونې غم په تا ندی

Schwein خوګ + -erei = Schweinerei چټيات، مردارې، بې ځايه کار
Wer hat diese Schweinerei hier angerichtet? دا مرداری چا کړی دی؟

Sau سرکوزی + -erei = Sauerei مرداری، ګډوډي، هرڅه وران ويجاړ پرېښودنه
Du hast in dem Zimmer eine große Sauerei hinterlassen.
تا پخپله کوټه کې مرداری پرې ايښی دی

träumen خوب ليدل + -erei = Träumerei د خوب او خيال دنيا کې ژوند کوونه
Er muss aus seinen Träumereien aufwachen. هغه بايد د خوب او خيال دنيا نه راويښ شي

يادونه:
ځينې لغات شته چې په پای کې يې که (-erei) راشي، نو منفي مانا نلري. داسې لغات يو ځای ښايي چې پکې يو کسب يا يو کار اجرا کيږي، مثال:

backen پخول + -erei = Bäckerei نانبايي، نانوايي
Wir kaufen das Brot in der Bäckerei. مونږ ډوډی له نانبايی نه په بيه اخلو

färben رنګول + -erei = Färberei د رنګمالی ځای، رنګمالي
Er hat sein Hemd in die Färberei gebracht. هغه خپل کميس رنګمالی ته يووړ

schneidern ګنډل + -erei = Schneiderei د ګنډلو ځای، خياطي
Er betreibt eine kleine Schneiderei. هغه يوه وړه د ګنډلو هټی لري

schreinern د ترکاڼی کار کول + -erei = Schreinerei ترکاڼي، نجاري، نجارخانه
Das Fenster ist in der Schreinerei gefertigt worden. دا کړکی په ترکاڼی کې جوړه شوېده

waschen مينځل + -erei = Wäscherei د جامو مينځلو ځای، مينځل ځای
Das Hotel betreibt eine eigene Wäscherei. دا هوټل د جامو مينځلو يو خپل مينځل ځای لري

## Die häufigsten Fehler und Schwierigkeiten der Afghanen

## په جرمني ژبه کې د افغانانو ډېرې ستونځې او تېروتنې

دغه تېر وتنې ما ډېر وخت د افغانانو له خولې اورېدلي دي:

| fragen | |
| --- | --- |
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ich habe ihn *(= Akkusativ)* gefragt.<br>ما له هغه نه پوښتنه وکړه | ~~Ich habe von ihm gefragt.~~ |

| vor oder von | |
| --- | --- |
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Er hat Angst vor dem Hund.<br>هغه له سپي نه دارېږي | ~~Er hat Angst von dem Hund.~~ |

| Uhrzeitangabe د وخت بیان | |
|---|---|
| richtig صحیح | falsch غلط |
| Es ist ein Uhr. یوه بجه ده | Es ist eins Uhr |
| Er war um ein Uhr da. هغه په یوه بجه حاضر وو | Er war um eins Uhr da. |
| Ich komme um ein Uhr wieder. زه په یوه بجه بېرته راځم | Ich komme um eins Uhr weider. |
| Ich komme um eins. زه په یوه بجه راځم | Ich komme um ein. |
| Es ist viertel nach eins. له یوې نه پنځلس دقیقې تېرې دي | Es ist viertel nach ein. |
| Wieviel Uhr ist es? څو بجې دي؟ | Wieviele Uhr ist es? |
| Wieviel Uhr ist es? څو بجې دي؟ | Wieviel Uhr ist. |
| Um wieviel Uhr kommst du? ته په څو بجو راځې؟ | Wieviel Uhr kommst du? |

| alle, alles, all | |
|---|---|
| richtig صحیح | falsch غلط |
| Ist das alles? هر څه همدا دي؟ | Ist das alle? |
| Ich sehe alles. زه هر څه وینم | Ich sehe alle. زه ټول انسانان وینم |
| Ich esse alles. زه هرڅه خورم، هغه څه چې دلته دي، زه ټول یې خورم | Ich esse alle. دا په دې مانا چې زه ټول انسانان خورم |
| Ist alles in Ordnung? هر څه ټیک دي؟ | Ist alle in Ordnung? |
| Nimm alles mit, was du mitnehmen kannst. هغه شیان چې ته له ځانه سره اخیستی شې، وا یې خله | Nimm alle mit, was du mitnehmen kannst. هغه انسانان چې ته له ځانه سره اخیستی شې، وا یې خله |

| viel, viele, vieles | |
|---|---|
| richtig صحیح | falsch غلط |
| Ich verstehe vieles nicht. زه په ډېر څه نه پوهېږم | Ich verstehe viele nicht. دا په دې مانا چې زه د ډېرو خلکو په خبرو نه پوهېږم |
| Das ist viel Geld. دا ډېرې پیسې دي | Das ist viele Geld. |
| Das ist aber viel. دا ډېر څه دي | Das ist aber viele. |
| Viele waren nicht da. ډېر کسان حاضر نه وو | Viel waren nicht da. |

| oben, unten | |
|---|---|
| richtig صحیح | falsch غلط |
| Ich komme nach oben. زه پورته خوا ته درځم | Ich komme oben. |
| Er kommt nach unten. هغه ښکته خوا ته درځي | Ich komme unten. |

| draußen, heraus, hinaus | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ich gehe nach draußen. زه بهر وځم | Ich gehe draußen. |
| Ich gehe aus dem Zimmer hinaus. زه له كوټي نه بهر وځم | Ich gehe aus dem Zimmer draußen. |
| Ich kann nicht rauskommen. زه بهر نشم راوتلی | Ich kann nicht draußen kommen. |
| Sie kam aus dem Haus heraus. هغه له كوره بهر راووتله | Sie kam aus dem Haus draußen. |

| sein, da sein, hier sein | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ist dein Vater da? پلار دي شته؟ | Ist dein Vater? |
| Nein, er ist nicht da. نه، هغه دلته نشته | Nein, er ist nicht. |
| Gibt es hier Wasser? دلته اوبه شته؟ | Gibt hier Wasser. |
| Wir sind bis zwei Uhr da. مونږ تر دوه بجو پوري دلته يو | Wir sind bis zwei Uhr. |

| kein, keiner, nicht, nichts | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ich habe kein Geld. زه پيسي نلرم | Ich habe nicht Geld. |
| Ich bin nicht krank. زه ناروغ نه يم | Ich bin kein krank. |
| Ich habe ihn nicht gesehen. ما هغه ندی ليدلی | Ich habe ihn kein gesehen. |
| Keiner war da. هيڅ څوك هلته نه وو | Kein war da. |
| Keiner weiß Bescheid. هيڅ څوك خبر ندی | Kein weiß Bescheid. |
| Davon weiß ich nichts. له دي نه زه خبر نه يم | Davon weiß ich nicht. |
| Das macht nichts. دا څه پروا نكوي | Das macht nicht. |
| Ich sehe und höre nichts! زه كوم څه نه وينم او نه اورم | Ich sehe und höre nicht. |
| Sie hat schon wieder nichts zu tun. هغه بيا هيڅ كار نلري | Sie hat schon wieder nicht zu tun. |
| Ich habe nichts zu essen. له ما سره د خوړلو هيڅ شی نشته | Ich habe nicht zu essen. |
| Es gibt nichts Neues. كوم نوی څه نشته | Es gibt nicht Neues. |

| reden, sprechen, sagen | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Er hat mit mir kein Wort geredet. هغه له ما سره يوه خبره هم ونكړه | Er hat mit mir kein Wort gesagt. |

| | |
|---|---|
| Ich habe seit 2 Jahren kein Englisch gesprochen. د دوه کلونو راهيسي زه هيڅ انګليسي نه يم رغيدلی | Ich habe seit 10 Jahren kein Englisch gesagt. |
| Er spricht lauter Unsinn. هغه چټيات غړيږي | Er sagt lauter Unsinn. |
| Er redet und redet, sagt aber gar nichts. هغه غړيږي او غړيږي، خو په خبرو کې يې هيڅ مفهوم او مطلب نشته | Er redet und redet, spricht aber gar nichts. |

| einen Kuss geben | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Der Vater gibt seinem Kind einen Kuss. پلار له خپل ماشوم نه يوه مچه اخلي | Der Vater nimmt von seinem Kind einen Kuss. |
| Gib mir einen Kuss. ته ما ښکل کړه | Nimm von mir einen Kuss. |

| lang, lange | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ich bin schon lange fertig. د ډېر وخت راهيسي زما کار خلاص دی | Ich bin schon lang fertig. |
| Es ist schon lange her. له دې نه ډېر وخت تېر شوېدی، دا ډېر پخوا و | Es ist schon lang her. |
| Der Tisch ist vier Meter lang. دا ميز څلور متره اوږد دی | Der Tisch ist vier Meter lange. |
| Ich habe zwei Stunden lang auf dich gewartet. ما دوه ساعته تا ته انتظار وويست | Ich habe zwei Stunden lange auf dich gewartet. |
| Die Zeit wurde mir ziemlich lang. وخت په ما ډېر اوږد شو | Die Zeit wurde mir ziemlich lange |

| wie lang, wie lange | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Wie lange bleibst du hier? ته څومره وخت دلته پاتې کيږې؟ | Wie lang bleibst du hier? |
| Wie lange dauert die Reise? سفر څومره وخت دوام کوي؟ | Wie lang dauert die Reise? |
| Wie lang ist der Tisch? دا ميز څومره اوږد دی؟ | Wie lange ist der Tisch? |

Anmerkung: in Süddeutschland wird die Kurzform „lang“ für das Adverb „lange“ verwendet!

پاملرنه په جنوبي جرمني کې د „lange“ لپاره „lang“ هم استعماليږي

**د (wie lang) او (wie lange) تر مينځ توپير**

کله چې د يو شي د اوږدوالي په برخه کې پوښتنه کيږي، نو دا پوښتنه په (wie lang) کيږي.

د (wie lang) په ځواب کې به د همدې شي اوږدوالی ښودل کيږي چې څو متره او يا څو کيلومتره او داسي نور. نو ځکه په ځواب کې يې (lang) بيرته تکراريږي، لکه يو متره اوږد (ein Meter lang).
کله چې د يو وخت په برخه کې پوښتنه کيږي چې څومره وخت، دا پوښتنه په (wie lange) کيږي. د (wie lange) په ځواب کې به د يو وخت اندازه ښودل کيږي چې څومره وخت، يعني دوه ساعته، دوه ورځې، دوه کاله او داسي نور. د ځواب په وخت بيا د (lange) کلمه بيا نه تکراريږي. مثال:
Das dauert zwei Stunden. دا دوه ساعته دوام کوي

| beide oder beiden? | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Die beiden Mädchen sind sehr hübsch. دا دواړه جنکۍ ډيرې ښايسته دي | Die beide Mädchen sind sehr hübsch. |
| Uns beiden gefallen sie ganz gut. هغوی زمونږ د دواړو ډير خوښيږي | Uns beide gefallen sie ganz gut. |
| Diese beiden habe ich gesehen. دوی دواړه ما ليدلي دي | Diese beide habe ich gesehen. |
| Jene beiden kamen zurück. هغوی دواړه بيرته راغلل | Jene beide kamen zurück. |
| Euch beide jungen Leute kennt hier niemand. تاسو دواړه ځوانان دلته هيڅ څوك نه پيژني | Euch beiden jungen Leute kennt hier niemand. |
| Buch und Heft, beides hatte er im Auto liegen lassen. کتاب او کتابچه، دواړه يې په موټر کې پرې ايښي وو | Buch und Heft, beide hatte er im Auto liegen lassen |

| nach zu in | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ich gehe nach Hause. زه کور ته ځم | Ich gehe zu Hause |
| Ich gehe zur Post. زه پوسته خونې ته ځم | Ich gehe nach Post. |
| Ich gehe zum Bahnhof. زه د اورګاډي سټيشن ته ځم | Ich gehe nach Bahnhof. |
| Ich gehe in die Schule. زه ښوونځي ته ځم | Ich gehe nach Schule. |
| Er geht zur Schule. هغه د ښوونځي زده کوونکی دی | Er geht in Schule. |
| Ich fahre zu meiner Schwester. زه د خپلې خور کور ته ځم | Ich fahre nach meiner Schwester. |
| Wir fahren in die Schweiz. مونږ سويس ته ځو | Wir fahren nach Schweiz. |
| Wir fahren in ein fremdes Land. مونږ يو بهرني هيواد ته ځو | Wir fahren nach einem fremden Land. |
| Wir fahren in den Urlaub. مونږ د تفريح لپاره په رخصتی ځو | Wir fahren nach/zu Urlaub. |
| Wir fahren nach links. مونږ کيڼ خوا ته ځو | Wir fahren links. |

| | |
|---|---|
| Wir fahren zur linken Seite. مونږ کين اړخ ته ځو | Wir fahren nach linken Seite. |
| Ich gehe ins Kino. زه سينما ته ځم | Ich gehe Kino. |
| Wir fahren an die Nordsee. مونږ د شمال بحر ته ځو | Wir fahren nach Nordsee. |
| Er fährt an den See. هغه لوى ډنډ ته ځي | Er fährt nach See. |

| Anfang, am Anfang, zu Anfang | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Er starb Anfang Mai 2015. هغه د مي مياشتي په پيل کي ومړ | Er starb im Anfang Mai 2015. |
| Das geschah am Anfang des 20. Jahrhunderts. دا د شلمي پيړى په پيل کي پيښ شو | Das geschah im Anfang des Jahrhunderts. |
| Er war von Anfang an dabei. هغه د پيل راهيسي پکي برخه درلودله | Er war von Anfang dabei. |
| Aller Anfang ist schwer. د هر څه پيل گران وي | All Anfang ist schwer. |

| träumen | |
|---|---|
| richtig صحيح | falsch غلط |
| Ich habe von dir geträumt. ما ته په خوب کي وليدلي | Ich habe dich geträumt. |

**unten** oder **unter?**

| unter | unten |
|---|---|
| Das Buch liegt unter dem Kopfkissen. کتاب د بالښت لاندي پروت دى | Das Auto fährt nach unten. موټر ښکته خوا ته ځي |
| Mein Computer steht unter dem Tisch. زما کمپيوټر د ميز لاندي ايښى دى | Mein Auto steht da unten. زما موټر په دي لاندي ځاى کي ولاړ دى |
| Ich wohne unter meinem Bruder. زه د خپل ورور (د کور) لاندي اوسيږم | Ich wohne unten. زه لاندي اوسيږم |

**über** oder **oben?** **پورته يا دپاسه؟**

| über | oben |
|---|---|
| Mein Bruder wohnt über mir. زما ورور زما (د کور) د پاسه اوسيږي | Mein Bruder wohnt oben. زما ورور پورته اوسيږي |
| Der zweite Stock liegt über dem ersten Stock. دوهم پوړ د لومړي پوړ دپاسه دى | Dort oben auf dem Dach sitzt eine Taube. هلته پورته د بام په سر يوه کوتره ناسته ده |
| Das Flugzeug fliegt über die Stadt. الوتکه د ښار دپاسه الوزي | Hoch oben am Himmel flog ein Adler. پورته په اسمان کي يو گربت (عقاب) والوتو |
| Die Lampe hängt über dem Tisch. څراغ د ميز دپاسه ځوړند دى | Er schaute nach oben zur Lampe. هغه پورته څراغ خواته وکتل |

| | |
|---|---|
| Tränen liefen ihr über das Gesicht.<br>د هغې په مخ باندې اوښکې بهېدلې | Sie liegt da oben und weint.<br>هغه هلته پورته پرته ده او ژاړي |
| Der Major steht über dem Hauptmann.<br>جګړن له جګتورن نه په درجه کې لوړ دی | Der Befehl kam von oben.<br>امر له پاسه راغی |
| | |
| Er kletterte über die Mauer.<br>هغه په دېوال باندې وختو | Der Weg nach oben ist jetzt offen.<br>پورته خوا ته لار اوس خلاصه ده |
| Über der Stadt lag Nebel.<br>د ښار دپاسه لړه وه | Da oben auf dem Berg steht ein Mann.<br>هلته پورته د غره په سر يو سړی ولاړ دی |

**hinten** oder **hinter?** **شاته**

| hinten | hinter |
|---|---|
| Kinder sollten im Auto hinten sitzen.<br>ماشومان باید په موټر کې شاته کېني | Das Kind sitzt im Auto hinter dem Fahrer.<br>ماشوم په موټر کې د ډرېور شاته ناست دی |
| Du hast hinten auf der Jacke einen Fleck. ستا د کرتۍ شاته یو داغ دی | Hinter dem Haus steht eine große Tanne. د کور شاته د غرنځي يوه لويه ونه ده |
| Er hat mich von hinten gestoßen.<br>هغه زه د شا له خوا پورې ووهلم | Dann hat er sich hinter der Tür versteckt. بیا یې ځان د دروازې شاته پټ کړو |
| Der Wind kommt von hinten.<br>باد د شا له خوا راځي | Die Sonne verbirgt sich hinter den Wolken. لمر د وريځو شا ته پټ دی |
| Das Haus hat hinten einen zweiten Ausgang. د کور شاته يوه بله د وتلو لار ده | Die Garage liegt hinter dem Haus.<br>ګراج د کور شاته دی |
| Den Schlüssel habe ich da hinten gefunden.کيلي ما هلته په شاتيني ځای کې پيدا کړه | Das Buch ist hinter den Tisch gefallen.<br>کتاب د ميز شاته غورځېدلی دی |
| Dort hinten steht ein Hund.<br>هلته شاته يو سپی ولاړ دی | Hinter dir steht der Hund.<br>ستا شاته يو سپی ولاړ دی |
| Wir warten hinten im Wartezimmer.<br>مونږ شاته د انتظار په کوټه کې انتظار وباسو | Wir warten in der hinteren Reihe.<br>مونږ په شاتيني کتار کې انتظار وباسو |

**nah** oder **eng** **نږدې**

| nah | eng |
|---|---|
| Es ist kein Geheimnis, dass mein Onkel mir nah steht. دا کوم پټ راز نه دی چې زما تره (کاکا) ما ته په زړه کې نږدې دی | Sie stehen in engem Kontakt miteinander. هغوی له يو بل سره نږدې اړيکې لري |
| mit jemandem nah verwandt sein<br>له يو بل سره نږدې خپلوي درلودل | mit jemandem eng verwandt sein<br>له يو بل سره نږدې خپلوي درلودل |
| ein naher Familienangehöriger<br>د کورنۍ يو نږدې غړی | eng befreundete Familien<br>نږدې ملګرتوب لرونکي کورنۍ |
| Nun ist die Hochzeit schon ganz nah.<br>اوس نو د واده وخت ډېر رانږدې شوېدی | Das Programm war zeitlich sehr eng.<br>د پروګرام وخت ډېر لږ و |

| | |
|---|---|
| Sie sind sich menschlich nahegekommen. د انسانیت له اړخه هغوی یو بل ته ورنږدې شویدي | sich eng anfreunden له یو بل سره نږدې ملګری کېدل |
| Sie sind einander in der letzten Zeit nähergekommen. په دې وروستي وخت کې هغوی یو بل ته نږدې شویدي | Sie stehen sehr eng beieinander. هغوی یو بل سره ډېر ډېر نږدې ولاړ دي |
| Nun kommen wir der Sache schon näher. اوس نو موضوع ته مونږ نږدې کیږو | Zur Hochzeit kommt nur der engste Freundeskreis. واده ته تش نږدې ملګري راځي |
| Ich war dem Tode nahe. زه مرګ ته نږدې شوی وم | Sein engster Freund ist gestorben. د هغه ډېر نږدې ملګری مړ شوی دی |
| Meine Cousine und mein Vetter sind nahe Verwandte. زما د تره لور او زما د تره زوی له یو بل سره نږدې خپلوي لري | Die beiden Länder pflegen enge wirtschaftliche Beziehungen. دا دواړه هېوادونه نږدې اقتصادي اړیکي لري |

**hart** oder **fest**

| hart | fest |
|---|---|
| Hartes Holz lässt sich schlecht schnitzen. كلك لرګی په سختی کښل کیږي | Die Schrauben sitzen fest. پیچونه ټینګ نښتي دي |
| Das schützt vor einem harten Aufprall. دا د كلكي لګېدنې (كلك ټکر) مخنیوی کوي | Der Schmutz sitzt fest an den Schuhen. چټلي په بوټانو کي کلکه نښتی ده |
| Die Polizei griff hart durch. پولیسو کلکه مداخله وکړه | Ich bin fest davon überzeugt. زه په دې ټینګ باور لرم |
| Die vielen Enttäuschungen haben ihn hart gemacht. ډېرو مآیوسیو هغه كلك کړو | Du hast zu fest zugeschlagen. تا پخپل چلند کي له حده زیاتی وکړو |
| Das Brot ist trocken und hart. دا ډوډی وچه او کلکه ده | Der Zahn sitzt noch ganz fest im Kiefer. غاښ په جامنه کي لا ټینګ پاتي دی |
| Der Boden ist hart gefroren. مځکه په کنګل و هلو کله شوېده | Eis ist Wasser in festem Zustand. کنګل اوبه دي چي په كلك حالت کي دي |
| Die Kartoffeln sind noch hart. دا کچالان لا كلك دي | Die Marmelade ist gar nicht fest geworden. مربا هیڅ کلکه شوې نده |
| Sie fasst die Kinder zu hart an. هغه ماشومان ډېر كلك نیسي | Er drückte sein Kind fest an sich. هغه خپل ماشوم پخپله سینه ټینګ وخېبېښو |
| Das ist eine  harte Arbeit. دا یو سخت کار دی | Das ist eine feste Anstellung. دا د اوږدي مودي لپاره مقرري ده |
| Das sind harte Worte. دا كلك الفاظ دي | Das ist ein festes Versprechen. دا یوه ټینګه وعده ده |
| Der Patient kann kein hartes Brot essen. ناروغ کله ډوډی نشي خوړلی | Der Patient muss feste Nahrung zu sich nehmen. ناروغ باید كلك شان (غیر مایع) خواړه وخوري |

## tief, niedrig, nieder

| tief | niedrig, nieder |
|---|---|
| Das Haus liegt tiefer als die Straße. دا کور له سړك نه ټيټ دی | Die Kellerdecke ist sehr niedrig. د تاکاو چت ډېر ټيټ دی |
| Mein Bruder wohnt eine Etage tiefer. زما ورور يو پوړ ښکته اوسيږي | Das Haus hat ein niedriges Dach. د دې کور چت ټيټ دی |
| Der Brunnen ist sehr tief. دا کوهی ډېر ژور دی | Sie bauen eine niedrige Mauer. هغوی يو ټيټ ديوال جوړوي |
| eine fünf Meter tiefe Grube يوه پنځه متره ژوره کنده | Die Äste hängen niedrig. ښاخونه ټيټ ځوړند دي |
| Tief im Dschungel leben gefährliche Tiere. دننه په ځنګله کې خطرناکه ځناور دي | Die Schwalben fliegen niedrig. توتکۍ ټيټې الوزي |
| Du wirst deine tiefe Trauer mit der Zeit überwinden. ستا ژور خپګان به د وخت په تېرېدو سره ورك شي | Sie waren von niedriger Gesinnung. هغوی ټيټ او پست افکار درلودل |
| Er steckt tief in Schulden. هغه په پوروونو (قرضونو) کې ډوب دی | Ich habe einen niedrigen Blutdruck. زما د وينې فشار ټيټ دی |
| Ich kann mich nicht tief bücken. زه ځان په کړوپولو نشم ټيټولی | Die Preise sind dort sehr niedrig. هلته نرخونه ډېر ټيټ دي |
| Bei diesen tiefen Temperaturen kann es schneien. د حرارت په دومره ټيټو درجو کې کېدی شي چې واوره وشي | In den Altbauten sind die Türen niedrig. په زړو ودانيو کې دروازې ټيټې دي |
| Er hat tief liegende Augen. د هغه سترګې ژورې دي | Er war nur ein niederer Beamter. هغه يو د ټيټې رتبې مأمور و |
| tief nachdenken ژور سوچ يا چورت وهل | Nieder mit dem Krieg! جګړه دې ورکه شي |
| Er liegt in tiefem Schlaf. هغه په ژور خوب ويده دی | Mit einem niederen Auto hast du doch keine Übersicht im Verkehr. په يو ټيټ موټر کې خو ته ترافيك نشې ليدلی |
| bis tief in die Nacht hinein تر نيمې شپې پورې | Den niederen Lichtschalter können auch die Kinder erreichen. د ټيټ برق سوچ ته د ماشومانو لاس هم رسېدی شي |
| tief in Gedanken versunken sein په ژور فکر کې ډوب اوسېدل | Der Zaun war so niedrig, dass der Hund darüber springen konnte. کټاره دومره ټيټه وه چې سپي ورنه ټوپ وهلی شو |

## zart, sanft, weich, schwach

| zart | sanft |
|---|---|
| die zarte Haut eines Kindes د يو ماشوم تنکۍ پوستکی | Sie hat ein sanftes Herz. د هغې زړه نازکه دی |
| zarte Knospen تنکۍ غوټۍ | sanft reden په پسته ژبه غږېدل |

| | |
|---|---|
| im zarten Alter von 5 Jahren<br>د پنځه کلنۍ په تنکي عمر کې | eine sanfte Berührung<br>ډېر په پوست ډول په يو شي لاس لګېدنه |
| ein zartes/sanftes Gemüt پوست مزاج | Ich massierte seinen Nacken sanft.<br>ما د هغه څټ په پوست ډول چاپي کړو |
| zartes Fleisch تنکۍ غوښه | ein sanfter Schlaf ارام خوب |
| Dieser Film ist nichts für zarte Seelen.<br>دا فلم د کمزورو زړونو لپاره ندی | Er ist sanft eingeschlafen.<br>هغه په ارامه په ابدي خوب ويده شو (مړ شو) |

| weich | schwach |
|---|---|
| Er ist für diesen Job zu weich.<br>د دې کار لپاره هغه ډېر کمزورى دى | Er ist schon alt und schwach.<br>هغه زوړ او کمزورى دى |
| Hier sitzt man weich.<br>دا ځای د ناستې لپاره ښه پوست دی | ein schwaches Herz haben<br>يو کمزورى زړه درلودل |
| ein weiches Gemüt/Herz haben<br>پوست مزاج درلودل | Er hat schwache Nerven.<br>د هغه اعصاب کمزوري دي |
| Er ist ein sehr weicher Mensch.<br>هغه يو پوست انسان دى | Er hat einen schwachen Willen.<br>د هغه اراده کمزورې ده |
| Die Creme macht die Haut weich.<br>دا کريم پوستکى پستوي | Der Plan hat einige schwache Stellen.<br>په دې پلان کې يو څو کمزوري ټکي پراته دي |
| der schöne weiche Ton dieses Instrumentes د دې آلې پوست غږ | eine schwache Beteiligung<br>د لږو کسانو ګډون |
| ein weicher Stoff يوه پسته ټوټه | schwacher Tee نرى چاى، اوبلن شوى چاى |
| Ihm wurde weich in den Knien.<br>د هغه پښې سستې شوې | Die Mannschaft hat schwach gespielt.<br>دې ټيم کمزورې لوبه وکړه |
| Das Bett ist mir zu weich.<br>دا کټ ما لپاره ډېر پوست دی | Die Blumen duften schwach.<br>د دې ګلانو بوي ډېر لږ دى |
| eine weiche Stimme haben<br>يو پوست غږ درلودل | Der Saal war nur schwach besetzt.<br>دې تالار ته ډېر لږ کسان ورغلي وو |
| Das Gemüse ist noch nicht weich.<br>دا سابه لا پاسته شوي ندي | Bei Kuchen werde ich immer schwach.<br>زه چې کېك ووينم، نو تل ورته سست شم |

**selbst** oder **selber** **خپله، پخپله**

اساساً دواړه لغات يوه مانا لري او په هممانيز يا مترادف ډول کارول کېدی شي. کوم توپير چې يکې پروت دی، هغه دا دی چې په ليکنه کې ډېر وخت له (selbst) نه او په خبرو کې له (selber) نه کار اخيستل کيږي.

| selbst | selber |
|---|---|
| Du selbst hast es mir gesagt.<br>تا خپله ما ته دا خبره وکړه | Er will immer alles selber machen.<br>هغه غواړي چې هرڅه تل پخپله وکړي |
| Obwohl das Haus selbst sehr schön ist, möchte ich dort nicht wohnen.<br>سره له دې چې دا کور پخپله ډېر ښايسته دی، خو زه نه غواړم چې يکې واوسيږم | Kleinere Reparaturen mache ich selber. واړه ترميمات زه پخپله کوم |

| | |
|---|---|
| Das Kind kann schon selbst laufen.<br>ماشوم اوس پخپله ګرځېدلی شي | Das kannst du selber machen.<br>ته دا پخپله کوی شي |
| Sie denkt immer nur an sich selbst.<br>هغه تل د ځان په فکر کې ده | Mach das selber. ته دا پخپله وکړه |
| Das versteht sich von selbst.<br>دا یوه طبیعي خبره ده، دا باید همداسې وي | Selber kochen macht Spaß.<br>پخپله پخلي کولو باندې د سرې ساعت بنه تېرېږي |

کله چې یو ماشوم بل ماشوم ته ووایي چې (ته بې عقله يې = Du bis doof)، نو په دې وخت کې بل ماشوم ورته ځواب ورکوي چې (ته پخپله = selber) .

خو کله کله په یوې جملې کې (selbst) او (selber) دواړه کارول کېدی شي، د بېلګې په توګه:

| |
|---|
| Ich selber (*und kein anderer*) habe ihm selbst (*und keinem anderen*) das Buch gegeben. ما شخصاً (یعني بل چا نه پخپله ما) هغه ته (یعني بل چاته نه پخپله هغه ته) دا کتاب ورکړو |

د (selbst) شاته کله کله یو بل لغت تړل کېدی شي چې له دې نه بیا یو بل نوی لغت جوړېږي، لکه:

| |
|---|
| selbst + Bestimmung = Selbstbestimmung خپل اختیاري ، خود ارادیت |

خو د (selber) شاته کوم لغت نشي تړل کېدی. نور مثالونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Selbstmord<br>ځان وژنه | Selbstbewußtsein<br>په ځان ډاډ | Selbstkontrolle<br>د ځان کنټرول | Selbstvertrauen<br>په ځان اعتماد |
| selbstgebacken<br>پخپله پوخ کړی | selbstgeschrieben<br>پخپله لیکلی | selbständig<br>پخپل واك | selbsttätig<br>پخپله، اتوماتیك |

سره له دې چې د (selber) استعمال په ادبي ژبه کې معمول ندی، خو د جرمني ژبې وتلي شاعر (Heinrich Heine) بیا هم ورنه په شعر کې کار اخیستی دی :

| | |
|---|---|
| Sie liebten sich beide, doch keiner<br>Wollt es dem andern gestehn;<br>Sie sahen sich an so feindlich,<br>Und wollten vor Liebe vergehn.<br>Sie trennten sich endlich und sahn sich<br>Nur noch zuweilen im Traum;<br>Sie waren längst gestorben,<br>Und wussten es selber kaum. | په یو بل مین وو دواړه<br>میني بنودلو نه منکر وو دواړه<br>دبنمن په شاني یې کتلو دواړو<br>له ډېرې میني فنا کېدل وو دواړه<br>آخر جدا له یو بل شو دواړه<br>لیدل کتل وو په خوبونو دواړه<br>له ډېره وخته مړه شوي دواړه<br>له خپلي مړیني بې خبره دواړه |

| im Urlaub oder in Urlaub | |
|---|---|
| Ich habe jetzt Urlaub.<br>اوس زما رخصتي ده | Ich fahre jetzt in den Urlaub.<br>زه اوس په رخصتی کې یو تفریحي ځای ته ځم |
| Ich bin jetzt in Urlaub.<br>اوس زما رخصتي ده (یعني دا چې رخصتي مې ده، خو چېرته په سفر نه یم تللی) | Ich bin jetzt im Urlaub.<br>زه پخپله رخصتی کې په سفر تللی یم او همدا وس په کور کې نه بلکې په یو تفریحي ځای کې یم |

## machen oder machen lassen?

کله چې سړي په پښتو کې له يو چا نه پوښتنه وکړي چې:

| | | |
|---|---|---|
| غنم دې دل (مېده) کړل؟ | وېښتنه دې بیاتي کړل؟ | موټر دې ترمیم کړو؟ |

ځواب کېدی شي چې داسې وي چې :

| | | |
|---|---|---|
| هو، غنم مې دل کړل | هو وېښتنه مې بیاتي کړل | هو موټر مې ترمیم کړو |

دا څرګنده نشوه چې ما غنم پخپل لاس دل کړل او که غنم مې ژرندې ته یووړل او ژرنده ګړې دل کړل. همدا شان دا څرګنده نشوه چې وېښته ما پخپل لاس بیاتي کړل او که زه نايي ته ولاړم او نايي زاته وېښتنه بیاتي کړل. همدا شان دا څرګنده نشوه چې دا موټر ما پخپل لاس ترمیم کړو او که کوم مستري یا کوم ورکشاب دا موټر ترمیم کړو.
په جرمني ژبه کې پخپل لاس د یو شي جوړول او د یو بل چا له خوا د یو شي جوړول په دوه مختلفو فعلونو په ډېر څرګند ډول بیانېدلی شي، په لاندې ډول:

| machen = etwas selbst tun<br>يو کار پخپله کول | etwas machen lassen<br>يو کار په بل چا باندې کول |
|---|---|
| Hast du den Weizen gemahlen?<br>تا غنم (پخپله) دل کړل؟ | Nein, ich habe den Weizen mahlen lassen. نه، غنم مې په بل چا باندې دل کړل |
| Hast du dir die Haare geschnitten?<br>تا وېښته دې (پخپله) بیاتي کړل؟ | Nein, ich habe mir die Haare schneiden lassen. نه، ما وېښته مې په بل چا باندې بیاتي کړل |
| Hast du das Auto repariert?<br>موټر تا (پخپله) جوړ کړو؟ | Nein, ich habe das Auto reparieren lassen. نه، ما موټر په بل چا باندې جوړ کړو |
| Bist du nach Hause gefahren?<br>ته کور ته (پخپله) په موټر کې ولاړې؟ | Nein, ich habe mich fahren lassen.<br>نه، زه بل چا په موټر کې یووړم |
| Hast du dich selbst operiert?<br>تا ځان پخپله عملیات کړو؟ | Nein, ich habe mich operieren lassen.<br>نه، ما په بل چا باندې ځان عملیات کړو |
| Ich habe den Kindern einen Saft gebracht.ما پخپله ماشومانو ته یو شربت راوړ | Ich habe den Kindern einen Saft bringen lassen. ما په یو بل چا باندې ماشومانو ته شربت راوړ |
| Bitte drücken Sie hier ganz fest.<br>تاسو پخپله دغه ځای ټینګ وځبېښئ | Lassen Sie jemanden bitte hier ganz fest drücken. تاسو یو څوک پرېږدئ چې دغه ځای ښه ټینګ وځبېښي |

## stellen oder legen

په جرمني ژبه کې د (اېښودل = legen) او د (ودرول = stellen) تر مینځ ډېر توپیر کېږي.
(اېښودل = legen) په جرمني ژبه کې هغه وخت کارول کېږي چې يو شی په مځکه وغملول شي، لکه:
(برستن په کټ باندې کېږده !Leg die Decke auf das Bett)

(ودرول = stellen) هغه وخت کارول کېږي چې يو شی ونه غملول شي، بلکې لکه پخپلو پښو ودرول شي، لکه: ته دا چوکی هلته کېږده (!Stell den Stuhl dort hin)
په پښتو ژبه کې له دومره دقت نه کار نه اخیستل کېږي، د ډېرو شیانو لپاره چې هغه اصلا ودرول کېږي، په پښتو کې ورته ویل کېږي چې (اېښودل کېږي). مثال:

Stell die Flasche auf den Tisch! ته دا بوتل هلته کېږده

یو بوتل اصلاً ودرول کیږي، خو په پښتو کې بیا هم د ودرولو په ځای (ایښودل) کارول کیږي. په جرمني ژبه کې هغه وخت (ایښودل) ویل کیږي چې یو بوتل په اوږدو وغځول شي، په دې ډول:

Leg die Flasche quer auf den Tisch! ته بوتل په اوږدو په مېز کېږده

نور مثالونه به لاندې وګورو:

| stellen | legen |
|---|---|
| Stell das Glas auf den Tisch! ته ګیلاس په مېز باندې کېږده | Leg das Glas auf den Tisch! ته ګیلاس په مېز باندې څملوه یا په ملاستې کېږده |
| Wo soll ich den Regenschirm hin-stellen? زه چترۍ چېرته کېږدم؟ | Wo soll ich den Regenschirm ~~hinlegen~~ hinstellen? زه چترۍ چېرته څملوم یا په ملاستې کېږدم |
| Wo hast du den Tisch hingestellt? مېز تا چېرته کېښوده؟ | Wo hast du den Tisch ~~hingelegt~~ hingestellt? تا مېز چېرته څملو یا په ملاستې کېښود؟ |

| | |
|---|---|
| Wo stellst du den Schrank hin? ته الماری چېرته ودروې؟ | Wo ~~legst~~ stellst du den Schrank hin? ته الماری چېرته څملوې یا په ملاستې ږدې؟ |

| stehen | liegen |
|---|---|
| Wo steht der Schrank? الماری چېرته ده؟ | Wo ~~liegt~~ steht der Schrank? الماری چېرته پرته ده |
| Die Kanne steht auf dem Tisch. چاینک په مېز باندې ایښودل شوي دي | Die Kanne liegt auf dem Tisch. چاینک په مېز باندې پروت دي |
| Das Buch steht im Regal. کتاب په الماری کې ایښودل شوېدی | Das Buch liegt im Regal. کتاب په الماری کې په ملاستې پروت دی |

**der, die, das gleiche** oder **derselbe, dieselbe, dasselbe?**

| gleiche یو بل ته ورته یا مشابه | selbe همغه یو |
|---|---|
| Josef hat ein schwarzes Auto. یوسف یو تور موټرلري<br>Jakob hat auch ein schwarzes Auto. یعقوب هم یو تور موټر لري<br>Josef und Jakob haben das gleiche Auto. یوسف او یعقوب یو شان موټر لري | Josef ist am 01.01.2000 geboren. یوسف په (01.01.2000) کال کې زیږیدلی دی<br>Jakob ist auch am 01.01.2000 geboren. یعقوب هم په (01.01.2000) کې زیږیدلی دی<br>Josef und Jakob haben denselben Geburtstag. د یوسف او د یعقوب د زیږیدنې ورځ همغه یوه ده |
| Sie hat die gleiche Figur wie ihre Schwester. د هغې اندام لکه د هغې د خور د اندام په شان دی | Er trägt denselben Anzug wie gestern. هغه نن همغه دریشي اغوستې ده چې پرون یې اغوستې وه |
| Wir haben die gleichen Sorgen. زمونږ غمونه یوشان دي | Er stammt aus demselben Dorf wie ich. هغه د همغه کلي دی چې زه د هغه کلي یم |

| | |
|---|---|
| Ich benütze eine harte Zahnbürste.<br>زه د غاښونو له يو كلك برس نه كار اخلم | Du benützt auch eine harte Zahnbürste.<br>ته هم د غاښونو له يو كلك برس نه كار اخلې |
| Ich benütze die gleiche Zahnbürste wie du, aber niemals dieselbe Zahnbürste.<br>زه لكه ستا د غاښونو برس په شان له يو برس نه كار اخلم، خو هېڅكله له همغه يو برس نه كار نه اخلم | |

| | |
|---|---|
| ځنګه چې په پورتنيو جملو کې ليدل کيږي (das gleiche) د دوه يا ډېرو شيانو ورته والی يا شباهت ښکاره کوي. دا په دې مانا چې هغه شيان چې يو بل ته ورته والی لري، شمېره يې ډېره ده. خو (selbe) تل همغه يو شی ښايي. په بل عبارت (selbe) تش همغه يو شی دی چې له ټولو سره شريك دی. | توضيحات |

**frei sein** oder **frei haben**

سره له دې چې (frei) په مانا کې (ازاد يا فارغ) ته وايي، خو له (haben) سره يوه مانا او له (sein) سره بله مانا لري. دا به په لاندې برخه کې وګورو:

| frei sein | frei haben |
|---|---|
| Ich bin noch frei.<br>ما لا تر اوسه واده ندی کړی، زه ښځه نلرم | Ich habe heute frei. زه نن رخصت يم |
| Ich bin so frei! واك او اختيار زما خپل دی | Sie haben den Rücken frei für Ihre tägliche Arbeit. د خپل ورځيني كار لپاره ستاسو لاس ازاد دی (هيڅ ستونځه نشته) |
| Der Gefangene ist wieder frei.<br>بندي بېرته ازاد شو | Wir haben noch zwei Betten frei.<br>زمونږ په ځای کې دوه کټونه لا تش دي |
| Ist dieser Platz noch frei?<br>دا ځای لا تش دی؟ | Ich habe nie eine freie Minute.<br>زما هېڅكله يوه دقيقه هم وزګاره نده |
| Heute ist mein freier Tag.<br>نن زما د رخصتۍ ورځ ده | Der Zug hat freie Fahrt.<br>د اورګاډي د تللو لپاره ازاده ده |
| Der Eintritt ist für Schüler und Studenten frei. د زده كوونكو او محصلينو لپاره د ننوتو تكس وړيا دی | Schüler und Studenten haben freien Eintritt. د زده كوونكو او محصلينو لپاره د ننوتو تكس وړيا دی |

**zehntägig** oder **zehntäglich**

ظاهرآ داسې ښکاري چې دواړه لغات به همغږي يا مترادف واسي، خو په دې کې لوی توپير پروت دی.
(zehntägig) په بشپړ ډول د لس ورځو يوه پېښه ده، يعني دا پېښه لس ورځې دوام کوي.
(zehntäglich) يوه ورځنۍ پېښه ده چې په هرو لسو ورځو کې يوځل کيږي. مثالونه به لاندې وګورو:

| zehntägig (Dauer) دوام | zehntäglich (Intervall) د وخت فاصله |
|---|---|
| Er ist auf einer zehntägigen Reise.<br>هغه د لس ورځو لپاره په سفر تللی دی | eine zehntägliche Konferenz<br>يو كنفرانس چې په هر لسو ورځو کې يوځل كيږي |

په دې ډول نور مثالونه شته چې د يوې پېښې د دوام او د يوې پېښې د بيابيا کېدلو د فاصلې ښودلو بيان پکې کيږي چې په لاندې برخه کې به يې وګورو:

| Dauer د يوي پېښي دوام | Intervall د يوي پېښي د بيابيا کېدلو فاصله |
|---|---|
| Ich habe eine zehnjährige Tochter.<br>زه يوه لس کلنه لور لرم | Die Konferenz findet zehnjährlich statt. دا کنفرانس په هرو لس کالو کې يوځل کيږي |
| Wir machen jetzt eine zehnminütige Pause. مونږ اوس د لسو دقيقو لپاره دمه کوو | Der Bus fährt zehnminütlich.<br>سروېس په هرو لسو دقيقو کې يوځل ځي |
| Das ist eine zweistündige Sendung.<br>دا يوه دوه ساعتيزه خپرونه ده (دوه ساعته دوام کوي) | Die Tabletten sollen zweistündlich eingenommen werden. دا ګولۍ بايد په هر دوه ساعتو کې يوځل وخوړل شي |
| Das freitägige Spiel war sehr gut.<br>د جمعې د ورځې لوبه ډېره ښه وه | Alle freitäglichen Spiele sind sehr interessant. هغه ټولې لوبې چې هره جمعه کيږي، ډېرې په زړه پورې دی |

**was für ein** oder **welcher, welche, welches**

| was für ein | welcher, welche, welches |
|---|---|
| Was für eine Schule besuchst du?<br>ته څه شان ښوونځي ته ځې؟<br>Ich besuche ein Gymnasium.<br>زه يوې علي ليسې ته ځم | Mit welchem Auto fährst du in die Stadt? Mit dem Mercedes oder mit dem VW? ته په کوم موټر کې ښار ته ځې؟ په مېرخېډس کې او که فولکس واګون کې |
| Was für Medikamente nehmen Sie ein? Pflanzliche oder chemische? Ich nehme pflanzliche Medikamente ein.<br>تاسو څه شان درمل خورئ؟ د بوټو درمل او که کيمياوي درمل؟ زه د بوټو درمل خورم | Welchen Tee trinken Sie? Den grünen oder den schwarzen? Ich trinke den grünen! تاسو کوم چای څښئ؟ تور چای او که شين چای؟ زه شين چای څښم |

| | |
|---|---|
| له (was für ein) نه هغه وخت کار اخيستل کيږي چې د دوه يا ډېرو شيانو تر مينځ ستر توپير وي. يا په درجه کې يا په جوړښت يا په کوم بل شي کې. پوښتنه هم د درجې، د جوړښت او د نوعيت په برخه کې وي. په لومړی جمله کې مطلب دا دی چې ته د کومې درجې ښوونځي ته ځې، يعنې ابتدايي، منځنی او که عالي ښوونځی ته چې د درې واړو تر مينځ ډېر توپير پروت دی؟ همدا شان په دوهم مثال کې پوښتنه کيږي چې د بوټو درمل خورې او که کيمياوي درمل؟ دا ښرګنده ده چې د بوټو او د کيمياوي درمل ترمينځ ډېر توپير دی.<br>له (welch) نه هغه وخت کار اخيستل کيږي چې د يو شي د جوړښت يا د نوعيت پوښتنه نه وي. د جوړښت او د نوعيت پوښتنه يې ښرګنده وي. دا ښرګنده ده چې دلته دوه موټرونه شته او څه چې ناښرګند دي، هغه دا پوښتنه ده چې ته په کوم موټر کې ځې. په دوهمه جمله کې دا ښرګنده ده چې دلته دوه چايونه شته چې يو يې تور دی او بل يې شين. کوم شی چې ښرګند نه دی هغه دا دی چې ته د دې ښرګندو چايو نه کوم يو يې څښې. | توضيحات |

**Was mache ich damit?/ Was soll ich damit machen?**

| Was mache ich damit? | Was soll ich damit machen? |
|---|---|
| Was mache ich mit dem Stein?<br>زه نيوهېږم چې په دې تيږې څه وکړم | Was soll ich mit Stein machen?<br>دا تيږه زما پکارې نده، دا زما په درد نه خوري،<br>نو زه په دې څه وکړم؟ |

| | |
|---|---|
| توضيحات | کله چې سړی په پښتو کې وايي چې دا شی زما پکار ندی، نو سړی وايي چې (زه دا څه کړم، زه په دې څه وکړم). دا مطلب به د غني خان په دې شعر کې وګورو: |

| | |
|---|---|
| مقبره د مړو ډکه ترېنه ښه ده | د جاهلو بې غېرتو ښار به څه کړم |
| چې زما د قام جنډه پرې نه رپېږي | د بل چا د غره په شان حصار به څه کړم |

په پورتني شعر کې غني خان وايي چې د جاهلو او بې غېرتو ښار زما پکار ندی، زه يې نه غواړم، او په لاندينې شعر کې هم وايي چې د بل چا ستره کلا زما پکار نده چې زما د قام جنډه پرې ونه رپيږي. نو څنګه چې مونږ ګورو، په پښتو (دا به زه څه کړم؟، زه په دې څه وکړم؟) دې ته وايي چې دا شی زما پکار ندی. نو د دې مطب لپاره دا غلطه ژباره ده چې سړی ووايي چې (Was mache ich damit?) . نو د يو شي د نه په درد خوړلو د مطلب لپاره بيا له (sollen) نه کار اخيستل کيږي او ويل کيږي چې: (Was soll ich damit machen?) .

# Die häufigsten Sprachfehler der Deutschen
# هغه ژبنۍ تېروتنې چې جرمنيان يې پخپله کوي

| richtig صحيح | falsch غلط |
|---|---|
| Dieser Ball ist größer als jener.<br>دا توپ له هغه بل توپ نه غټ دی | ~~Dieser Ball ist größer wie jener.~~ |
| Ich bin älter als du. زه له تا نه مشر يم | ~~Ich bin äter wie du.~~ |
| Die am besten aussehende Frau…<br>له ټولو نه ښه ښکاره کېدونکې ښځه | ~~Die gut aussehendste Frau…~~ |
| Das ist das meist gelesene Buch.<br>دا له ټولو نه ډېر لوستل شوی کتاب دی | ~~Das ist das meist gelesenste Buch.~~ |
| Der erstgeborene Sohn…<br>هغه زوی چې لومړی زېږېدلی دی | ~~Der erstgeborenste Sohn…~~ |
| Die rosa Blume… ګلابي رنګه ګل | ~~Die rosae Blume …~~ |
| Er ist der einzige Mensch, der …<br>هغه يوازينی انسان دی چې … | ~~Er ist der einzigste Mensch, der …~~ |
| Das sind verschiedene Geschmäcke. دا مختلف ذوقونه دي | ~~Das sind verschiedene Geschämcker.~~ |

| | |
|---|---|
| Das habe ich allein gemacht. دا مې په يوازې ځان وکړو | Das habe ich alleine gemacht. |
| Sie wohnt allein in dem großen Haus. هغه په دې لوی کور کې يوازې اوسيږي | Sie wohnt alleine in dem großen Haus. |
| Am Freitag, den 3. Mai, haben wir geschlossen. د جمعې په ورځ، د مې په درېمه زمونږ ځای تړلی دی<br>Nächsten Freitag, den 3. Mai, haben wir geschlossen. د راتلونکې جمعې په ورځ، د مې په درېمه زمونږ ځای تړلی دی | Am Freitag, dem 3. Mai, haben wir geschlossen.<br><br>Nächsten Freitag, dem 3. Mai, haben wir geschlossen |
| So viel wie nötig. څومره چې ورته اړتيا وي | Soviel als nötig. |
| So bald wie möglich. هرڅومره ژر چې کېدی شي | So bald als möglich. |
| Märchen aus Tausendundeiner Nacht. د يوزر او يومې شپې افسانې | Märchen aus Tausendundeins Nächten |
| Die Schuhe meiner Mutter … زما د مور بوټان | Meine Mutter ihre Schuhe … |
| Das hab ich schon gemacht. دا کار مې کړی دی | Das hatte ich schon gemacht gehabt. |
| Es wäre optimal, wenn … دا به له ټولو ښه وي چې ... | Das optimalste wäre, wenn … |
| Das geschah meines Wissens am … زما په فکر دا په دې نېټه وشو ... | Das geschah meines Wissens nach am …. |
| Ich stimme in keiner Weise zu. زه له دې سره په هېڅ شان موافقه نکوم | Ich stimme in keinster Weise zu. |
| Dein Argument ergibt keinen Sinn. ستا په دليل کې څه مفهوم نشته | Dein Argument macht keinen Sinn. |
| Das brauchst du mir nicht zu sagen. دې ته څه اړتيا نشته چې ته ماته دا ووايې | Das brauchst du mir nicht sagen. |
| Trotz des Regens sind wir Schwimmen gegangen. له باران سره سره مونږ لامبو ته ولاړو | Trotz dem Regen sind wir Schwimmen gegangen. |
| Der Sommer dieses Jahres. د دې کال اوړی | Der Sommer diesen Jahres. |
| Das geschah im Sommer letzten Jahres/ des letztes Jahres. دا د تېر کال په وړي کې پېښ شو | Das geschah im Sommer letztes Jahres. |
| Sprichst du die Sprache jenes Landes? ته د هغه هېواد په ژبه پوهېږې | Sprichst du die Sprache jenen Landes? |

| | |
|---|---|
| Ein Drittel der Studenten ist heute krank. د محصلینو دریمه برخه نن ناروغه ده | Ein Drittel der Studenten sind heute krank. |
| Ein Viertel der Zuschauer sind Frauen. د ننـدارچیـانو څلورمـه برخه ښځې دي | Ein Viertel der Zuschauer ist Frauen. |
| Ein Pfund sind 500 Gramm. یو پاو پنځه سوه ګرامه کیږي | Ein Pfund ist 500 Gramm. |
| O mein Schatz! O mein Kind. ای زما زړګیه (لالیه، جانانه) ، زما بچیه! | Oh mein Schatz! Oh mein Kind. |
| o ja, o doch هو (په مینه) ، هو ولې نه | oh ja, oh doch |
| Oh, wie ich das hasse! وای وای، له دې نه زما کرکه راځي | Oh, wie ich das hasse! |
| Er ist anscheinend krank. داسي ښکاري چي هغه ناروغ دی | Er ist scheinbar krank. د دې مانا دا ده چي هغه په ظواهرو کې ناروغ دی |
| Sie hat es scheinbar vergessen. هغه ځان داسي ښکاره کوی چي دا يي هېر شوېدی، خو په حقیقت کې هېر شوی ندي | Sie hat es anscheinend vergessen. د دې مانا دا ده چي داسي ښکاري چي دا په ریښتیا د هغې هېر شوېدی |
| Welche Kosten kommen beim Hauskauf auf mich zu? د کور د اخیستلو لپاره په ما څومره لګښت راځي؟ | Welche Unkosten kommen beim Hauskauf auf mich zu? |
| Viele Menschen vertrauen der Mundpropaganda durch Freunde. ډېر انسانان د ملګرو له خوا یوبل ته په اعلان یا په تبلیغ باندې باور کوي | Viele Menschen vertrauen der Mund-zu-Mund-propaganda durch Freunde. |
| Er will partout nicht mitkommen. هغه په هیڅ صـورت کـې نه غواړي چي له مونږ سره راشي | Er will per du nicht mitkommen. |
| Ich stamme aus Hamburg, genauer gesagt aus einem Dorf in der Nähe. زه د همبـورګ یم. که دقیق وویل شي، نو دا کلی د همبورګ تر څېرمه دی | Ich stamme aus Hamburg, beziehungsweise aus einem Dorf in der Nähe. |
| Alle Schüler waren dem Lehrer wohlgesonnen. ټولـو زده کـوونکـو د ښوونکي په برخه کې ښه نظر درلود | Alle Schüler waren dem Lehrer wohlgesinnt. |
| Sie ist sehr schön, hat schwarze Haare und arbeitet als Model. هغه ډېره ښایسته ده، تور ویښتنه لري، او د موډ څرګندونکي په توګه کار کوي | Sie ist sehr schön, hat schwarze Haare und arbeitet als Modell. |
| Meinetwegen brauchst du nicht zu kommen. زما له خاطره دې ته څه اړتیا نشته چي ته راشي | Wegen mir brauchst du nicht zu kommen. |

| | |
|---|---|
| Das ist Opas Hose. دا د بابا پطلون دی | Das ist Opa´s Hose. |
| Das habe ich nicht richtig verstanden. زه په دې سم پوه نشوم | Das habe ich nicht wirklich verstanden. |
| Als wir das hörten, standen wir Kopf. کله چې مونږ دا واورېدل، ورته هك حېران پاتې شولو | Als wir das hörten, standen wir Kopf. |
| Die Hebamme führte die Schwangere in den Kreißsaal. دايي امېندواره ښځه د ولادت خونې ته يووړله | Die Hebamme führte die Schwangere in den Kreissaal. |
| Die Regierung lizenzierte die Demokratische Union als neue Partei. د حکومت ديموکراتيك ترون ته د ګوند جواز ورکړو | Die Regierung lizensierte die Demokratische Union als neue Partei. |
| Ich habe angefangen. ما پيل وکړو | Ich bin angefangen. |
| Ich habe gesessen. زه ناست وم<br>Ich habe gestanden. زه ولاړ وم | Ich bin gesessen.<br>Ich bin gestanden. |
| … mit Teppichen behängte Wände دېوالونه چې قالينې پرې ځوړندې وي | … mit Teppichen behangene Wände |
| Meines Erachtens hat er recht. زما په آند د هغه خبره سمه ده | Meines Erachtens nach hat er recht. |
| Das ist eine Vortäuschung von Tatsachen. دا په تکی د يو واقعيت ښودل دي چې اصلا واقعيت نلري | Das ist Vortäuschung falscher Tatsachen. |
| Na, wennschon که همداسې وشي، نو څه پروا لري؟ يعنې هېڅ پروا نلري | Na, wenn schon. |
| wennschon, dennschon يا دې دا هېڅ نکيږي، او که کيږي نو سم دې وشي | wenn schon, denn schon |
| Das Paket wurde versandt. پارسل واستول شو | Das Paket wurde versendet. |
| Das Hörspiel wurde versendet/versandt. غږيزه ډرامه خپره شوه، نشره شوه | Das Hörspiel wurde versandt. |
| Albert-Einstein-Schule | Albert Einstein Schule<br>Albert Einstein-Schule |

## د پورتنيو تېروتنو په برخه کې توضيحات

| | |
|---|---|
| کله چې دوه شيان له يو بل سره پرتله کيږي، نو د پرتله کولو لپاره له (als) نه کار اخيستل کيږي. دلته د (wie) استعمالول غلط دي. دا شان جملې د جرمني په جنوبي برخه، يعنې په (Bayern) کې ډېرې مروجې دي، خو د ادب له اړخه دا يوه تېروتنه ده. | 1 |

| | |
|---|---|
| په داسي جملو کې لومړی له فعل نه د صفت په توګه کار اخیستل شوېدی چې دا کار اساسآ یو غلط کار دی. بیا دا صفت زیات کړی شوېدی، یعني له (Steigerung) نه کار اخیستل شوېدی.<br>په پورتنی جمله کې (aussehen) یو فعل دی چې ورنه (Partizip Präsens) جوړ شویدی، چې دا هېڅکله د صفت په شان نشي استعمالېدلی. د صفت د ډېر ښودلو لپاره باید لومړی یو صفت غوره شي چې هغه په لومړی جمله کې (am besten) په صحیح ډول کارول شوېدی. | 2 |
| طبیعي رنګونه ګردانېدی شي. طبیعي رنګونه دا دي: (تور = schwarz)، (سپین = weiß)، (شین = grün) او داسي نور. مثال: (سپین کور = das weiße Haus)<br>نوي مود شوي رنګونه لکه (ګلابي = rosa)، (بنفشي = lila)، (فېروزه رنګی = türkis) ګردانېدلی نشي او پخپل حال پاتي کېږي، لکه (ګلابي ګل = die rosa Blume) . | 3 |
| د (einzig) مانا ده (یوازېنی). یو څوک چې یوازېنی کس شو، نو بیا سړي نشي ویلی چې (لاپسي یوازېنی = einziger) ، (له ټولو نه یوازېنی = einzigst). یوازېنی کس لاپسي یوازېنی یا له ټولو نه یوازېنی کېدی نشي، نو له دې کبله (einzigst) غلط دی. | 4 |
| د (ذوق = Geschmack) جمع (Geschmäcke) دی. (Geschmäcker) غلط دی. | 5 |
| په ادبي ژبه کې د (یوازې) لپاره ویل کېږي (allein) . د (alleine) کارول ادبي ژبه نه بلکي اصطلاحي ژبه ده. | 6 |
| د (trotz) لغت تل له (Genitiv) سره استعمالیږي. له (Dativ) سره استعمال یې په اصطلاحي ډول په جنوبي جرمني کې دود دی چې د ګرامر په اساس غلط دی. له (Dativ) سره (trotz) هغه وخت راتلی شي چې (Artikel) ورسره نه وي، لکه:<br>trotz allem — له هر څه سره سره<br>trotz heftigem Regen — له سخت باران سره سره | 7 |
| څنګه چې په (1) برخه کې یاد شول، پرتله کېدل په (wie) کېږي او نه په (als) . | 8 |
| کله چې یو عدد د صفت په توګه، یعني د (Zahladjektiv) په توګه وکارول شي، نو د مفرد په توګه ګردانېدی شي او د جمع په توګه نشي ګردانېدلی، په دې ډول:<br>Märchen aus Tausendundeiner Nacht — gebeugte Form von ...*[und]ein* mit Singular<br>دا ډول ګردانېدلی شي (مفرد)<br>Märchen aus Tausendundeins Nächten — ungebeugt ...*[und]ein* mit Plural<br>دا ډول نشي ګردانېدلی (جمع) غلط<br>دا مطلق غلط دی: aus Tausendundeins Nächten. | 9 |
| د داسي جملو د جوړولو لپاره په ادبي ژبه کې له (Genitiv) نه کار اخیستل کېږي، لکه:<br>~~Onkels Hund د کاکا سپی~~ — ~~Vaters Fahrrad د پلار بایسکل~~ — falsch غلط<br>der Hund meines Onkels — Das Fahrrad meines Vaters — Genitiv | 10 |
| | 11 |

| | |
|---|---|
| | دا یوه ګرامري تېروتنه ده. که چېرته مطلب له ډېر پخواني وخت نه وي، نو د دې لپاره یا له (Perfekt) او یا له (Plusquamperfekt) نه کار اخیستل کیږي. د دې لپاره کوم دلیل نشته د (Perfekt) په پای کې (gehabt) ورااضافه شي. |
| 12 | د (optimal) مانا ده: (له ټولو نه ښه). یو څه چې له ټولو نه ښه شو، نو له دې نه لاپسې ښه کېدل امکان نلري. دا به غلطه وي چې په دې کې له (Steigerung) نه کار واخیستل شي. |
| 13 | کله چې (Genitiv) یعني (meines Wissens) وکارول شو، نو د هغې شاته بیا د (nach) راوستل یو غلط کار دی. کوم شی چې له (nach) سره راتلی شي، هغه په دې ډول کېدی شي: meiner Meinung nach ، یعني زما په فکر. |
| 14 | (kein) یو ضمیر یا (Pronomen) دی. د ضمیر (Steigerung) په ګرامر کې نشته. |
| 15 | د (Sinn) مانا (مفهوم) ده، د (macht) سره نه کارول کیږي، بلکې د (ergeben) سره. |
| 16 | کله چې د (nicht müssen) په مانا له (brauchen) نه کار اخیستل کیږي، نو هغه تل له (zu) سره یوځای وي، یعني په دې ډول (brauchen + zu). د دې مطلب د یاد ساتلو لپاره د زده کوونکو لپاره د دې جملې زده کول ضرور دي:<br>*Wer brauchen ohne „zu“ gebraucht, braucht brauchen überhaupt nicht zu gebrauchen.*<br>څوک چې (brauchen) بې له (zu) کاروي، ښه به دا وي چې هېڅ یې ونه کاروي |
| 17 | (trotz) د (Genitiv) یو (Präposition) دی. دې ته کوم دلیل نشته چې د (der Regen) د (Genitiv) په ځای له (Dativ) نه کار واخیستل شي. |
| 18 | د دې کال اوړي ته ویل کیږي (der Sommer dieses Jahres). د (Jahr) (Artikel) (das) دی، نو دې ته کوم دلیل نشته چې د (das) لپاره (diesen) راشي. له بلې خوا (dieses) کوم صفت یا (Eigenschaftswort) ندی چې د صفت په شان ګردان شي، بلکې د اشاري یو نومځری، یعني (Demonstrativpronomen) دی چې دا د یو (Artikel) په شان ګردانیږي. دا په دې مانا چې د (der Sommer) لپاره په اشاري په نومځري کې ویل کیږي (dieser Sommer). همدا شان کله چې (der Sommer des Jahres) یاد شي، نو په (Demonstrativpronomen) کې ورته (im Sommes dieses Jahres) ویل کیږي. |
| 19 | دا چې ولې دلته (im Sommer letzten Jahres) وکارول شو او نه (letzten Jahres)، د دې علت دا دی چې دلته له (letzt) نه مخکې یو (Genitiv) راغلی دی، یعني په دې ډول: (im Sommer des letzten Jahres) . |
| 20 | دا په عین ډول دی لکه (18) مثال. (jenes) یو (Demonstrativpronomen) دی او نه یو صفت چې د صفت په شان ګردان شي. د (jener, jene, jenes) ګردان د (Pronomen) په شان کیږي. |
| 21 | دلته د جملې فاعل یا (Subjekt) مفرد یا (Singular) دی، او هغه (ein Drittel) دی. نو کله چې د جملې فاعل مفرد وي، نو فعل یې هم د مفرد ډول راځي. |

| | |
|---|---|
| دلته د جملې فاعل یا (Subjekt) په (Plural) کې دی، او هغه (Teilnehmer) دی. نو کله چې د جملې فاعل جمع وي، نو فعل یې هم په جمع کې کارول کیږي.همدا شان په دوهمه جمله کې فاعل (500 Gramm) په جمع کې دی نو ځکه فعل هم ورسره په جمع کې کارول کیږي. | 22 |
| تش د (O) توری یوه ځانګړې مانا لري او هغه د مینې، د موافقې او د احترام ښودلو مانا ده. څنګه چې په پښتو کې یوه مور خپل ماشوم ته په مینه ووایي چې (ای زما خوږه بچېه). نو دلته د (ای) لپاره تش (O) کارول کیږي. که چېرته دلته (oh) وکارول شي، نو دا به د چیغو او پریاد مانا وي، خو دلته مطلب له پریاد نه ندی بلکې له مینې او محبت نه دی. همدا شان (o ja) هغه وخت کارول کیږي، چې یو څوک له یو شي سره موافق وي او په مینه او خوښی (هو) وایي. | 23 |
| څنګه چې پورته یاده شوه (oh) له یو شي نه د ډار، د چیغو او د پریاد لپاره کارول کیږي چې په پښتو کې ورته (وای یا وای وای) وایي. نو کله چې یو څوک د پریاد لپاره د (oh) په ځای له (O) نه کار واخلي، نو دا بیا د چیغو او پریاد مانا نه ورکوي. | 24 |
| (anscheinend) دې ته وایي چې یو څه ظاهراً داسې ښکاري چې واقعیت واوسي، یعنې احتمالاً. (scheinbar) دې ته وایي چې یو څوک ځان ظاهراً په یو شان ښکاره کوي چې هغه له واقعیت نه لیرې وي، یعنې دا چې دا د ظواهرو خبره ده، نه د واقعیت خبره. | 25 + 26 |
| (Kosten) لګښت ته وایي، یعنې په یو شي باندې څومره لګښت کیږي. (Unkosten) اضافه لګښت ته وایي، یعنې هغه لګښت چې د پلان او براورد په خلاف په اضافه ډول په یو چا راشي. په عادي ډول کله چې ویل کیږي چې په ما څومره لګښت راغئ، دې ته د (Kosten) لغت کارول کیږي او نه (Unkosten). په کوم ځای کې چې (Unkosten) صحیح کارول کېدی شي، هغه دا اصطلاح ده: (sich in Unkosten stürzen) یعنې په یو چا له حده ډېر لګښت راتلل. | 27 |
| هغه تبلیغ یا اعلان چې د یو کس له خولې نه د بل کس غوږ ته رسول کیږي، دې ته ویل کیږي (Mundpropaganda) . یوه خبره د یو چا له خولې نه د بل چا خولې ته نه رسول کیږي، بلکې غوږ ته رسول کیږي، نو دې ته کوم دلیل نشته چې وویل شي چې (له یوې خولې نه بلې خولې ته تبلیغ یا (Mund-zu–Mund–Propaganda). دا اصطلاح (Mund-zu-Mund)، په طب کې هغه وخت کارول کیږي چې یو روغ انسان یو بې هوښه انسان ته د خولې له لارې ساه یا تنفس ورکړي چې د ې ته وایي (Mund-zu-Mund-Beatmung). له بده مرغه دا غلطه اصطلاح دومره عامه شوېده چې حتی په معتبرې جرمنی ډکشنری (DUDEN) کې ورته د لغت په توګه ځای ورکړل شوېدی. | 28 |
| ځینې کسان د (هرومرو) لپاره له فرانسوي کلمې (partout) نه کار اخلي چې تلفظ یې په دې ډول دی (په غ تو). ځینې لږتعلیمه کسان فکر کوي چې دا جرمني کلمه ده او فکر کوي چې داسې به ولیکل او ولوستل شي (per du). | 29 |
| د یو شي دقیق بیانولو ته ویل کیږي (genauer gesagt). له (beziehungsweise) نه هغه وخت کار اخیستل کیږي چې دوه مختلف لغات موجود وي چې د جملې یوه برخه د یو لغت او بله برخه یې د بل لغت په برخه کې معلومات وړاندې کړي، مثال:<br>Ihre Tochter und ihr Sohn sind sechs beziehungsweise acht Jahre alt.<br>د هغه د لور او د زوی عمرونه شپږ او اته دي، که دقیق یې ووایو د لور عمر شپږ او د زوی عمر اته دی | 30 |
| | |

<table>
<tr><td>31</td><td>په لغوي مانا (wohlgesinnt) (د يو چا په برخه کې ښه نظر) ته وايي. دا لغت له (Sinn) او له (wohl) نه جوړ شوی صفت يا (Adjektiv) دی. داسې نور جوړ شوي لغات هم شته، مثال:<br>
<table>
<tr><td>übel gesinnt<br>په بد نظر</td><td>freundlich gesinnt<br>د مهربانۍ په نظر</td><td>feindlich gesinnt<br>د ښمنۍ په نظر</td></tr>
</table>
ځيني کسان فکر کوي چې دا له يو فعل نه جوړ شوی (Partizip Perfekt) دی چې فعل به يې (wohlsinnen) وي، خو دا ناسمه خبره ده، داسې کوم فعل نشته چې ماضي به يې دا وي: (~~ich wohlsann, habe wohlsonnen~~). له بده مرغه دا تېروتنه دومره عامه شوېده چې (DUDEN) د اصطلاحي لغت په مانا منلې ده.</td></tr>
<tr><td>32</td><td>(Model) په پای کې په يو (L) او (Modell) په پای کې په دوه (LL) له يو بل سره ډېر ورته لغات دي، خو بيا هم پکې ډېر توپير شته. (Model) يو انسان ته وايي چې زياتره يې ښځينه وي او د يو موډ ښودونکي دي، يعني د موډ جامې اغوندي او خلك يې ننداره کوي. (Modell) يوې نمونې ته وايي چې له مخه يې نور کسان يو څه رسمولی او جوړولی شي.</td></tr>
<tr><td>33</td><td>ځنګه چې ليدل کيږي (wegen) چې يو (Präposition) دی، په دواړو جملو کې کارول شويدی. خو خبره دا ده چې (wegen) د (Genitiv) يو (Präposition) دی، او نه د (Dativ). که مطلب بيا له نورو اشخاصو وي، لکه ستا په خاطر، د هغه په خاطر ...، دا به لاندې وګورو:<br>
<table>
<tr><td>ihretwegen<br>د هغو په خاطر</td><td>euretwegen<br>ستاسو په خاطر</td><td>unseretwegen<br>زمونږ په خاطر</td><td>seinetwegen<br>د هغه په خاطر</td><td>deinetwegen<br>ستا په خاطر</td></tr>
</table>
ځنګه چې ليدل کيږي (wegen) يو (Präposition) دی چې په دواړو جملو کې کارول شوی دی. خو خبره دا ده چې (wegen) د (Genitiv) يو (Präposition) دی، او نه د (Dativ).</td></tr>
<tr><td>34</td><td>د نومونو په سر هغه وخت يو (Apostroph) يا داسې (’) نښه راتلی شي چې يا د يوې هټۍ په سر په لوحه د (Genitiv) په حالت کې د يو چا نوم ليکل شوی وي چې هلته بيا د (-s) په ځای دا (’) نښه يا (Apostroph) راځي. او يا د اسم وروستي توري (s, ss, ß, tz, z, x, ce) وي چې بيا د (Genitiv) په حالت کې د (-s) په ځای (Apostroph) ليکل کيږي.</td></tr>
<tr><td>35</td><td>په جرمني ژبه کې په ښه يا سم نه پوهېدلو ته (nicht richtig verstanden) وايي.<br>(nicht wirklich) له انګليسي (not really) نه غلطه ژباړه ده</td></tr>
<tr><td>36</td><td>دلته فعل (kopfstehen) دی چې مانا يې ده (يو شي ته هك حيران پاتې کېدل). دا فعل يو (trennbar) فعل دی. ګردان يې په دې ډول کيږي: ich stehe kopf . دې ته کوم دليل نشته چې (kopf) د اسم په شان په لوی (K) وليکل شي.</td></tr>
<tr><td>37</td><td>د زېږولو لپاره فعل ته (kreißen) وايي، نو همدې کبله په زېږنتون کې د اولاد زېږوني خونې ته (der Kreißsaal) ويل کيږي. دا لغت له (der Kreis) يعني دايرې سره څه اړه نلري.</td></tr>
<tr><td>38</td><td>د (lizenzieren) فعل چې مانا يې ده (جواز يا اجازه ورکول) ، له (Lizenz) نه اخيستل شوی چې په (z) ليکل کيږي. دې ته کوم دليل نشته چې (lizenzieren) په (s) وليکل شي په دې غلط ډول: (~~lizensiern~~)</td></tr>
</table>

| | |
|---|---|
| 39 | د (anfangen) لنډ تېر وخت یا (Perfekt) په (haben) جوړیږي. دې ته کوم دلیل نشته چې دلته له (sein) نه کار واخیستل شي. خو په اصطلاحي ډول ځیني کسان بیا هم له (sein) نه کار اخلي چې د ګرامر په اساس دا یو ناسم کار دی. همدا شان د (sitzen, stehen) لنډ تېر وخت یا (Perfekt) په (haben) کیږي. له (sein) نه د (Bayern) په ولایت کې په اصطلاحي ډول کار اخیستل کیږي. |
| 40 | په لغوي مانا (behängen) له یو شي پوري یو بل شی ټینګول او بیا یې ځوړندول، بې له دې چې لاندې ولویږي. د (behängen) تېر وختونه دا دي:(er behängte, hat behängt). په پورتنی جمله کې (behängen) د (Partizip II) په ډول کارول شویدی چې هغه (behängte) دی. دې ته کوم دلیل نشته چې ورته (behangen) وکارول شي. بل دا چې د (behangen) په نامه کوم فعل نشته.<br>یادونه: په دې برخه کې د جرمني د نورو ژبنیو منابعو په خلاف (DUDEN) په دې نظر دی چې (behangen) د صفت یا (Adjektiv) په توګه شتون لري او یو مثال یې راوړی دی، په دې ډول:<br>یوه له ډېرو منو نه ډکه ونه ein über und über mit Äpfeln behangener Baum |
| 41 | په لغوي مانا (Erachten) آند یا نظر ته وایي. زما په آند یا زما په نظر ته ویل کیږي: (meines Erachtens). دې ته کوم دلیل نشته چې له (Erachten) نه وروسته ورسره (nach) یوځای شي. کوم لغت چې په همدې مانا کارول کېدی شي او ورنه وروسته بیا (nach) راتلی شي، هغه (Meinung) دی. نو په دې ډول زما په آند ته ویل کېدی شي چې: (meiner Meinung nach) |
| 42 | په دې جمله کې دوه غلطی دي. لومړی دا چې (Vortäuschung) په لغوي مانا دې ته وایي چې یوه ټګي برګي یا یو غیرواقعیت یوچاته په درواغو او په چل ول د واقعیت په ډول وروښودل شي. له بلې خوا (Tatsache) واقعیت ته وایي. نو په دې ډول (غلط واقعیت) اصلا هېڅ شتون نلري ځکه یو شی چې غلط یا د دروغو شو، نو بیا واقعیت نشو. نو په دې ډول دا یوه بالکل بې مانا جمله ده چې وویل شي: (Vortäuschung falscher Tatsachen) . مانا یې ده: (په درواغو او په چل ول یو چاته د درواغو واقعیت ښودل) . یو شی چې دروغ شو، نو واقعیت نشو. |
| 43 | په لغوي مانا (wennschon) دې ته وایي چې که دا کار هم وشي، څه پروا یې نشته. سره له دې چې دا لغت له (wenn) او (schon) نه جوړ شوېدی، خو بیا هم یوځای لیکل کیږي، د (wennschon) لیکل د (wenn schon) په ډول یو ناسم کار دي |
| 44 | همدا شان (wennschon, dennschon) دې ته وایي چې یا دې یو کار هېڅ نکیږي، او که کیږي، نو سم دې وشي او په نیمګړي ډول دې نکیږي. د دې اصطلاح بېل بېل لیکل ناسم کار دی |

| | |
|---|---|
| د (versandt) او (versendet) اصلي فعل په ګډه (versenden) دی چې مانا يې ده (لېږل، استول) او د (Perfekt) حالت يي په تېرو يادو ډولونو، يعني په (versandt) او (versendet) جوړېدی شي. خو د (Perfekt) په حالت کې بيا مانا يې له يو بل سره توپير لري. کله چې ويل کيږي چې: (Das Paket wurde versandt) مطلب دا چې پارسل واستول شو. خو کله چې ويل کيږي چې: (Das Hörspiel wurde versendet) د دې مطلب دا دی چې (غږيزه ډرامه په راډيو او يا ټلويزيون کې خپره شوه). که چېرته (versandt) او (versendet) له يو بل سره ګډوډ شي، نو داسې مانا به ترې واخيستل شي چې (پارسل په راډيو کې خپور يا نشر شو او غږيزه ډرامه واستول شوه) | 45<br>+<br>46 |
| دا سمه ده چې د يو (Vorname) او د (Familienname) ترمينځ د نښلولو کرښه (-) نه ليکل کيږي، خو کله چې د يو چا نوم د يو اسم يا د يو مفهوم سره يوځای شي، نو د هر نوم ترمينځ د نښلولو کرښه (-) ليکل کيږي. داسې بېلګې نورې هم شته، لکه:<br>(Heinrich-Böll-Stiftung) يعني د (Heinrich Böll) خېريه موسسه<br>Quelle: Verein Deutsche Sprache, Sprachnachrichten, Nr. 74 (11/2017), www. Vds-ev.de | 47 |

## Liste der starken Verben

| Infinitiv<br>مصدر | Präteritum<br>مطلقه ماضي | Partizip II<br>لنډه ماضي | Präsens (du)<br>اوسنی وخت | Konjunktiv II |
|---|---|---|---|---|
| abwägen بد او ښه ارزونه سنجول | wog ab | abgewogen | wägst ab | wöge ab |
| backen پخول | buk/backte | gebacken | bäckst/backst | |
| befehlen امر کول | befahl | befohlen | befiehlst | beföhle/befähle |
| beginnen پيل کول | begann | begonnen | | begänne/begönne |
| beißen چيچل، داړل | biss | gebissen | | |
| bergen ژغورل | barg | geborgen | birgst | bärge |
| bersten درزېدل، چاودل | barst | geborsten | birst | bärste |
| besinnen له ځانه سره فکر يا سوچ کول | besann mich | besonnen | | besänne mich |
| bewegen له ځايه ښوځول، ښورول | bewog | bewogen | | bewöge |
| biegen قاتول، کتول | bog | gebogen | | böge |
| bieten وړاندې کول | bot | geboten | | böte |
| binden تړل | band | gebunden | | bände |
| bitten هيله کول | bat | gebeten | | bäte |
| blasen پو کول | blies | geblasen | bläst | |
| bleiben پاتې کېدل | blieb | geblieben | | |
| bleichen کم رنګه کول، کم رنګه کېدل | blich/<br>bleichte | geblichen/<br>gebleicht | | bliche/<br>bleichte |
| braten کبابول | briet | gebraten | brätst | |
| brechen ماتول | brach | gebrochen | brichst | bräche |
| dingen د پيسو په بدل کې يو څوك د يو کار لپاره موظفول | (dang) | gedungen | | (dänge) |
| dringen په زور په يو ځای کې ننوتل | drang | gedrungen | | |
| empfangen يو را ليږل شوی شی لاس ته راوړل، په لاس نيول | empfing | empfangen | empfängst | |
| empfehlen توصيه کول | empfahl | empfohlen | empfiehlst | empföhle/empfähle |
| erklimmen پورته ختل | erklomm | erklommen | | erklömme |
| erlöschen مړ کېدل | erlosch | erloschen | erlischst | erlösche |
| erschallen غوږ ته راتلل | erscholl | erschollen | erschallst | erschölle |
| erschrecken ډارېدل | erschrak | erschrocken | erschrickst | erschräke |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| erwägen د يو شي په برخه کې له ځانه سره فکر او بيا پرېکړه کول | erwog | erwogen | erwägst | erwöge |
| essen خوړل | aß | gegessen | isst | äße |
| fahren په موټر کې تلل | fuhr | gefahren | fährst | führe |
| fallen ولېدل | fiel | gefallen | fällst | |
| fangen نيول، تيڼګول | fing | gefangen | fängst | |
| fechten توره وهل | focht | gefochten | fichst | föchte |
| finden ميندل، موندل | fand | gefunden | fände | |
| flechten اوبدل، اودل | flocht | geflochten | flichtst | flöchte |
| fliegen الوتل | flog | geflogen | | flöge |
| fliehen تښتېدل | floh | geflohen | | flöhe |
| fließen بهېدل | floß | geflossen | | |
| fressen خوړل (د ژوو) | fraß | gefressen | frisst | fräße |
| frieren ساړه کېدل | fror | gefroren | | fröre |
| gären تومنه کېدل، تريو کېدل، تروشېدل | gor | gegoren | | göre |
| gebären اولاد زېږول | gebar | geboren | gebärst | gebäre |
| geben ورکول | gab | gegeben | gibst | gäbe |
| gedeihen وده کول | gedieh | gediehen | | |
| gehen تلل | ging | gegangen | | |
| gelingen په برياليتوب سر ته رسېدل | gelang | gelungen | | gelänge |
| gelten اعتبار درلودل، ارزښت درلودل | galt | gegolten | giltst | gölte/gälte |
| genesen له رغېدل، ناروغی نه ښه کېدل | genas | genesen | genest | genäse |
| genießen له يو شي نه خوند اخيستل | genoß | genossen | | genösse |
| geraten په يو حالت اخته کېدل | geriet | geraten | gerätst | geriete |
| geschehen پېښېدل | geschah | geschehen | | geschähe |
| gewinnen ګټل | gewann | gewonnen | | gewönne/gewänne |
| gießen اوبلن شيان تويول، اړول | goß | gegossen | | gösse |
| gleichen يو بل ته ورته (مشابه) اوسېدل | glich | geglichen | | |
| gleiten په ښويېدلو ورتلل، ښويېدل | glitt | geglitten | | |
| glimmen کمزوری اور (سکروټه) درلودل | glomm | geglommen | | glömme |
| graben کيندل، کنده کېندل | grub | gegraben | gräbst | grübe |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| greifen نیول، اخیستل | griff | gegriffen | | |
| halten نیول، ساتل | hielt | gehalten | hältst | |
| hängen ځوړندول، ځوړند اوسېدل | hing/ hängte | gehangen/ gehängt | hängst | |
| hauen وهل | (hieb) | gehauen | | |
| heben جګول، لوړول | hob | gehoben | | höbe |
| heißen نوم درلودل | hieß | geheißen | | |
| helfen مرسته کول | half | geholfen | hilfst | hülfe/hälfe |
| kennen پېژندل | kannte | gekannt | | würde kennen |
| klimmen یو جګ ځای ته ختل | klomm | geklommen | | klömme |
| klingen غږ ته راتلل | klang | geklungen | | klänge |
| kneifen سکونډل | kniff | gekniffen | | |
| kommen راتلل | kam | gekommen | | käme |
| kriechen لکه د مار په شان په سینه بنویېدل | kroch | gekrochen | | kröche |
| laden بارول، بلل | lud | geladen | lädst | lüde |
| lassen پرېښودل | ließ | gelassen | lässt | |
| laufen منډې وهل | lief | gelaufen | | |
| leiden کړېدل | litt | gelitten | | |
| leihen امانت اخیستل | lieh | geliehen | | |
| lesen لوستل | las | gelesen | liest | läse |
| liegen پروت اوسېدل | lag | gelegen | | läge |
| löschen يو شی مړ کول، هیسته کول، پاکول | losch | geloschen | | lösche |
| lügen درواغ ویل | log | gelogen | | löge |
| mahlen دل کول، په ژرنده کې اوړه کول | mahlte | gemahlen | | mahlte |
| meiden له یو شي نه ډډه کول، پرېښودل | mied | gemieden | | |
| melken لشل | molk | gemolken | milkst | mölke |
| messen اندازه کول | maß | gemessen | | mäße |
| misslingen له ناکامۍ سره مخامخېدل | misslang | misslungen | | misslänge |
| nehmen اخیستل | nahm | genommen | nimmst | nähme |
| nennen په یو نوم يادول، نوم ورکول | nannte | genannt | | nennte |
| pfeifen شکېلی کول | pfiff | gepfiffen | | |
| preisen ستاینه کول | pries | gepriesen | | |
| quellen پړسېدل | quoll | gequollen | quillst | quölle |
| raten سلا ورکول | riet | geraten | rätst | |
| reiben سولول | rieb | gerieben | | |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| reißen شکول | riss | gerissen | | |
| reiten په آس سورېدل | ritt | geritten | | |
| riechen بویول | roch | gerochen | | röche |
| ringen غېږه نیول | rang | gerungen | | ränge |
| rennen ځغستل | rannte | gerannt | | rennte |
| rinnen بهېدل | rann | geronnen | | rönne |
| rufen غږ کول | rief | gerufen | | |
| saufen ډېرې اوبه څښل (د څاروي) | soff | gesoffen | | söffe |
| schaffen خلقول، مینځ ته راوړل | schuf | geschaffen | | schüfe |
| schallen غږکول، غږ راتلل | (scholl) | (geschollen) | schallst | schölle |
| scheiden له یو ځای نه وتل، خارجېدل | schied | geschieden | | |
| scheinen لمر اوسېدل، لمر راتلل، لمر کېدل | schien | geschienen | | |
| schelten دګل، رټل | schalt | gescholten | | schölte |
| schieben پورې وهل | schob | geschoben | | schöbe |
| schießen ویشتل | schoss | geschossen | | schösse |
| schinden له یو چا سره بد چلند کول | schindete | geschunden | schindest | schindete |
| schlingen د یو شي له شاوخوا نه راچاپېرول | schlang | geschlungen | | schlänge |
| schlafen خوب کول | schlief | geschlafen | schläfst | |
| schlagen وهل | schlug | geschlagen | schlägst | schlüge |
| schleichen ځخېدل، خارپوځي کول | schlich | geschlichen | | |
| schleifen تېره کول | schliff | geschliffen | | |
| schließen تړل، بندول | schloss | geschlossen | | |
| scheißen ډکي متیازي کول، غول کول | schiss | geschissen | | |
| schmeißen غورځول | schmiss | geschmissen | | |
| schmelzen ویلې کېدل | schmolz | geschmolzen | schmilzt | schmölze |
| schneiden غوځول | schnitt | geschnitten | | |
| schreiben لیکل | schrieb | geschrieben | | |
| schreien چیغې وهل | schrie | geschrieen | | |
| schreiten قدم اېښودل | schritt | geschritten | | |
| schweigen غلی کېدل | schwieg | geschwiegen | | |
| schwellen پړسېدل | schwoll | geschwollen | schwillst | schwölle |
| schwimmen لامبو وهل | schwamm | geschwommen | | schwömme/ schwämme |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| schwinden کمېدل، ورکېدل | schwand | geschwunden | | schwände |
| schwingen رپول، څرخول | schwang | geschwungen | | schwänge |
| schwören قسم کول | schwor | geschworen | | schwüre/schwöre |
| sehen لیدل، کتل | sah | gesehen | siehst | sähe |
| sein اوسېدل (بودن) | war | gewesen | | wäre |
| sieden بخارېدل، تبخیرېدل | sott/ siedete | gesotten/ gesiedet | | sötte/siedete |
| singen سندرې ویل | sang | gesungen | | sänge |
| sinken تیتېدل | sank | gesunken | | sänke |
| sinnen سوچ وهل | sann | gesonnen | | sänne |
| sitzen ناست اوسېدل | saß | gesessen | | säße |
| spalten یو شی درزول | spaltete | gespalten | | |
| speien لاړې توکول | spie | gespieen | speist | spiee |
| spinnen ورېشل | spann | gesponnen | spinnst | spönne |
| spleißen له یو بل سره ترل، وصلول | spliss | gesplissen | splisst | splisse |
| sprechen غږېدل | sprach | gesprochen | sprichst | spräche |
| sprießen راشنه کېدل | spross | gesprossen | | sprösse |
| springen توپ وهل | sprang | gesprungen | | spränge |
| stechen چیچل،چوخول | stach | gestochen | stichst | stäche |
| stecken په یو شي کي ننه ایستل، تومبل | stak/ steckte | gesteckt | steckst | stäke/steckte |
| stehen ودرېدل | stand | gestanden | | stünde/stände |
| stehlen غلا کول | stahl | gestohlen | stiehlst | stähle/-ö- |
| steigen پورته ختل | stieg | gestiegen | | |
| sterben مړ کېدل | starb | gestorben | stirbst | stürbe |
| stieben جغدی جغدي کېدل، پترې الوتل | stob/ stiebte | gestoben | stiebst | stöbe |
| stinken بد بوي کول | stank | gestunken | stänke | |
| stoßen په یو شي لګېدل، ټکرېدل | stieß | gestoßen | stößt | |
| streichen مښل | strich | gestrichen | | |
| streiten جګړه کول | stritt | gestritten | | |
| tragen وړل، چلول | trug | getragen | trägst | trüge |
| treffen لیده کاته کول | traf | getroffen | triffst | träfe |
| treiben مخکې بیول، چلول | trieb | getrieben | | |
| treten یوځای ته ننوتل | trat | getreten | trittst | träte |
| triefen څاڅکي څاڅکي بهېدل، څڅېدل | troff/ triefte | getrieft/ getroffen | triefst | tröffe/ triefe |
| trinken څښل | trank | getrunken | | tränke |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| trügen غولول، غلطول | trog | getrogen | | tröge |
| tun کول | tat | getan | | täte |
| verderben مردارول، خوسا کېدل، خرابېدل | verdarb | verdorben | verdirbst | verdürbe |
| verdrießen خواشيني کول، په قهرول | verdross | verdrossen | verdrießt | verdrösse |
| vergessen هېرېدل، هېرول | vergaß | vergessen | vergisst | vergäße |
| verlieren له يو چا نه ورکېدل، ورکول | verlor | verloren | | verlöre |
| verlöschen اور مړ کول، څراغ مړ کول | verlosch | verloschen | verlischst | verlösche |
| verschleißen د يو شي شړېدل، زړېدل | verschliss | verschlissen | verschleißt | verschlisse |
| verzeihen ببنل، عفوه کول | verzieh | verziehen | verzeihst | verziehe |
| wägen د ښه او بد اړخ په برخه کي فکر کول | wog | gewogen | wägst | wöge |
| waschen پرېمينځل | wusch | gewaschen | wäschst | wüsche |
| weichen ليري کېدل، هيسته کېدل | wich | gewichen | | |
| weisen ښودل، گوته نيول | wies | gewiesen | | |
| werben اعلانونه کول، علاقه راجلبول | warb | geworben | wirbst | würbe |
| werden کېدل | wurde | geworden | wirst | würde |
| werfen غورځول | warf | geworfen | wirfst | würfe |
| wiegen وزنول، تلل | wog | gewogen | wiegst | wöge |
| winden له يو اړخ نه بل اړخ نه اوړېدل | wand | gewunden | | |
| wringen يوه ټوټه دومره تاوول چي اوبه يي وڅڅيږي | wrang | gewrungen | | wränge |
| ziehen راښکل | zog | gezogen | ziehst | zöge |
| zwingen مجبورول | zwang | gezwungen | | zwänge |

# غیر طبي چاپ شوي کتابونه (زراعت، انجنيري، اقتصاد، ښوونې او روزنې، ساينس او ژورناليزم) ۲۰۲۱-۲۰۱۵

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 1 | عمومي رياضيات | پوهنوال گل محمد جنت زی | خوست | 2 | د عالي رياضياتو عمومي کورس | پوهندوی محب الرحمن جنتي | ننگرهار |
| 3 | عالي کلکولس I، 434 A رياضي | پوهندوی حميدالله يار | ننگرهار | 4 | عالي کلکولس II | پوهندوی نظر محمد | ننگرهار |
| 5 | د نفوسو جغرافيه | پوهنوال لطف الله صافي | ننگرهار | 6 | فزيکي کيميا II، الکتروليتي محلولونه او الکتروکيميا | پوهاند دوکتور خير محمد ماموند | ننگرهار |
| 7 | فزيکي کيميا III، کيمياوی کنتک او کتلسس، کروماتوگرافي او اسپکتروسکوپي | پوهاند دوکتور خير محمد ماموند | ننگرهار | 8 | د ژويو فزيولوژي | پوهاند غنچه گل حبيب صافی | ننگرهار |
| 9 | د ودانيو د تودولو تخنيک، لومړی برخه، د سون تخنيک | داکتر غلام فاروق مير احمدی | ننگرهار | 10 | د متيورولوژی مبادی | پوهنوال عبدالغياث صافی | ننگرهار |
| 11 | معيار های جديد اعمار ساختمان | داکتر انجنير محمد عمر تيموری | ننگرهار | 12 | چگونگی مصرف انرژی در ساختمان های رهايشی | داکتر انجنير محمد عمر تيموری | ننگرهار |
| 13 | الجبر او د عددونو تيوری، لومړی برخه | سطان احمد نيازمن | ننگرهار | 14 | د ژوند چاپيريال | پوهاند عارف الله مندوزی | ننگرهار |
| 15 | د اوسپيز کانکرېټي عناصرو د لومړی صنفي کار متوديکي لارښود | پوهندوی انجنير عبادالرحمن مومند | ننگرهار | 16 | جامداتو ميخانيک | پوهنوال محمد اسحق رازقی | ننگرهار |
| 17 | عضوی کيميا، کرېوال ترکيبونه | پوهاند دوکتور محمد غوث حکيمی | ننگرهار | 18 | د ودانيو د جوړولو مهندسي اساسات، لومړی ټوک | ډيپلوم انجينېر اسدالله ملکزی | ننگرهار |
| 19 | د ودانيو د جوړولو مهندسي اساسات، دويم ټوک | ډيپلوم انجينېر اسدالله ملکزی | ننگرهار | 20 | کيميايي عنصرونه، لومړی ټوک | محمد طاهر کاڼي | ننگرهار |
| 21 | کيميايي عنصرونه دويم ټوک | محمد طاهر کاڼي | ننگرهار | 22 | د اقتصاد او تجارت اصطلاحات (انگليسی-پښتو تشريحی قاموس) | پوهنيار عبدالله عادل او امان الله ورين | ننگرهار |
| 23 | خطي الجبر | داکتر عبدالله مهمند | ننگرهار | 24 | روانشناسی و ضرورت آن در جامعۀ افغانستان | داکتر اعظم دادفر | کابل پوهنتون |
| 25 | مبادی اقتصاد زراعتی | پوهاند ولی محمد فائز | بلخ | 26 | اساسات هندسه ترسيمی مسطح | پوهنوال سيد يوسف مانووال | بلخ |
| 27 | تأسيسات و تجهيزات تخنيکی ساختمان | داکتر انجنير محمد عمر تيموری | پولی تخنيک کابل | 28 | د راديويي خپرونو توليد | پوهنوال دوکتور ماسټر واحدي | خوست |
| 29 | د خاورې تخريب او د چاپيريال ککړتيا | پوهنيار محمد حنيف هاشمي | خوست | 30 | تيوری و سياست بودجه عامه | پوهنوال داکتر سيد محمد تينگار | کابل |
| 31 | حيوانات مفصليه | پروفيسور داکتر ديپلوم علی آقا نحيف | هرات | 32 | عضوي کيميا، د اروماتيک او هيتروسيکليک برخه | پوهنوال دوکتور گل حسن وليزی | کابل |
| 33 | د پروژې تحليل او مديريت | پوهاند محمد بشير دوديال | ننگرهار | 34 | د انجنيری ميخانيک | پوهنوال محمد اسحق رازقی | ننگرهار |
| 35 | کلکولس او تحليلي هندسه، لومړی برخه | پوهندوی سيد شير آقا سيدي | ننگرهار | 36 | کلکولس او تحليلي هندسه، دوهمه برخه | پوهندوی سيد شير آقا سيدي | ننگرهار |
| 37 | د کرنيزو محصولاتو بازار موندنه | پوهاند محمد طيب | ننگرهار | 38 | کارتو گرافی با اساسات توپوگرافی | پوهنوال دوکتور محمد طاهر عنايت | ننگرهار |
| 39 | انرژي سمپا کوونکي ودانۍ | انجنير اسد الله ملکزی | ننگرهار | 40 | د موادو مقاومت | پوهنمل بهرام اميری | خوست |
| 41 | فزيکی کيميا گازونه او کيمياوی ترموديناميک | پوهاند خير محمد ماموند | ننگرهار | 42 | اطلاعاتو ته د لاسرسي لارې چارې | دانش کروخيل | ننگرهار |
| 43 | حياتي جغرافيه | پوهاند لطف الله صافي | ننگرهار | 44 | د فاضله اوبو انجنيري | پوهاند انجنير زلمی خالقی | ننگرهار |
| 45 | د رياضي په هکله خبرې اترې | سلطان احمد نيازمن | ننگرهار | 46 | اقتصادي جيولوجي (کانپوهنه-فلزي کانونه) | پوهاند دوکتور شريف الله سهاک | ننگرهار |
| 47 | گروه های اجتماعی بسته (مطالعه جامعه شناختی سکتها) | داکتر احمد سير مهجور | کابل پوهنتون | 48 | گرم شدن کره زمين | محمد نعيم نسين | بلخ |
| 49 | الجبر او د عددونو تيوري دوهمه برخه | سلطان احمد نيازمن | ننگرهار | 50 | اعمار ساختمانها (اساسات، مواد و سيستم ها) | پوهندوی انجنير امان الله فقيری | کابل پوليتخنيک |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 51 | په سیول انجنیري کې د اټوکډ استعمال | پوهنوال میا پاچا میاخیل | ننگرهار | 52 | وترینري عمومي پتالوژي | پوهندوی محمد طاهر کاکړ | ننگرهار |
| 53 | انجنیري جیودوزی (سروې) | پوهندی گل حکیم شاه سیدی | ننگرهار | 54 | جیومورفولوژي | پوهنوال عزت الله | ننگرهار |
| 55 | د تلویزیوني خپرونو تولید | پوهنوال داکتر ماستر واحدی | خوست | 56 | اوسپنیز کانکریټي عناصر ، لومړی برخه | پوهنوال دیپلوم انجنیر عبادالرحمن مومند | ننگرهار |
| 57 | زولوجی فقاریه | ذاکره بابکرخیل | ننگرهار | 58 | زولوجی غیرفقاریه | ذاکره بابکرخیل | ننگرهار |
| 59 | د تهداب انجنیري | پوهاند انجنیر زلمی خالقی | ننگرهار | 60 | الجبر معاصر | داکتر عبدالله مهمند | بلخ |
| 61 | رهنمود موثریت حفظ انرژی در تعمیرات | داکتر انجنیر محمد عمر تیموری | کابل | 62 | معاصر الجبر | داکتر عبدالله مهمند | خوست |
| 63 | آلماني د افغانانو لپاره | داکتر یحیی وردک | بېلابېل | 64 | د افغانستان د پوهنتونونو د درسی کتابونو چاپول | داکتر یحیی وردک | ټولو ته |
| 65 | آلمانی برای افغانها به دری | داکتر یحیی وردک | بېلابېل | 66 | د پروژې مدیریت په عمل کې | محمد داود علم او یو اف . گهل | ننگرهار |
| 67 | صنعتي اقتصاد | پوهاند محمد بشیر دودیال | ننگرهار | 68 | نباتي فزیولوژي لومړی جلد | پوهنمل محمد طاهر میاخیل | خوست |
| 69 | نباتي فزیولوژي دوهم جلد | پوهنمل محمد طاهر میاخیل | خوست | 70 | د ساختمانونو تحلیل (لومړی برخه) | پوهاند محمد اسحق رازقی | ننگرهار |
| 71 | د ساختمانونو تحلیل (دویمه برخه) | پوهاند محمد اسحق رازقی | ننگرهار | 72 | د مهندسانو د پاره ساختماني ستاتیک زده کړه | دیپلوم انجنیر اسدالله ملکزی | ننگرهار |
| 73 | د ساختمان د جوړلو طریقې (لومړی برخه) | پوهاند انجنیر محمد عیسی تنها | ننگرهار | 74 | د ساختمان د جوړلو طریقې (دوهمه برخه) | پوهاند انجنیر محمد عیسی تنها | ننگرهار |
| 75 | سیټونه او هرڅه د هغوی په هکله | لیف بوکوفسکی/ سلطان احمد نیاز من | ننگرهار | 76 | د لویو لارو د هندسي عناصرو ډیزاین | پوهنیار انجنیر م. شاکر فاروقي | ننگرهار |
| 77 | د سرخلاصو کانالونو هایدرولیک | پوهنوال میاپاچا میاخیل | ننگرهار | 78 | د جوړښتونو تحلیل (لومړی برخه) | پروفیسور حفیظ الله وردک او پروفیسور دکتور زرجان بها | خوست |
| 79 | د جوړښتونو تحلیل (دوهمه برخه) | پروفیسور حفیظ الله وردک او پروفیسور دکتور زرجان بها | خوست | 80 | د ریاضي منطق | سطان احمد نیازمن | ننگرهار |
| 81 | ۴۵ انجنیري درسي کتابونه | ټول پوهنتونونه | ننگرهار | 82 | د اوبو رسولو انجنیري | پروفیسور انجنیر محمد عیسی تنها | ننگرهار |
| 83 | اوسپنیز کانکریټي عناصر ډیزاین (دویمه برخه، لومړی ټوک) | پوهاند دیپلوم انجنیر عبادالرحمن مومند | ننگرهار | 84 | اوسپنیز کانکریټي عناصر ډیزاین (دویمه برخه، دوهم ټوک) | پوهاند دیپلوم انجنیر عبادالرحمن مومند | ننگرهار |
| 85 | د انجنیری اساسی ریاضی (دوهمه برخه) | پوهندوی عبدالغفور نیازی | ننگرهار | 86 | د انجنیری اساسی ریاضی (لومړی برخه) | پوهندوی عبدالغفور نیازی | ننگرهار |
| 87 | د اقتصادي پرمختیا تیوري | پوهاند محمد بشیر دویال | ننگرهار | 88 | د تحلیلی هندسه لومړی برخه | سید شیر اقا سیدی | ننگرهار |
| 89 | عمومي تخنیکي رسم | پوهیالی فضل اکبر | ننگرهار | 90 | کید او گرافیک | پوهنوال دیپلوم انجنیر بهاوالدین جلالي | ننگرهار |
| 91 | د اقتصاد د علم اساسات | شیرخان حساس | ننگرهار | 92 | نړیوالې ټولنې | احسان الله آرینزی | ننگرهار |
| 93 | اقلیم پوهنه | پوهاند عزت الله سایل | ننگرهار | 94 | د طبیعي علومو انگلیسي-پښتو قاموس | پوهنوال ډاکتر نظر محمد سلطانزی څدران | ننگرهار |
| 95 | جنایي ارواپوهنه | پوهنیار راز محمد فیضي | ننگرهار | 96 | د جوړښتونو تحلیل (دریيم برخه) | پروفیسور حفیظ الله وردک او پروفیسور دکتور زرجان بها | خوست |
| 97 | د اوبو لگولو انجنیری | پوهندوی دېپلوم انجنیر اصغر غفورزی | ننگرهار | 98 | د انسان فزیولوژي او اناټومي | عبدالملک پرهېز | ننگرهار |
| 99 | نیماتولوژي | پوهنوال حسین آرمان | ننگرهار | 100 | د کورنیو الوتنکو د روزنې اساسات | پوهاند میر حالم نیازی | ننگرهار |
| 101 | د سازماني اړیکو مدیریت | پوهاند محمد بشیر دودیال | ننگرهار | 102 | د کرنې تشریحي قاموس | پوهاند محمد بشیر دودیال | ننگرهار |
| 103 | حیواني تغذیه لومړی برخه | پوهندوی روزي خان صارق | ننگرهار | 104 | حیواني تغذیه دوهمه برخه | پوهندوی روزي خان صارق | ننگرهار |
| 105 | وترېنري داخله | پوهندوی پیر محمد ستانکزی | ننگرهار | ۱۰۶ | وترنري فارمکولوژي | پوهنوال محمد بایر درمل | ننگرهار |
| 107 | کوانتم میخانیک | پوهنیار اکرام الله وقار | ننگرهار | ۱۰۸ | د جرمني ژبې اسانه زده کړه، له اساساتو نه تر ادبیاتو پورې | داکتر اکرم ملکزی | ننگرهار |

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 109 | رهبري له تیوري تر عمله | پوهنیار محمد عرفان قریشي | ننگرهار | ۱۱۰ | عامه اقتصاد | پوهندوی ریحان الله رحیمي | ننگرهار |
| 111 | د څیړنې میتودولوژي | پوهنیار نثار احمد مصلح | ننگرهار | ۱۱۲ | د بشري سرچینو مدیریت | پوهنمل مصور فقیرزی | ننگرهار |
| 113 | مرکزي بانګ او پرمختللې پولي سیاستونه | پوهاند دوکتور عبدالقیوم عارف | خوست | | | | |

**تطبیق کوونکی:** ډاکټر یحیی وردګ، د لوړو زده کړو وزارت ، څلورمه کارته، کابل افغانستان، مارچ ۲۰۲۲

موبایل:۰۷۸۰۲۳۲۳۱۰، ۰۷۰۷۳۲۰۸۴۴، ایمیل: www.mohe.gov.af ,info@ecampus-afghanistan.org

ټول کتابونه له دې ویبپاڼو څخه ډونلوډولای شئ: www.ecampus-afghanistan.org



## Publishing Textbooks

Honorable lecturers and dear students!

The lack of quality textbooks in the universities of Afghanistan is a serious issue, which is repeatedly challenging students and teachers alike. To tackle this issue, we have initiated the process of providing textbooks to the students of medicine.

For this reason, we have published 365 different textbooks of Medicine, Engineering, Science, Economics, Journalism, and Agriculture from Nangarhar, Khost, Kandahar, Herat, Balkh, Al-Beroni, Kabul, Kabul Polytechnic, and Kabul Medical universities. The book you are holding in your hands is a sample of a printed textbook. It should be mentioned that all these books have been distributed among all Afghan universities and many other institutions and organizations for free. All the published textbooks can be downloaded from www.ecampus-afghanistan.org.

The Afghan National Higher Education Strategy (2010-2014) states:

*"Funds will be made available to encourage the writing and publication of textbooks in Dari and Pashto. Especially in priority areas, to improve the quality of teaching and learning and give students access to state–of–the–art information. In the meantime, translation of English language textbooks and journals into Dari and Pashto is a major challenge for curriculum reform. Without this facility it would not be possible for university students and faculty to access modern developments as knowledge in all disciplines accumulates at a rapid and exponential pace, in particular this is a huge obstacle for establishing a research culture. The Ministry of Higher Education together with the universities will examine strategies to overcome this deficit."*

We would like to continue this project and to end the method of manual notes and papers. Based on the request of higher education institutions, there is the need to publish about 100 different textbooks each year.

